بسم اللہ الرحمٰن الرحیم

# کفایت دینی کتب خانہ

حنفی شافعی

## کفایت اللہ ابن صدیق

واٹس ایپ گروپ ٹیلی گرام چینل

اس گروپ میں کتابیں اہل السنۃ والجماعت، حنفی، شافعی، مالکی، حنبلی، دیوبند ، علماء حق کے عقائد کے مطابق ہوں گی مختلف زبانوں میں اسلامی کتابیں پشتو عربی اردو فارسی جیسے تفسیریں، فتاویٰ درسی کتب خارجی کتب و غیرہ۔

کفایت اللہ ابن صدیق

+923052488551
+923247442395






مالکی حنبلی

مکمل شده

من يرد الله به خيراً يفقهه في الدين. [الحديث]

د پلچرخي په صليبي زندان کې د اهل السنت والجماعت
د لامذهبو (ويکټوري اهل حديثو،مماتيانو بريلويان او مودوديانو) دعقايدو او د مسائلو
په تشريح کې ليکل شوی کتاب




# في الدفع عن المذهب الحق

مؤلف

الشيخ ابو ابراهيم رحيم الله الحقاني الافغاني
کاتب:مولوي هدايت الله (بدر)

دريم ټوک

اهل السنة والجماعة العالمي

د

## اهل السنة والجماعة العالمي

**اداري لخوا د حضرت شيخ القران والحديث حضرت العلامه**
**ابو ابراهيم رحيم الله الحقاني الافغاني چاپ شوي كتابونه:**

١- احقاق الحق فى الدفع عن مذهب الحق (٥) جلد
٢- احسن التوضيح شرح مشكوة المصابيح (١) جلد
٣- شرح عقد اللألى على حاشية الخيالي
٤- احسن الفرائد شرح شرح العقائد النسفي
٥- د رسول الله صلى الله عليه وسلم لمونځ د حنفي فقهې د تدوين مطابق
٦- احكام الغنيمة
٧- قواعد المناظره
٨- القول المفيد فى اثبات التقليد.

ان شاء الله تعالى چې اهل السنة والجماعة العالمي اداره به د حضرت شيخ صاحب حفظه الله ټول تصنيفات او شروحات چاپ ته وړاندې كوي

مسؤل: مولوي هدايت الله بدر
٠٣٤٨٤٣١٩٥٤١

۱۲، ٤، ۱۳۹۱ هش ۲/ ۷/ ۲۰۱۲ م ۱۲/ ۸/ ۱٤۳۳هج د دوشنبې ورځ

سهرګاه وه نرګس لیمه لامده
څاڅکي څاڅکي یې له سترګو څڅیده

ماوېل ورته ای ښکلیه ګله ولې ژاړې
ده وېل راته چې ژوند مې دی یوه خوله خندیده

# د تراویحو د مسئلې تحقیق

لیکوال د الشیخ ابو ابراهیم رحیم الله الحقاني [illegible] په زندان کې [illegible]

کاتب، تلمیذ الشیخ، مولوي هدایت الله همت بدر

بسم الله الرحمن الرحيم

نحمده ونصلي على رسوله الكريم.

أمابعد! الله ﷻ په خپل فضل او کرم سره د رمضان المبارک میاشت ډیره د برکت میاشت پیدا کړې ده .دا میاشت د روحانیت د عالم لپاره پسرلی دی، ددې میاشتې د برکتونو د اندازې لګول دانسان د طاقت څخه بهردي، په دې مبارکه میاشت کې د نفلو ثواب د فرضو سره برابردی .او د فرضو ثواب په اویاچنده دی.

له دې وجهې د الله ﷻ والاخلک ددې میاشتې هره دقیقه غنیمت ګڼي اویوه لمحه هم نه ضائع کوي، د الله ﷻ والا خلک په دې میاشت کې ځانونه ښه مصروف ساتي، اعتکافونه کوي، تلاوتونه کوي، د لکهونو په شمار درود شریف لولي، ټوله شپه نفلونه کوي او ددې میاشتې د برکتونو څخه لمنې ډکوي او ګټې کوي.

## دروژې په میاشت کې درسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلَى آلِهِ وَسَلَّمَ طرز العمل

عَنْ عَائِشَةَ رضي الله عنها زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهَا، قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَخَلَ شَهْرُ رَمَضَانَ شَدَّ مِئْزَرَهُ، ثُمَّ لَمْ يَأْتِ فِرَاشَهُ حَتَّى يَنْسَلِخَ". (شعب الايمان للبيهقي ج ۲ ص ۳۱۰].

ام المومنین سیده عایشة رضي الله عنها فرمائی چې کله به د رمضان میاشت راغله نو رسول الله ﷺ به د همت ملا وتړله او تر څو به چې د رمضان میاشت نه وه تیره شوې تر هغې پورې به یې بسترې ته تشریف نه راوړلو.

عَنْ عَائِشَةَ رضي الله عنها قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَخَلَ رَمَضَانُ تَغَيَّرَ لَوْنُهُ، وَكَثُرَتْ صَلَاتُهُ، وَابْتَهَلَ فِي الدُّعَاءِ، وَأَشْفَقَ مِنْهُ". (شعب الايمان للبهيقي، ج۲ص ۱۱۰).

حضرت عایشة رضی الله عنها فرمائي چې کله به رمضان المبارک راغلو نو د رسول الله ﷺ رنګ مبارک به بدل شو او ډیر نوافل به یې کول او په جرغوني غږ به یې دعا کوله او د الله ﷻ څخه به ډیره اریدلو. رسول الله ﷺ به خصوصا په اخري لسو ورځو کې ځان ډیر ستړی کولو.

عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، قَالَتْ: «كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَخَلَ العَشْرُ شَدَّ مِئْزَرَهُ، وَأَحْيَا لَيْلَهُ، وَأَيْقَظَ أَهْلَهُ» (بخاری، ج ۱ ص ۲۷۱/مسلم ج ۱ص ۳۷۲).

حضرت عايشة رضى الله عنها فرمائى چې كله به درمضان اخري لس ورځې داخلې شوى نو دهمت ملا به يې وتړله شپه به يې ويښه تيروله او خپل اهل به يې هم راويښولو.

قَالَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا: «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَجْتَهِدُ فِي الْعَشْرِ الْأَوَاخِرِ، مَا لَا يَجْتَهِدُ فِي غَيْرِهِ» (مسلم ج۱ص۳۷٦).

حضرت عايشة رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا فرمائى چې رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَعَلَىٰ آلِهِ وَسَلَّمَ به په اخري لسو ورځو كې دومره كوشش كولو چې په نورو ورځو كې به يې هغومره نه كولو، دا په رمضان كې زمونږ د پيغمبر دعبادت حال وو. چې يو څه اثرات يې اوس هم دالله ﷻ والا په خلكو كې پيدا كيږي.

## يو مصيبت

درمضان دمياشتې خير او بركت د ابتدا نه څخه تر ډيره پورې جاري دى، ليكن په هندوستان باندې دبرطانوي حكومت دراتللو سره په دې مباركه مياشت كې يو مصيبت هم رابښكاره شوى دى. او هغه داچې دبرطانوي ذورې پيداوار (غير مقلدين) دشيطان نمايندګي كوي او ټوله درمضان مياشت په دې بيانونو كې تيروي چې په رمضان كې دغير رمضان په نسبت ډير عبادت كول بدعت دى، ګناه ده، او په اخري لسو ورځو كې دنورو ورځو څخه دوه ركعته زيات لمونځ كول هم بدعت او حرام دى.

دوى ټوله درمضان مياشت دعبادت څخه په منع كولو كې تيروي. په زرګونو اشتهارات او په سلګونو رسالې ددې عبادت په خلاف چاپوي، خپله خو بد قسمته ددې مياشتې دبركتونو څخه محروم دي، نور خلك يې هم په دې بحثونو كې راګير كړي دي او د حيرانتيا خبره خو داده چې دا هر څه دعمل بالحديث په نوم باندې كوي، دوى په ټوله مياشت كې اته ركعته تراويح او يو ركعت وتر كوي، ددې نهو ركعتونو په باره كې ددوى سره هيڅ حديث نشته.

دوى وائي چې تراويح او تهجد يو لمونځ دى لكن نومونه يې دوه دي. [الحق الصريح ج۵ ص۴۰۵ باب قيام شهر رمضان]. حالانكه دوى په هيڅ حديث كې دا نه شي ثابتولى چې تراويحو او تهجد ته يې يو لمونځ ويلى وي او نه درمضان څخه علاوه په نورو يو ولسو مياشتو كې دغه لمونځ په دومره اهتمام سره كوي.

### اى غير مقلدينو!

(۱) تاسو يو ولس مياشتې، دې لمونځ ته نفل وائي: او په دولسمه مياشت كې ترينه سنت مؤكده جوړوئ.

(۲) یوولس میاشتې دالمونځ دشپې په اخره حصه کې کوئ او په دولسمه میاشت کې ورته دشپې اوله حصه هم وخت گرزوئ.

(۳) یوولس میاشتې وائي چې دالمونځ په کور کې بهتردی. او په دولسمه میاشت کې یې په مسجد کې په جماعت افضل گڼئ.

(۴) یوولس میاشتې دي لمونځ ته تهجد وائي. او په دولسمه میاشت کې ورته تراويح وایي، ددې څلورو خبرو لپاره څلور حدیثونه پیش کړئ او که نه یې شئ پیش کولې نو بیا اقرار وکړئ چې داټولې خبرې د رسول الله ﷺ حدیث نه بلکې ستاسو حدیث النفس دی، ستاسو دعمل بالحدیث دعوه بالکل غلطه ده ځکه تاسو عاملین په حدیث النفس یئ.

غیرمقلدینو! تاسو که دزړې په مقدار ایمان لرئ نو رامخکې شئ او دخپلې دعوی مطابق دقران اوحدیث څخه دسنت مؤکده . دبدعت ،دحرام، دحدیث صحیح او دحدیث ضعیف ،جامع او مانع تعریف صراحة وښائئ . اودهغې څخه وروسته د نهو رکعتونو یعنې داته رکعته تراویحو او د یو رکعت وترو لپاره صحیح حدیث پیش کړئ اودشل رکعته تراویحو ضعف ثابت کړئ.

فایده: پدې ځان پوه کړئ چې د اهلسنت والجماعت او د غیرمقلدینو ترمینځ د تراویحو د رکعتونو په تعداد کې اختلاف ندی، بلکې دا اختلاف د تراویحو د منلو او د نه منلو دی، اهل سنت والجماعة تراویح مني او غیر مقلدین او روافض یې نه مني، پدې باندې د یو مثال په طریقه ځان پوه کړئ چې مثلاً یو سړی ووائي چې د ماخوستن مونځ درې رکعته دی او چې کله ترینه دلیل وغوښتلی شي، نو هغه په دلیل کې د ماښام د لمانځه په باره کې راغلي احادیث پیش کړي، بیا چې کله ورته وویل شي چې دا خو د ماښام د مانځه احادیث دي، نو هغه ووایي چې زه ماښام او ماخوستن یو مونځ گڼم، نو هر سړی پوهیږي چې دا د ماښام د مونځ څخه انکار دی.

همدارنگه غیر مقلدین وایي چې: تراویح اته رکعته دي او په دلیل کې د تهجدو حدیث پیش کوي او چې کله ورته وویل شي چې دا خو د تهجدو حدیث دی، د تراویحو خو ندی، نو هغه وایي چې زه تراویح او تهجد یو مونځ گڼم. نو دا هم د تراویحو څخه انکار دی، نو اهل سنت والجماعت تروایح مني او روافض او غیر مقلدین یې نه مني (لطیفه): زمونږ د زمانې د غیرمقلدینو شیخ الکل امین الله

پشاوري د مشكوة د شرحې الحق الصريح ج۵/ ص۴۰۵ کې ليکي چې تراويح او تهجد يو شی دی او ددې څخه مخکې په باب صلوة الليل ج۵/ ص۲۵۹ کې ليکي چې د تهجد و اقله اندازه دوه رکعته دي بلکې يو رکعت هم شته، نو تراويح يې يو رکعت ته راورسولې ځکه چې تروايح يې عين تجهد کړل، او تجهد يې يو رکعت کړلو نو تراويح هم يو رکعت شوي، يو ورځ به ديو رکعت اعلان هم وکړي.

## اول فصل

## له غير مقلدينو څخه يو څو پوښتنې

غيرمقلد وحيد الزمان او نواب صديق حسن خان وغيره غير مقلدين د سمسيرې خوړلو ته حلال وائي او دمنی خوړولو ته هم حلال وائي. (نزل الابرار (ج ۱ ص ۴۹) كنزالحقايق ص ۱۶ فقه محمديه ج ۱ ص ۴۶) نو که کوم غيرمقلد لاندې سوالونه ته جوا -را کړو دهر جواب په انعام کې به ورته د ناشتې لپاره يو وريته شوې سمسيره ورکړم او د هاضمې لپاره دې يو بوتل مني وخوري.

شرط دادی چې جواب به ددوي ددعوی مطابق وي، يعنې د قران او ياد حديث صحيحه صريحه مرفوعه څخه به وي، ځکه دوي په ښکاره باندې وائي چې مونږ د قران او د حديث څخه بغير بل هيڅ شي نه منو مونږ صرف او صرف محمديان يو، مونږ نه ابوبکري يو، نه عمری يو، نه حنفی يو او نه شافعی يو، زمونږ په هر عمل باندې د نبي ﷺ مهر دی،

اهلحديث کي دواصول اطيعوا الله والرسول

(۱) په احاديثو کې د فجر، ظهر، عصر، مغرب، عشاء، ضحي، تهجد، وتر، او د جمعې دلمونځونو نومونه شته دی ليکن په کوم ايت او يا په کوم حديث صحيحه مرفوعه کې د کوم لمونځ نوم تراويح راغلی دی؟

(۲) ستاسو په معتمد کتاب (فتاوی علماء حديث) کې يې ليکلي دي چې: د تراويحو د لمونځ تعريف علماء وو. داسې ليکلی دی چې دا هغه لمونځ دی چې در مضان په شپو کې د ماخوستن څخه وروسته په جماعت باندې اداکيږي. او ددې لمونځ لپاره يې د تراويحو نوم ځکه اينبی دی چې خلک په دې لمونځ کې د څلورو رکعتونو څخه وروسته استراحت کوي او تراويح د ترويحة جمعه ده او ترويحة

يو ځلې ارام کولو ته وائي. (فتاوى علماء حديث، ج ٦ ص ۲۴۱) او دده په تقليد کې د نن زمانې غير مقلدين هم همداسې ليکي كما في الحق الصريح ج ۵/ ص ۴۰۵].

دا تعريف او وجه د تسميي په کوم ايت او حديث مرفوعه کې راغلى ده؟ که په حديث کې نه وي نو ددې اقوالو ليکونکي دامتيانو د تقليد له وجهې مشرکان دي او که نه؟

(۳) حضرت عايشة رضى الله عنها فرمائى چې رسول الله ﷺ به د شپې څلور رکعته لمونځ وکړو. ثم يروح واطال بيابه يې ترډيره پورې استراحت او وقفه کوله. (بهيقى، ج ۴ ص ۴۹۷).

امام بهيقى رحمه الله دى حديث ته ضعيف ويلى دى لکن ټول امت دى لمونځ ته تراويح وائي، نو دى حديث ته تلقى بالقبول حاصله ده. او د تلقى بالقبول له وجهى دا حديث مقبول دى، لکن د رسول الله ﷺ د خولې څخه ددې لمونځ نوم ثابت کړئ.

(۴) حضرت عمر رضي الله عنه به د څلورو رکعتونو څخه وروسته دومره ترويحه کوله چې سړى به د غرسرته ختلى شو. (بهيقى ص ۴۹۷).

(۵) ستاسو په معتمد کتاب (فتاوى علماء حديث) کې ليکلې شوي دي چې، قيام درمضان د تراويحو د لمونځ څخه عام دى ځکه چې د تراويحو په لمونځ کې جماعت هم شرط دى، يواځې يواځې د تراويحو لمونځ نه کيږي او په قيام درمضان کې جماعت شرط نه دى بلکې په جماعت يې هم کولى شئ او يواځې يواځې يې هم کولى شئ. فتاوى علماء حديث، ج ٦ ص ۲۴۳).

(٦) همدارنګه يې په کرماني رد کړى دى او ليکلي يې دي چې کرماني فرمايلي دي چې د قيام درمضان څخه د تراويحو لمونځ مراد دى حالانکه دا يو عجيبه خبره ده. (فتاوى علماء حديث، ج ٦ ص ۲۴۳).

(۷) همدارنګه يې ليکلي دي چې که د تراويحو لمونځ په اول وقت کې وکړې، نو صرف تراويح دي او که په اخر وقت کې يې وکړي نو د تهجد وقائم مقام ګرزيږي. (فتاوى علماء حديث، ج ٦ ص ۳۲۹).

(۸) همدارنګه يې ليکلي دي چې د تهجد ولمونځ ټول کال کيږي او تراويح خاص په رمضان کې کيږي. (ايضًا ص ۲۳۰)

(۹) همدارنګه يې ليکلي دي چې څوک د ماخوستن د لمونځ پسې د تراويحو لمونځ وکړي هغه دشپې په اخرکې تهجد هم کولی شي، ځکه چې د تهجد و وخت د سهار څخه مخکې دی، د شپې په اول کې تهجد نه کيږي . (ايضًا ص ۳۳۱).

د پنځم نمبر څخه تر نهم نمبر پورې مسايلو لپاره يو يو حديث پيش کړئ او که نه يې شئ پيش کولې نو بيا د دې اقوالو ليکونکو ته د امتيانو د تقليد له وجهې مشرک وائې او که نه ؟

(۱۰) په کوم ايت او يا حديث کې راغلي دي چې يو ولس مياشتې دغې لمونځ ته تهجد او يوه مياشت ورته تراويح ووائې ؟

(۱۱) په کوم ايت او يا حديث کې راغلي دي چې تهجد او تراويح يو لمونځ دی ؟

قياسونه مه کوئ چې په خپله فتوی به د رڅخه شيطانان جوړ شي او د امتيانو اقوال مه پيش کوئ چې په خپله فتوی به د رڅخه د تقليد په وجه مشرکان جوړ شي.

(۱۲) په کوم ايت او يا حديث کې راغلي دي چې دغه لمونځ يو ولس مياشتې نفل دی او يوه مياشت سنت مؤکد دی ؟

(۱۳) په کوم ايت او يا حديث کې راغلي دي چې يو ولس مياشتې د دې لمونځ وخت د شپې اخري حصه ده او يوه مياشت يې وخت د ماخوستن د لمانځه پسې فورًا دی ؟

(۱۴) په کوم ايت او يا حديث کې راغلي دي، چې يو ولس مياشتې د المونځ يوائې او يوه مياشت يې په جماعت کوئ ؟

(۱۵) په کوم ايت او يا حديث کې راغلي دي چې يو ولس مياشتې په دې لمونځ کې د قران ختمول سنت نه ده او يوه مياشت په کې د قران ختمول سنت دي ؟

(۱٦) يو سړي په ټول عمر کې صرف درې ورځې په جماعت باندې د تراويحو لمونځ کړی دی او نور يې نه دی کړی نو ايا دا سړی ګناهګار دی او که نه دی ؟ په کوم ايت يا حديث کې ورته ګناهګار ويل شوی دی ؟ او يا په کوم ايت او يا حديث کې ورته غير ګناهګار ويل شوې دی؟

(۱۷) يو سړی دضحی ، دتهجد و ،اودتراويحو لمونځ تـه نفـل وائـي اوپـه تـول عمـر کـې يـې نـه تهجد کړي دي اونـه يـې ددضحی لمـونځ کـړی دی اونـه يـې دتراويحو لمـونځ کـړی دی ،نوايا داسړی ګناهګار دی او که نه ؟ که ګناهګار وي نو څودورې حد دی وربانديې ؟

(۱۸) کومو محـدثينو او فقهاوو چې دحـديثو او دفقهي پـه کتـابونو کـې دتهجـد و،وتـرو ،او دتراويحو لپاره جدا جدا ابابونه تړلي دي نو ايا دا خلک منکرين دحديثو دي او که نه دي ؟

(۱۹) بعضې غير مقلدين دا شرط لګوي چې خپله دحضرت عمر ﷺ په شلو رکعتونو کې شمول راوښايه نو سوال دا دی چې دا شرط دکوم حديث موافق دی ؟ که يو سړی دا شرط ولګوي چې خپله درسول الله ﷺ او دحضرت ابوبکر صديق ﷺ څخه پخپل لاس دقران جمع کول ثابت کړئ او که نه زه دا قران نه منم او يا يو سړی ووائي چې خپله دحضرت عثمان ﷺ څخه دجمعې اول اذان ثابت کړئ او که نه زه دا اذان نه منم، نو ايا دا شرط لګول صحيح دي؟ حالانکې امام احمد رحمه الله جزماً فرمايي چې حضرت عمر ﷺ د جماعت سره تراويح کولې او حضرت علي ﷺ حضرت جابر ﷺ او حضرت عبدالله ﷺ هم په جماعت سره تراويح کولې. [المغني لابن قدامة صلوة التراويح او شوکاني ليکي چې: (الافضل صلوتها جماعة کما فعله عمر بن الخطاب والصحابة). [نيل الاوطار ج۲/ ص۲۹۵ د يو حديث د بيان په اخر کې په اعلاء السنن کې داسې ليکل شوي دي چې: (وفيه تصريح بامر علي ﷺ بعشرين رکعة واشعار بقيامه معهم لانه کان يوتر بهم فافهم). [اعلاء السنن ج۷/ ص۵۰].

(۲۰) ايا دحضرت عمر ﷺ شمول په تراويحو کې ،اوپوره مياشت دشپې په اوله حصه کې تراويح کول. او پوره مياشت په مسجد کې تراويح کول ،اوپوره مياشت وتر په جماعت کول، اوپه تراويحو کې دټول قران لوستل ،او يا اوريدل ثابت دي ؟ او که نه ددې پريښودل هم پکار دي ؟

(۲۱) غير مقلد مولوي داود غزنوي اعلان کړی دی چې اته رکعته تراويح درسول الله ﷺ سنت دي او پاتې دولس رکعته مستحب دي په دی باندې دټولو اختلافاتو خاتمه راځي . (فتاوی علماء حديث، ج ٦ ص ۲٦۵)

(۲۲) د غير مقلدينو په معتمد کتاب (فتاوی ستاريه) کې يې ليکلي دي چې داتو رکعتو څخه زياتې تراويح صحيح دي او باعث داجر دی . ( فتاوی ستاريه ، ج ۳ ص ۱۹) نو (۲۱) او (۲۲) نمبر خبرې په کوم صحيح حديث کې شته او که نه دابن همام ديو شاذ قول تقليد دی ؟

(۲۳) دغیرمقلدینوپه معتمد کتاب (فتاوی علماء حدیث)، ج٦ ص ۴۷ وص ۸۸) کې داحدیث نبوی لیکل شوی دی چې (درمضان په میاشت کې نفلي عبادت دومره ثواب لري لکه په نورو میاشتو کې چې دفرضوڅومره ثواب دی).

**نوایا دشلو رکعتو تراویحو کونکي ددې ثواب مستحق دی اوکه نه دی ؟**

(۲۴) څوک چې خلک ددې ثواب څخه منع کوي نوایادامنع کونکي (مناع للخیر.....) اود (أرأیت الذی ینهي عبداً إذاصلی) مصداق دی اوکه نه دی ؟

(۲۵) دغیرمقلدینوپه معتمد کتاب (انوارالمصابیح) کې یې لیکلي دي چې دشلو رکعتونو ترایحو کونکی به حضرت عمر ﷺ څرنګه منع کړي وای داخوڅه معصیت اومنکرکارنه دی. (انوارالمصابیح ص ۲۲٦) بل ځای کې لیکل شوي دي چې حضرت عمر ﷺ په شلورکعتونو تراویحوانکارنه دی کړی اوهمدااهلحدیثومذهب دی. (انوارالمصابیح ص ۲۲٦).

ددې څخه معلومیږي چې ذنن سباغیرمقلدین چې دشلورکعتو تراویحو په خلاف اشتهارونه اورسالې لیکي، دوي اهلحدیث نه دي، بلکې منکرین دصحابه وودی، غیرمقلد مولوي محمد عثمان دهلوي لیکلي دي چې دمقلدینو یوغټ جماعت شل رکعته تراویح کوي، حالانکه شل زکعته تراویح بدعت شنیعه دی. (رفع الاختلاف ص ۵۴) نوبعضې اهل حدیثوشل رکعته تراویحوته مستحب وویلو او بعضو ورته بدعت شنیعه وویلو.

**نوای غیرمقلدینو!** په ایت اوپه حدیث کې دافیصله راوښایي چې داهلحدیثوپه دې دووډلو کې کومه ډله دالله ﷻ اودرسول الله ﷺ څخه منکره ده ؟

(۲٦) غیرمقلد مولوی محمد عثمان دهلوي قیاساً لیکلي دي چې یوسړی دمابنام لمونځ څلوررکعته وکړي نودڅلوروپه ضمن کې اګرچې درې موجوده ي، خوبیاهم دده دمابنام لمونځ نه کیږي، همدارنګه دشلوپه ضمن کې اګرچې اته رکعته موجوددي، لکن بیاهم دشلورکعتونوپه اداکولوسره اته رکعته مسنون نه اداکیږي. (رفع الاختلاف ص ۵).

**نو ای غیرمقلدینو!** یا صریح حدیث پیش کړئ چې د شلو په ضمن کې اته نه اداکیږي. او یا اقرار وکړئ چې ستاسو ټول مسلک پداسې شیطاني قیاسونو باندې بناء دی.

**نوټ:** دغه مولوی محمد عثمان د غیرمقلدینو ډیر لوی عالم دی.

په اخبار محمدي ډهلی کې دده د علمي جواهرو ورقې چاپیدلې، ده د غیرمقلدینو د محدث اعظم حافظ عبدالله روپړي سره یو ځای درس ویلی وو. مولوی محمد عثمان په اخبار محمدي کې د حافظ عبدالله روپړي په نوم یو پرانستی خط شایع کړی وو، چې په هغې کې یې حافظ عبدالله روپړي ته لیکلي وو چې تاسو په طالب علمی کې په علت شنیع (علت مفعولیت) کې مبتلا وئ تاسو هغه عادت پریښی دی او که اوس هم باقي دی؟

قاعده داده چې ترڅو پورې په تاسو کې صوفیت باقي وي نو دا مزه به هم نه درڅخه ځي، لهذا امهرباني وکړه د خدای ﷻ څخه ډارشه د دې صحیح جواب راکړه او د دې کار څخه توبه هم اوباسه. (اخبار محمدی، ص ۱۵ کالم ۳، ۱۵ جولائي. ۱۹۳۹م) حافظ صاحب کومه توبه نامه نده شایع کړی بلکې اوریدل کیږي چې اخص تلامذه یې هم د استاذ محترم په نقش قدم باندې روان دي. (مجموعة الرسایل ج ۱ ص ۱۸۶) لمحمد امین صفدر اوکاړوي رحمه الله)

(۲۷) یو څو کاله مخکې فضیلت الشیخ عطیه محمد سالم القاضي بالمحکمة الکبري بالمدینة المنورة والمدرس في المسجدالنبوي) یوه مستقله رساله لیکلي ده په نامه ده (التراویح اکثر من الف عام في مسجد النبي ﷺ) د هغې څخه دا ثابتیږي چې څه د پاسه زر و کالو کې یوه میاشت هم داسې نه ده تیره شوی، چې په مسجد نبوی کې اته رکعته تراویح شوي وي.

د دې په رد کې تر اوسه پورې غیرمقلدینو هیڅ کوم اشتهار او رساله ونه لیکله، چې په مسجد نبوی ﷺ کې ولې د شل رکعتونو بدعت مسلسل جاري دی؟ غیرمقلدین ولې ضرورت نه محسوسوي چې په مسجد نبوی کې د بدعت په رد کې رسالې ولیکي؟

(۲۸) همدارنګه د جامعه ام القری المکة المکرمه څخه هم یوه رساله شایع شوی ده په نامه د (الهديُ النبويُ الصحيحُ في صلوة التراويح) مؤلفه الشیخ محمدعلي (الصابونيُ الاستاذُ بكلية

الشريعةِ والدراساة الاسلامية جامعة ام القري مكـة المكرمـة) په دې رساله کې هم دشلور کعتونو تائيد او داتو رکعتونو مخالفت دی. غیرمقلدين شل رکعته تراويحو ته بدعت وايي او دبدعت په مقابل کې چپ کيناستل ګناه ده. اوپه دې ګناه تراوسه پورې لامذهبان ګرفتاردي، ځکه چې دوي تراوسه پورې هيڅ اشتهاراورساله په مکه مکرمه کې دشلو رکعتو په خلاف ونه ليکله.

(۲۹) په دې ملکونو کې چې کوم خلک شل رکعته تراويحو ته سنت وائي نو دهغوی په خلاف تاسوپه زرګونو اشتهارونه او رسالې ليکلي دي، ليکن کوم خلک چې شل رکعته تراويحو ته بدعت وائي دهغوئ په خلاف تاسوڅو رسالې او اشتهارونه چاپ کړل؟

(۳۰) غیرمقلدين پوره مياشت په مسجد کې تراويح کوي حالانکه داد غیرمقلدينو داصولو مطابق محمدي طريقه نه ده. ځکه چې حضرت محمد ﷺ په اخري عشره کې دتراويحو په دريمه شپه وفرمايل: (فَصَلُّوا أَيُّهَا النَّاسُ فِي بُيُوتِكُمْ، فَإِنَّ أَفْضَلَ الصَّلَاةِ صَلَاةُ الْمَرْءِ فِي بَيْتِهِ إِلَّا الْمَكْتُوبَةَ [باب صلوة الليل (بخاری، ج اص۱۰۱ مسلم ج۱ ص۲٦٦]. مشکوة باب قيام شهر رمضان د فصل اول. اول حديث].

**ای خلکو!** په کورونو کې لمونځونه وکړئ بيشکه چې دفرض لمونځ څخه علاوه نورلمونځونه په کورکې کول بهتردي، که غیرمقلدين ځانونوته محمديان وائي نوولې دمحمد ﷺ په طريقه صرف په اخري عشره کې اوصرف درې ورځې په جماعت باندې تراويح نه کوي؟

دجماعت مواظبت خود صحابه وو څخه ثابت دی، دمحمد ﷺ څخه نه دی ثابت، غیرمقلدين که محمديان وي نو دمحمد ﷺ په طريقه دې په جماعت دتراويحو لپاره مساجدو ته نه ځي، ترڅوچې خلک ددوی دشر څخه محفوظ وي اوپه ارام باندې درمضان دبرکتونو څخه مستفيد شي.

## دوهم فصل

## دسنت تعريف او د تراويحو سنتوالی

**الف :** سنت ددين هغې بهترې معمولې او مروجې طريقې ته وائي چې درسول الله ﷺ اويادصحابه کرامو رضی الله عنهم څخه ثابته وي، علامه عبدالحي رحمه الله په (تحفة الاخيار) کې دسنت مؤکده ډير تعريفونه رانقل کړي دي اوپه هريوېي نقض کړی دی، په اخر کې يې چې کوم تعريف ته ترجيح

ورکړي (هغه دادی : (اَلسُّنَّةُ الْمُؤَكَّدَةُ مَاوَاظَبَ عَلَيْهِ النَّبِيُّ ﷺ اَوِالْخُلَفَاءُ الرَّاشِدُوْنَ رضي الله عنهم)(مجموعة رسايل اللكهنوي ج٤]./تحفة الاخيار ص٣٢/ بعد القول الثاني والعشرون)

ددې دليل چې سنة الخلفاء هم سنت دی، درسول الله ﷺ دا ارشاددی چې : عَلَيْكُمْ بِسُنَّتِيْ وَسُنَّةِ الْخُلَفَآءِ الرَّاشِدِيْنَ مِنْ بَعْدِيْ عَضُّوْا عَلَيْهَا بِالنَّوَاجِذِ (رواه احمد ،ج ۴ص۱۲۶ابوداودج ۲ص ۲۷۹ ،ترمذی ج ۲،ص ۹۲،وابن ماجه ص ۵ مشکوة ج اص۲۹ وص ۳۰ ،مواردالظمان ، ص ۵٦، حاکم، ج ۱،ص۹٦ علامه ذهبی فرمائي چې په دې حديث کې علت نشته، معنی يې داده چې: په تاسولازم دي چې زما او زما څخه دوروسته راتلونکو خلفاء و طريقې خپلې کړئ او دجامو په غاښونو باندې يې کلکي ونيسئ.

(۱) په دې حديث کې دصحابه وو څخه دخليفه په لفظ تعبيرشوی دی او خليفه داصل په شان واجب الاتباع وي.

(۲) په دې حديث کې دلزوم لفظ هم ذکرشوی دی، چې دعلی کلمه ده، نو دخلفاء راشيدينو دحکم منل داسې لازم شولکه څرنګه چې درسول الله ﷺ دحکم منل لازم دی.

(۳) علامه ظفر احمد عثمانی رحمه الله فرمائي چې: فان لفظ عليکم يدلُ على اللزوم وضعا، والمعطوف في حكم المعطوف عليه لغة فثبت به لزوم سنة الخلفاء كلزوم سنة الرسول فلايصح التفرقة بينهما بالسنة والندب فان المندوب لايكون لازما. [اعلاء السنن ،ج ۷ص ٤٥] او دسنتو حکم دادی چې مسلمان به ددې دژوندې ساتلو ممکن کوشش کوي که څوک يې بغيردعذر څخه پرېږدي نو هغه دملامتئ قابل دی.

ديوکار دسنت والي لپاره شرط دادی چې هغه به رايج وي او د رسول الله ﷺ او يا دصحابه کرامو عادت به وي مثلا :

(۱) په ولاړه باندې متيازې کول درسول الله ﷺ څخه ثابتی دي ليکن عادت مبارکه يې نه وو، بلکې عادت مبارکه يې په ناستي باندې متيازې کول وو ،لدې وجهې سنت طريقه په ناستي باندې متيازی کول دي. که په ولاړه هم متيازې کول سنت شي نو بيا به ښځه څرنګه پدې سنت عمل کوي؟

(۲) رسول الله ﷺ کله يوه جامه هم اغوستی ده او کله يې دوه هم اغوستې دي، ليکن عادت مبارکه يې درې جامې وي لنګ ،قميص او عمامه، لدی وجهې درې جامې سنت دي .

(۳) رسول الله ﷺ کله کله یویو ځلې داودس انداamo نه منځلي دي او کله کله یې دوه دوه ځلې مینځلي دي لیکن عادت مبارکه یې درې درې ځلې مینځل وو لدې وجې سنت طریقه درې درې ځلې مینځل دي.

(۴) د رسول الله ﷺ څخه دا ثابته ده چې دا ودس څخه وروسته یې خپله بي بي خکل کړې ده، لیکن عادت مبارکه یې په اودس کې غړغړه کول وو، نو غړغړه کول سنت دي او د اودس څخه وروسته د بي بي ښکلول نه دي سنت.

(۵) په روژه کې د خپلې بي بي سره مباشرت په حدیث کې ثابت دی، لیکن عادت مبارکه یې نه وو، له دې وجهې سنت نه دی او پیشنمی کول عادت مبارکه وو، له دې وجهې پیشنمي کول سنت دی او کله چې دا امور سنت ندي نو ددې امورو پرېښودونکي ته هیڅوک هم تارک السنة نه وائي.

خلاصه دا چې د رسول الله ﷺ او د صحابه کرامو ﷺ عادت ته به سنت وایو، نو د تراویحو عداد بالفرض که مختلف هم رانقل کړی شي، نو په کوم عدد چې د رسول الله ﷺ یا د صحابه کرامو ﷺ مواظبت ثابت وي هغه عدد ته به سنت وایو.

غیر مقلدین وائي چې اته رکعته تراویح د رسول الله ﷺ سنت دي، لیکن د دوي پلار هم په اتو رکعتونو د رسول الله ﷺ مواظبت نه شي ثابتولی. ځکه چې خپله د دوی علماء نذیر حسین دهلوي، وحید الزمان او ثناء الله امر تسری لیکي چې د رسول الله ﷺ څخه صرف درې شپې تراویح ثابتې دي نو مواظبت د کوم ځای څخه راغلو.

د اولې درجې طالب العلم هم چې د غیر مقلدینو رسالې د تراویحو په باره کې گوري نو دا یقین یې نور هم قوي کیږي چې اته رکعته تراویح هیڅکله نبوی سنت نه دي. ځکه چې ټولو غیر مقلدینو د اتو رکعتونو تراویحو بنیاد د حضرت عایشې رضی الله عنها په حدیث باندې اېښي دي حالانکه ددې حدیث د تراویحو سره هیڅ تعلق نشته لکه څرنگه به یې چې لږ وروسته تفصیل راشي، پاتې شو د حضرت جابر ﷺ حدیث نو اول خو هغه حدیث صحیح نه دی او نه حسن دی.

لامذهب حافظ عبد المنان اسلحه ایښي ده او لیکلي یې دي چې یاد ساتئ چې د رسول الله ﷺ د تراویحو د رکعتونو د تعداد مدار د حضرت جابر ﷺ په حدیث باندې نه دی. (تعداد تراویح ص ۳۷).

د وهم دا چې سره د ضعف څخه هم په دې حديث کې د تراويحو پوره تعداد نه دی ذکر شوی ځکه چې رسول الله ﷺ ټولې تراويح په جماعت باندې نه دي ادا کړي.

لکه څرنګه چې حضرت انس رضی الله عنه فرمايلي دي چې مونږ د رسول الله ﷺ سره تراويح کولې نو رسول الله ﷺ لمونځ مختصر وکړو او (داعتکاف) حجرې ته لاړو. (فصلي صلوة لم يصلها عندنا) نو بيا يې د ومره لمونځ وکړو چې زمونږ سره يې نه وو کړی. (مسلم، ج ١ص ٣٥٢ باب النهي عن الوصال \ مسند احمد. ج ٣ص ١٩٣)/ قيام الليل ص ١٥٤).

همدارنګه حضرت انس رضی الله عنه فرمائی چې رسول الله ﷺ د رمضان په مياشت کې لمونځ کولو، يو قوم راغلو او د رسول الله ﷺ سره په لمانځه کې شريک شو، بيا رسول الله ﷺ حجرې مبارکې ته تشريف ويوړو او لمونځ يې وکړو، بيا يې بهر تشريف راوړو او مختصر مختصر لمونځ يې وکړو. د سهار په وخت کې خلکو ورته وويل چې يا رسول الله ﷺ مونږ تاسو پسې د تراويحو لمونځ کولو تاسو به کله د ننه تللئ او کله به بهر ته راوتلئ، رسول الله ﷺ و فرمايل چې ستاسو له وجهې مې داسې وکړل. (رواه الطبراني في الاوسط ورجاله رجال الصحيح \ مجمع الزوايد، ج ٣ص ١٧٣). دامام احمد په روايت کې دي چې رسول الله ﷺ څو ځلې حجرې ته تشريف ويوړو او څو ځلې بهر ته راووتلو. (مسند احمد، ج ٣ص ١٠٣ وص ١٨٥).

د دې احاديثو څخه د رڼا ورځې په شان واضحيږي چې رسول الله ﷺ چې کله په جمع تراويح کړې دي نو ټولې يې په جماعت باندې نه دي کړي، بلکې څه يې په حجره کې کړې دي، نو د جابر رضی الله عنه حديث، سره د دې نه چې ضعيف دی. نه په کې د تراويحو پوره تعداد ذکر شوی دی او نه په کې د مواظبت ذکر دی نو اته رکعته تراويح هيڅکله سنت نه دي.

**ب: د رمضان تراويح سنت دي:** حضرت ابو سلمه رضی الله عنه د خپل پلار عبد الرحمن څخه روايت کوي چې رسول الله ﷺ د رمضان د مياشتې ذکر وفرمايلو چې دا داسې مياشت ده چې: ان الله فرض عليكم صيام رمضان وسننت لكم قيامه) الله جل جلاله د دې روژه په تاسو فرض کړې ده او ما د دې قيام تاسو ته سنت ګرزولی دی، نو څوک چې د دې مياشتې روژې ونيسي او په دې مياشت کې قيام وکړي، نو هغه د ګناهونو څخه داسې پاکيږي لکه په کومه ورځ چې د مور څخه زيږيدلې وي. (ابن ماجه ص ٩٤ نسائي

ص۳۰۸ ج۱ باب ثواب من قام رمضان الخ/ مسند احمد ج ۱ص ۱۹۱) الاستذكار ج ۳/ ص۶۴ باب الترتيب في الصلوة في رمضان].

امام ابو حنيفه رحمه الله فرمائي چې تراويح سنت دي، ددې پرېښودل جايزنه دي . (كبيري ص ۴۰۰ ، شرح نقايه ص ۱۰۴).

امام نووي الشافعي رحمه الله فرمائي ښه پوه شئ چې دتراويحو. دلمونځ په سنتوالي باندې دعلماو واتفاق دی او داشل ركعته دي : (كتاب الاذكار ص . ۸۳). په الموسوعة الفقهية كې ليكي چې: (اِتَّفَقَ الْفُقَهَآءُ عَلٰى سُنِّيَّةِ صَلَاةِ التَّرَاوِيحِ، وَهِيَ عِنْدَ الْحَنَفِيَّةِ وَالْحَنَابِلَةِ وَبَعْضِ الْمَالِكِيَّةِ سُنَّةٌ مُؤَكَّدَةٌ، وَهِيَ سُنَّةٌ لِلرِّجَالِ وَالنِّسَآءِ، وَهِيَ مِنْ أَعْلَامِ الدِّينِ الظَّاهِرَةِ). [الموسوعة الفقهية ج ۲۷/ ص۱۳۶]. ((وَرَوٰى أَسَدُ بْنُ عَمْرٍو عَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ قَالَ: سَأَلْتُ أَبَا حَنِيفَةَ رحمه الله عَنِ التَّرَاوِيحِ وَمَا فَعَلَهُ عُمَرُ رضي الله عنه، فَقَالَ: التَّرَاوِيحُ سُنَّةٌ مُؤَكَّدَةٌ) الخ [الموسوعة الفقهية ج۲۷ ص۱۳۸]. بحوالة فتح القدير ج۱/ ص۳۳۳، والاختيار ج۱/ ص۶۸] والمغني ج۲/ ص۱۶۶، والمنتقي ج۱/ ص۲۰۷].

**نو داهل سنت والجماعت په نيزشل ركعته تراويح سنت دی** (درمختار،ج ۱ص ۹۸ ، هدايه ص۹۹ ج ۱ص ، شرح نقايه ، ج ۱ص ۱۰۴) درسول الله ﷺ په زمانه كې شل ركعته وی. (مصنف ابن ابی شيبه ،ج۵/ ص۲۲۳] وبهيقي ،ج۲ ۴۹۶] دحضرت عمرا وعثمان رضي الله عنهما په زمانه كې شل ركعته وی . (كنزالعمال، ج ۸ص ۴۰۹) دحضرت علی رضي الله عنه په زمانه كې شل ركعته وی . (بهيقي ،ج ۲، ص۴۹۶) په شلو ركعتو تراويحو باندې دټولو صحابه وو اجماع وه (المغنی لابن قدامه ،ج ۲ص ۱۶۷) .

دامام ابو حنيفه ،امام شافعی ،امام احمد ،سفيان ثوري، عبدالله بن مبارك په اتفاق سره تراويح شل ركعته دي (مغنی ،ج ۲ص ۱۶۷ ) فتاوی قاضی خان (ج ۱ص ۱۱۲ ) ترمذی ج ۱ ،ص ۱۶۶]. په الموسوعة الفقهية كې ليكي چې : فَذَهَبَ جُمْهُورُ الْفُقَهَآءِ -مِنَ الْحَنَفِيَّةِ، وَالشَّافِعِيَّةِ، وَالْحَنَابِلَةِ، وَبَعْضِ الْمَالِكِيَّةِ رَحِمَهُمُ اللّٰهُ- إِلٰى أَنَّ التَّرَاوِيحَ عِشْرُونَ رَكْعَةً [الموسوعة ج۱/ ص۱۴۱]. بحواله بدايع الصنايع۱/ ص۲۸۸]. بيا مخكې ليكي چې: (عَلَيْهِ عَمَلُ النَّاسِ شَرْقًا وَغَرْبًا). [الموسوعة ج۲۷/ ص۱۴۱]. بحواله رد المحتار ج۱/ ص۴۷۴]. بيا مخكې ليكي چې: وَقَالَ عَلِيٌّ السَّنْهُورِيُّ: هُوَالَّذِي عَلَيْهِ عَمَلُ النَّاسِ وَاسْتَمَرَّ إِلٰى زَمَانِنَا فِي سَائِرِ الْأَمْصَارِ. [بحواله

شرح الزرقاني ج١/ ص٢٨٤]. بيا مخکې ليکي چې: (وقال الحنابلة: وَهَذَا فِي مَظِنَّةِ الشُّهْرَةِ بِحَضْرَةِ الصَّحَابَةِ فَكَانَ إِجْمَاعًا. [بحوالة کشاف القناع ج١/ ص٤٢٥]. همدارنګه ليکي چې: وَقَالَ الدُّسُوقِيُّ رحمة الله تعالى عليه وَغَيْرُهُ: كَانَ عَلَيْهِ عَمَلُ الصَّحَابَةِ وَالتَّابِعِينَ رحمهم الله تعالى). [الموسوعة الفقهية ج٢٧ ص١٤١]. عدد ركعات التراويح ابن عبد البر رحمه الله فرمايي چې: (وَهُوَ قَوْلُ جُمْهُورِ الْعُلَمَاءِ وَبِهِ قَالَ الْكُوفِيُّونَ وَالشَّافِعِيُّ رحمة الله تعالى عليه وَأَكْثَرُ الْفُقَهَاءِ وَهُوَ الصَّحِيحُ عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ رضي الله عنه مِنْ غَيْرِ خِلَافٍ مِنَ الصَّحَابَةِ رضي الله عنهم. [الاستذكار ج٢/ ص٧٠]. باب ما جاء في قيام رمضان].

## ضروري تنبيه

دخلفاء اربعه وو طريقې دامت لپاره درسول الله ﷺ دطريقو په شان سنت دي: حضرت عرباض بن ساريه رضي الله عنه فرمائي چې: صَلَّى لَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْفَجْرَ... فَعَلَيْكُمْ بِسُنَّتِي وَسُنَّةِ الْخُلَفَاءِ الرَّاشِدِينَ الْمَهْدِيِّينَ، وَعَضُّوا عَلَيْهَا بِالنَّوَاجِذِ، وَإِيَّاكُمْ وَمُحْدَثَاتِ الْأُمُورِ، فَإِنَّ كُلَّ مُحْدَثَةٍ بِدْعَةٌ، وَإِنَّ كُلَّ بِدْعَةٍ ضَلَالَةٌ». [رواه احمد (ج ۴، ص١٢٦) وابوداود (ج ٢، ص٢٧٩) والترمذی (ج ٢، ص ٩٢) وابن ماجه (ج ١، ص ٥) ومشکوة (ج ١، ص ٢٩، ص ٣٠) علامه ذهبي رحمه الله ددې حديث په باره کې فرمائي چې دا حديث صحيح دی، تلخيص المستدرک (ج ١، ص٩٦].

(١) په دې حديث کې ددې څلورو صحابه و رضی الله عنهم څخه په خلفاؤ باندې تعبير شوی دی، او دا ظاهره ده چې خليفه د اصل په شان واجب الاتباع وي.

(٢) په دې حديث کې دعلی کلمه راغلې ده چې وضعاً دلزوم لپاره ده، يعنې د خلفاء وو سنت داسې لازم دی لکه درسول الله ﷺ سنت چې څرنګه لازم دي. علامه ابن الهمام فرمائي چې (فهی للايجاب حقيقة). اصول فقه (ص ٢٠٣).

علامه صدر الشريعة فرمائي چې (على للاستعلاء ويرادبه الوجوب فى علىّ دين لان الدينَ يعلوه ويركَبُه) (التوضيح مع التلويح (ص ٢٦٧) او مولنا ظفر احمد عثمانی (رحمه الله) فرمائي چې: فان لفظ عليكم يدل علي اللزوم وضعاً، والمعطوف في حكم المعطوف عليه لغة، فثبت به لزومُ سنةِ

الخلفاءِ کلزومِ سنةِ الرسولِ ﷺ فلایصح التفرقة بینهمابالسنیة والندب فان المندوب لایکون لازما.(اعلاء السنن، ج۷ص ٤٥)

(۳) په دې حدیث کې د سنت لفظ د خلفاو ﷺ طرفته مضاف شو، دا هم ددې قرینه ده چې د خلفاو طریقې لازمي دي، ځکه چې د نورو صحابه وو طریقې هم د (ما أناعلیه وأصحابی) مطابق ماموربه او مستحبې دی، نو که د خلفاو طریقوته هم همدغه مرتبه ورکول شي نو بیا د تخصیص څه فایده شوه؟

(۴) په دې حدیث کې خلفاء وته راشدین ویلی شوي دي او دا ظاهره ده چې د رشد اتباع لازمه ده او د رشد مقابل گمراهي ده او ځان ساتل ترینه ضروري دي.

(۵) د راشدین څخه وروسته مهديين ویلی شوي دي، او د هدایت یافته وو مخالفت هم گمراهي ده.

(٦) وروسته رسول الله ﷺ امر کوي چې: (تمسکوا بها) یعنې په خپل اختیار او کسب سره د خلفاء وو سنت کلک ونیسئ. د تمسک لفظ د تفعل د باب څخه دی، چې په تکلف دلالت کوي، یعنې په غیرشعوری طریقه نه، بلکه په کسب، اختیار او شعوري طریقه باندې د خلفاء وو په سنتو باندې منگولې ولگوئ.

(۷) بیایې تاکید او فرمایلو چې (وعضوا علیها بالنواجذ) یعنې د جامو په غاښونو یې کلک ونیسئ.

(۸) په دې حدیث کې صراحةً راغلې دي چې د اختلاف په وخت کې د خلفاء وو رضی الله عنهم طریقې د خپل ژوند لپاره معیار وگرزوئ.

(۹) په دې حدیث کې دا واضحه شوی ده، چې د خلفاء وو رضی الله عنهم د طریقو څخه چې کوم کارونه مخالف دي هغه بدعت دی او فرمائي چې د دا سې بدعاتو څخه په سختۍ باندې ځانونه وساتئ.

(۱۰) او بیایې صرف په بدعت اکتفاء ونکړه ددې لپاره چې څوک د بدعت حسنة تاویل په کې ونکړي، بلکه د ضلالت په لفظ یې دا پوره ښکاره کړه چې د خلفاء وو د سنتو په مقابل کې چې هر کار وي هغه گمراهي ده او ځان هلاکول او د جهنم کندې ته غورزول دي.

# دريم فصل

## دشل ركعته تراويحو احاديث

(۱) عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنهما «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّي فِي رَمَضَانَ عِشْرِينَ رَكْعَةً وَالْوِتْرَ» باب كَمْ يُصَلِّي فِي رَمَضَانَ مِنْ رَكْعَةٍ؟ (مصنف ابن ابى شيبه ، ج ٥ ص٢٢٥ حديث نمبر ٧٧٧٤] قلت سنده حسن وتلقته الامة بالقبول فهوصحيح . بيهقي ج ٢،ص ٤٩٦).

حضرت عبد الله بن عباس رضي الله عنه فرمائى چې رسول الله ﷺ به په رمضان كې شل ركعته تراويح اووتركول . داحديث دسند په اعتبار حسن دى اود امت عملي تائييد ورته حاصل دى، له دې وجهې ددې حديث متن بالكل صحيح دى .

**اعتراض:** غيرمقلدين ددې حديث په سند باندې اعتراض كوي چې ددې حديث په سند كې ابراهيم بن عثمان ابوشيبه سخت ضعيف دى.

**اول جواب:** په اسلام كې دعملي مسايلو اصل دارومدار دامت په تعامل باندې دى، په كوم حديث باندې چې په امت كې بلانكيره عمل جاري وي دهغې حديث په سند باندې بحث ته ضرورت نه وي . اوپه كوم حديث باندې چې ټول امت عمل پرېښي وي دهغه حديث سند كه هرڅومره قوي وي، لكن بيابه هم هغه حديث ته معلول ويلى شي (الردعلى سيرالاوزاعى ص ۳۱) په نورالانوار كې په دې تصريح شوې ده چې كوم خبر واحد ته چې تلقى بالقبول حاصله وي دهغې حديث په سند باندې بحث ته ضرورت نشته .

دالمعجم الصغير للطبرانى په اخر كې دص ۱۷۷ څخه تر ص ۱۹۹ پورې په دې اصولو مستقله رساله ليكل شوى ده په نوم د (التحفة المرضية في حل بعض مشكلات الحديثيه) چې په هغې كې دامام شافعي، امام بخارى، امام ترمذى ، علامه سيوطى او علامه سخاوى رحمهم الله وغيره په حواله باندې داخبره واضحه شوى ده چې كوم حديث ته تلقى بالقبول حاصله وي دهغې حديث په سند باندې بحث ته ضرورت نه وي.

علامه ابن همام فرمائي چې: وقوله في اسانيده مقال لايضر بعد التلقي بالقبول (فتح القدير كتاب الطلاق فصل في الاختيار،ج ١٤ ص ٨٨).

قَالَ ابْنُ عَبْدِ الْبَرِّ رحمة الله عليه فِي الِاسْتِذْكَارِ: لِمَا حُكِيَ عَنِ التِّرْمِذِيِّ رحمة الله عليه أَنَّ الْبُخَارِيَّ رحمة الله عليه صَحَّحَ حَدِيثَ الْبَحْرِ: «هُوَ الطَّهُورُ مَاؤُهُ»، وَأَهْلَ الْحَدِيثِ لَا يُصَحِّحُونَ مِثْلَ إِسْنَادِهِ، لَكِنَّ الْحَدِيثَ عِنْدِي صَحِيحٌ، لِأَنَّ الْعُلَمَاءَ تَلَقَّوْهُ بِالْقَبُولِ. وَقَالَ فِي التَّمْهِيدِ: رَوَى جَابِرٌ رضي الله عنه عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «الدِّينَارُ أَرْبَعَةٌ وَعِشْرُونَ قِيرَاطًا»

وَقَالَ الْأُسْتَاذُ أَبُو إِسْحَاقَ الْإِسْفَرَايِينِيُّ رحمة الله تعالى عليه: تُعْرَفُ صِحَّةُ الْحَدِيثِ إِذَا اشْتُهِرَ عِنْدَ أَئِمَّةِ الْحَدِيثِ بِغَيْرِ نَكِيرٍ مِنْهُمْ.

وَقَالَ ايوب [أَبُو الْحَسَنِ بْنُ الْحَصَّارِ رحمة الله عليه] فِي تَقْرِيبِ الْمَدَارِكِ، عَلَى مُوَطَّإِ مَالِكٍ: قَدْ يَعْلَمُ الْفَقِيهُ صِحَّةَ الْحَدِيثِ إِذَا لَمْ يَكُنْ فِي سَنَدِهِ كَذَّابٌ بِمُوَافَقَةِ آيَةٍ مِنْ كِتَابِ اللّٰهِ أَوْ بَعْضِ أُصُولِ الشَّرِيعَةِ، فَيَحْمِلُهُ ذٰلِكَ عَلَى قَبُولِهِ وَالْعَمَلِ بِهِ(تدريب الراوي ،ص ٤٧ وص ٤٨ تحت تعريف الصحيح.

علامه سيوطي فرمائي چې: وقدصرح غيرواحدبان من دليل صحة الحديث قولُ اهل العلم به وانْ لم يكن له اسنادُ يعتمدعلي مثله. [التعقبات على الموضاعات باب الصلوة (ص ١٢].

علامه ابن القيم رحمه الله د حضرت معاذ رضي الله عنه د حديث په باره کې فرمائي چې: وَهٰذَا إِسْنَادٌ مُتَّصِلٌ، وَرِجَالُهُ مَعْرُوفُونَ بِالثِّقَةِ، عَلَى أَنَّ أَهْلَ الْعِلْمِ قَدْ نَقَلُوهُ وَاحْتَجُّوا بِهِ، فَوَقَفْنَا بِذٰلِكَ عَلَى صِحَّتِهِ عِنْدَهُمْ، كَمَا وَقَفْنَا عَلَى صِحَّةِ قَوْلِ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: «لَا وَصِيَّةَ لِوَارِثٍ» (إِلَى أَنْ قَالَ): وَإِنْ كَانَتْ هٰذِهِ الْأَحَادِيثُ لَا تَثْبُتُ مِنْ جِهَةِ الْإِسْنَادِ، وَلٰكِنْ لَمَّا تَلَقَّتْهَا الْكَافَّةُ عَنِ الْكَافَّةِ غَنُوا بِصِحَّتِهَا عِنْدَهُمْ عَنْ طَلَبِ الْإِسْنَادِ لَهَا. ( اعلام الموقعين حديث معاذ،ج ١ ،ص ١٥٥].

علامه حافظ ابن كثير رحمه الله فرمايي چې: ( ثم وقفت بعد هذا علي كلام لشيخنا ابن تيميه انه نقل القطع بالحديث الذي تلقتهالامة بالقبول عن جماعات من الايمة...الخ) ابن تيميه دلويو لويو دلو د محدثينو څخه رانقل کړي دي چې په هغه حديث يقين پكاردى كوم ته چې تلقي بالقبول حاصله وي يعني كوم حديث ته چې تلقي بالقبول حاصله وي هغه حديث په منزله د متواتر حديث دى. (الباعث الحثيت ص٢٩، ٣٠ قبيل النوع الثاني )او علامه اكرم سندهي فرمايي : ( انه ينزل منزل التواتر )(امعان النظر ص١٨٦)

او علامه عبد الحى لكهنوي فرمايي چې: ( حتي إنه يُنزل منزلةَ المتواتر في أنه يَنْسِخُ المقطوع به ) (مجموعه رسايل لكهنوي الاجوبة الفاضله ج ۴/ ص١١ اخر السؤال الاول قبيل التنبيه) علامه سيوطي

رحمه الله فرمايي : (يحكم للحديث بالصحة اذاتلقاه الناس بالقبول ) [تدريب الراوي ص ۴۷ ، ۴۸ تحت تعريف الصحيح].

امام مالک رحمه الله فرمايي : ( شهرةُ الحديث بالمدينة تغني عن صَحةِ سندهِ) (فتح القدير : ج ۳ ص ۴۹۳ کتاب الطلاق اخر فصل ويقع طلاق کل زوج )

علامه ابن القيم رحمه الله په زاد المعاد کي دډيرو احاديثو په باره کي فرمايي چي : (هٰذَاوَاِنْ كَانَ لَايَصِحُّ فَالْعَمَلُ عَلَيْهِ) کما في (ج ۲ ص ٣٦٠ قبيل فصل هديه في الذکر عند روية الهلال) په اعلام الموقعين کي ليکي چي : (عَلٰى أَنَّ أَهْلَ الْعِلْمِ قَدْ نَقَلُوهُ وَاحْتَجُّوا بِهِ، فَوَقَفْنَا بِذٰلِكَ عَلٰى صِحَّتِهِ) (اعلام الموقعين ج ۱ ص ۱۵۵ حديث معاذ) او دا اصل غير مقلدينو هم منلی دی . (فتاوى علماحديث ، ج ٦ ص ۷۴). الروضة الندية ، ص ٦ لنواب صديق حسن خان] اخبار اهل حديث ۱۹/ اپريل سنة ۱۹۰۷هـ].

**اول مثال** : يو حديث دی :( لا وصية لوارث )امام شافعی (رحمه الله )فرمائي چي إِنَّهُ لَا يُثْبِتُهُ أَهْلُ الْحَدِيثِ، وَلٰكِنَّ الْعَامَّةَ تَلَقَّتْهُ بِالْقَبُولِ، وَعَمِلُوا بِهِ حَتّٰى جَعَلُوهُ نَاسِخًا لِآيَةِ الْوَصِيَّةِ لَهُ (فتح المغيث ج ۱ ص ۴۹۸ امعان النظر ص ۱۸٦ والاجوبة الفاضله ج ۴ ص ۱۱) مشکوة باب الوصايا.

(امام ترمذی په ډيرو مقاماتو کي فرمايلي دي چي دا حديث د سند په لحاظ ضعيف دي مګر په دې حديث باندې داهل علمو عمل دی لدی وجهي همدا حديث دقرآني ايت دوصيت (كُتِبَ عَلَيْكُمْ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ إِنْ تَرَكَ خَيْرًا الْوَصِيَّةُ) لپاره ناسخ ګرزولی شي.

**حضراتو** ! حديث دلا وصية لوارث په ظاهر کي دقراني ايت د وصيت څخه مخالف دی اويوه مسئله چي په ظاهرکي دقراني ايت سره مخالفه وي هغه يقينا چي دتراويحو دمسئلي څخه اهمه وي خوبيا هم امت دامسئله قبوله کړي ده او ددې حديث دسند ضعف يي غورزولی دی او ايت قراني يي ددې حديث له وجهي مخصوص اويا منسوخ منلی دی.

نو په دی اهمه مسئله کي چي يو ضعيف حديث دتلقي بالقبول له وجهي بالاتفاق دمتواتر مرتبي ته رسيدلی دی، نو هغه حديث چي دخلفاء راشدينو ، دمهاجرينو ، او انصارو صحابه وو ﷺ تلقي بالقبول يي په نصيب وي . هغه به خامخا په اوله درجه صحيح او مقبول وي .

**دوهم مثـال:** ټول امت پـه دې متفق دی چې خوب داودس لپاره ماتوونکی دی، حالانکه ددې دلیل ضعیف حدیثونه دي او ټول محدثین وائي چې داحادیث دسند په لحاظ مردود دي لیکن دمعنی په لحاظ مقبول دي لوجه دتلقي بالقبول څخه.

**دریم مثال:** یو حدیث دی چې: البحر هو الطهورماءه والحل میتته.

امام ترمذي رحمه الله فرمائی چې ددې حدیث په ضعف باندې اتفاق دی لیکن دتلقي بالقبول له وجهې څخه قابل داستدلال دی. (مقدمة اعلاء السنن الفصل الثاني ص ۳۹ ادارة القرآن)

**دوهم جواب:** دتلقي بالقبول دبحث څخه وروسته په سند باندې بحث ته ضرورت نشته، لیکن دغیرمقلدینو دمنافقت دښکاره کولو لپاره به یو څه بحث ورباندې وکړو. ددې حدیث سند داسې دی: یزیدبن هارون قال اخبرنا ابراهیم بن عثمان عن الحکم عن مقسم عن ابن عباس (الحدیث)

کله چې غیرمقلدین داسند واوري نوشورشروع کړي چې په دې سند کې ابراهیم بن عثمان ابوشیبه سخت ضعیف دی او ددې سند پیش کول بدنامي ده او حماقت دی، لیکن خپله غیرمقلدین چې دجنازې په لمانځه کې دسورة فاتحی دفرضوالي لپاره یاکم ازکم دسنتوالي لپاره په دلیل کې دحضرت عبدالله بن عباس ﷺ کوم حدیث پیش کوي دهغې سند هم بعینه همدغه سند دی.

ابراهیم بن عثمان عن حکم عن مقسم عن ابن عباس ﷺ الحدیث ابن ماجه: لکه حکیم صادق سیالکوټي چې په خپل کتاب صلوة الرسول ص ۴۳۴ کې په جنازې کې دسورة فاتحې دفرضیت لپاره همدا سند پیش کړی دی او الباني همدې سند ته صحیح ویلي دي.

نو غیرمقلدین دابراهیم بن عثمان دروایت څخه دفرضوالي ثابتول عقلمندي او عمل بالحدیث ګڼي، لکن دشلورکعتو تراویحو دسنتوالي ثابتول ترینه حماقت او بدنامي ګڼي.

**فرق:** دشلورکعتو تراویحو او په جنازه کې دفاتحې دحدیثونو دسند دیووالي باوجود یوغټ فرق هم شته دی او هغه دا چې شلورکعتو ته تلقي بالقبول حاصله ده، خلفاء راشدینو، مهاجرینو، او انصارو صحابه وو ﷺ او ټول خیرالقرون ورباندې بلانکیره عمل کړی دی او امام مالک رحمه الله فرمايي چې: په

جنازه کې دسورة فاتحې فرضوالی په خیرالقرون کې چا پيژندلو هم نه کمافی. [الاستذکار لابن عبدالبر ج۲/ ص۵٦۵ باب ما یقول المصلي علی الجنازة تحت الاثر الثالث].

**دريم جواب:** دکوم راوي دثقه والي لپاره په بنيادي طورباندې دوه خبرې ضروري دي :

**اول :** دراوي دحفظ ثبوت.**دوهم :** دراوي دعدالت ثبوت

ابراهيم بن عثمان ته حافظ ابن حجر، الحافظ ويلي دي اوهيچا دده په حافظه جرحه نه ده کړې پاتې شودده عدالت نو ددې په باره کې دامام شعبه په جرحه امام ذهبي اعتراض کړی دی. باقي جارحين صرف دشعبه رحمه الله مقلدين دي. ابن عدي رحمه الله فرمايي چې (له احاديث صالحة وهو خير من ابراهيم بن ابي حية )او د امام بخاري استاذ الاستاذ يزيد بن هارون هم ورته ثقه وايي.[تهذيب ج۱/ ص۱۴۵].

په تهذيب، ج ۳ص ۱۴۹ کې يې ليکلي دي چې شعبه هميشه دثقه راوي څخه روايت را اخلي اودايې هم ليکلي دي چې شعبه دابو شيبه څخه روايت اخستی دی، ددې څخه صفا ظاهرېږي چې امام شعبه رحمه الله دخپلې جرحې څخه رجوع کړې ده، که رجوع ثابته شي نوراوی ثقه شوروايت يې دصحيح په درجه کې شو اوکه رجوع ثابته نه شي نو راوي مختلف فيه شو اوروايت يې دحسن په درجه کې شو.

**دوهم اعتراض:** بې مذهبه خلکو ددې حديث دنه منلو لپاره دوهمه بهانه دا کړې ده چې دا حديث دحضرت عايشې رضی الله عنها دحديث څخه مخالف دی.

**اول ځواب:** مخکې تيره شوه چې کوم حديث ته تلقی بالقبول حاصله وي هغه که څه هم دقراني ايت سره مخالف وي عمل ورباندې جايزدی. نو چې دمضطرب خبر واحد سره مخالف وي په هغه خوپه طريقه اولی باندې عمل جايزدی.

**دوهم ځواب:** ددواړو حديثونو په مينځ کې اختلاف نه شته ځکه چې دحضرت عايشې رضي الله عنها حديث دتهجدو په باره کې دی او دا حديث دتراويحو په باره کې دی، هيڅ عاقل داسې نه شي ويلي چې دمازيګر دڅلور رکعته فرضو او دماښام ددرې رکعتو فرضو احاديث متعارض دي.

که بالفرض ومنو چې دا یو لمونځ دی، نو بیا هم هیڅوک داسې نه شي ویلی چې د درې ځلې اندامونو مینځلو والاحدیث دیو ځلې مینځلو د حدیث یا دوه ځلې مینځلو د حدیث سره معارض دی، بې مذهبه خلک پخپله وایي چې اته رکعت په شلو رکعتونو کې داخل دي (تحقیق تراویح ص ۱۰۰)

**دورفاروقي وعثماني:** په فاروقي دوره سنه ۱۴ هـ کې باقاعده په جماعت باندې د تراویحو دلمو ځ اهتمام وشو [الموسوعة ج ۲۷/ ص ۱۳۹ بحواله حاشية العدوی علی كفاية الطالب ۱/ ص ۳۵۲ والمصابيح في صلوة التراويح للسيوطي ص ۳۷ ونهاية المحتاج ج ۱/ ص ۱۲۲]. وهكذا ذكر في البخاری ج ۱ ص ۲۶۹] كتاب صلوة التراويح باب فضل من قام رمضان، مسلم ج ۱ ص ۲۵۹]. والاستذكار ج ۲/ ص ۶۶ باب ماجاء في قيام رمضان او تراویح په اخرو کلونو د هجرت مشروع شوی دی. [الموسوعة ج ۲۷ ص ۱۳۹]. په دغه وخت کې خلکو څو رکعته لمونځ کولو؟

(۲) عَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ رضي الله عنه قَالَ: "كَانُوا يَقُومُونَ عَلَى عَهْدِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فِي شَهْرِ رَمَضَانَ بِعِشْرِينَ رَكْعَةً" قَالَ: "وَكَانُوا يَقْرَءُونَ بِالْمِئِينِ، وَكَانُوا يَتَوَكَّئُونَ عَلَى عِصِيِّهِمْ فِي عَهْدِ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ مِنْ شِدَّةِ الْقِيَامِ. (بهيقی ج ۲ ص ٤٩٦ باب ماروی في عدد ركعات القيام في شهر رمضان)

حضرت سائب بن یزید رضي الله عنه وایي چې: د حضرت عمر رضي الله عنه په زمانه کې (صحابه کرامو په جماعت) شل رکعته تراویح کولې او قاري صاحبانو به د سلو، سلو ایاتونو واله سورتونه لوستل او د حضرت عثمان رضي الله عنه په زمانه کې به خلکو د ډیرو دریدلو له امله په امساګانو باندې تکیاوې کولې او سره له دې چې د نومړی حدیث د سند په کروالي غیر مقلدین هم اقرار کوي تحقیق تراویح، ص ۵۱).

(۳) عَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ رضي الله عنه قَالَ: «كُنَّا نَقُومُ فِي زَمَانِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رضي الله عنه بِعِشْرِينَ رَكْعَةً وَالْوِتْرِ».
(معرفة السنن بهيقي ص ۳٦۷ ) باب قيام رمضان كنزالعمال ج ۸ ص ۲٦٤)

ترجمه: حضرت سائب بن یزید رضي الله عنه وایي چې مونږ به د حضرت عمر رضي الله عنه په زمانه کې شل رکعته تراویح او درې رکعته وتر کول.

**امام نووي فرمائي چې ددې سندصحیح دی.** (مجموعة الرسائل، ج ۱ ص ۲۰۱ بحواله شرح المهذب). علامه سبکی، علامه سیوطی، او ملاعلی القاری رحمهم الله دی حدیث ته صحیح ویلی

دی. (اثار السنن حدیث نمبر ۷۷۸ باب في التراويح بعشرين ركعة) ددې اهل فنو د تصحیح څخه وروسته دمذهب نه منونکو دجرحې هیڅ حیثیت نه شته، البته خپله غیر مقلد مولوی عبد الجبار غزنوي او غیر مقلد مولوی عبد التواب ملتاني لیکلي دي چې په حیلو او په بهانو باندې داحادیثو څخه انکار دغیر مقلدینو زوړ عادت دی. (فتاوی علماء حدیث، ج ۷ ص ۸۰).

(۴) وَرَوٰی مَالِكٌ رحمة الله عليه مِنْ طَرِيقِ يَزِيدَ بْنِ خُصَيْفَةَ رحمة الله عليه عَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ رضي الله عنه عِشْرِينَ رَكْعَةً. (فتح الباری ج٤ ص٨٠) وفی البعض ،ج ٥ص ١٥٧). امام مالک دیزید بن خصیفة له طریقه دسایب بن یزید څخه روایت کوي چې په عهد فاروقی کې شل رکعته تراویح وې.

(۵) وفی المؤطا مِنْ طَرِيقِ يَزِيدَ بْنِ خُصَيْفَةَ رحمة الله عليه عَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ رضي الله عنه اَنَّهَا عِشْرُونَ رَكْعَةً. (فتح الباری ج ٤ص ٨٠ نیل الاوطار، ج ٢ص ٢٨٩ وص ٢٩٩). ترجمه مخکې تیره شوه بعینه داسند، مالک عن یزیدَ بنِ خصیفةَ عن السائب رضي الله عنه (په بخاری ج اص ۳۱۲) کې موجود دی.

حافظ ابن حجر په ۸۵۲ هـ کې وفات شوی دی د (۸۵۲) هـ څخه تر (۱۴۰۰) هـ پورې تقریبا پنځه نیمې صدی تیرې شوې دي په دې زمانه کې په زرګونو محدثینو فتح الباری مطالعه کړې ده.

په دومره محدثینو کې که چا په دې دواړو حدیثونو کوم اعتراض کړی وي، نو مهرباني وکړئ حواله پیش کړئ، دموطاامام مالک (١٦) نسخې دي، چې زمونږ سره دامام محمد رحمه الله او امام یحي رحمه الله والا نسخې دي په دې دواړو نسخو کې هم روایات کم او زیات دی، نو کوم روایات چې دابن حجر او دشوکانی په نسخو کې موجود دی نو دادنسخو اختلاف او دثقه زیادت دی چې اجماعًا مقبول دی.

(٦) ابن عبد البر رحمه الله فرمائي: وَرَوَى الْحَارِثُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِي ذُبَابٍ رحمة الله تعالى عليهم عَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ رضي الله عنه قَالَ كُنَّا نَنْصَرِفُ مِنَ الْقِيَامِ عَلَى عَهْدِ عُمَرَ رضي الله عنه وَقَدْ دَنَا فُرُوعُ الْفَجْرِ وَكَانَ الْقِيَامُ عَلَى عَهْدِ عُمَرَ رضي الله عنه بِثَلَاثٍ وَعِشْرِينَ رَكْعَةً. (سندصحیح مجموعة الرسایل، ج ١ص ٢٠١) الاستذکار باب ماجاء في قیام رمضان ج٢ ص ٦٩، ٧٠).

ترجمه: حضرت سایب بن یزید رضي الله عنه فرمایي چې: دحضرت عمر رضي الله عنه په زمانه کې خلکو شل رکعته تراویح په جماعت باندې کولې.

(٧) وَقَالَ مُحَمَّدُ بْنُ كَعْبٍ الْقُرَظِيُّ رحمه الله: «كَانَ النَّاسُ يُصَلُّونَ فِي زَمَانِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فِي رَمَضَانَ عِشْرِينَ رَكْعَةً يُطِيلُونَ فِيهَا الْقِرَاءَةَ وَيُوتِرُونَ بِثَلَاثٍ».(قيام الليل:١٥٧) بَابُ عَدَدِ الرَّكَعَاتِ الَّتِي يَقُومُ بِهَا الْإِمَامُ لِلنَّاسِ فِي رَمَضَانَ].

ترجمه : حضرت محمد بن كعب قرظي وايي چې : خلكو د حضرت عمر ﷺ په زمانه كې (په جماعت) شل ركعته تراويح او درې ركعته وتر كول.

(٨) عَنْ يَزِيدَ بْنِ رُومَانَ رضي الله عنه أَنَّهُ قَالَ: «كَانَ النَّاسُ يَقُومُونَ فِي زَمَانِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رضي الله عنه فِي رَمَضَانَ بِثَلَاثٍ وَعِشْرِينَ رَكْعَةً. (موطاامام مالک حديث نمبر ٢٥٧) كتاب الصلوة باب ماجاء في قيام رمضان الاستذكار ج٢/ ص٦٩ باب ما جاء في قيام رمضان].

ترجمه :د حضرت يزيد بن رومان ﷺ څخه روايت دی چې ټولو خلكو د حضرت عمر فاروق ﷺ په زمانه كې په رمضان كې په جماعت) شل ركعته تراويح او درې ركعته وتر كول.

(٩) عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ رحمة الله تعالى عليهما عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رضي الله عنه أَنَّهُ أَمَرَ رَجُلًا أَنْ يُصَلِّيَ بِهِمْ عِشْرِينَ رَكْعَةً. (استاذ البخاری ابن ابی شيبه، حديث نمبر ٧٧٦٤]. ج ٢ص ٣٩٣ ) باب كم يصلي في رمضان ) وفي الاستذكار ج٢/ ص٦٩ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ رحمة الله تعالى عليهما أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ أَمَرَ رَجُلًا يُصَلِّي بِهِمْ عِشْرِينَ رَكْعَةً.

ترجمه : حضرت عمر ﷺ يو سړي ته حكم وكړو چې خلكو ته شل ركعته تراويح په جماعت باندې وركړه.

(١٠) - عَنِ الْحَسَنِ رحمة الله تعالى عليه أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رضي الله عنه جَمَعَ النَّاسَ عَلَى أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ رضي الله عنه فَكَانَ يُصَلِّي بِهِمْ عِشْرِينَ رَكْعَةً (نسخه ابوداودمطبوعه عرب رقم، ١٤٢٩ ). وفی عام النسخ ، ج ١ص ٢٠٢ سيراعلام النبلاء ، ج ١ص ٤٠٠ ) ج١ ص ٤٠ جامع المسانيد ج١ ص ٥٥ دارالفكر بيروت ].

حضرت امام حسن وايي چې حضرت عمر ﷺ د خلكو لپاره ابی بن كعب د تراويحو امام وټاكلو او هغه به شل ركعته تراويح كولې په دې كې دابوداود دوه نسخې دي په بعضو نسخو كې (عشرين ركعة) دی او په بعضو نسخو كې. (عشرين ليلة ) دی لكه څرنګه چې كله د قران كريم د كوم ايت دوه قراءتونه وي, نو دواړه به منل كيږي, نو همدارنګه مونږ دواړه نسخې منو.

غير مقلدين د امام اعظم سره په دښمنی كې د احاديثو څخه مكمل منكر دي او د احاديثو څخه د انكار په جذبه كې د دې حديث څخه هم منكر شوي دي او د ديوبند په علماو والزام لګوي چې

ديوبنديانو پـه دې حـديث کـې تحريـف (لاس وهنـه) کـړې ده، حالانکـه دا حـديث الشيخ محمـد علـى الصابونى الاستاذ. (بكلية الشريعة والدراسات الاسلامية بجامعه ام القـري المكـة المكرمـة) هم پخپل کتاب (الهدي النبوي الصحيح في صلوة التراويح) ص ٥٦) کې ذکر کړی دی، بلکې د ديوبند د مدرسې د جوړيدو څخه په سوونو کلونه مخکې علامه ذهبي په خپل مشهور کتاب (سير اعلام النبلاء ج ١ص ٤٠٠) کې د ابوداود په حواله باندې. (عشرين ركعة) ذکر کړی دی.

د احاديثو څخه د انکار په جذبه کې په نورو باندې الزام د بې مذهبه خلکو عادت ګرزيدلی دی، مخکې د عربي چاپ حواله هم مونږ ذکر کړه.

(١١) عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ ﷺ أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ ﷺ أَمَرَهُ أَنْ يُصَلِّيَ بِاللَّيْلِ فِي رَمَضَانَ فَصَلَّى بِهِمْ عِشْرِيْنَ رَكْعَةً. (كنز العمال، ج ٨ص ٢٦٤).

ترجمه: حضرت ابى بن كعب ﷺ فرمائی چې حضرت عمر ﷺ ورته امر وکړو چې خلکو ته شل رکعته تراويح په جماعت باندې ورکړه.

(١٢) عَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ ﷺ، "أَنَّ عُمَرَ ﷺ: جَمَعَ النَّاسَ فِي رَمَضَانَ عَلَى أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ ﷺ، وَعَلَى تَمِيمٍ الدَّارِيِّ ﷺ عَلَى إِحْدَى وَعِشْرِينَ رَكْعَةً. (عبدالرزاق ج ٤ص ٢٦٠) الاستذكار ج٢/ ص٦٩ باب ماجاء في قيام رمضان].

ترجمه: د حضرت سايب ﷺ څخه روايت دی چې: عمر بن الخطاب ﷺ صحابه په ابى بن كعب او تميم داری باندې را جمع کړه هغوی يو ويشت رکعته کول.

(١٣): علامه ابن تيميه رحمه الله فرمائی چې: قَدْ ثَبَتَ أَنَّ أُبَيَّ بْنَ كَعْبٍ ﷺ كَانَ يَقُومُ بِالنَّاسِ عِشْرِينَ رَكْعَةً فِي قِيَامِ رَمَضَانَ وَيُوتِرُ بِثَلَاثٍ. فَرَأَى كَثِيرٌ مِنَ الْعُلَمَاءِ أَنَّ ذٰلِكَ هُوَ السُّنَّةُ، لِأَنَّهُ أَقَامَهُ بَيْنَ الْمُهَاجِرِينَ وَالْأَنْصَارِ وَلَمْ يُنْكِرْهُ مُنْكِرٌ (فتاوى ابن تيميه قديم، ج ١ص ١٨٢ فتاوى ابن تيميه جديد، ج ٣٣ص ١١٢).

دا خبره بې شکه ثابته ده چې حضرت ابى بن كعب ﷺ صحابه وو ته د شلو رکعتو تراويحو او د درې رکعتو وترو امامتې ورکوله، له دې وجهې دا کثرو علماء وو رايه داده چې شل رکعته تراويح سنت دي، ځکه چې دا بى بن كعب پسې مهاجرينو صحابه وو هم شل رکعته کول او انصارو صحابه وو هم ورپسې شل کعته کول او هيڅ منکر د شلو رکعتو د سنتوالي څخه انکار و نه کړو.

علامه ابن قدامه فرمايي چې: وَقِيَامُ شَهْرِ رَمَضَانَ عِشْرُونَ رَكْعَةً. (يَعْنِي) (صَلَاةَ التَّرَاوِيحِ) وَهِيَ سُنَّةٌ مُؤَكَّدَةٌ، وَأَوَّلُ مَنْ سَنَّهَا رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (المغني لابن قدامه ج١ ص ٨٣٤ صلوة التراويح).

ددې يوولسو روايتونو څخه د حضرت عمرؓ په زمانه کې قولًا او فعلًا او تشريعًا په شل ركعته تراويحو باندې هميشوالي ثابت شو. همدارنګه د حضرت عثمانؓ څخه هم قولا او فعلا او تشريعا په شل رکعتو تراويحو باندې مواظبت ثابت شو. وروسته به د حضرت علیؓ څخه هم قولا او فعلا او تشريعا په شل رکعته تراويحو مواظبت ثابت کولو.

## چيلينج

**بې مذهبه خلکو!** په هندوستان باندې د انګريزي دورې څخه صرف لس دقيقې مخکې داسې يو محدث او فقيه راوښائي چې په دور فاروقي او دور عثماني کې يې په شلو رکعتو تراويحو باندې په جماعت د مواظبت او هميشوالي څخه انکار کړی وي او يا د انګريزي دورې څخه يو ازې پنځه دقيقې مخکنې داسې يو کتاب راوښائي چې په هغه کې ددې مواظبت په خلاف کوم باب تړل شوی وي.

بلکه حقيقت دا دی چې د دورفارقي څخه راواخله، بيا په هندوستان باندې تر دوربرطانوي پورې هيڅ محدث او فقيه په شلو رکعتونو باندې په جماعت د مواظبت څخه انکار نه دی کړی او نه په کوم يو مستند اسلامي کتاب کې په دې مواظبت باندې اعتراض شوی دی.

### لامذهبان او د حديثو څخه د انکار لپاره حيلې او بهانې:

(۱) د دريم نمبر روايت په باره کې بې مذهبه خلک ليکي چې ددې يو راوي ابوعثمان بصري دې او هغه مجهول دی، ليکن د اسماء الرجال په کوم کتاب حواله نه شي ورکولی.

علامه سبکي رحمه الله، سيوطی رحمه الله، امام نووی رحمه الله، ملاعلی القاری رحمه الله دې حديث ته صحيح ويلي دي. اثارالسنن، حديث نمبر ۷۷۸)

(۲) داووم، اتم، او نهم، نمبر احاديثو په باره کې يې دارسال او انقطاع غوغا جوړه کړې ده، حالانکه ذا خبره په فن د اصول حديث کې ثابته شوې ده، چې مراسيل د صحابه و رضی الله عنهم په اجماع د امت باندې حجت دي. او د صحابه وو رضي الله عنهم څخه د وروسته خيرالقرون په مرسلاتو کې يو څه اختلاف دی.

امام ابو حنيفه، امام مالک، او امام احمد رحمهم الله ددوی مرسلات هم مني، خو په دې شرط چې راوي ثقه وي او امام شافعي رحمه الله يې د منلو څخه اول کې منکر ؤ، لکن کله يې چې وليدل چې په دې طريقه داحاديثو ډېرې غټې ذخيرې څخه انکار راځي نو د بعضې تابعينو مرسلاتو ته يې مطلقاً حجت وويلو او د بعضو تابعينو د مرسلاتو د قبلولو لپاره يې يو شرط ولګولو او هغه دا چې ذداسې مرسل تاييد به په بل سند او يا په تعامل باندې شوی وي، داسې مرسل ته مرسل معتضده وائي او غير مقلدين هم په دې کې د امام شافعي تقليد شخصي کوي، وګوره د غير مقلد مبارک پورې کتاب (تحقيق الكلام).

خلاصه دا چې دصحابه وو مرسلات اتفاقاً حجت دی او دصحابه وو څخه وروسته د خير القرون مراسيل معتضده هم اتفاقاً حجت دی. [شرح نخبة الفكر ص۵۲ او مرسل د يزيد بن رومان په موطا امام مالک کې ذی او مراسيل د امام مالک د امام شافعي رحمهما الله په نيز يقيني حجت دي. [حجة الله البالغة ج۱/ ص۱۰۶]. د نخبة الفكر ص۵۲ په حاشيه کې يې د شيخ الاسلام انصاري قول رانقل کړی دی، چې د مرسل حديث مؤيد که موجود شي اګر چې ضعيف وي بيا هم حجت دی. او د تراويحو په باب کې چې دوي په کوم حديث باندې د ارسال جرحه کوي هغه يا مراسيل دصحابه وو دي او يا مراسيل معتضده دي چې اتفاقاً حجت دي، د نن زمانې غير مقلدين د عيسويانو او د نيچريانو (منکرين د معجزاتو) په نقش قدم باندې د مطلق مرسل د قبلولو څخه منکر دي.

## غيرمقلدين دعيسويانو او نيچريانو په نقش قدم

عيسويانو او نيچريانو دصحابه وو د مراسيلو څخه انکار کړی دی، له دې وجهې ډېر واحاديثو او د معجزو په باره کې وائي چې د فلانکی معجزې روايت کوونکي صحابي په هغه وخت کې نه وو مسلمان شوی. يا په هغه وخت کې بالکل نه وو پيدا شوی.

منکرين د حديثو هم د احاديثو د انکار لپاره داسې وائي چې فلانی صحابي د واقعې عيني شاهد نه دی. له دی وجهې څخه سند متصل نه دی، غير مقلدين هم د احاديثو څخه د انکار په جذبه کې وايي چې فلان راوي د حضرت عمر رضي الله عنه د زمانې څخه (۲۳) کاله وروسته پيدا شوی دی، له دې وجهې دده روايت د منلو ړندې، په دې طريقه د بيچاره عوامو په ذهن کې داخبره وراچوي چې دا ډېر لوی تحقيق دی. ليکن د چاچې د حديثو په کتابونو باندې نظر دی نو هغه د ډېر خطر څخه لړزيږي ځکه چې دا د انکار د حديث لپاره

ديوې بلې دروازې خلاصول دي، كره علماء غيسويانو نيچريانو، او غير مقلدينو ته يو ځواب وركوي چې مراسيل د صحابه وو او مراسيل معتضده اجماعا حجت دي.

چاچې د محدثينو دا قاعده منلې ده هغوى د حديثو د انكار او د معجزاتو د انكار څخه بچ شوي دي او څوک چې د بې دينۍ او د تعصب په سمندر كې لاهو شوي دي هغوى پخپله هم گمراه شوي دي او ډير ساده مزاجه عوام يې هم گمراه كړي دي.

**عجيبه!** ډير تعجب خبره خو لا داده چې بې مذهبه خلک د دې خبرې حواله چې فلانې راوي كله پيدا شوى دى؟ او ده صحابي او يا رسول الله ﷺ ندى ليدلى، په حافظ ابن حجر رحمه الله او زيلعي رحمه الله، ذهبي رحمه الله وغيره وو باندې وركوي. حالانكه د دې مؤلفينو او د هغه راويانو په مابين كې په سلگونو كاله فاصله ده. نو لا مذهبان دې دا ثابته كړي چې كله د شلو او د لسو كالو انقطاع حجت نده، نو دا ته سوه كالو انقطاع څرنگه حجت شوه؟ او دا دې هم ووائي چې په خير القرون باندې اعتماد نه كول او دا تيمي صدى خلک (ارباباً من دون الله) گڼل، بغير د چون او د چرا څخه د هغوى خبرې په دليل كې پيش كول او په هغو احاديثو باندې رد كول چې ټول امت ورباندې عمل كوي په كوم ايت او يا حديث باندې ثابت دي؟

**خلاصه**: خلاصه داده چې په مذكورو احاديثو كې يا ارسال د صحابه وو، دى او يا ارسال معتضده د خير القرون دى، له دې وجهې خپله امام شافعي رحمه الله د شلو ركعتو تراويحو څخه انكار نه كوي بلكې فرمائي چې (احب الى عشرون) زما په نيز شل ركعته تراويح غوره دي.

دامام شافعي (رحمه الله) په مقلدينو كې هم هيڅ يا به د دور فاروقي كې د شلو ركعتو تراويحو څخه انكار نه دى كړى، بلكې شلو ركعتو تراويحو ته بالاتفاق سنت وائي امام نووي فرمائي چې په شل ركعته تراويحو باندې د ټولو مسلمانانو اتفاق دى. (كتاب الاذكار ص ۸۱) شرح المهذب باب صلوة التطوع ج ۴ ص ۳۸ دارالفكر)

او سني غير مقلدين هم كله كله مرسل معتضده ته حجت وائي، لكه حكيم صادق سيالكوټي چې په صلوة الرسول كې او مبارک پورې چې په تحقيق الكلام كې ورته حجت ويلى دى. ابن القيم رحمه الله هم په زاد المعاد. ص ۱۰۳ ج ۱ كې ورته حجت ويلى دى.

داخبره هم یاده لرئ چې په فاروقي او عثماني دورکې حضرت عایشه رضی الله عنها ژوندۍ وه او دا حدیث هم ورته معلوم ؤ. چې هر بدعت ګمراهي ده او هر بدعت مردود دی. دام المومنین رضی الله عنها په مبارک زړه کې یقیناً چې دسنتو سره محبت او د بدعت څخه نفرت د غیر مقلدینو په نسبت په زرګونو چنده زیات وو.

د خلفاء و د تاریخ مطابق په سنه ۱۴ ھ کې حضرت عمر رضی الله عنه شل رکعته تراویح په جماعت باندې شروع کړې او د حضرت عایشی رضی الله عنها وفات په سنه ۵۷ ھ کې شوی دی. نو د غیر مقلدینو په رایه پوره درې څلویښت کاله دام المومنین رضی الله عنها د کوټې سره متصل په مسجد نبوي کې د شلو رکعتو تراویحو بدعت جاري وو، لیکن دا هیڅکله نده ثابته چې په دې درې څلویښت کلونو کې دې ام المومنین رضی الله عنها یو ځلې د شلو رکعتونو په خلاف د تهجد والا حدیث پیش کړی وي.

## دلته دوه لارې دي:

**اول**: یا به دا منئ چې د بي بي عایشې رضی الله عنها حدیث د تراویحو سره بالکل تعلق نه لري، هغه صرف د تهجدو په باره کې دی، ام المومنین رضی الله عنها ته دا معلومه وه چې دا حدیث د تراویحو په باره کې نه دی، بلکې د تهجدو په باره کې دی.

**دوهم**: او یا به د ځان څخه په ښکاره د ول روافض جوړوئ او دا به وایې. چې بي بي عایشې رضی الله عنها ته دا معلومه وه چې دا حدیث د تراویحو په باره کې دی، لیکن (معاذالله) د دې په زړه کې د سنتو سره محبت او د بدعت څخه نفرت دومره هم نه وو لکه څومره چې د نن سبا د غیر مقلدینو په زړه کې دی، نو پوره درې څلویښت کاله په دې بدعت ترسره کیدلو پټه خوله پاتې شوې وه. همدا حال د حضرت جابر رضی الله عنه د حدیث هم دی.

اول خو د حضرت جابر رضی الله عنه حدیث صحیح نه دی دوهم په هغې کې د مواظبت ذکر نشته کوم چې د سنتیت لپاره شرط دی.

**دریم**: دا چې د حضرت جابر رضی الله عنه وصال په سنه ۷۰ ھ کې په مدینه منوره کې شوی دی، نو پوره شپږ پنځوس کاله د ده په مسجد نبوي کې شل رکعته تراویح کیدلې او ده پخپله د رسول الله ﷺ څخه دا حدیث اوریدلی دی چې: «وَشَرُّ الْأُمُورِ مُحْدَثَاتُهَا، وَكُلُّ مُحْدَثَةٍ بِدْعَةٌ وَكُلُّ بِدْعَةٍ ضَلَالَةٌ، وَكُلُّ ضَلَالَةٍ فِي النَّارِ». (نسائی)

لیکن بیا هم په شپږ پنځوس کلونو کې حضرت جابر رضی الله عنه دا بدعت په خپلو سترګو لیدلو او د دې په خلاف یې

* ده اتو رکعتو حدیث نه پیش کولو. او دا هم نه ده ثابته چې حضرت جابر ﷺ د نورو خلکو سره اته رکعته تراویح یو ځای کولې او نور د مسجد څخه وتلو.

**ای بې مذهبه خلکو!** خپل ځانونه وپیژنئ د صحابه کرامو رضی الله عنهم څخه د زیات علم دعوه مه کوئ

## دور مرتضوی

مخکې تاسو واوریدل چې په دور فاروقي او دور عثماني کې په شل رکعته تراویحو باندې مواظبت وو. په هندوستان باندې د انګریزي دورې څخه مخکې هیڅ محدث، او فقیه او مؤرخ د دې څخه انکار نه دی کړی او همدارنګه د انګریزي دورې څخه مخکې د اتو (۸) رکعتو تراویحو په کوم وهمې سند باندې هم هیڅ درک نه لګیدلو.

(۱)-۱۴- عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمٰنِ السُّلَمِيِّ ﷺ، عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: "دَعَا الْقُرَّآءَ فِي رَمَضَانَ فَأَمَرَ مِنْهُمْ رَجُلًا يُصَلِّي بِالنَّاسِ عِشْرِينَ رَكْعَةً" قَالَ: وَكَانَ عَلِيٌّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يُوتِرُ بِهِمْ. ( بهيقى ، ج ۲ص ٤٩٦ كتاب الصلوة باب ماروى في عدد ركعات القيام في شهر رمضان )

ترجمه: د حضرت ابو عبد الرحمن السملی څخه روایت دی چې حضرت علی ﷺ په رمضان کې قاریان راوغوښتل او په هغوی کې یې یو ته حکم وکړو چې خلکو ته شل رکعته تراویح په جماعت باندې ورکړي او خپله حضرت علی ﷺ به په اخر کې وتر په جماعت ورکول.

(۲) (۱۵) : عَنِ ابْنِ أَبِي الْحَسْنَآءِ رحمة الله تعالى عليه، «أَنَّ عَلِيًّا ﷺ أَمَرَ رَجُلًا يُصَلِّي بِهِمْ فِي رَمَضَانَ عِشْرِينَ رَكْعَةً».
[مصنف ابن ابی شیبه ، حدیث نمبر۷۷٦۳] باب كم يصلي في رمضان من ركعة]

ترجمه: حضرت ابو الحسناء وایي چې حضرت علی ﷺ یو سړي ته حکم وکړو چې خلکو ته په جماعت باندې شل رکعته تراویح ورکړی. د ابو الحسناء په نوم دوه کسان دي یو د حضرت علي ﷺ د شاګرد شاګرد دی، دا د حکم بن عتبة رحمه الله شاګرد او د ابراهیم نخعي رحمه الله استاذ دی، او دو هم ابو الحسناء چې د دې حدیث راوي دی، دا د حضرت علي ﷺ بالذات شاګرد دی لهذا دا حدیث منقطع ندی.

(۳) (۱٦) : عَنْ أَبِي الْحَسْنَآءِ رحمة الله تعالى عليه أَنَّ عَلِيَّ بْنَ أَبِي طَالِبٍ ﷺ "أَمَرَ رَجُلًا أَنْ يُصَلِّيَ بِالنَّاسِ خَمْسَ تَرْوِيحَاتٍ عِشْرِينَ رَكْعَةً ( بهيقى ج۲ ص٤٩٧ ).

دابو الحسناء څخه روایت دی چې حضرت علی ﷺ یو سړي ته حکم وکړو چې خلکو ته پنځه ترویحات شل رکعته تراویح ورکړه.

(۴) - (۱۷) حَدَّثَنِي زَيْدُ بْنُ عَلِيٍّ رحمة الله عليه عَنْ اَبِيهِ عَنْ جَدِّهٖ عَنْ عَلِيٍّ ﷺ اَنَّهٗ اَمَرَ الَّذِيْ يُصَلِّيْ بِالنَّاسِ صَلٰوةَ الْقِيَامِ فِيْ شَهْرِ رَمَضَانَ اَنْ يُّصَلِّيَ بِهِمْ عِشْرِيْنَ رَكْعَةً يُسَلِّمُ فِيْ كُلِّ رَكْعَتَيْنِ وَيُرَاوِحُ مَا بَيْنَ كُلِّ اَرْبَعِ رَكْعَاتٍ فَيَرْجِعُ ذُو الْحَاجَةِ وَيَتَوَضَّأُ الرِّجَالُ، وَاَنْ يُّوْتِرَ بِهِمْ مِنْ اٰخِرِ اللَّيْلِ حِيْنَ الْاِنْصِرَافِ. (مسند الامام زید ص ۱۳۹).

حضرت امام زید د خپل والد امام زین العابدین څخه روایت کوي، هغه د خپل والد حضرت امام حسین ﷺ څخه روایت کوي، چې حضرت علی ﷺ هغه امام ته چې د تراویحو لپاره یې منتخب کړی وو امر وکړو چې خلکو ته شل رکعته تراویح ورکړي او دهرو دوو رکعتونو څخه وروسته سلام وګرزوي او دهرو څلورو رکعتونو څخه وروسته ارام او وقفه وکړي، چې د حاجت والا د خپل حاجت څخه فارغ شي او اودس وکړي او دټولو په اخرکې وتر وکړي.

ددې څلورو روایاتو څخه دلمرپه شان ظاهریږي چې د حضرت علی ﷺ په خلافت کې که څه هم نور اختلافات وو، لیکن په تراویحو کې قطعا هیڅ اختلاف نه وو، ټولو صحابه وو رضی الله عنهم اجماعا په شلو رکعتو تراویحو مواظبت کولو. خپله د حضرت علی ﷺ څخه روایت دی چې په حرم شریف کې د بدعاتو د موجودونکي نه فرض قبلیږي او نه نفل (بخاری. ج ۲ ص ۱۰۸۴ مسلم، ج ۱ ص ۱۴۴).

حضرت علي ﷺ د بدعاتو څخه دومره نفرت لرلو، چې یو مؤذن یې ولیدلو چې د اذان څخه وروسته یې تثویب کولو نو حضرت علی ﷺ وفرمایل چې دا بدعتی د مسجد څخه اوباسې. (البحر الرایق، ج ۱ ص ۲۶۱).

او یو بل سړی یې ولیدلو چې په عیدګاه کې یې د اختر دلمانځه څخه مخکې نفل کول، حضرت علی ﷺ دلمانځه څخه منع کړو، هغه سړي ورته وویل چې ایا الله ﷻ به ماته په لمانځه باندې سزاء راکوي؟ حضرت علی ﷺ ورته وفرمایل چې د اختر د لمانځه څخه مخکې نفل نه دي ثابت، له دې وجهې دا نفل عبث دي، حرام دي او د رسول الله ﷺ مخالفت دی، په دې باندې الله ﷻ تاته سزاء درکوي. (کذافی الجنته ص ۱۶۵). کله چې حضرت علی ﷺ د دوو رکعتو نفلو بدعت نه شي برداشت کولی، نو هغه به د شلو رکعتونو د بدعت حکم څرنګه ورکوي؟

په هندوستان باندې د برطانوي دورې څخه مخکې هيڅ محدث ، فقيه، يا مؤرخ په دور مرتضوي کې په شلو رکعتو تراويحو باندې د مواظبت څخه انکار نه دی کړی او نه په پوره دور مرتضوي کې چا د شلو رکعتو په خلاف په کوم ضعيف او وهمي سند باندې داتو رکعتو ادرس ورکړی دی او نه دا ثابته ده چې په پوره دور مرتضوي کې کوم صحابي اته رکعته تراويح کړي دي او بيا د مسجد څخه وتلی دی . امام بهيقي د حضرت علی ﷺ اثر د شُتَيرِبْن شَكَلٍ دا ثر د قوت لپاره روايت کړی دی .

امام ابن تيميه په منهاج السنة ، ج۲ص ۲۲۴) کې د دې اثر څخه استدلال کړی دی. او د امام ذهبی په شان ناقدينو په دې اثر سکوت کړی دی. (المنتقی ص ۵۴۲)

امام ترمذی رحمه الله فرمايي چې شل رکعته تراويح دا کثرو اهل علمو قول دی، لکه څرنګه چې د حضرت عمر ﷺ او حضرت علی ﷺ څخه شل رکعته مروي دي. او همدا قول دامام سفيان ثوري ، ابن مبارک او دامام شافعي دی.

امام شافعي رحمه الله فرمايي چې : ما خپل ښار مکه مکرمه همدا سې موندلې ده چې ټولو خلکو شل رکعته تراويح کولې. (ترمذی ج ۱ص ۱۳۹ )کتاب الصيام باب ماجاء في قيام شهر رمضان )

په يادلری ! چې د شلو رکعتو نوسره حضرت علی ﷺ د تراويح لفظ استعمال کړی دی او داتو رکعتو سره هيڅ صحابي يا تابعي د تراويح لفظ نه دی استعمال کړی، دلا مذهبانو نظر چې په دور مرتضوي کې په اتو رکعتو نه لګيدلو ، نو دا شوريې جوړ کړو چې ابو الحسناء رحمه الله غير معروف دی، حالانکه دا بديهي ده چې د احنافو په نيز د خير القرون مجهول والی، تدليس او ارسال جرحه نه ده او د شوافعو په نيز د متابعت له وجهی دا جرحه ختميږي.

او د حضرت علی ﷺ څخه د شلو رکعتو په روايت کې ابو الحسناء منفرد نه دی . بلکې سيدنا امام حسين ﷺ او امام ابو عبد الرحمن السلمي رحمه الله هم همدا روايت کړی دی .

د حماد بن شعيب صرف هغه روايت ضعيف دی په کوم کې چې يې متابع او شاهد نه وي او دلته د دې سند ونه شواهد لري او د محدثينو په نيز د تعدد د طرق له وجهی ضعف ختميږي او حديث د حسن مرتبې ته رسيږي. په عطاء بن سائب باندې دا جرحه ده چې په اخر عمر کې يې په حفظ کې خلط راغلی ؤ ، ليکن

دشواهدو او دمتابعاتو له وجهې داجرحه ختميږي. حاصل داچې يوه مؤثره جرحه هم نه شته بلکې ټولې جرحې مردودې دي. خلاصه داچې په خير القرون کې بلانکيره په شلو رکعتو تراويحو عمل جاري وو.

٥- (١٨) عَنْ اَبِی الْحَسْنَاءِ رحمة الله تعالی علیه، عَنْ عَلِيٍّ ﷺ اَنَّهُ أَمَرَ رَجُلًا يُصَلِّيْ بِهِمْ فِيْ رَمَضَانَ عِشْرِيْنَ رَكْعَةً. [الاستذکار ج۲/ ص۷۰ ] حضرت علي ﷺ يو سړي ته امر وکړو چې په رمضان کې صحابه وو او تابعينو ته د شلو رکعتونو تراويحو امامتي ورکړي.

## دجمهورو صحابه وو او تابعينو عمل

(١) (١٩) - عَنْ زَيْدِ بْنِ وَهْبٍ رَحِمَهُ اللّٰهُ: كَانَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْعُوْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يُصَلِّيْ بِنَا فِيْ شَهْرِ رَمَضَانَ فَيَنْصَرِفُ وَعَلَيْهِ لَيْلٌ، قال الاعمش كان يصلي عشرين ركعة. (قيام الليل ص ٩١، ص ١٥٧) باب عدد الركعات)

دحضرت زيد بن وهب څخه روايت دی چې حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ به خلکوته دتراويحو لمونځ ورکولو، دتراويحو څخه به چې فارغ شونو شپه به لا پاتې وه، حضرت امام اعمش رحمه الله فرمائی چې حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ به شل رکعته تراويح او درې رکعته وترکول.

حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ دبدعاتو سره دومره مخالف وو چې فرمايل به يې چې :په سنتو باندې اکتفاء په بدعاتو باندې دمحنت څخه غوره ده. (حاکم) که شل رکعته تراويح بدعت وی نو حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ څرنګه کولې ؟

(٢) (٢٠) - امام حسن بصری رحمه الله دعبد العزيز بن رفيع څخه روايت کوي، چې حضرت ابی بن کعب ﷺ خلکو ته په مدينه منوره کې درمضان په مياشت کې شل رکعته تراويح او درې رکعته وترکول. (مصنف ابن ابی شيبه، حديث نمبر ٧٧٦٦) باب کم يصلي في رمضان من رکعة] ١٨و١٩ نمبر حديثونه مراسيل معتضده دي او مراسيل معتضده اجماعا حجت دي.

٣- (٢١) عَنْ عَطَاءٍ رحمة الله عليه قَالَ أَدْرَكْتُ النَّاسَ وَهُمْ يُصَلُّوْنَ ثَلَاثًا وَعِشْرِيْنَ رَكْعَةً بِالْوِتْرِ. (ابن ابی شيبه حديث نمبر ٧٧٧٠)

دحضرت عطاء څخه روایت دی فرمایي چې ما خلک وموندل چې دوتروسره به یې درویشت رکعته کول. حضرت عطاء په ۱۱۴هـ) کې تولد شوی دی.

(٤) (۲۲) -عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رحمة الله تعالىٰ عليه، عَنْ حَمَّادٍ رحمة الله تعالىٰ عليه، عَنْ إِبْرَاهِيمَ رَحِمَهُ اللهُ، «أَنَّ النَّاسَ كَانُوا يُصَلُّونَ خَمْسَ تَرْوِيحَاتٍ فِي رَمَضَانَ (کتاب الاثار ابویوسف ص ۴۱)

## ددې دواړو حدیثونو سند بالکل صحیح دی.

امام ابوحنیفه رحمه الله دامام حماد څخه روایت کوي او هغه د ابراهیم نخعی رحمه الله څخه روایت کوي چې ټولو خلکو (صحابه وو ﷺ، تابعینو او تبع تابعینو رحمهم الله) به په رمضان کې شل رکعته تراویح کولې.

(٥) (۲۳) -عَنْ شُتَيْرِ بْنِ شَكَلٍ رحمة الله عليه، وَكَانَ مِنْ أَصْحَابِ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ "أَنَّهُ كَانَ يَؤُمُّهُمْ فِي شَهْرِ رَمَضَانَ بِعِشْرِينَ رَكْعَةً، وَيُوتِرُ بِثَلَاثٍ. (بهيقي، ج۲ص ٤٩٦). مصنف ابن ابي شيبة حديث نمبر ۷۷٦۲، كم يصلي في رمضان من ركعة، باب نمبر ٦٨٠].

حضرت شتیربن شکل چې د حضرت علیؓ د اصحابو څخه وو خلکو ته به یې شل رکعته تراویح او درې رکعته وترپه جماعت باندې ورکول.

(٦) (٢٤) -عَنْ أَبِي الْبَخْتَرِي رحمة الله عليه أَنَّهُ كَانَ يُصَلِّي خَمْسَ تَرْوِيحَاتٍ وَيُوتِرُ بِثَلَاثٍ. (ابن ابی شیبه ،حدیث نمبر ۷۷٦۸). ابوالبختری (م ۸۳هـ دا هم د حضرت علیؓ د اصحابه څخه وو) شل رکعته تراویح او درې رکعته وترې کول (دخلف څخه شعبه روایتونه کړي دي). وهو لا يروي الا عن ثقة. (تهذيب، ج ۳ص ١٤٩).

(٧) (٢٥) عَنْ أَبِي الْخَصِيبِ رحمة الله تعالىٰ عليه قَالَ: "كَانَ يَؤُمُّنَا سُوَيْدُ بْنُ غَفَلَةَ رضي الله عنه فِي رَمَضَانَ فَيُصَلِّي خَمْسَ تَرْوِيحَاتٍ عِشْرِينَ رَكْعَةً. (بهيقى، ج ۲ص٤٩٦). دابو الخصیب څخه روایت دی چې حضرت سوید بن غلفهؓ مونږته په پنځو ترویحاتو شل رکعته تراویح راکولې.

(٨)(٢٦) عَنْ نَافِعٍ رحمة الله تعالىٰ عليه عن ابْنِ عُمَرَ رضي الله عنه، قَالَ: "كَانَ ابْنُ أَبِي مُلَيْكَةَ رضي الله عنه يُصَلِّي بِنَا فِي رَمَضَانَ عِشْرِينَ رَكْعَةً. (رواه ابن ابی شیبه ، حدیث نمبر۷۷٦٥) واسناده صحيح اثارالسنن ج ۲ص ۲۱۰ باب في

التراويح بعشرين ركعة) دحضرت نافع بن عمر څخه روايت دى هغه فرمايي چې: ابن ابى مليكهؒ م ١١٧ هـ مونږ ته شل ركعته تراويح راكولې.

(٩) (٢٧) عَنْ سَعِيدِ بْنِ عُبَيْدٍ رحمة الله تعالىٰ عليهما، «أَنَّ عَلِيَّ بْنَ رَبِيعَةَ ﷺ كَانَ يُصَلِّي بِهِمْ فِي رَمَضَانَ خَمْسَ تَرْوِيحَاتٍ، وَيُوتِرُ بِثَلَاثٍ». (ابن ابى شيبه، حديث نمبر ٧٦٩٠) واسناده صحيح]. دحضرت سعيد بن عبيد ﷺ څخه روايت دى چې حضرت على بن ربيعه التابعى مونږ ته شل ركعته تراويح راكولې.

(١٠)(٢٨) – حضرت عبد الرحمن بن ابى بكرة دحضرت على ﷺ شاګرد وو. (تهذيب ج ٦ ص ١٢٨) هغه به خلكو ته په پنځه ترويحاتو باندې شل ركعته تراويح وركولې (قيام الليل ص ١٥٨) باب عدد الركعات

(١١) (٢٩) حضرت سعيد بن ابى الحسين دحضرت على ﷺ خاص شاګرد وو. (تهذيب، ج ٤ ص ١٢٨) هغه به خلكو ته پنځه ترويحات شل ركعته تراويح وركولې. (قيام الليل ص ١٥٨) باب عدد الركعات

(١٢) (٣٠) دحضرت على ﷺ بل خاص شاګر حضرت عمران العبدى هم خلكو ته شل ركعته تراويح وركولې. (قيام الليل ص ١٥٨)

٣١- عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ رُفَيْعٍ رحمه الله قَالَ: «كَانَ أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ ﷺ يُصَلِّي بِالنَّاسِ فِي رَمَضَانَ بِالْمَدِينَةِ عِشْرِينَ رَكْعَةً، وَيُوتِرُ بِثَلَاثٍ». [مصنف ابن ابي شيبة حديث نمبر ٧٧٦٦ باب نمبر ٦٨٠].

٣٢- عَنِ الْحَارِثِ ﷺ: «أَنَّهُ كَانَ يَؤُمُّ النَّاسَ فِي رَمَضَانَ بِاللَّيْلِ بِعِشْرِينَ رَكْعَةً، وَيُوتِرُ بِثَلَاثٍ، وَيَقْنُتُ قَبْلَ الرُّكُوعِ». [مصنف ابن ابي شيبة، حديث نمبر ٧٧٦٧ باب نمبر ٦٨٠]. دا د خير القرون تعامل وو، په پوره خير القرون كې د شلو ركعتو په خلاف هيڅكله چا كوم اعتراض نه دى كړى. او عجيبه لا دا ده چې په ټول خير القرون كې د اتو ركعتو هيڅ نوم او نشان نه وو.

**فائده:** رسول الله ﷺ به تهجد او وتر يوځاى كول له دې، وجهې بعضې راويان د واړه يوځاى كله د تهجد و په نوم سره روايت كوي او كله يې د وترو په نوم سره روايت كړى دى، مثلاً په عامو حالاتو كې رسول الله ﷺ اته ركعته تهجد كړي دي د دې سره چې درې ركعته يوځاى كړى.

نو يوولس شو، له دې وجهې په بعضې رواياتو كې يوولس ركعته راغلي دي. په بعضو رواياتو نو كې د سهار سنت هم ورسره يوځاى شوي دي او دیارلس راغلي دي او په بعضو كې تحية الوضوء هم ورسره

يو ځای شوی دی او پنځلس راغلي دي. دا صرف د روايت اختلاف دی د تعداد اختلاف نه دی، د دې ځخه دا نتيجه را ايستل چې د سهار سنت، ۱۳ يا ۱۵ دي غلط دي. همدا رنګه د دې ځخه دا نتيجه را ايستل چې وتر ۱۳ يا ۱۵ دي هم غلط دي. همدا سې به اهل مکه وو د هرو ځلورو رکعتو تراويحو ځخه وروسته د خانه کعبې شريفې ځخه طواف کولو او اهل مدينه وو به په دغه وخت کې ځلور رکعته نفل کول نو پنځه ترويحات ضربې ځلور 16 کيږي، په الموسوعة الفقهية کې ليکي چې:

وَقَالَ الشَّافِعِيَّةُ: وَلِأَهْلِ الْمَدِينَةِ فِعْلُهَا سِتًّا وَثَلَاثِينَ، لِأَنَّ الْعِشْرِينَ خَمْسُ تَرْوِيحَاتٍ، وَكَانَ أَهْلُ مَكَّةَ يَطُوفُونَ بَيْنَ كُلِّ تَرْوِيحَتَيْنِ سَبْعَةَ أَشْوَاطٍ، فَحَمَلَ أَهْلُ الْمَدِينَةِ بَدَلَ كُلِّ أُسْبُوعٍ تَرْوِيحَةً لِيُسَاوُوهُمْ، قَالَ الشَّيْخَانِ رحمة الله تعالى عليهما: وَلَا يَجُوزُ ذَلِكَ لِغَيْرِهِمْ. وَهُوَ الْأَصَحُّ كَمَا قَالَ الرَّمْلِيُّ رحمة الله تعالى عليه لِأَنَّ لِأَهْلِ الْمَدِينَةِ شَرَفًا بِهِجْرَتِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَدْفِنِهِ، وَخَالَفَ الْحَلِيمِيُّ رحمة الله تعالى عليه فَقَالَ: وَمَنِ اقْتَدَى بِأَهْلِ الْمَدِينَةِ فَقَامَ بِسِتٍّ وَثَلَاثِينَ فَحَسَنٌ أَيْضًا. [الموسوعة الفقهية ج۲۷/ ص۱۴۳] بحواله اسنى المطالب ج۱/ ص۲۰۱ ونهاية المحتاج ج۲/ ص۱۲۳.

ابن عبد البر رحمه الله فرمايي چې: وَقَالَ الثَّوْرِيُّ وَأَبُو حَنِيفَةَ وَالشَّافِعِيُّ وَأَحْمَدُ بْنُ دَاوُدَ رَحِمَهُمُ اللَّهُ قِيَامُ رَمَضَانَ عِشْرُونَ رَكْعَةً سِوَى الْوِتْرِ لَا يُقَامُ بِأَكْثَرَ مِنْهَا اسْتِحْبَابًا (الاستذكار ج۲/ ص۷۰ وکذا في تحفة الاخيار ص۴۷]. نو بعضې راويانو د شلو رکعتو تراويحو سره (۱۶) رکعته نفل هم يو ځای روايت کړي دي نو تعداد يې (۳۶) ته رسولي دی عن داؤد بن قيس

عَنْ دَاوُدَ بْنِ قَيْسٍ رحمة الله عليه، قَالَ: «أَدْرَكْتُ النَّاسَ بِالْمَدِينَةِ فِي زَمَنِ عُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ، وَأَبَانَ بْنِ عُثْمَانَ رحمة الله تعالى عليهم يُصَلُّونَ سِتًّا وَثَلَاثِينَ رَكْعَةً وَيُوتِرُونَ بِثَلَاثٍ» [مصنف ابن ابي شيبة ج۵/ ص۲۲۴ حديث نمبر ۷۷۷۲] الاستذكار ج۲/ ص۷۰ باب ماجاء في قيام رمضان]. او چونکه وتر د تراويحو پسې متصل ادا کيږي نو بعضو دا هم ورسره يو ځای کړي دي او تعداد يې (۳۹) ته رسولي دی.

وذكر ابن القاسم عن مالك تسع وثلاثون، والوتر ثلاث. الاستذكار ج۲/ ص۷۰ باب ماجاء في قيام رمضان]. او بعضو د وترو ځخه وروسته دوه رکعته نفل هم ورسره يو ځای کړي دي او تعداد يې (۴۱) ته رسولی دی او بعضو د تراويحو ځخه وروسته شپږ يا اته رکعته نفل کړي دي. نو بعضو راويانو شپږ او اوه ترويحات هم روايت کړی دی:

كَمَا فِيْ مُصَنَّفِ ابْنِ اَبِيْ شَيْبَةَ عَنْ رقاء رحمه الله، قَالَ: «كَانَ سَعِيدُ بْنُ جُبَيْرٍ رحمة الله تعالى عليه يَؤُمُّنَا فِي رَمَضَانَ، فَيُصَلِّي بِنَا عِشْرِينَ لَيْلَةً سِتَّ تَرْوِيحَاتٍ، فَإِذَا كَانَ الْعَشْرُ الْآخَرُ اعْتَكَفَ فِي الْمَسْجِدِ وَصَلَّى بِنَا سَبْعَ تَرْوِيحَاتٍ» حديث نمبر ۷۷۷۳].

خلاصه دا چې دا د تراويحو د سنتو د تعداد بيان نه دی، بلکې باقي نوافل وغيره يې هم ور سره يو ځای بيان کړي دي، د صحابه وو ﷺ بلا نکيره مواظبت چونکه په شلو رکعتو باندې وو، له دې وجهې سنت به يو اځې شلو رکعتو ته وايو، باقي چې د چا څومره نوافل زړه غواړي کولې شي، د دې په خلاف احنافو نه کومه رساله ليکلې ده او نه يې کوم اشتهاري چيلينج چاپ کړی دی او نه يې په دې مقدسه مياشت کې د زيات عبادت کونکو په خلاف کوم شر راپورته کړی دی، بلکې احناف د زيات عبادت کوونکو حوصله افزائي کوي.

**علامه ابن خلدون فرمائی:** د رسول الله ﷺ د مقدسو سنتونو او د خلفاء راشدينو د مقدسو طريقو حفاظت او تدوين چې په کومه جامعه او مفصله طريقه باندې ايمه اربعه (څلورو امامانو) کړی دی، دا مقام بل هيچا ته نه دی په نصيب شوی، له دې وجهی ټول امت مسلمه دايمه يې اربعه وو په رهنمايې يې په دې پاکو سنتونو باندې عمل کوي. (اثار خير ص ۱۴۴). د څلورو اړو امامانو د فقهو په هيڅ کتاب کې هم اتو رکعتو ته سنت او شلو رکعتو ته بدعت نه دی ويلی شوي.

د امام ابو حنيفه رحمه الله، امام شافعي رحمه الله، او امام احمد بن حنبل رحمه الله مذهب دا دی چې شل رکعته تراويح سنت دي. (الاستذکار ص ۶۹-۷۰ ج ۲ باب ماجاء في قيام رمضان) او امام مالک رحمه الله د شلو تراويحو او شپاړسو نوافلو قائل دی چې مجموعه يې (۳۶) کيږي. (بداية المجتهد، ج ۱ ص ۱۵۲ کتاب اسرار الصلوة الباب السابع)

دا خبره د لمر په شان ظاهره ده چې د صحابه وو د زمانې څخه شروع په هندوستان باندې تر برطانوي دورې پورې، د هيڅ اسلامي فرقی، په هيڅ مسجد کې، هيڅکله هم اته رکعته تراويح نه دي شوي، که کوم بې مذهبه يې رابنودلی شي را ميدان ته دې شي او په کوم مستند کتاب دی حواله ورکړي (ديده بايد).

همدارنګه د صحابه وو رضی الله عنهم د دورې څخه شروع، په هندوستان باندې تر برطانوي دورې پورې، صرف ديو مسلمان او صرف ديو ديوداسې مسلمان نوم هم نه شته چې اته رکعته

تراويح يې کړي وي اونور د جماعت څخه وتلي وي، غير مقلدين دې همت وکړي او د کوم مستند کتاب په حواله دې دداسې مسلمان ادرس وليکي.

## ائمه اربعه او ټول امت مسلمه دټول امت مسلمه اجماع

د حضرت عمر فاروق ﷛ په زمانه کې په شلو رکعتو تراويحو باجماعت باندې اجماع وشوه.

(۱) دمکې مکرمې لاثاني محدث ملاعلي القاری فرمائي: أَجْمَعَ الصَّحَابَةُ ﷺ عَلَى أَنَّ التَّرَاوِيحَ عِشْرُونَ رَكْعَةً. (مرقات، ج ۳ص ۱۹٤ باب قيام شهر رمضان، الفصل الثالث) دټولو صحابه وو په دې اجماع ده چې تراويح شل رکعته دي.

(۲) وَبِالْإِجْمَاعِ الَّذِيْ وَقَعَ فِيْ زَمَنِ عُمَرَ ﷺ أَخَذَ أَبُوْحَنِيْفَةَ وَالنَّوَوِيُّ وَالشَّافِعِيُّ وَأَحْمَدُ وَالْجُمْهُوْرُ رَحِمَهُمُ اللّٰهُ وَاخْتَارَهُ ابْنُ عَبْدِ الْبَرِّ رحمة الله عليه (اتحاف سادة المتقين، ج ۳ص ٤٢٢ کتاب اسرار الصلوة و مهماتها، الباب السابع) او په هغه اجماع باندې چې د حضرت عمر ﷛ په زمانه کې (په شلو رکعتو تراويحو) باندې وشوه عمل کړی دی. ابو حنيفه رحمه الله امام شافعي رحمه الله امام احمد رحمه الله امام نووی رحمه الله جمهورو او همدا مختاره کړې ده ابن عبد البر رحمه الله.

(۳) وَثَبَتَ اِهْتِمَامُ الصَّحَابَةِ ﷺ عَلَى عِشْرِيْنَ رَكْعَةً فِيْ عَهْدِ عُمَرَ وَعُثْمَانَ وَعَلِيٍّ ﷺ فَمَنْ بَعْدَهُمْ. (حاشيه شرح وقايه مولناعبدالحي لکهنوي) او ثابت دی اهتمام دصحابه وو په شلو رکعتو نو په زمانه دعمر ﷛ عثمان ﷛ او علی ﷛ او ددوي څخه وروسته صحابه وو رضی الله عنهم څخه.

(۴) ابن حجر مکي رحمه الله فرمايي: چې دصحابه وو په دې خبره اجماع ده چې تراويح شل رکعته دي. (انارة المصابيح ص ۱۸).

(۵) ابن عبد البر فرمائی: وَهُوَ الصَّحِيحُ عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ ﷺ مِنْ غَيْرِ خِلَافٍ مِنَ الصَّحَابَةِ ﷺ. (عمدة القاری ج۵ص۲٦۷) الاستذکار کتاب الصلوة باب ماجاء في قيام رمضان ج۲ ص ۷۰).

دا (دشلو رکعتو تراويحو) خبره صحيح ثابته ده دحضرت ابی بن کعب څخه بغير د اختلاف دصحابه وو.

(٦) علامه قاضي خان فرمايي: وَهُوَالْمَشْهُوْرُمِنَ الصَّحَابَةِ رضي الله عنهم وَالتَّابِعِيْنَ رحمهم الله تعالى. (فتاوى قاضي خان ص ١١٠) ترجمه: او دا (دشلو ركعتو تراويحو) خبره مشهوره ده دصحابه وو رضي الله عنهم او دتابعينو څخه.

(٧) ابن قدامه رحمه الله. (مغنى، ج ١ ص ٨٠٣) صلوة التراويح مسالة (١٠٩٥) ٨٣٤ دارالفكر.

(٨) شمس الدين. (شرح مقنع ج ١ ص ٨٥٢).

(٩) علامه قسطلانى رحمه الله په شرح بخاري کې فرمايي (وقد عَدُّوا ماوقع في زمن عمرَ كالاجماع. (ارشاد الساري ج٤ ص ٥٧٨ باب فضل قيام رمضان)

(١٠) مولنا محمد زكريا صاحب. (اوجزالمسالک ص ٣٩٠)

(١١) علامه عبدالحى لكهنوى. (التعليق الممجد، ص ٥٣) تحفة الاخيار ص ٤٠)

(١٢) ملا على القارى. (شرح نقايه ص ١٠٤) فصل في الوتر والنوافل)

(١٣) نواب صديق حسن خان غيرمقلد. (عون الباري، ج ٢ ص ٣٠٧). دې ټولو په شلو ركعتو باندې اجماع رانقل کړې ده.

(١٤) (١٥) امام نووى رحمه الله دا اجماع د (باتفاق المسلمين) په لفظ باندې رانقل کوي او ابن تيميه رحمه الله د. (فلماجمعهم عمر علي ابي بن كعب) په لفظ باندې رانقل کړى ده. (كتاب الاذكار ص ٨٣ فتاوى ج ٤ ص ٤٠١).

(١٦) (١٧) - علامه طحطاوى رحمه الله ج ١ ص ٤٦٨ کې او علامه شرنبلالى رحمه الله مراقى الفلاح په ص ٨١ کې دا اجماع د متوارث په لفظ باندې رانقل کړى ده.

(١٨) علامه ابن الهمام. (فتح القدير، ج ١ ص ٤٠٧)

(١٩) علامه انورشاه كشميري. (عرف الشذى ص ٣٣٠)

(٢٠) ابن نجيم. (البحرالرايق ج ٢ ص ٦٦).

(٢١) شيخ عبدالحق دهلوى (ماثبت بالسنة ص ٢١٧).

(٢٢) علامه شامى. (ردالمحتارج ١ ص ٥١١)

(٢٣) علامه كاسانى (بدايع الصنايع ج ١ ص ٢٨٨)

(٢٤) علامه سبکی (المصابیح ص١٦)

(٢٥) علامه سیوطی.( المصابیح ص ١٦ ).

(٢٦) علامه حلبی (ص ٣٨٨).

دې تړلودا اجماع د (ثم استقر الامر علي هذا) په لفظ باندې را نقل کړې ده او هیڅ اهل فن د دې څخه انکار نه دی کړی. امام غزالي رحمه الله فرمايي: تراويح شل رکعته سنت مؤکده دي. (احیاء علوم الدین کتاب اسرار الصلوة الباب السابع ج١ ص ٢٨٣)

د اجماع څخه مخالف د رسول الله ﷺ د فرمان مطابق دوزخي دی. [بخاری شریف ج ١ص ٥٠٩/بخاری شریف ج٢ ص ١٠٤٥/مسلم شریف ج ٢ ص ١٢٧ مسلم شریف ج ٢ص ١٢٨/مسلم شریف ج ٢ص ١٢٨ مسلم شریف ج ٢ص ١٢٨/ترمذی شریف ص ٣١٥ -٣١٩/ابوداودشریف ج ٢ص ١٦٤- ١٧٩].

د دې فرمان نبوی ﷺ مطابق علامه شاانورشاه کشمیري رحمه الله فرمائی (واما من اکتفي بالرکعات الثمانیة وشذعن السواد الاعظم وجعل یرمیهم بالبدعة فلیر عاقبته) (فیض الباری ج ٣ص ١٨١).

یعنې څوک چې په اته رکعته تراویحو اکتفاء کوي او دلویی جماعت څخه خارجیږي او بدعتیان ورته وائي نو دا خلک دی د خپل انجام انتظار وکړي او مولانا عبدالحی لکهنوی رحمه الله فرمائی چې دا ته رکعته تراویح کوونکي د سنت موکده تارک دي. او گناهگار دي (حاشیه هدایه ج ١ص ١٥١) تحفة الاخیار ص ١٤٠ الی صـ ٧٧)

## خلورم فصل

## دغیر مقلدینو دلایل

**اهل سنت والجماعت په ترتیب سره خلور دلایل مني:**

.(١) کتاب الله .(٢) سنت الرسول.(٣) اجماع الامت.(۴) قیاس شرعی.

. داصول فقهي، یا د اصول حدیث، یا د اسماء الرجال هیڅ کتاب الله ﷻ او یا رسول الله ﷺ نه دی لیکلی. له دې وجهې دا اصول څه اجماعي دي او څه اختلافي دي، مونږ اجماعي اصول اجماعًا منو او په اختلافي اصولو کې د احنافو د اصولو پابندیو.

(۱) کوم حدیث ته چې تلقی بالقبول حاصله وي هغه لازم العمل دی، د داسې حدیث په سند باندې بحث ته ضرورت نه شته. دا اجماعي اصل دی.

(۲) مرسل معتضده حجت دی. دا هم اجماعي اصل دی. او زمونږ ټولو دلایلو ته د تلقی بالقبول مرتبه حاصله ده او په کومو احادیثو چې غیر مقلدین د ارسال جرحه کوي هغوی د اجماعي اصل مخالفت کوي ځکه دا احادیث مراسیل معتضده دي.

(۳) په خیر القرون کې د ارسال، جهالت، او تدلیس، مسئله اختلافي ده. احناف دې امورو ته جرحه نه وایي. نو په احنافو باندې د داسې جرحې منل د اصولو مخالفت دی، د غیر مقلدینو په نیز دلایل صرف دوه دي اول قران، دوهم حدیث، نو غیر مقلدینو ته هیڅکله دا حق نه شته چې دوي دا اجماعي اصول استعمال کړي د اختلافي اصولو د استعمال خوورته بالکل حق نه شته، د ټول امت د اجماع په خلاف چې غیر مقلدین اتو رکعتو ته سنت او شلو رکعتو ته بدعت وائي. نو د دوي بنیادي دلایل یو حدیث د عایشی رضی الله عنها او دوهم حدیث د جابر ﷺ او دریم حدیث د ابی بن کعب ﷺ دی.

## اول دلیل

### د ام المؤمنین حضرت عایشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا حدیث:

**جواب:** عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، أَنَّهُ أَخْبَرَهُ: أَنَّهُ سَأَلَ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، كَيْفَ كَانَتْ صَلَاةُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي رَمَضَانَ؟ فَقَالَتْ: «مَا كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَزِيدُ فِي رَمَضَانَ وَلَا فِي غَيْرِهِ عَلَى إِحْدَى عَشْرَةَ رَكْعَةً يُصَلِّي أَرْبَعًا، فَلَا تَسْأَلْ عَنْ حُسْنِهِنَّ وَطُولِهِنَّ، ثُمَّ يُصَلِّي أَرْبَعًا، فَلَا تَسْأَلْ عَنْ حُسْنِهِنَّ وَطُولِهِنَّ، ثُمَّ يُصَلِّي ثَلَاثًا. [بخاري ج۱/ ص۱٥٤] ومسلم ج۱/ ص۲٦۰].

### د لامذهبو و کتبوریانو په دې حدیث عمل نه شته:

(۱) په حدیث کې يصلي أربعا راغلی دی، غیر مقلد امیر یماني لیکي چې: يحتمل أنها متصلات وهو ظاهر ويحتمل أنها منفصلات وهو بعيد (سبل السلام ج ۲ صـ ۱۳)

او غیر مقلدین دوه دوه رکعته کوي:

(۲) نبي کریم صلی الله علیه وسلم دا لمونځ په کور کې کولو، لکن غیر مقلدین یې په مسجد کې کوي

(۳) دا لمونځ نبي کريم صلی الله عليه وسلم انفراداً کولو، لکن غير مقلدين يې په جماعت سره کوي، که غير مقلدين وايي چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم تراويح په جماعتٌ هم کړې دي، نو مونږ وايو چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم صرف درې شپې په جماعت ادا کړې دي، او غير مقلدين خو ټوله مياشت په جماعت سره د تراويحو لمونځ کوي.

(۴) نبي کريم صلی الله عليه وسلم به چې دا لمونځ وکړو، نو أوده به شو، بيا به راپاڅيدو او وتر به يې وکړل: فقلت يا رسول الله صلى الله تنام قبل أن توتر؟ قال تنام عيني ولا ينام قلبي (صحيح البخاري رقم ١١٤٧) او غير مقلدين داسې نه کوي.

(۵) د دې حديث څخه معلوميږي چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم به په رمضان او غير رمضان کې يعنې پوره کال درې رکعته وتر کول، لکن غير مقلدين اکثر يو رکعت وتر کوي.

(۶) پدې حديث کې په يو سلام د درې رکعته وترو ذکر دی، غير مقلد عبد الرحمن مبارکپوري ليکي چې: والظاهر أنها متصلات (تحفة الأحوذي ج ١ صـ ٣٣١)

او غير مقلدين چې درې رکعته کوي نو په دوو سلامونو سره يې کوي.

(۷) په حديث کې دټول کال د لمونځ ذکر دی، لکن غير مقلدين د المونځ صرف يوه مياشت کوي.

(۸) په اوله شپه نبي عليه السلام د شپې تر يو څه حصې پورې تراويح وکړې، په دويمه شپه يې تر نصف الليل پورې وکړې او په دريمه شپه يې تر پېشمنې پورې وکړې، لکن غير مقلدين داسې نه کوي.

(۹) پدې حديث کې راغله چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم به دا لمونځ اوږد کولو، بلکې په بعضې رواياتو کې تصريح ده چې سورة بقره سورة ال عمران او سورة النساء به يې په يو رکعت کې لوستل، او غير مقلدين داسې نکوي.

(۱۰) پدې حديث کې د ماخوستن دلمونځ پسې متصل دتراويحو ذکر نه شته، حالانکې غير مقلدين د ماخوستن د لمونځ پسې متصل تراويح کوي. تلک عشرة کاملة

## دلامذهبو دمشرانو د اقوالو د دي حديث سره تعارض

غير مقلدين وايي چې په دې حديث کې اته رکعته ذکر شوي ،لهذا تراويح اته رکعته شوي ،نو دتراويحو د رکعتونو تعداد يې معين کړو ، حالانکې دغير مقدينو اکابرو په دې تصريح کړې ده چې دتراويحو د رکعتونو تعداد نه دی معين.

(۱) لامذهبه امين الله ليکي چې: د تراويحو د رکعتونو تعداد نه دی معين(الحق الصريح، ج ۵ص ۴۱۴)

(۲) مفتي عبدالرشيد غير مقلد ليکي چې: د تراويحو د رکعتونو تعداد نه دی معين، (فتاوی علماء حديث ج ۶ص ۳۰۰۷)

(۳) نواب صديق حسن خان غير مقلد ليکي چې: ولم يأت تعين العدد فی الروايات الصحيحة المرفوعة (الانتقاد الرجيح ص ۶۱)

(۴) نواب نورالحسن غير مقلد ليکي چې: وبالجملة عدد معين در مرفوع نيامده (عرف الجادی ص ۸۴)

(۵) په فتاوی نذيريه ج (۱ص ۶۳۴) کې ليکي چې د تراويحو د رکعتونو تعداد ندی معين.

(۶) غيرمقلدين ابن تيميه رحمه الله خپل امام گڼي ابن تيميه ليکي چې: أن نفس قيام لم يوقت رسول الله صلی الله عليه وسلم فيه عددا معينا(مجموع الفتاوی ج ۱۱ص ۸۲۰، طبع رياض)

(۷) شوکاني ليکي چې: فقصر الصلوة المسمات بالتراويح علی عدد معين وتخصيصها بقراءة مخصوصة لم يرد به سنته (نيل الاوطار ج ۳ص ۵۳)

(۸) غير مقلد وحيدالزمان ليکي چې: د تراويحو د رکعتونو تعداد نه دی معين( نزالابرار ج ۱ص ۱۲۶)

(۹) زبير علي زئی غير مقلد ليکي چې د تراويحو د رکعتونو تعداد ندی معين، (تعداد رکعات کاتحقيقي جايزه ص ۵۹)

(۱۰) دغير مقلد عبد السلام رستمي ځوی ابو سعيد ليکي چې د تراويحو د رکعتونو تعداد ندی معين، دهغه رساله ده په نوم د (ايا په تراويحو کې عدد معين شته؟) تلک عشرة کاملة

## دحضرت عایشې رضی الله عنها په ا حادیثو کې تعارض

که د دې حدیث څخه تراویح مراد شي، او د أتو ذکر د تحدید لپاره شي ،نو بیا خو د حضرت عایشې رضی الله عنها په بل حدیث کې د اتو څخه زیادت رانقل شوی دی ، کان رسول الله صلی ا لله علیه وسلم یصلی بالليل ثلاث عشرة ركعة ثم يصلى اذا اسمع النداء بالصبح ركعتين خفيفتين (صحيح بخاري رقم ١١٧)

## د حضرت عایشې رضی الله عنها دحدیث تعلق دتهجدو سره دی

(١)په یو حدیث کې راځي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم به په رمضان کې زیات عبادة کولو ، (صحیح البخاري ج ١صـ٢٧١) دسائل خیال ته د ا راغله چې کیدلی شي چې په تهجدو کې به یې هم زیادة کولو ،نو حضرت عایشې رضی الله عنها جواب ورکړو چې دنبي صلی الله علیه وسلم د رمضان او د غیر رمضان تهجد یو شان وو.

(٢) که د دې حدیث څخه تراویح مرادی شي، نو بیا به د حضرت عایشې رضی الله عنها په احادیثو کې تعارض راشي ، ځکه چې پدې روایت کې راځي چې دیوولسو رکعتونو څخه به یې زیات لمونځ نه کولو او د حضرت عایشې رضی الله عنها په نورو روایاتو کې راځي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم به په رمضان کې بنه ډیر لمونځ کولو ،مونږ وایو چې تعارض نه شته، ځکه چې د دې حدیث څخه تهجد مراد دي په تهجدو کې به یې زیادت نه کولو، او دزیادت والا أحادیث د تراویحو سره متعلق دي.

(٣) امام محمد بن نصر المروزي پخپل کتاب قیام اللیل کې یو باب منعقد کړی دی په نوم د (باب عدد الركعات التي يقوم بها الامام الناس فى رمضان) پدې باب کې یې د تراویحو ډیر روایات ذکر کړي دي، لکن دا روایت یې چې دټولو څخه زیات صحیح دی،اشارةً هم ندی ذکر کړی، نو که دا امام محمد بن نصر المروزي رحمه الله په نیز د دې حدیث تعلق د تراویحو سره وي، نو د تراویحو په باب کې به یې ذکر کړی وو.

(٤)امام ترمذي رحمه الله دتراویحو په باره کې ډیر اقوال رانقل کړي دي، لکن د اتو رکعتو قول یې نه دی رانقل کړی، نو د امام ترمذي په نیز د اتو رکعتو قول د هیڅ محدث او فقیه ندی.

(۵) په (الاحسان بترتیب صحیح ابن حبان) کښې یې د تراویحو لپاره فصل لګولی دی په نوم د (فصل فی التراویح) او ددې عنوان لاندې یې دا حدیث ندی ذکر کړی، وروسته یې د تهجدو فصل ذکر کړی دی په نوم د (فصل فی قیام اللیل) هلته یې دا حدیث ذکر کړې دي.

(۶) محدثین د تراویحو لپاره جدا باب قایموي او د تهجدو لپاره جدا، لکن دا حدیث د تراویحو په باب کښې نه ذکر کوي، بلکې د تهجدو په باب کښې یې ذکر کوي مثلاً:

| شماره | د کتاب نوم | دتهجدو باب | د تراویحو باب |
|---|---|---|---|
| ۱ | صحیح بخاری | باب فضل قیام اللیل ج۱ ص ۱۵۱ | باب فضل من قام رمضان ج۱ ص ۲۶۹ |
| ۲ | صحیح مسلم | باب صلوة اللیل ج ۱ص ۲۵۳ | باب الترغیب فی قیام رمضان وهوالتراویح ج۱ ص ۲۵۹ |
| ۳ | سنن ابی داود | باب فی صلوة اللیل ج ۱ص۱۸۸ | باب قیام شهررمضان ج۱ ص۱۹۶ |
| ٤ | سنن ترمذی | باب فضل صلوة اللیل ج ۱ص۹۸ | باب ماجاء فی قیام شهررمضان ج ۱ص۱٦٦ |
| ٥ | سنن نسائی | کتاب قیام اللیل ج ۱ص۲۳۷ | ثواب من قام رمضان وصام الخ ج۱ ص۳۰۷ |
| ٦ | سنن ابن ماجه | باب ماجاء فی قیام اللیل ص۹٤ | باب ماجاء فی قیام شهررمضان ص۹٤ |
| ۷ | موطاامام مالک | باب فی صلوة اللیل ص ۹۹ | باب فی قیام رمضان ص۹۷ |
| ۸ | موطاامام محمد | باب صلوة اللیل ص ۱۱۹ | باب فی قیام شهررمضان ص۱٤۱ |
| ۹ | مشکوة | باب صلوة اللیل ج۱ ص۱۰۵ | باب قیام شهررمضان ج ۱ص۱۱٤ |
| ۱۰ | ریاض الصالحین | باب قیام اللیل ص ۳٦۲ | باب استحباب قیام رمضان وهوالتراویح ص ۳٦۷ |
| ۱۱ | صحیح ابن حبان | فصل فی قیام اللیل ج ٥ص۱۱۲ | فصل فی التراویح ج ٥ص۱۰۷ |
| ۱۲ | مجمع الزواید | باب فی صلوة اللیل ج ۲ص٥۱۹ | باب قیام رمضان ج ۳ص٤۰۱ |
| ۱۳ | سنن کبری بهیقی | باب فی قیام اللیل ج ۲ص٤۹۹ | باب فی قیام شهررمضان خ ۲ص٤۹۱ |
| ۱٤ | جمع الفواید | صلوة اللیل ج۱ ص۲۰۳ | قیام رمضان والتراویح ج ۱ص۲۰٦ |
| ۱۵ | قیام اللیل للمروزی | قیام اللیل ص ۲ الی ص ۱٤۹ | قیام رمضان ص ۱۵۰تاص۱۷۸ |
| ۱٦ | بلوغ المرام | صلوة التطوع ص ۸۳ | قیام رمضان ص ۱۵۲ |

نو ددې ټولو محدثینو په اجماع باندې تراویح او تهجد دوه جدا جدا مونځونه دي.

(٧) حافظ ابن حجر فرمايي چې ددې حديث تعلق د تهجد و سره دی ، هغه فرمايي چې: د ورځې فرض لمونځ يو ولس ركعته دی، څلور ماسپښين څلور مازديگر، درې ماښام چې وترالنهار ورته وايي نو تهجد و هم يو ولس ركعته شو اته ركعته تهجدو او درې ركعته وتر الليل (فتح الباري، ج ۶ص ۲۶)

(٨) شاه عبدالعزيز رحمه الله فرمايي چې ددې حديث تعلق د تهجد و سره دی (فتاوی عزيزي ص ۱۳۵)

غير مقلد امين الله ليكي چې د حديث به داسې معنی كوي چې دصحابه وو د فهم او عمل موافق وي ، دځان نه به معنی نه كوي ، ګنې بيا به سرې نه خوارج جوړيږي (الحق الصريح ،ج ا ص ۶۹۴، قديم)

هر غير مقلد وايي چې مونږ قرآن او سنت منو علی فهم السلف ، نو غير مقلدين دی په صحابه وو ، تابعينو ، او تبع تابعينو كې د يو كس نوم وښايئ چې هغه ددې حديث څخه د اتو ركعتو تراويحو دسنتوالي او داتو ركعتونو څخه د زياتو ركعتونو دعدم سنتوالی لپاره استدلال كړی دی.

(٩) دا حديث حضرت عايشی رضی الله عنها هيڅكله په عهد فاروقي، په عهد عثماني او په عهد علوي كې دشلور كعتو تراويحو كوونكو په خلاف نه دی پيش كړی.

(١٠) د رسول الله ﷺ د تهجد و بيان دډيرو صحابه وو څخه راغلی دی او هيڅ صحابي د تهجد و روايت دشلور كعتو كوونكو په خلاف نه دی پيش كړی .

(١١) دصحابه وو څخه وروسته دتابعينو او تبع تابعينو په زمانه كې ټولو خلكو شل ركعته كول اوبعضو به دنوافلو سره شپږديرش ركعته كول، ليكن هيڅ تابعي يا تبع تابعي دغه دتهجدو والاحديث دهغوي په خلاف نه دی پيش كړی .

(١٢) دحضرت عايشې رضي الله عنها پدې حديث كې اضطراب دی، لدې وجې ددې څخه استدلال تام ندی. [فتح الباري ص ۱۷ ج ۳].

۱۳-د حضرت عايشې د ديالسو ركعتو روايت هم راغلی دی، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې: والصواب ان كل شيء ذكرته من ذلك محمول علی اقوال متعددة واحوال مختلفة. [فتح الباري ج ۳/ ص ۱۷].

## دوهم دليل

**حديث دحضرت جابر ؓ:** صلى بنا رسول الله ﷺ في شهر رمضان ثمان ركعاتٍ واوتر فلما كانت القابلة اجتمعنا في المسجد ورجونا ان يخرج فلم نزل فيه حتى اصبحنا ثم دخلنا فقلنا يارسول الله! اجتمعنا البارحة في المسجد ورجونا ان تصلي بنا فقال: اني خشيت ان يكتب عليكم.

**اول ځواب:**

(۱) ددې حديث ځخه به استدلال هلته صحيح شي چې غير مقلدين درې خبرې ثابتي کړې، اول داچې داحديث صحيح دی، دوهم داچې په دې حديث کې په اته رکعتو باندې دمواظبت ذکر دی، دريم داچې کله په فاروقي، عثماني او علوی دور کې شل رکعته تراويح په جماعت باندې اداکيدلې، نوحضرت جابرؓ صرف يوځلې ددوي په خلاف داحديث پيش کړی دی او دخپل ځان لپاره يې بيل داتو رکعاتو تراويحو مسجد جوړ کړی دی، لکن ټول غيرمقلدين دي راټول شي بلکې دغيرمقلدينو ترقي يافته ډلې نيچريان، قاديانيان، چکړالويان اوددوي روحاني پلاران انګريزان دي هم دځان سره يوځای کړي اودا درې خبرې دي دکوم مستند کتاب په حواله باندې ثابتې کړي.

(۲) ددې حديث يوراوي د عيسى بن جاريه شاګرد او د محمد بن حميد استاذ، يعقوب بن عبدالله القمی دی، علامه ابن کثير ديو حديث ځخه وروسته ليکي: وهذا الحديث منکرجداوفي اسناده ضعف ويعقوب هذاهوالقمي وفيه تشيع ومثل هذالايقبل تفرده به (البداية والنهاية، ج ۸ص ۳۷۵ج٦ص ۱۰٦) داحديث سخت منکرحديث دی، ددې حديث سند ضعيف دی او يعقوب قمي شيعه دی او په داسې مسايلو کې دده تفرد نه قبليږي.

علامه دارقطني فرمايي چې ليس بالقوي (ميزان ج ۳ص ۳۲۴) ابن الجوزي ورته متروک ويلي دي (کتاب الضعفاء والمتروکين ج ص ۲۱٦) امام ذهبی ورته متروک ويلي دي، (ديوان الضعفاء والمتروکين ج ۲ص ۴۷٦) غير مقلد الباني ليکي چې: ويعقوب القمی وهو ابن عبدالله صدوق يهم کما فی التقريب سلسلة احاديث الضعيفة (ج٤ص ٣٤٤) شوکني د يو روايت په باره کې ليکي چې وفی اسناده يعقوب بن عبدالله القمي وجعفر بن ابی المغيرة القمی وفيهما مقال، (نيل الاوطار ج ٤ص

۲۸۷) د لامذهبه امين الله دتره څوی ابو عمار ليکي چې: يعقوب قمي ته دار قطني ضعيف ويلی دی (تراويح څور کعته دي ص ۲۵)

الغرض په کومو مسايلو کې چې دصحابه و وعظمت او يا مسلک مجروح کرزيږي، هلته دداسې (شيعه) راوي تفرد نه ږی مقبول او دتراويحو په حديث کې دا منفرد دی او دا جماع دصحابه وو رضی الله عنهم څخه مخالف دی.

(۳) دوهم راوي عيسى بن جاريه دي امام يحيى بن معين فرمايي چې: ليس حديثه بذاک، ولا اعلم احداً روي عنه غير يعقوب القمي وعنبسة قاضي الري. او همدارنګه فرمايي چې: دده سره منکر روايات دي. [تهذيب الکمال ج۸/ ص۱۱٦].

امام نسائي ده ته منکر الحديث او متروک الحديث ويلی دی امام ابوذرعه ورته لابأس به ويلي دي. (ميزان الاعتدال، ج ۲ص ۳۳۱]تهذيب الکمال ج۸/ص۱۱٦]. ابو داؤد ورته منکر الحديث وايي، بحواله مذکوره او غير مقلد مبارکپوري ليکي چې: لان منکر الحديث وصف فی الرجل يستحق به الترک بحديثه (ابکار المنن ص ۱۹۹)

(۴) غير مقلدين چې کله ددې حديث دصحت څخه نا اميده شو و نو پخپله يې وليکل چې (په يادلرئ چې درسول الله ﷺ دتراويحو د رکعتونو دتعداد مدار دحضرت جابر ﷺ په دې حديث باندې نه دی). (تعداد تراويح ص ۳۷) غير مقلد حافظ عبد المنان په بل ځای کې غير مقلدين ليکي: دحضرت جابر ﷺ او دحضرت اُبی حديثونه مونږ دشاهد په طور پيش کوو. (تحقيق تراويح ص ۲۲ شيخ الحديث مولوی سلطان محمود مدرسه محمديه جلال پور.

(۵) په دې حديث کې دمواظبت ذکر هم نه شته، بلکې په بعضې کتابونو کې دليلة يعنې صرف ديوې شپې تصريح ده چې داد مواظبت ترديد دی.

(٦) په دې حديث کې دتراويحو پوره تعداد هم نه دی ذکر شوی، حضرت انس ﷺ فرمائی چې رسول الله ﷺ زمونږ سره دتراويحو لمونځ وکړو خپل لمونځ يې مختصر کړو، بيا حجرې (داعتکاف) ته لاړو. (فصلي صلوة لم يصلها عندنا) نو دومره لمونځ يې وکړو چې زمونږ سره يې نه وو کړی. [مسلم، ج ا ص ۳۵۲ مسند احمد ج ۳ ص ۱۹۳ قيام الليل ص ۱۹۴].

حضرت انس ﷺ فرمائي چې رسول الله ﷺ درمضان په شپه کې لمونځ کولو يو قوم راغلو او درسول الله ﷺ سره په لمانځه کې شريک شو بيا رسول الله ﷺ حجرې مبارکې ته تشريف ويوړو او هلته يې لمونځونه

وکړل، بیاد باندې راووتلو او مختصر مختصر لمونځ یې وکړو، سهار خلکو پوښتنه وکړه چې یارسول الله ﷺ مونږه ستاسو سره لمونځ کولو تاسو به کله حجرې ته تشریف وړلو او کله به مسجد ته راوتلې

رسول الله ﷺ ورته وفرمایل چې ستاسو له وجې ماداسې وکړل. (رواه الطبراني في الاوسط ورجاله رجال الصحيح مجمع الزوائد ج ۳ ص ۱۷۳) دامام احمد په روایت کې دي چې رسول الله ﷺ څوځلې حجرې ته تشریف ویوړو او څوځلې بهرته راووتلو. [مسند احمد ج ۳ ص ۱۰۳ و ص ۱۸۵].

۷- د دې حدیث بل راوي محمد بن حميد الرازي دی ضعفه الحافظ في التقريب ص ۵۰۵].\

۸- دا حدیث متصل ندی عیسی بن جاریه د څلورمې طبقې راوي دی (تقریب ص ۷۶۹) او د څلورمې طبقې راویان طبقې وسطې ته قریب دي، د کبار تابعینو څخه روایات کوي د صحابه وو څخه یې نه کوي (انوار المصابيح ص ۲۸) او څوک چې منقطع روایت پیش کوي دهغوي په باره کې زبیر علي زئی لیکي چې: ضعیف او منقطع روایت هغه څوک پیش کوي چې خپله ضعیف او منقطع وي. (تعداد رکعات ص ۲۶)

**تطبیق:** د محدثینو او فقهاوو دا اصول دي چې د رسول الله ﷺ په احادیثو کې د ټکر په ځای د تطبیق مناسب دی. دا ظاهره ده چې رسول الله ﷺ یو څو رکعته په جماعت باندې اداکړي دي، چې هغه حضرت جابر ﷺ بیان کړی دی او په حجره کې یې چې څومره رکعتونه کړي دي، حضرت جابر ﷺ دهغې څخه خاموشه دی، نو ضرور ده چې کوم بل حدیث راپیدا کړو چې په هغې کې زیات رکعتونه ذکرشوي وي، نو د حضرت ابن عباس ﷺ حدیث پیدا شو، چې په هغې کې ټول درویشت رکعته ذکرشوي دي، معلومه شوه چې ټول رکعتونه ۲۳ وو، یوولس په جماعت او دولس بې جماعته، لکن چونکه په جماعت باندې رسول الله ﷺ مواظبت نه دی کړی، له دې وجهې په یوولسو رکعتونو مواظبت نه دی شوی او شل رکعته بلا جماعته رسول الله ﷺ کول، نو صحابه وو په شلو رکعتو تراویحو او درې رکعته وترو باندې د مواظبت حکم وکړو.

## دریم دلیل

### دحضرت ابی ابن کعب ﷺ حدیث:

عَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ جَآءَ أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فِي رَمَضَانَ فَقَالَ: يَارَسُولَ اللّٰهِ! كَانَ مِنِّي اللَّيْلَةَ شَيْءٌ, قَالَ: وَمَاذَاكَ يَا أُبَيُّ؟ قَالَ: «نِسْوَةٌ دَارِي قُلْنَ إِنَّا لَانَقْرَأُ الْقُرْآنَ فَنُصَلِّي خَلْفَكَ بِصَلَاتِكَ, فَصَلَّيْتُ بِهِنَّ ثَمَانِ رَكْعَاتٍ وَالْوِتْرَ. فَسَكَتَ عَنْهُ وَكَانَ شِبْهَ الرِّضَآءِ. [قيام الليل ص ۹۰]

عَنْ مَالِكٍ رحمه الله، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يُوسُفَ رحمه الله، عَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ رضي الله عنه، أَنَّهُ قَالَ: أَمَرَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رضي الله عنه أُبَيَّ بْنَ كَعْبٍ وَتَمِيمًا الدَّارِيَّ رضي الله عنهما أَنْ يَقُومَا لِلنَّاسِ بِإِحْدَى عَشْرَةَ رَكْعَةً. [مؤطا امام مالک].

**ځواب**: (۱) دلته هم دا استدلال د صحت لپاره درې خبرې ضروري دي اول دا چې دا روايت صحيح دی دوهم دا چې په دې کې د مواظبت ذکر دی، دريم دا چې کله په فاروقي، عثماني او مرتضوي دور کې څلکو شل رکعته تراويح کول، نو حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه دا حديث د دعوی په خلاف پيش کړی دی او د نه منلو په صورت کې حضرت ابی ترينه جدا شوی دی او صرف اته رکعته تراويح يې کړي دي.

(۲) اول حديث په سند کې هم همغه شيعه يعقوب قمي او ضعيفه عيسی دي، چې د حضرت جابر رضی الله عنه په حديث کې وو.

(۳) د دې حديث په سند کې همغه محمد بن حميد الرازی دی چې غير مقلدين هم ورته ثقه نه وائي.

(۴) په دې حديث کې دا خبره هم نه ده ذکر شوې چې دا ضرور د رمضان واقعه وه، ځکه چې په مسند احمد او طبراني کې د رمضان ذکر نه شته، په مسند ابويعلي کې د (يعنی رمضان) کلمه ده چې د راوي فهم دی. د راوي روايت نه دی او په قيام الليل کې د رمضان لفظ دی.

(۵) په دې کې د مواظبت ذکر هم نه شته بلکې د مواظبت په خلاف په کې دا جمله ده چې. (انه كانت مني الليلة شئ) نن شپه يوه عجيبه خبره وه.

(٦) په فاروقي دوره کې خپله حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه د شلو رکعتو امام وو.

(۷) دا روايت اجماعا متروک العمل دی (يدالله علي الجماعة وقال من شذ شذ في النار) د څلورم روايت ځخه جواب دا دی چې:

۱- حافظ ابن عبدالبر رحمه الله فرمايي چې: وهذا كله يشهد بان الرواية باحدى عشرة ركعة وهم وغلط. [الاستذكار ج۲/ ص٦٩، باب ماجاء في قيام رمضان].

۲- د دې روايت په متن کې اضطراب دی، اختلف فيه على محمد بن يوسف فروي عنه مالک في الموطا ويحي القطان عند ابن ابي شيبة، وعبدالعزيز بن محمد عن سعيد بن منصور هكذا احدى عشرة ركعة ورواه محمد بن نصر في قيام الليل من طريق محمد بن اسحاق عن محمد بن يوسف فقال: ثلاث عشرة، ورواه عبدالرزاق من وجه آخر عن محمد بن يوسف فقال: احدى وعشرين، قاله الحافظ في الفتح ج٤/ ص٢١٩] اعلاء السنن ج٧/ ص٦٨]. د محمد بن يوسف پنځه شاګردان دي، په دوی کې

دريو د يوولسو ركعاتو ذكر كړی دی او يو د ديارلسو ذكر كړی دی، او يو د يويشتو ركعاتو ذكر كړی دی، بيا كومو دريو چې يوولس ركعتونه ذكر كړي دي، دهغوی هم پخپلو كې اختلاف دی،(۱) امام مالک: حضرت عمر ﷺ ابي بن كعب او تميم الداري ته حكم وكړو چې خلكو ته يوولس ركعته لمونځ وركړی. (۲) يحيى القطان: حضرت عمر ﷺ په ابي بن كعب او تميم داري باندې خلک راجمع كړل، نو دې دواړو يوولس ركعته كول، يعنې دلته د حضرت عمر ﷺ د امر او داجازې ذكر نه شته. (۳) عبدالعزيز بن محمد: د حضرت عمر په زمانه كې يوولس ركعته كيدل.

۳- خپله امام مالک پدې روايت عمل ندی كړی.

۴- خپله په مؤطا كې د حضرت عمر ﷺ څخه د شلو ركعاتو روايت دی.

۵- كه حضرت عمر ﷺ د يوولسو ركعاتو حكم كړی وی، نو دده په نقش قدم به دده څخه وروسته حضرت عثمان ﷺ او حضرت علي ﷺ ومن بعدهم څخه د يوولسو ركعتو روايت راغلی وي، حالانكې د هغوی څخه د يوولسو ركعتو روايت ندی راغلی.

فانقيل: چې علامه هيثمي فرمايي چې: واسناده حسن (مجمع الزوائد)؟

قلنا: غير مقلد مباركپوري ليكي چې: ولا يطمئن القلب بتحسين الهيثمي، فان له اوهاماً (ابكار المنن صـ ۵۷) غير مقلد ارشاد الحق اثري ليكي چې په مجمع الزوائد كې په شلګونو داسې ځايونه دي چې د فن امامان پكې د علامه هيثمي سره متفق ندي، (توضيح الكلام ج ۲ص۴۰۹)

(۶) پدې دوهم روايت كې دا احتمال شته چې دواړو امامانو دې په شريكه شل ركعته كړې وي، نو يو دې د وترو سره د يوولسو ركعتونو امامتي كړی وي او بل دې د دولسو ركعتونو امامتي كړې وي.

## غيرمقلدين او په رمضان كې درسول الله ﷺ د طريقو څخه مخالفت

(۱) دنن سبا غيرمقلدين د مياشتې داول څخه د تراويحو لمونځ په جماعت باندې شروع كوي حالانكه رسول الله ﷺ په خپله ټوله زندګۍ كې يو ځلې هم د مياشتې داول څخه د تراويحو لمونځ په جماعت باندې نه دی شروع كړی، دا سنت نبوی ﷺ نه دي بلكې سنت د خلفاء راشدينو دي او د خلفاءو سنت دوي نه مني.

(۲) دنن سبا غيرمقلدين پوره مياشت د رمضان تراويح په جماعت باندې اداكوي حالانكه رسول الله ﷺ مسجد ته راغلو او خلكو ته يې وفرمايل چې پخپلو كورونو كې لمونځونه وكړي. (بخاری ج ۱ص

۱۰۱ مسلم ج۱ ص۲٦٦) نوتهوله میاشت تراویح په جماعت باندې نبوي ﷺ سنت نه دي، بلکې د خلفاء راشدينو سنت دي.

(۳) دنن سبا غیر مقلدین هر کال په رمضان کې په جماعت باندې تراویح کوي، حالانکه رسول الله ﷺ صرف په اخري عشره کې صرف درې ورځې په جماعت باندې لمونځ کړی دی. چې دا هم نبوي سنت نه دي، بلکې د خلفاء راشدينو سنت دي.

(۴) دنن سبا غیر مقلدین د ماخوستن د لمانځه پسې بعد سمدستې د تراویحو لمونځ شروع کوي حالانکه دا هم نبوی سنت نه دي مونږ دیته د خلفاء راشدينو سنت وايو.

(۵) دنن سبا غیر مقلدین تهوله میاشت په مسجد کې د تراویحو لمونځ کوي، حالانکه دا هم نبوي سنت نه دی.

(٦) دنن سبا غیر مقلدین د تراویحو په لمونځ کې په جماعت کې قران ختموي، حالانکه په تراویحو کې د قران ختمول هیڅکله نبوي سنت نه دي، بلکې د صحابه وو ﷺ سنت دي.

(۷) دنن سبا غیر مقلدین د تراویحو څخه وروسته ویده کیږي، حالانکه دا نبوي سنت نه دی، حضرت عايشة ﷺ فرمائی چې کله به د رمضان میاشت شروع شوه رسول الله ﷺ به ملا وتړله او تهوله میاشت به د شپې نه ویده کیدلو. (عزیزی ج ۳ص ۱۲۷ بحواله بهیقی شعب الایمان). البته په عهد فاروقي کې د صحابه کرامو اوده کیدل ثابت دي. (والتي تنامون عنها). [الحدیث بخاری ج۲ص ۲٦۹].

(۸) په صحیح بخاری ج ۲ص ۲٦۹ کې راغلي دي چې د رمضان په اخري عشره کې به رسول الله ﷺ خپل اهل هم راويښولو حالانکه غير مقلدين خپل اهل نه راويښوي.

(۹) دنن سبا غیر مقلدین په تراویحو کې د قران ختم داسې کوي چې قران ته گوري او دهغه څخه يې لولي، ورقې يې اړوي د رکوع په وخت کې يې لاندې په زمکه ږدي، په بل رکعت کې يې بيرته را پورته کوي حالانکه په دی طريقه باندې لمونځ هيڅکله د رسول الله ﷺ څخه نه دی ثابت.

۱۳۹۱/۴/۲۳هش ۱۴۳۳/۸/۲۳هق ۲۰۱۲/۷/۱۳م

پلچرخي زندان دریم بلاک دوهم منزل گوشواره.

بسم الله الرحمن الرحيم

**۱- سوال:** دتراويحو په مسئله کې مدعي څوک دی؟

جواب: د مدعي تعريف چې من يثبت امراً زائداً دی په اهل سنت وا لجماعتصادق دی ، ځکه چې اهل سنت والجماعة د اتو رکعتونو څخه زياتې ثابتوي، همدارنګه د من اذا ترک ترک مطابق هم اهل سنت والجماعة مدعيان دي، ځکه چې اته رکعته په شلو کې داخل دي، نو غير مقلدين وايي چې تاسو چې زيادت پرېږدئ مباحثه ختميږي.

**د اهل سنت والجماعة دعوی :**

د رمضان المبارک په مياشت کې د ماخوستن د لمونځ څخه وروسته د اوده کيدلو څخه مخکې شل رکعته تراويح د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خلفاء راشدينو او څه دپاسه څوارلس سوه کلن تعامل د امت څخه ثابتې دي، لهذا شل رکعته تراويح سنت مؤکده دی.

**دمنکرينو د تراويحو جواب دعوی:**

(۱)اته رکعته تراويح، (۲) مع الجماعة (۳) فی جميع رمضان (۴) مع ختم القرآن (۵) متصلا بالعشاء قبل النوم، سنت مؤکده دي.

نو په جواب دعوی کې به د «تراويحو» لفظ ليکي د «قيام الليل« لفظ به نه ليکي، ځکه چې قيام الليل تهجد دی ، دتراويحو څخه جدا بل لمونځ دی، مناظره په يو نسبت کې وي، ځکه چې د مناظرې تعريف داسې دی چې: توجه المتخاصمين فی النسبة بين الشيئين، ددوو شيانو په مابين کې چې کوم نسبت دی په هغې کې دمدعي او مدعا عليه جګړې ته مناظره وايي، نو که غير مقلد په جواب دعوی کې قيام الليل وليکي بيا نسبت جدا جدا کيږي، مونږ به په تراويحو دلايل وايو او غير مقلد به په قيام الليل او تهجدو دلايل وايي ، همدارنګه به د سنتو تعريف کوي، زمونږ په نيز سنت دېته وايي چې: ما واظب عليه النبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او الخلفاء الراشدون (تحفة الأخيار)

او غير مقلدين دسنتو تعريف داسې کوي چې: ما واظب عليه النبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ، حالانکې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صرف درې شپې په جماعت سره تراويح ادا کړي دي، نو د دوي په جواب دعوی کې پنځو خبرو ته دوي په کومه طريقه سنت وايي؟

غير مقلدين پدې تولو قيودو کې د صحابه کرامو رضى الله عنهم په عمل استدلال کوي او په شلو رکعتونو کې بيا د صحابه وو عمل نه مني.

## ٢- سوال: دلغت په اعتبار تراويح څو رکعته دي؟

جواب: دلغت په اعتبار سره تراويح شپاړسو او شلو رکعتونو ته وايي، ځکه چې تراويح د (ترويحه) جمع ده هغه ارام ته ويل کيږي چې د څلورو رکعتونو څخه وروسته کولى شي، نو د څلورو رکعتونو څخه وروسته ارام او لږو کيناستلو ته (ترويحه) وايي څلور چې نور اداء کړي يعنې د اتور رکعاتو څخه وروسته ارام او لږ و کيناستلو ته (ترويحتان) وايي څلور چې نور ادا کړي يعنې د ددولس رکعتونو څخه وروسته ارام او لږو کيناستلو ته (ترويحات) وايي او بيا چې څلور نور اداء کړي يعنې د شپاړسو رکعتونو څخه وروسته ارام او کيناستلو ته تراويح وايي، نو غير مقلدين تراويح نه کوي، بلکې ترويحتان کوي، صاحب دمنجد ليکلي دي چې: وهى اسم لعشرين رکعةً (٢٩٠)

## ٣- سوال: ايا په احاديثو کې د (تراويح) لفظ ثابت دى ؟

جواب: هو! په ډيرو احاديثو کې ثابت دى مثلاً:

١-عن ابى الحسنا أن على بن أبى طالب أمر رجلا، يصلى بالناس خمس ترويحات عشرين رکعة (کنز العمال، باب صلوة التراويح، رقم الحديث ٢٣٤٦٩)

٢- حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ دُكَيْنٍ رحمه الله، عَنْ سَعِيدِ بْنِ عُبَيْدٍ رحمه الله، «أَنَّ عَلِيَّ بْنَ رَبِيعَةَ رضي الله عنه كَانَ يُصَلِّي بِهِمْ فِي رَمَضَانَ خَمْسَ تَرْوِيحَاتٍ، وَيُوتِرُ بِثَلَاثٍ، (مصنف ابن ابى شيبه رقم (٧٧٧٢).

٣- حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُضَيْلٍ رحمه الله، عَنْ وِقَاءٍ رحمه الله قَالَ: «كَانَ سَعِيدُ بْنُ جُبَيْرٍ رضي الله عنه يَؤُمُّنَا فِي رَمَضَانَ، فَيُصَلِّي بِنَا عِشْرِينَ لَيْلَةً سِتَّ تَرْوِيحَاتٍ. ايضا

٤- عَنْ أَبِي الْبَخْتَرِيِّ رحمه الله: «أَنَّهُ كَانَ يُصَلِّي خَمْسَ تَرْوِيحَاتٍ فِي رَمَضَانَ، وَيُوتِرُ بِثَلَاثٍ.

٥- دعبد الرحمن بن ابى بکر رضى الله عنه، همدارنګه د سعيد بن ابى الحسن او دعمران المعبدى باره کې خمس ترويحات رانقل شوي ذي (قيام الليل صـ١٥٨)

٦- دسويدن بن غفلان په باره کې راځي چې ده به د (خمس ترويحاتٍ) امامت کولو. (السنن الکبرى ج ٢صـ٤٩٦)

۷- زيد بن وهب فرمايلي دي چې: كان عمر بن الخطاب يروحنا فى رمضان ، يعني بين الترويحتين قدر ما يذهب الرجل من المسجد الى سلع (كنز العمال، رقم الحديث (٢٣٤٦٧)

۸- همدارنګه حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې: د صحابه وو په په اجماع دقيام رمضان دوهم نوم (تراويح) ايښنودل شوي وي. اول ما اجتمعوا عليها، (فتح الباري ج ۴ص-۲۵۰ وفى البعض ص ۳۱۴)

۹-د وکتوري اهلحديثو مشهور امام ابو البركات ليكلي دي چې: صحابہ کرام کی زمانے میں تراویح کا استعمال عام معلوم ہوتا ہے، حضرت عثمان و عمر و علی کے ادوار میں اس لفظ کا استعمال کافی ملتا ہے (فتاوی برکاتیہ ص- ۵۴)

۱۰- د غير مقلد عبد السلام رستمى څوى غير مقلد ابو سعيد هم ددې اقرار کړی دی (تراويح کې عدد معين نه شته)

## ۴- سوال: آيادنبي كريم ﷺ څخه شل ركعته تراويح ثابتې دي ؟

**جواب**: بالكل ثابتي دي اوپداسې حديث باندې ثابتې دي چې د محدثينو د اصولو مطابق صحيح هم دي او متواتر هم دی.

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنهما أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ كَانَ يُصَلِّيْ بِهِمْ فِيْ رَمَضَانَ عِشْرِيْنَ رَكْعَةً وَالْوِتْرَ (مصنف ابن ابى شيبه باب كم يصلى فى رمضان من ركعة،السنن الكبرى للبهيقى ج۲ \٤٩٦مسند عبدبن حميد ص٢١٨) اتحاف الخيرالمهرة ج۲\٤٢٤ تاريخ بغداد ج١٥\٣٤ ذيل تاريخ بغداد ج١٨\١٨٩ والكامل لابن عدى ج١\٢٤٠ والمعجم الكبرج٥\٤٣٣]. عبد الله بن عباس رضي الله عنه فرمائی چې په رمضان کې به رسول الله ﷺ شل رکعته تراويح او وتر کول.

**دحديث صحت** ددې حديث متن اول نمبر صحيح دی، حتى چې متواتر دی، ځکه چې د محدثينو دا اصول دي چې د حديث په سند کې اګرچې کوم راوی ضعيف وي، لکن چې کله د حديث په مضمون باندې صحابه وو تابعينو، تبع تابعينو او مذاهب اربعه وو عمل کړی وي نو هغې حديث ته متواتر عملی ويلی شي او ددوي عمل ته اجماع عملي ويلی شي، محدثين حضرات ددې څخه په تلقى بالقبول باندې تعبير کوي، دداسې حديث سند بحث ته محتاج نه وي، لکه څرنګه چې داولی ورځې سپوږمۍ شاهدانو ته محتاجه وي لکن د څوارلسمې سپوږمۍ شاهدانو ته نه وي محتاجه.

**غیرمقلد (منکر تراویح)**: زه تواتر نه منم بلکه ماته صحیح سند بیان کړه.

**اهل سنت والجماعت**: زه دټول قرآن خبره نه درسره کوم، بلکه یوائې دسورة فاتحې خبره درسره کوم – سورة فاتحه اوه ایاتونه دي،نوته مهرباني وکړه ددې هرایت سند درسول اللهﷺ پورې ثابت کړه، یعنې داووه۷ ایتونو لپاره اوه۷ صحیح سندونه ذکر کړه.

**غیرمقلد**: داپه تواترثابت دی دسند څه ضرورت دی؟

**اهلسنت والجماعت**: کله چې تواترسندته محتاجه نه دی، نودسند دضعف له وجهې وربانډې ردکول څرنګه جائزدی؟

دراویانودتوثیق له وجې چې دسند دضعف اعتراض ختمیږي، نوهمدارنګه دتواترله وجې هم دسند دضعف اعتراض په طریق اولی ختمیږي، ځکه چې دمحدثینوپه توثیق کې دغلطۍ امکان شته لکن په تواترعملي اوپه اجماع عملي کې دغلطۍ هیڅ امکان نه شته .

**اهل سنت والجماعت**: ته دخپلې موراو دپلاردنکاح شاهدان پیش کړه .

**غیرمقلد**: ماته دخپلې موراودپلاردنکاح ګواهان معلوم نه دي نوڅرنګه یې پیش کړم؟

**اهلسنت والجماعت**: نوبیاته خپل حلال والی څرنګه ثابتوي ؟

**غیرمقلد**: زمادپلارنکاح په مسجدکې شوی وه اوولیمی ته یې زمونږټول خپلوان راغلي وو،نوله دې وجې زه شاهدان نه پیژنم، لکن په نکاح اوپه ولیمه کې ددې ټولوخلکودشرکت څخه زماحلالي والې ثابتیږي .

**اهل سنت والجماعت**: چې دیوڅوکسانودیوڅودقیقوپه اجتماع بانډې ستاحلالی والی بغیر دمعرفت دشاهدانوڅخه ثابتیږي .

نودرمضان شل رکعته تراویح چې دخلفاء راشدینو، تابعینو، تبع تابعینو، څخه ترپه هندوستان بانډې دانګریزي دورې پورې په اربونو مسلمانانوپه هرمسجدکې کړي دي، نوددومره اجتماع اوعملي تواترڅخه داحدیث څرنګه نه ثابتیږي ؟ اوکه بیاهم ددومره اجتماع اوتواترڅخه داحدیث ثابت نه شي نوستادیوڅو خپلوانوپه یوڅو دقیقو اجتماع بانډې به ستاحلالي والې څرنګه ثابت شي؟

**غیرمقلد**: عقلي دلایل پریږده ددې قاعدې ثبوت دمحدثینوڅخه پیش کړه.

**اهل سنت والجماعت:** مخکې ددې حدیث په تشریح کې د محدثینو عبارات او حوالي په تفصیل سره لیکل شوي دی، یو څو پاتې مخکې لا رشه هغه وګوره او دا مزیدی حوالی هم ورسره وګوره: عقدالجیدص۵۲ مجموعة الفتاوی لابن تیمیه ج۱۸\۲۴۷ تدریب الراوی ص۱۵والروضة الندیه ص۵ الفقیه والمتفقه للخطیب ج۱ ص۱۴۲ اعلام الموقعین الاستذکار،التمهیدوغیره].

غیرمقلد محمد اسماعیل سلفي د خپل یو دلیل په باره کې لیکي چې ددې حدیث سند اګرچې ضعیف دی لکن امت پرې عمل کړی دی، نو د تعامل د امت له وجې ورته تواتر عملي ثابت دی (رسول اکرم کې نماز ص۹)

**۵- سوال :ایانبي کریم ﷺ په جماعت باندې تروایح کړي دي ؟**

**جواب** :نبي کریم ﷺ صرف درې شپې په جماعت باندې تراویح کړي دي،ددې څخه وروسته یې په جماعت باندې نه دي کړي،او عذر یې دا بیان کړی دی چې زه ویریږم چې په تاسو باندې فرض نه شي نو ددریو شپو څخه وروسته نبي کریم ﷺ وفرمایل چې ای خلکو !په خپلو کورونو کې مونځونه کوئ ځکه چې د فرضو څخه علاوه بهتر مونځ هغه دی چې په کور کې اداکړلی شي، ددې حدیث مضمون د حضرت عایشې رضی الله عنها ،حضرت ابوذرغفاری رضی الله عنه حضرت زید بن ثابت رضی الله عنه حضرت انس رضی الله عنه او د حضرت نعمان بن بشیر رضی الله عنه څخه په مختلفو الفاظو سره روایت شوی دی وګوری. بخاری ج۱ ص۱۰۱ قیام رمضان للمروزی ص۱۵۳\۱۵۴].

دابوهریرة رضی الله عنه په یو حدیث کې راځي چې نبي کریم ﷺ یوه شپه یو څو کسان ولیدل چې د مسجد په یو کونج کې مونځ کوي نبي کریم ﷺ ورته وویل چې دا څوک دي؟ چا ورته وویل چې دا هغه خلک دي چې سم قرآن نه شي لوستلی ،لدې وجې ورته حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه امامتي ورکوي ،نبي کریم ﷺ وفرمایل ښه کار کوي.قیام رمضان للمروزی ص ۱۵۵].

نو معلومیږي چې دنبي کریم ﷺ دا خوښه وه چې تراویح دې په جماعت باندې اداء کړلی شي، لکن د فرضیت د ویری له وجې یې ځان ځان ته کولی ،په همدې انفرادی، طریقه باندې دابوبکرصدیق رضی الله عنه د خلافت او د حضرت عمر رضی الله عنه د خلافت په اول کال کې کیدلې، چې د جماعت اهتمام په کې نه کیدلو ،بیا د حضرت عمر رضی الله عنه د خلافت په دویم کال تراویح په جماعت باندې په پوره پابندۍ سره شروع شوی ،دا کار ابوبکرصدیق رضی الله عنه هم کولی شو لکن دابوبکرصدیق رضی الله عنه د خلافت په دوران کې د پیغمبری

د دروغژنو دعوه کونکو -مرتدينو ، او د مانعينو د زکات فتنې ډېرې وې ، نو يو طرفته ابوبکر صديق ﷺ د دوي سره په مقابله کې لګيا و او بل طرفته يې د خلافت دوره هم ډېر کمه وه ، يعنې څه د پاسه دوه کاله ، لدې وجې نور و اصلاحي کارونو ته د ومره وخت په لاس ورنغلو ، د حضرت عمر ﷺ د خلافت په دوره کې د افتنې ختمې شوې وې لدې وجې نه حضرت عمر ﷺ اصلاحي کارونو ته متوجه وو چې ډېر اصلاحي کارونه يې وکړل د کوموتفصيل چې په ازالة الخفاء کې کتلى شئ .

**٦- سوال :** نبي کريم ﷺ په دې دريو شپو کې په جماعت باندې څو رکعته کړي دي؟

**جــواب :** د دې مضمون حديثونه چې کوم صحيح دي ، په هغوى کې د رکعتونو تعداد نه دى ذکر شوى ، لکه ، د حضرت عايشې رضى الله عنها حضرت ابوذر ﷺ او د حضرت زيد بن ثابت ﷺ حديثونه او په کومو کې چې د رکعتونو تعداد ذکر شوى دى هغه حديثونه سنداً ضعيف دى .

لکه: عَنْ جَابِرِبْنِ عَبْدِاللّٰهِ ﷺ قَالَ: خَرَجَ النبى صلى الله عليه وسلم ذَاتَ لَيْلَةٍ فِى رَمَضَانَ فَصَلَّى النَّاسَ أَرْبَعَةً وَعِشْرِينَ رَكْعَةً وَأَوْتَرَ بِثَلَاثَةٍ .(تـاريخ جرجـان ج١١ ص١٤٢ والعنايـة شرح الهدايـه على هـامش فـتح القديرج ١ص٤٠٨].

يعنې نبى ﷺ يوه شپه راووتلو او خلکوته يې ۲۴ رکعته لمونځ ورکړو (۴ فرض او ۲۰ تراويح) او درې رکعته وترې وکړل ، د دې حديث په سند کې محمد بن حميد الرازى ضعيف دى لکن د عبدالله بن عباس ﷺ متواتر عملي حديث د دې حيث تاييد کوي .

لدې وجې دا حديث د حسن لغيره په مرتبه کې دى ، او که د تائيد لحاظ په کې ونکړو نو بيا هم دا حديث د حضرت عايشې رضى الله عنها د حضرت ابوذر ﷺ او د حضرت زيد بن ثابت ﷺ د حديثونو لپاره چې مجمل او مبهم دى قرينه او تشريح کيد لى شى ، نو په هر صورت د دې حديث څخه دا ثابته شوه چې نبى ﷺ په هغو دريو شپو کې په جماعت باندې شل رکعته تراويح ادا کړى وى .

**غيرمقلد (منکرتراويح) :** د حضرت جابر ﷺ څخه دوه حديثونه نورهم راغلي دى چې په هغوى کې د اتو رکعتونو ذکر دى .

(١) حضرت جابر ﷺ فرمايي چې مونږ ته نبی ﷺ په رمضان کې اته رکعته او وتر کړل (٢)۔ حضرت جابر ﷺ فرمائی چې حضرت ابی بن کعب ﷺ یوه ورځ نبی ﷺ ته وفرمایل چې نن شپه ما ډیر عجیب کار وکړو نبی ﷺ ورته وفرمایل چې څه دی کړي دي ؟

ابی بن کعب ﷺ ورته وفرمایل چې یو څو زنانه زمونږ په کور کې وی هغوی ماته وفرمایل چې مونږ قرآن نه دي لوستلی لدې وجې مونږ ستا په اقتداء کې لمونځ کول غواړو، نو ما هغوي ته اته رکعته او وتر وکړل.

**اهلسنت والجماعت**: پدې دواړو حدیثونو کې چې تر څو پورې دی لاندې سوالونو ته جواب ونه وایې تر هغې پورې ستا دعوه نه شي ثابتیدلی.

(١) ددې دواړو حدیثونو په سندونو کې دوه ضعیفه راوَیان دي یو یعقوب قمی، او بل عیسی بن جاریه، لدې وجې دا دواړه حدیثونه صحیح نه دي (٢) او همدارنګه د تراویحو لپاره صریح هم نه دي، ځکه چې په دې کې د تراویحوا او د تهجدو دواړو احتمال شته –بالعکس د حضرت جابر ﷺ د شلو رکعتونو والا حدیث صریح دی ځکه چې د نبي کریم ﷺ څخه شل رکعته تهجد نه دي ثابت ،له دې وجې د هغې څخه خامخا تراویح مرادې دي نو دا حدیثونه ضعیف دي او د ضعف سره سره محتمل او غیر صریح دي، ځکه چې په دې دواړو حدیثونو کې نه د تراویحو تصریح شته او نه داسې لفظ شته چې هغه په دې دلالت وکړي چې دا اته رکعته تراویح وی او تهجد نه وو که بالفرض والمحال دا د تراویحو بیان شي نو بیا۔

(٣) عبدالرحمن الجزیری رحمه الله لیکی چې دا هم ممکنه چې نبي کریم ﷺ او صحابه وو باقی دولس رکعته په کورونو کې اداء کړي وي هغه فرمایلي دی چې: وکان یصلی بهم ثمان رکعات ویکملون باقیها فی بیوتهم) همدارنګه فرمایي چې: ویتبین ان عددها لیس مقصوراً علی الثمان الرکعات التی صلاها بهم بدلیل انهم کانوایکملونها فی بیوتهم. [کتاب الفقه علی المذهب الاربعه ج١ ص٣٤١].

نو دا حدیثونه به د غیر مقلدینو لپاره په هغه وخت کې دلیل شي، چې په دوي کې د تراویحو تصریح وښایي او همدارنګه پکې اجتماعاً یا انفراداً دا تور رکعتونو څخه د زیادة نفی وښایي۔

(۴) غیر مقلدين وايي چې تهجد او تراويح يو لمونځ دی، نو مونږ وايو چې د خپلو اصولو مطابق دا خبره په ايت کې وښايې او يايې په صريح حديث کې وښايې، په کوم ايت او په کوم حديث کې راغلي دي چې تهجد او تروايح يو لمونځ دی؟

(۵) چې د دې دواړو حديثونو څخه تهجد مراد شي، نو نه به يې د حضرت جابر د شلو رکعتونو والا د حديث سره تعارض راشي، نه به يې د عبدالله بن عباس ﷺ د متواتر عملي حديث سره تعارض راشي، نه به يې د خلفاء راشدينو د تعامل سره تعارضی شي، او نه به يې د تابعينو، تبع تابعينو او په هندوستان باندې ترانګريزي دوری پورې د غير متناهی مسلمانانو د تعامل سره تعارض راشي، د غير مقلدينو د نظريې مطابق به د حضرت جابر ﷺ په حديثونو کې په خپل مابين کې هم تعارض راشي، همدارنګه به د دې دواړو حديثونو د حضرت عبدالله بن عباس ﷺ د متواتر عملي حديث سره هم تعارض راشي، همدارنګه به يې د خلفاء راشوينو، د تابعينو، او د تبع تابعينو او په هندوستان باندې ترانګريزی يرغل پورې د ټولو مسلمانانو د تعامل سره هم تعارض راشي. همدارنګه به د شلو رکعتونو په هغو لس ګونو حديثونو باندې عمل مکمل ختم شی کوم چې مخکې وليکل وشول.

**غير مقلد (منکر تراويح)** : د اتو رکعاتو تراويحو د اثبات او د دې څخه د زياتو رکعتونو د نفی لپاره د حضرت عايشې ﷺ حديث دليل دی چې نبی کريم ﷺ په رمضان او په غير مضارن کې ديوولسو رکعتونو څخه زيات مونځ نه دی کړی (اته رکعته تراويح او درې رکعته وتر).

**اهل سنت والجماعت** : غير مقلدين دي لاندې شپږو سوالونو ته جواب ووايې:

(۱) ستاسو د دعوی او د دليل په مابين کې مطابقت نه شته، ځکه چې ستاسو دعوه دا ده چې تراويح اته رکعته دي، او په دې حديث کې اته رکعته تهجد ذکر شوي دي، ځکه چې په دې حديث کې د رمضان او غير رمضان کلمه ده يعنې د ټول کال د مونځ بيان دی، او د ټول کال مونځ تهجد دی، تراويح نه دي.

(۲) په دې حديث کې ديوولسو څخه د زياتو رکعتونو نفی راغلی ده حالانکه په بخاری شريف کې ديوولسو رکعتونو څخه د زياتو رکعتونو اثبات دی، وګوره بخاری ج۱ ص۱۵۳ همدارنګه قيام الليل للمزوزی ص۸۳-]

(۳)غیرمقلدین لیکي چې دتراویحو تعداد معین نه دی –شوکانی لیکې چې: فقصر الصلوة المسماة بالتراويح على عددٍ معين لم ترد به سنة نيل الاوطار ج۳/ص٥٨]

غیرمقلد وحید الزمان لیکي چې: ولا يتعين له عدد معين كنز الحقايق ص۳ نزل الابرار ج۱ ص٢٦)

نورالحسن لیکې چې (وبالجمله عدد معين درمرفوع نيامده عرف الجادی ص٨٤ مصدقه نواب صديق حسن خان) نو څرنګه غیرمقلدین داتور کعتونو داثبات او ددې څخه دزیاتور کعتونو دنفی لپاره ددې حدیث څخه استدلال کوي؟

(۴)پدې حدیث کې راغلي دي چې نبی کریمﷺ په رمضان او په غیر رمضان کې درې رکعته وترکړي دي، یعنې دولس میاشتې یې درې رکعته وترکړی دي، نو غیرمقلدین ولې یو ولس میاشتې یو رکعت وترکوي؟یعنې یو ولس میاشتی ولې ددی حدیث څخه مخالفت کوي؟

(۵)که دحضرت عایشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا احدیث داتور کعتونو داثبات او دزیاتور کعتونو دنفې لپاره شي نو بیا چې حضرت عمر رضی الله عنه په مسجد نبوي کې دحضرت عایشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا دحجرې په څنګ کې دشلو رکعتو تراویحو په جماعت باندې دپابندی اهتمام وکړو، نو حضرت عایشې رضی الله عنها ولې ورته داحدیث داتور کعتونو څخه دزیاتور کعتونو دنفی لپاره نه پیش کولو؟ او یا کوم یو بل صحابی ولې نه پیش کولو؟

(۶) دحضرت عایشې رضی الله عنها وفات په سنه ۵۷ھ یا سنه ۵۸ھ) کې دحضرت معاویة رضی الله عنه په خلافت کې شوی دی، او دحضرت جابر رضی الله عنه وفات په سنه ۷۴ھ) کې دعبد الملک په خلافت کې شوی دی، او دحضرت ابی بن کعب رضی الله عنه وفات په سنه ۱۹ کې دحضرت عمر رضی الله عنه په خلافت کې شوی دی، دوی یو هم دشلو رکعتونو تراویحو مخالفت نه دی کړی، او نه یې دشلو رکعتونو په خلاف کوم حدیث پیش کړی دی.

نو ایا دغیرمقلدینو – دینې غیرت، دسنتو سره محبت، او دبدعاتو څخه نفرت ددې صحابه وو په سنت هم زیات دی؟ ددې حدیثونو لپاره وجې غیرمقلدین شپه او ورځ کوشش کوی چې شلو رکعتو تراویحو ته بدعت وایي لکن خپله ددې احادیثو اوریدونکي او بیانونکي جلیل القدر صحابه رضی الله عنهم یې هیڅکله دشلو رکعتونو په خلاف نه پیش کوي.

## ۷-سوال: ايادحضرت عمر رضي الله عنه دخلافت په زمانه کې شل رکعته تراويح کيدلی؟

**جواب :** دحضرت عمر رضي الله عنه دخلافت په اول کال کې دتراويحو دجماعت اهتمام نه وو، بيا په دوهم کال ددې پوره اهتمام وشو، ددې وجه داوه چې حضرت عمر رضي الله عنه وليدل چې په مسجدنبوی کې بعضې خلک يواځې دتراويحو مونځ کوي اوبعضې يې په جماعت باندې کوي، اوجماعتونه هم متعدد متعدد دی، نو حضرت عمر رضي الله عنه ته دی کار خوند ورنکړو او وی فرمايل چې: لوجمعت هؤلاء علی قاری واحدلکان امثل ثم عزم فجمعهم علی ابی بن کعب رضي الله عنه.

که زه دا خلک په يو قاری راجمع کړم نو ډيره به ښه وي، بيايې کلک عزم وکړو او ټول خلک يې په ابی بن کعب رضي الله عنه راجمع کړل، ددې څخه وروسته يې يو ځل وليدل چې ټول صحابه اوتابعين ديو امام په اقتداء کې مونځ کوه نو حضرت عمر رضي الله عنه وفرمايل چې دا جديده طريقه ښه ده، بخاری ج۱ ص۲۲۹، دوهم سبب داوو چې دکوم امام اوازبه ښکلې وونوپه تراويحو کې به دهغه مقتديان زيات وو، اودکوم امام اوازبه چې هغومره نه وو ښکلې نو دهغه مقتديان به کم وو، نو حضرت عمر رضي الله عنه پوه شو چې خلکو دقرآن په ځای اوازمقصود ګرزولې دی، نو لدې وجې څخه يې په يو امام راجمع کړل، پاتې شوه داخبره چې حضرت ابی بن کعب رضي الله عنه څورکعتو تراويحو امامتې کوله؟ نو ددې لپاره داحاديثو ټول طرق کتل پکار دی.

(۱) دسايب بن يزيد رحمه الله په يو روايت کې راځي چې حضرت عمربن الخطاب رضي الله عنه حضرت ابی بن کعب رضي الله عنه اوحضرت تميم الداری رضي الله عنه ته حکم وکړچې خلکوته ديوولسو رکعتو امامتې ورکړي (۸ رکعته تراويح او۳ رکعته وتر) بهيقی ج۲ ص٤٩٦).

ددې حديث په باره کې ابن عبد البر رحمه الله په الاستذکار کې ليکې چې وهمٌ وغلطٌ ج ۲ ص ۶۹ باب ماجاء فی قيام رمضان.

(۲) عَنِ السَّآئِبِ بْنِ يَزِيْدَ رحمه الله قَالَ كَانُوْا يَقُوْمُوْنَ عَلٰى عَهْدِ عُمَرَبْنِ الْخَطَّابِ رضي الله عنه فِىْ شَهْرِ رَمَضَانَ بِعِشْرِيْنَ رَكْعَةً بهيقی ج۲ ص٤٩٦].

سايب بن يزيد فرمايې چې خلکو به دحضرت عمر رضي الله عنه په زمانه کې شل رکعته کول.

(٣) عَنْ يَزِيْدَ بْنِ رومان رحمه الله قَالَ كَانَ النَّاسُ يَقُوْمُوْنَ فِيْ زَمَنِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رضي الله عنه فِيْ رَمَضَانَ بِثَلَاثٍ وَعِشْرِيْنَ رَكْعَةً.

يزيد بن رومان فرمايي چې خلکو به د حضرت عمر په زمانه کې ۲۳ ركعته كول، بهيقى ج۲ ص ۴۹۶

(٤) عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيْدٍ رحمه الله أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رضي الله عنه أَمَرَ رَجُلًا يُصَلِّيْ بِهِمْ عِشْرِيْنَ رَكْعَةً.

يحيى بن سعيد فرمايي چې عمر بن الخطاب يو سړي ته امر وكړو چې خلكو ته د شلو ركعتو امامتي وركړي. (مصنف ابن ابى شيبه باب كم يصلى فى رمضان من ركعة)

(٥) عَنْ عَبْدِ الْعَزِيْزِ رحمه الله قَالَ كَانَ أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ رضي الله عنه يُصَلِّيْ فِيْ رَمَضَانَ بِالْمَدِيْنَةِ الْمُنَوَّرَةِ عِشْرِيْنَ رَكْعَةً وَيُوْتِرُ بِثَلَاثٍ

عبد العزيز بن رفيع فرمايي چې ابى بن كعب رضي الله عنه خلكو ته د شلو ركعتونو امامتي وركوله. (حواله بالا)

(٦) قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ كَعْبٍ الْقُرَظِيُّ رحمه الله كَانَ النَّاسُ يُصَلُّوْنَ فِيْ زَمَنِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رضي الله عنه فِيْ رَمَضَانَ عِشْرِيْنَ رَكْعَةً.

محمد بن كعب القرظى فرمايي چې د حضرت عمر رضي الله عنه په زمانه كې به خلكو شل ركعته تراويح كولې، قيام رمضان للمروزى ص ١٥٧].

(٧) وَعَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ رضي الله عنه: "أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رضي الله عنه أَمَرَ أُبَيَّ بْنَ كَعْبٍ رضي الله عنه أَنْ يُصَلِّيَ بِاللَّيْلِ فِيْ رَمَضَانَ. فَقَالَ: إِنَّ النَّاسَ يصومون النهار ولا يحسنون أن يقرءوا، فَلَوْ قَرَأْتَ الْقُرْآنَ عَلَيْهِمْ بِاللَّيْلِ. فَقَالَ: يَا أَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ! هٰذَا شَيْءٌ لَمْ يَكُنْ. فَقَالَ: قَدْ عَلِمْتُ وَلٰكِنَّهُ أَحْسَنُ. فَصَلّٰى بِهِمْ عِشْرِيْنَ رَكْعَةً" [اتحاف الخيرة المهرة ج۲ ص ۴۲۵؛ والمختاره للمقدسى ج۳ ص٣٦٧].

ابى بن كعب رضي الله عنه ته حضرت عمر رضي الله عنه وفرمايل چې خلك د ورځې روژه وي او قرآن سم نه لولي، نو كه ته ورته د شپې قرآن ولولې، حضرت ابى بن كعب رضي الله عنه ورته وفرمايل چې دا خو يو نوى شى دى، حضرت عمر رضي الله عنه ورته وفرمايل چې ماته معلومات دى، لكن دا طريقه ښه ده، نو حضرت ابى بن كعب رضي الله عنه نه دوي ته د شلو ركعتو تراويحو مونځ وركړو.

## تشريح

نو دسایب بن یزید رحمه الله په اول حدیث کې د اتو رکعتونو ذکر دی، او په پاتې شپږو حدیثونو کې چې دسایب بن یزید رحمه الله، یزید بن رومان رحمه الله، یحیی بن سعید رحمه الله، عبدالعزیز رفیع رحمه الله محمد بن کعب القرظی رحمه الله، او خپله دابی بن کعب ﷺ حدیثونه دي په دې ټول کې د شلو رکعتونو ذکر دی.

نو د اول حدیث تعارض راغلو د پاتې شپږو حدیثونو سره، د دفع د تعارض لپاره بعضې علماء دی شپږو حدیثونو ته ترجیح ورکوي او د اول حدیث په باره کې فرمایې چې هغه د راوي وهم او غلطیاده، لکه حافظ ابن عبد البر رحمه الله چې فرمایلي دي.

او بعضې علماء پکې تطبیق کوي، چې په اول کې حضرت عمر ﷺ داسې حکم کړی وو، چې اته رکعته په جماعت کوئ، او باقي دولس رکعته په کورونو کې کوئ، چې شل رکعته مکمل شي، بیا یې په تدریج سره حکم وکړ چې ټول شل رکعته په جماعت باندې کوئ، د دې څخه وروسته په هر مسجد او په هر ځای کې په جماعت باندې شل رکعته تراویح کیدلې.

**(تائیدات):**

دسایب بن یزید رحمه الله د دواړو روایتونو په باره کې:

(۱) امام بیهقي رحمه الله فرمایې چې: **وَيُمْكِنُ الْجَمْعُ بَيْنَ الرِّوَايَتَيْنِ، فَإِنَّهُمْ كَانُوا يَقُومُونَ بِإِحْدَى عَشْرَةَ، ثُمَّ كَانُوا يَقُومُونَ بِعِشْرِينَ وَيُوتِرُونَ بِثَلَاثٍ، وَاللّٰهُ أَعْلَمُ** ( بیهقی ج۲ ص٤٩٦] یعنې اول یې اته رکعته (په جماعت او دولس رکعته په کورونو کې) کول، او بیا یې شل رکعته تراویح او درې رکعته وتر ټول په جماعت سره کول.

(۲) امام قسطلاني الشافعی رحمه الله المتوفی ۹۳۳) د بخاری په شرح کې لیکي چې: وجمع البهيقى بينهمابانهم كانوايقومون باحدى عشرة ثم قاموابعشرين واوتروابثلاث وقدعدواماوقع فى زمن عمر ﷺ كالاجماع ارشادالسارى ج۳ ص٤٢٦] اول یې یوولس رکعته باجماعت اداکول، (او بیا به ئی دولس رکعت په کورونو کې بلاجماعت اداکول) بیا یې شل رکعته تراویح او درې رکعته وتر د جماعت سره شروع کړل.

(٣) علامه ابن الهمام رحمه الله فرمايې چې: وجمع بينهمابانه وقع اولاثم استقرالامرعلى العشرين فانه المتوارث .فتح القديرج١ ص٤٠٧].اول به ئې يوولس رکعته باجماعت اداکول، بیاوروسته شل رکعته باجماعت شروع شول او همدا شل رکعته پیړئ په پیړئ په تواترسره رارونی دي

(٤) ملاعلى القارى رحمه الله فرمايې چې: لعلهم فى بعض الليالى قصدواالتشبيه به ﷺ فانه صح عنه انه صلى بهم ثمانى ركعات والوتروان كان الذى استقرعليه امرهم العشرين، مرقات ج٣ ص٣٧٩].

(٥) علامه عبد الرحمن الجزيرى رحمه الله ليکلي دي چې:وقدبين فعل عمران عددهاعشرون حيث انه جمع الناس اخيراعلى هذاالعددفى المسجدووافقه الصحابة على ذلک ولم يوجدلهم مخالف ممن بعدهم من الخلفاءالراشدين (كتاب الفقه على المذاهب الاربعة ج١ ص ٣٤٠). دحضرت عمرﷺفعل دا ښکاره کړه چې تراويح شل رکعته دي، ځکه چې حضرت عمرﷺ په اخرکې خلک په همدې عدد را جمع کړل او ټولو صحابه وو ورسره اتفاق وکړاو هيڅ مخالف پيدا نه شو.

(٦) امام شافعي رحمه الله فرمايې چې :زه شل رکعته تراويح خوښوم ځکه چې دا د حضرت عمرﷺ څخه روايت شوي دي.لانه روى عن عمرﷺ .كتاب الام ج١ ص١٢٥].

(٧) امام ترمذى رحمه الله فرمايې چې :وَأَكْثَرُأَهْلِ الْعِلْمِ عَلَى مَارُوِيَ عَنْ عُمَرَ، وَعَلِيٍّ، وَغَيْرِهِمَا رضي الله عنهما مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِشْرِينَ رَكْعَةً ،( ترمذى ج١ ص٩٩) اکثر خلک د حضرت عمرﷺ حضرت علىﷺ وغيرهما اصحابه وو په طريقه باندې شل رکعته کوي.

(٨) امام ابن عبد البر المالکی رحمه الله فرمايې چې: وَهُوَالصَّحِيحُ عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ رضي الله عنه مِنْ غَيْرِ خِلَافٍ مِنَ الصَّحَابَةِ ( الاستذكارج٢ ص ٧٠]. دا شل رکعته دابی ابن کعبﷺ څخه صحيح ثابتې دي، چې هيڅ صحابی پکې مخالفت نه دی کړی.

(٩) علامه ابن قدامه الحنبلی رحمه الله فرمايې چې: أَنَّ عُمَرَ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-لَمَّا جَمَعَ النَّاسَ عَلَى أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، رضي الله عنه وَكَانَ يُصَلِّي لَهُمْ عِشْرِينَ رَكْعَةً (المغنى ج١ ص٧٩٩]. حضرت عمرﷺ چې کله خلک په ابن بن کعبﷺ را جمع کړل نو هغه ورته شل رکعته تراويح کولې.

(۱۰) ابن تیمیه رحمه الله فرمايي چې: فَلَمَّا جَمَعَهُمْ عُمَرُ عَلَى أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ ﷺ كَانَ يُصَلِّي بِهِمْ عِشْرِينَ رَكْعَةً ثُمَّ يُوتِرُ بِثَلَاثٍ (مجموعة الفتاوى ج۲۲ ص۲۷۲]. حضرت عمر ﷺ چې خلک په ابی بن کعب ﷺ راجمع کړل نو هغه خلکو ته شل رکعته تراویح او درې رکعته وتر کول.

(۱۱) ابن تیمیه رحمه الله په بل ځای کې فرمایي چې: قَدْ ثَبَتَ أَنَّ أُبَيَّ بْنَ كَعْبٍ ﷺ كَانَ يَقُومُ بِالنَّاسِ عِشْرِينَ رَكْعَةً فِي قِيَامِ رَمَضَانَ وَيُوتِرُ بِثَلَاثٍ. فَرَأَى كَثِيرٌ مِنَ الْعُلَمَاءِ أَنَّ ذَلِكَ هُوَ السُّنَّةُ، لِأَنَّهُ أَقَامَهُ بَيْنَ الْمُهَاجِرِينَ وَالْأَنْصَارِ وَلَمْ يُنْكِرْهُ مُنْكِرٌ.(مجموعة الفتاوى ج ۲۳ص ۱۱۲].

دا ثابته ده چې ابی بن کعب ﷺ به خلکو ته د شلو رکعتو تراویحو او د درې رکعته وترو امامتي ورکوله نو ډیر علماء فرمايي چې همدا شل رکعته سنت دي ځکه چې دا عدد یې مهاجرینو او د انصارو په مابین کې ادا کړی وو او هیچا انکار ونه کړو.

(۱۲) د وهابیانو د حرکت مشر محمد بن عبد الوهاب لیکي چې :ان عمر جمع الناس على ابى بن كعب يصلى بهم عشرين ركعة،مجموعه رسايل الشيخ محمدبن عبدالوهاب النجدى ج ٤ص ١١٧]. حضرت عمر ﷺ خلک په ابی بن کعب راجمع کړل هغه خلکو ته شل رکعته تراویح ورکولی.

(۱۳) امام ولی الدین العراقی رحمه الله لیکي چې :لكن عمر ﷺ جمع الناس على صلوة التراويح مقتدين بابى بن كعب ﷺ صلى بهم عشرين ركعة غير الوتر وهو ثلاث ركعات .[طرح التشريب فى شرح التقريب ج۳ ص۸۸]. حضرت عمر ﷺ د رمضان په میاشت کې د ابی بن کعب ﷺ په امامتی کې خلک په شل رکعته تراویحو او درې رکعته وترو باندې راجمع کړل.

**ددې عباراتو خلاصه:**

(۱) حضرت عمر ﷺ په اول کې صحابه په یو ولس رکعته باجماعت راجمع کړل چې پاتې رکعتونه به یې په کورونو کې بی جماعته کول او په تدریج سره یې په شلو رکعتونو باجماعت عمل شروع کړو.

(۲) د حضرت عثمان ﷺ او د حضرت علی ﷺ په خلافتونو کې هم د حضرت عمر ﷺ د خلافت په شان شل رکعته باجماعت ادا کیدل.

(۳) په شلو رکعتونو باجماعت باندې ټولو صحابه وو ﷺ اجماع ده چې یو صحابي ترینه هم نه دی مستثنی.

(۴) پدې دوروو خلافت کې هیڅ تابعي هم د شلو رکعتونو باجماعت څخه اختلاف نه دی کړی.

**غیر مقلد (منکر تراویح):** مخکې له دې چې په شلو رکعتونو باجماعت باندې عمل شروع شي تاسو وویل چې په ابتداء کې حضرت عمر رضي الله عنه په یوولسو رکعتونو باجماعت باندې خلک راجمع کړل، نو بیا په دې څه دلیل دی چې په دغه ورځو کې صحابه وو باقي دولس رکعت په کورونو کې کول؟

**اهل سنت والجماعت:** (۱) د حضرت عبد الله بن عباس رضي الله عنه په مرفوع او متواتر عملي حدیث کې تیر شول چې رسول الله ﷺ شل رکعته تراویح کولی. (۲) او د حضرت عمر رضي الله عنه په زمانه کې د دریو خلفا و په شمول ټولو صحابه وو په شلو رکعتونو باجماعت باندې عمل کولو، نو دومره مقدسې هستۍ څرنګه په خلاف سنت راجمع کیدلی؟

نو دومره تواتر او اجماع د غلطۍ امکان نه لري، نو بلاشکه چې سنت تراویح شل رکعته دی - او دا ممکنه نه ده چې صحابه دی سنت پریږدي، نو خامخا دا شل رکعته سنت تعداد صحابه کرامو په کورونو کې پوره کړی دي، د دې قرینو په خلاف د لامذهبو سره هیڅ قرینه داسې نه شته چې په هغې کې داتو رکعتونو څخه د زیادت نفې راغلي وي.

غیر مقلدین (د تراویحو منکرین) دی صرف یو روایت او یا صرف یو داسې دی حدیث پیش کړی چې په هغې کې داتو رکعاتو څخه د زیادت نفې وي.

(۲) د حضرت عمر رضي الله عنه د زمانې څخه دی تر دا نګریزانو د دورې پورې صرف یو صحابي، یا صرف یو تابعي، یا صرف یو تبع تابعي، او یا صرف یو مسلمان وښایي؛ چې هغه داتو رکعتو څخه د زیادت نفې کړې وي.

### ۸- سوال: د حضرت عمر رضي الله عنه د زمانې څخه وروسته د صحابه وو او د تابعینو په زمانه کې څو رکعته تراویح کیدلی؟

**جواب:** کله چې د حضرت عمر رضي الله عنه په زمانه کې شل رکعته باجماعت شروع شوی، نو د هغې څخه وروسته د صحابه وو او د تابعینو په زمانه کې په همدې شلو رکعتونو باجماعت باندې عمل کیدلو.

## دنمونې په طريقه لاندې اوه۷ حديثونه ولوله

(۱) عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمٰنِ السُّلَمِيِّ ﷺ، عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: "دَعَا الْقُرَّاءَ فِي رَمَضَانَ فَأَمَرَ مِنْهُمْ رَجُلًا يُصَلِّي بِالنَّاسِ عِشْرِينَ رَكْعَةً" قَالَ: وَكَانَ عَلِيٌّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يُوتِرُ بِهِمْ. بهيقى ج ۲ص۴۹۶]. حضرت على ﷺ قاریان راوو غوښتل او يوته يې پکې امروکړو چې خلکوته شل رکعته تراويح اداکړي او حضرت على رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ورته د وترو امامت کولو.

(۲) عَنْ أَبِي الْحَسْنَاءِ رحمه الله أَنَّ عَلِيَّ بْنَ أَبِي طَالِبٍ ﷺ "أَمَرَ رَجُلًا أَنْ يُصَلِّيَ بِالنَّاسِ خَمْسَ تَرْوِيحَاتٍ عِشْرِينَ رَكْعَةً "(بهيقى ج۲ ص۴۹۶]. ابو الحسناء فرمايي چې حضرت على ﷺ يو سړي ته امروکړو چې خلکوته پنځه ترويحات شل رکعته تراويح اداکړي.

(۳) كَانَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يُصَلِّي بِنَا فِي شَهْرِ رَمَضَانَ فَيَنْصَرِفُ وَعَلَيْهِ لَيْلٌ" قَالَ الْأَعْمَشُ رحمه الله: «كَانَ يُصَلِّي عِشْرِينَ رَكْعَةً وَيُوتِرُ بِثَلَاثٍ (قيام رمضان للمروزى ص۱۵۷]. عبد الله بن مسعود ﷺ به خلکوته شل رکعته تراويح او درې رکعته وتراداکول.

(٤) عَنْ عَطَاءٍ، قَالَ: «أَدْرَكْتُ النَّاسَ وَهُمْ يُصَلُّونَ ثَلَاثًا وَعِشْرِينَ رَكْعَةً بِالْوِتْرِ»(مصنف ابن ابى شيبه باب كم يصلى فى رمضان من ركعته. ماصحابه اوتابعين وموندل چې شل رکعته تراويح اودرې رکعته وتربه يې کول.

(٥) قال عطاء ارنتهم يصلون فى رمضان عشرين ركعت ويوترون منهابثلاث (قيام رمضان للمروزى ص ۱۵۸]. ماچې خلک ليدلي دي نو همدانهه ديرش رکعته کوي (شل تراويح او ۱۶ رکعته نفل اودرى رکعته وتر).

(۷) داود بن قيس فرمايي چې دعمربن عبد العزيز رحمه الله او دعثمان بن ابان رحمه الله په زمانوکې دمدينې خلکونهه ديرش رکعته لمونځ کولو.(مصنف ابن ابى شيبه باب كم يصلى فى رمضان من ركعته). نورې حوالی دشپږم سوال دجواب لاندې راروانی دي.

**۹- سوال : دصحابه وورضى الله عنهم اودتابعينورحمهم الله په زمانه کې چې کوموأيمه وودشل رکعته تراويحو امامتی کړي دي دهغوی يوڅونومونه ذکرکړئ!.**

**جواب** : (۱) د حضرت ابی بن کعب ﷛ (۲) او د حضرت عبد الله بن مسعود ﷛ روايات خومخکې تېر شو او دهغې نه پرته يو څو دادي:

(۳) معاذ ابوحليمه القاری الصحابی ﷛ المتوفی سنه۶۳ھ) (٤)شتيربن شکل التابعی رحمه الله(٥) سويدبن غفله التابعی رحمه الله المتوفی ۸۰سنه م (٦)ابن ابی مليکه التابعی رحمه الله م سنه ۱۱۷ھ (۷) حارث التابعی رحمه الله (۸)ابوالبختری التابعی رحمه الله (۹)عبدالرحمن بن الاسودالتابعی رحمه اللهالمتوفی سنه ۹۹ھ (۱۰)علی بن ربيعه التابعی رحمه الله (۱۱)سعيدبن جبيرالتابعی رحمه الله سنه ۹۵ھ (۱۲)عبدالرحمن بن ابی بکررحمه الله(۱۳) سعيدبن أبی الحسن التابعی رحمه الله م ۱۰۰سنه ھ (١٤)عمران العبدی التابعی رحمه الله(١٥) زراره بن اوفی التابعی رحمه الله المتوفی ۹۳سنه ھ (١٦)شبرمه التابعی رحمه الله(۱۷) ابومجلزالتابعی رحمه الله المتوفی سنه ۱۰٦ھ].

دوی هريو دشلو رکعتونو دتراويحو امامتي کړې ده او ددوی دشلو رکعتونو دامامتی ذکر په لاندې احاديثو کې ذکر شوی دی.

(۱) مُحَمَّدُ بْنُ سِيرِينَ رحمه الله: إِنَّ مُعَاذًا أَبَا حَلِيمَةَ الْقَارِءَ كَانَ يُصَلِّي بِالنَّاسِ فِي رَمَضَانَ إِحْدٰى وَأَرْبَعِينَ رَكْعَةً (قيام رمضان للمروزی ص۱۵۸)

معاذ به ديو څلويښت رکعتو امامتي کوله.(شل رکعته تراويح په څلورو وقفو کې شپارس رکعته نفل، درې رکعته وتر، او دوه رکعته تهجد)

(۲) مُحَمَّدُ بْنُ سِيرِينَ رحمه الله: إِنَّ مُعَاذًا أَبَا حَلِيمَةَ الْقَارِءَ كَانَ يُصَلِّي بِالنَّاسِ فِي رَمَضَانَ إِحْدٰى وَأَرْبَعِينَ رَكْعَةً)

شتيرين شکل به دشلو رکعتو، امامتي کوله، سنن کبری للبهيقی ج۲ ص٤۹٦ مصنف ابن ابی شيبه باب کم يصلی الخ]

(۳) أَبُو الْخَصِيبِ رحمه الله قَالَ: "كَانَ يَؤُمُّنَا سُوَيْدُ بْنُ غَفَلَةَ رحمه الله فِي رَمَضَانَ فَيُصَلِّي خَمْسَ تَرْوِيحَاتٍ عِشْرِينَ رَكْعَةً (سنن کبرللبهيقی ج۲ ص٤۸٦].

سويدبن غفله به دپنځو ترويحاتو شلو رکعتو امامتي ورکوله.

(٤) عَنْ نَافِعِ ابْنِ عُمَرَ رحمه الله، قَالَ: "كَانَ ابْنُ أَبِي مُلَيْكَةَ رحمه الله يُصَلِّي بِنَا فِي رَمَضَانَ عِشْرِينَ رَكْعَةً (مصنف ابن ابی شيبه باب کم يصلی فی رمضان من رکعةٍ)

ابن ابی ملیکه به دشلو رکعتو امامتي کوله.

(٥) عَنِ الحَارِثِ رحمة الله عليه: «أَنَّهُ كَانَ يَؤُمُّ النَّاسَ فِي رَمَضَانَ بِاللَّيْلِ بِعِشْرِينَ رَكْعَةً، وَيُوتِرُ بِثَلَاثٍ. (حواله بالا)

حارث به دشلو رکعتو امامتي کوله.

(٦) عَنْ أَبِي الْبَخْتَرِيِّ رحمة الله عليه: «أَنَّهُ كَانَ يُصَلِّي خَمْسَ تَرْوِيحَاتٍ فِي رَمَضَانَ، وَيُوتِرُ بِثَلَاثٍ (حواله بالا)

ابو البختری به دپنځو ترویحاتو شلو رکعتو امامتي کوله.

(٧) عَنِ الْحَسَنِ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ رحمة الله عليه، قَالَ: «كَانَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ الْأَسْوَدِ رحمة الله عليه يُصَلِّي بِنَا فِي رَمَضَانَ أَرْبَعِينَ رَكْعَةً وَيُوتِرُ بِسَبْعٍ (حواله بالا)

عبدالرحمن بن الاسود (٤٠) رکعتونو امامتي کوله او اوه رکعته وتر به يې کول.

(شلو رفرض ٢٠ رکعته تراویح، ١٦ رکعته په شلورو وقفو کې نفل، او اوه وتر يعني ٤ رکعته تهجد او دري رکعته وتر) دوترا و تهجد و شخه مجازاً په وترو باندې تعبير کيږي. [سنن نسايي ابواب الوتر].

(٨) عَنْ سَعِيدِ بْنِ عُبَيْدٍ رحمة الله تعالى عليهما، «أَنَّ عَلِيَّ بْنَ رَبِيعَةَ رحمة الله تعالى عليهما كَانَ يُصَلِّي بِهِمْ فِي رَمَضَانَ خَمْسَ تَرْوِيحَاتٍ، وَيُوتِرُ بِثَلَاثٍ (حواله بالا)

على بن ربيعه به دپنځو ترويحاتو امامتي کوله.

(٩) عَنْ وِقَاءٍ رحمة الله عليه قَالَ: «كَانَ سَعِيدُ بْنُ جُبَيْرٍ رحمة الله عليه يَؤُمُّنَا فِي رَمَضَانَ، فَيُصَلِّي بِنَا عِشْرِينَ لَيْلَةً سِتَّ تَرْوِيحَاتٍ، فَإِذَا كَانَ الْعَشْرُ الْآخِرُ اعْتَكَفَ فِي الْمَسْجِدِ وَصَلَّى بِنَا سَبْعَ تَرْوِيحَاتٍ. (حواله بالا)

وقيام رمضان للمروزی ص١٥٨]. سعيد بن جبير به دلاندې مونځ امامتي کوله. (شل رکعته تراویح، او شلور رکعته تهجد او په اخری عشره کې شلور رکعته نور تهجد).

(١٠) حَبِيبُ بْنُ أَبِي عَمْرَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ: كَانَ سَعِيدُ بْنُ جُبَيْرٍ رحمة الله عليه يُصَلِّي فِي رَمَضَانَ سِتَّ تَرْوِيحَاتٍ يُسَلِّمُ بَيْنَ كُلِّ رَكْعَتَيْنِ (قيام رمضان للمروزی ص ١٥٨].

(١١) يُونُسُ رَحِمَهُ اللَّهُ: «أَدْرَكْتُ مَسْجِدَ الْجَامِعِ قَبْلَ فِتْنَةِ ابْنِ الْأَشْعَثِ رحمة الله عليه يُصَلِّي بِهِمْ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي بَكْرٍ وَسَعِيدُ بْنُ أَبِي الْحَسَنِ، وَعِمْرَانُ الْعَبْدِيُّ رَحِمَهُمُ اللَّهُ كَانُوا يُصَلُّونَ خَمْسَ تَرَاوِيحَ، فَإِذَا دَخَلَ الْعَشْرُ زَادُوا وَاحِدَةً. (ايضا)

(١٢) ذَكْوَانُ الْجُرَشِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ: «شَهِدْتُ زُرَارَةَ بْنَ أَوْفَى رحمة الله عليه يُصَلِّي بِالْحَيِّ فِي رَمَضَانَ سِتَّ تَرْوِيحَاتٍ، فَإِذَا كَانَ فِي آخِرِ الشَّهْرِ صَلَّى سَبْعَ تَرْوِيحَاتٍ كُلَّ لَيْلَةٍ (ايضا)

(۱۳) عَنْ شبرمة رحمة الله عليه وَكَانَ مِنْ اَصْحَابِ عَلِيّ رضي الله عنه اَنَّهُ كَانَ يَؤُمُّهُمْ فِيْ رَمَضَانَ فَيُصَلِّيْ خَمْسَ تَرْوِيْحَاتٍ. (زجاجة المصابيح ج۱ ص ٣٦٦].

(١٤) عِمْرَانُ بْنُ حُدَيْرٍ رَحِمَهُ اللّٰهُ: «كَانَ أَبُوْ مِجْلَزٍ رحمة الله عليه يُصَلِّيْ بِهِمْ أَرْبَعَ تَرْوِيْحَاتٍ (قيام رمضان للمروزى ص ١٥٨] يعنې ابو مجلز به دتراويحو په څلورو وقفو کې څلور ترويحې يعنې ۱۶ رکعته کول.

لامذهبان دې صرف دحرمينو يو امام وښايي چې هغه د اسلام په تاريخ کې په حرمينو کې صرف يوه ورځ اته رکعته تراويح کړي وي، همدارنګه دې صرف يو صحابي او يا صرف يو تابعي وښايي، چې هغه دشل رکعته تراويحو دسنتوالي څخه انکار کړی وي.

**۱۰-سوال: دتراويحو دتعداد په باره کې دايمه اربعه وو مسلک څه دی؟**

**جواب:** دڅلورو اړو امامانو په نيز تراويح شل رکعته دي، دامام مالک رحمه الله څخه په يو روايت کې نهه ديرش رکعته رانقل شوي دي، لکن په هغې کې شپاړس رکعته هغه نفل دي، چې په څلورو وقفو کې به اداکيدل وجه دا وه چې په مکه مکرمه کې به د هرو څلورو رکعتونو څخه وروسته په وقفه کې طواف کيدلو، نو دهغه طواف په ځای به په مسجد نبوي کې څلور رکعته نفل کيدل (المغنی لابن قدامه ج۱ ص۸۰۳).

(۱) په المغنی کې ئی ليکلي دي چې: وَالْمُخْتَارُ عِنْدَ أَبِيْ عَبْدِ اللّٰهِ رَحِمَهُ اللّٰهُ، فِيْهَا عِشْرُوْنَ رَكْعَةً. وَبِهٰذَا قَالَ الثَّوْرِيُّ، وَأَبُوْ حَنِيْفَةَ، وَالشَّافِعِيُّ رحمة الله تعالى عليهم. وَقَالَ مَالِكٌ رَحِمَهُ اللّٰهُ: سِتَّةٌ وَثَلَاثُوْنَ. (المغني لابن قدامه ج۱ ص۸۰۲)

(۲) علامه ابن رشد المالکي رحمه الله ليکي دي چې: وَاخْتَلَفُوْا فِي الْمُخْتَارِ مِنْ عَدَدِ الرَّكَعَاتِ الَّتِيْ يَقُوْمُ بِهَا النَّاسُ فِيْ رَمَضَانَ: فَاخْتَارَ مَالِكٌ رحمة الله تعالى عليه فِيْ أَحَدِ قَوْلَيْهِ، وَأَبُوْ حَنِيْفَةَ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَداود رحمة الله تعالى عليهم: الْقِيَامَ بِعِشْرِيْنَ رَكْعَةً سِوَى الْوِتْرِ، وَذَكَرَ ابْنُ الْقَاسِمِ عَنْ مَالِكٍ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ أَنَّهُ كَانَ يَسْتَحْسِنُ سِتًّا وَثَلَاثِيْنَ رَكْعَةً وَالْوِتْرَ ثَلَاثٌ، [بداية المجتهد ج۱ ص۱۷۸].

(۳) ابو عبد الله محمد بن عبد الرحمن الشافعى رحمه الله ليکي چې: وَمِنَ السُّنَنِ صَلٰوةُ التَّرَاوِيْحِ فِيْ شَهْرِ رَمَضَانَ عِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ وَالشَّافِعِيِّ وَاَحْمَدَ رَحِمَهُمُ اللّٰهُ وَهِيَ عِشْرُوْنَ رَكْعَةً وَحُكِيَ عَنْهُ اَنَّ التَّرَاوِيْحَ سِتٌّ وَثَلَاثُوْنَ رَكْعَةً (رحمة الامة فى اختلاف الايمة ص ٤٦].

(۴) مولنا زکریا الحنفی رحمه الله لیکي چې: وهوالذی اختاره مالک واختارالشافعي عشرین رکعة غیرالوتر ومثل قول الشافعی قال الامام احمد والحنفیة اوجزالمسالک ج ۲ ص۳۰۳.

(۵) مولنا ظفر احمد العثمانی الحنفی رحمه الله لیکي چې: فالمسنون عندابی حنیفة والشافعي واحمد عشرون رکعة وحکی عن مالک ان التراویح ست وثلاثون رکعةً – اعلاءالسنن ج۷ ص۶۹].

لامذهبان دی ددې څلورو مجتهدینو اویادې ددوی په مقلدینو کې د کوم یو محدث او یاد مفسر څخه داتورکعتو حواله پیش کړي.

**۱۱- سوال: ایا داسلام په تاریخ کې کومه شپه په حرمینو کې دشلورکعتو نو څخه کمې تراویح شوي دي ؟**

**جواب** : دحضرت عمر ﷺ دزماني څخه چې په کومه ورځ دتراویحو دجماعت پابندی شروع شوی ده دهغې څخه ترننه پورې پدې څه دپاسه څوارلس سوه کلونو کې صرف یوه ورځ هم په حرمینو کې دشلور کعتو نو څخه کمې تراویح نه دي اداء شوي.

په دې اخری صدی کې بعضو متعصبو لامذهبو دشلورکعتو نو په باره کې دوسوسواچول شروع کړي دي پدې وسوسه اچونکو کې دکویټ حکومت چې دیهودا و دنصارا و وحلقه بگوش غلام دی، اهم کردارلوبوي، اودحرمینو په دې مقدس ماحول کې دافتراق دپیدا کولو پوره کوشش کوي.

چې کله دحرمینو دوو نامتو علماوو دافتنه محسوسه کړه، نو ددې فتنې دختمولو لپاره هریو عالم یو یو کتاب ولیکلو او داخبره یې پکې ثابته کړه چې داسلام په تاریخ کې هیڅکله هم په حرمینو کې دشلورکعتو نو څخه کمی تراویح نه دي شوي.

پدې دوو رسالو کې یوه رساله فضیلة الشیخ محمدعلی الصابونی الاستاذبکلیة الشریعة والدراسات الاسلامیه فی الجامعه ام القری المکه المکرمة ) ولیکله، دده درسالې نوم دی الهدی النبوی الصحیح فی صلوة التراویح، مونږ ددې رسالې یو څو مضمونونه رانقلوو.

(۱) موصوف په دوه پنځوسمه صفحه کې عنوان لګولی دی چې (دتراویحو دمونځ درکعتونو تعداد ) ددې عنوان لاندې لیکي:

وهی عشرون رکعة من غیرصلوة الوتر- ومع الوترتصبح ثلاثاًوعشرین رکعة...... علی ذلک مضت السنة واتفقت الایمة سلفًاوخلفًامن عهدالخلیفة الراشدعمربن الخطاب الی زماننا هذالم یخالف فی ذلک فقیه من الایمة الاربعة المجتهدین الامارُوی عن مالک بن انس القول بالزیادة فیهاالی ست وثلاثین رکعة فی الروایة الثانیة عنه، اما الروایة المشهورة عنه وهی التی وافق فیهاالجمهورالشافعیة، والحنابلة، والاحناف، فهی انهاعشرون رکعة وعلی ذلک اتفقت المذاهب الاربعة وتم الاجماع وکفی الله المؤمنین شرالقتال :

دتراویحو مونځ دوترو څخه بغیرشل رکعة دی اودوتروسره درویشت رکعته دی همدا جاري سنت دي اوحضرت عمرؓ دزماني څخه ترننه پورې ورباندې خلک متفق دي، هیڅ په دین پوه سړي ددې څخه مخالفت نه دی کړی، البته دامام مالک څخه ۳۶ رکعته نقل شوي دي لکن دده مشهورروایت دجمهورویعنې دحنیفه وو، دشافعیه وو او دحنابله ورسره موافق دی، چې تراویح شل رکعة دي، پدې باندې څلوروارو مذهبونه متفق دي، اوددې سره اجماع مکمله شوه اوالله ﷻ مومنان دقتال دشر څخه بچ کړل.

(۲) دص ۷۴ څخه ترص ۸۴ پورې خلاصه : علامه صابوني رحمه الله لیکي چې فکم تؤدی فیهماصلوة التراویح من عهدالصحابة الی زماننا هذا؟الیست تؤدی فیهماالصلوة عشرین رکعة وهماقبلة مساجد المسلمین فهل یعقل ان یجمع المسلمون علی شئ منکرمبتدع من امورالدین ویسکت عنه الناس وفیهم العلماء والفقهاء والمحدثون وتمراحقاب واجیال ولا ینکراحدهذاالمنکر، لوکان ذلک بدعةً ومنکراً کمازعم الجاهلون ...الخ.

دصحابه وو دزماني څخه ترننه پورې په حرمینو کې څو رکعته تراویح کیدلی؟ ایا پدې دواړو مساجدو کې چې دټولو مسلمانانو دمساجدو قبله ده شل رکعته نه کیدلی ؟ایا دا ممکنه او متصوره ده چې مسلمانان دی په یو بدعت او بد کار باندې راجمع شوي وي؟ اوټول خلک دی چې پدوي کې علماء، فقهاء او محدثین وي ورباندې چپ وي -کلونه کلونه بلکه صدی تیرې شوی، اوپدې بدکارباندې هیڅوک هم انکارنه کوي که دجاهلانو دگمان مطابق شل رکعته تراویح بدعت وی ،نوهیڅکله به ورباندې دومره څوک نه وو خاموشه شوی ، زمادې په الله ﷻ قسم وي چې شل کاله کیږي چې زه په مکه مکرمه کې یم په هر رمضان کې په مسجد حرام کې دامام پسې شل رکعته تراویح

کوم، او بیا د امام پسې درې رکعته وترکوم او د نجد، حجاز او د عالم اسلام د هر طرف څخه غټ غټ علمارائي او په مسجد حرام کې شل رکعته تراویح کوي، او ترننه هیڅ انکار نه دی کړی، او نه یې په دې باندې اعتراض کړی دی، نو ایا د دوي خاموشي د دې خبرې واضح اقرار نه دی، چې شل رکعته تراویح یو شرعي او بهتر کار دی، ځکه چې په دې کې د فاروقي سنتو اتباع ده، په هغو خلکو سخت تعجب دی، چې سلف ورته جاهلان ښکاری، او د حضرت عمرؓ د زمانې څخه ترننه پورې د و مره غیرمتناهي علماوو، فقهاوو، محدثینو او عوامو ته ګمراهان وایي

حضرت عمرؓ چې څه کړی دي دا په حقیقت کې د نبوی ﷺ سنتو اتباع ده، ځکه چې رسول الله ﷺ فرمایې چې زما د خلفاء راشوینو سنت په ځان باندې لازم کړئ

(۳) علامه صابونی په اخر کې د خاتمه البحث عنوان لګولی دی او لیکې چې: فان مايفعله المسلمون اليوم فى مشارق الارض ومغاربهامن صلوة التراويح عشرين ركعة وهوالحق الذى دلت عليه النصوص الكريمة وهوالذى درج عليه السلف الصالح واجمع عليه الايمة الاعلام والذى اتفقت عليه الامة الاسلامية من خلافة عمرالفاروق الى زماننا هذا ص ۱۴۳].

نن چې په مشرق او په مغرب کې کومې شل رکعته تراویح اداکیږی دا حقې دي، او قوي نصوص پرې دلالت کوي، سلف صالحین په همدې طریقه چلیدلي دی، او پدې د غټو علماوو اجماع ده، پدې باندې د حضرت عمرؓ د خلافت څخه ترننه پورې ټول امت مسلمه متفق دی.

(۴) علامه صابونی مخکې لیکي چې: لومنع احدٌ صلوة التراويح بالكلية لكان جرمه وذنبه اخف ممن يفرق جماعة المسلمين ويؤلب العداوة بينهم فان صلوة التراويح سنة ووحدة الصف واجتماع الكلمة فرض واعتصموا بحبل الله جميعاولاتفرقوا، فكيف تتفرقون جميع الامة من اجل السنة؟ ص ۱۴۱].

د هغه د چاګناه چې تراویح بالکل نه کوي، د هغه چا څخه کمه ده، چې په امت کې تفریق پیدا کوي (دا تور کعتو فتنه راپاروي) ځکه چې تراویح سنت دی او د مسلمانانو په مینځ کې وحدت او اتفاق فرض دی الله ﷻ فرمایې چې (واعتصموا بحبل الله جميعًا ولاتفرقوا) نو تاسو یو د سنت کار له وجې څرنګه په امت کې انتشار جوړوئ؟

دوهمه رساله الشيخ عطيه محمد سالم ليکلې ده په نوم د (التراويح اکثر من الف عام في مسجد النبي ﷺ) ددې رسالې يو څو مضمونونه به هم را نقل کړو.

(۱) مصنف په مقدمه کې ليکي چې: بعضې خلک په مسجد نبوی کې تراويح نه کوي اولرې لرې ځايونو ته ځې چې هلته اته رکعته تراويح وکړي ددوي دپوهولو لپاره دومره خبره کافي ده، چې تاسو نه په کورکې دتراويحو دادا کولو فضيلت حاصل کړو اونه موپه مسجد نبوی ﷺ کې دتراويحو دادا کولو فضيلت حاصل کړو، اوبعضې خلک داسې دي چې په مسجد نبوی ﷺ کې دامام پسې صرف اته رکعته تراويح کوي (اوپاتې دولس رکعته نه کوي) بلکه په تلاوت اويا په بل کوم عمل کې مصروف کيږي دارساله مادهغوی دپوهولو لپاره ليکلې ده.

(۲) مصنف دص ۳۱ څخه ترص ۴۵ پورې داثابته کړی ده چې دحضرت عمر رضي الله عنه دحضرت عثمان رضي الله عنه اودحضرت علی رضي الله عنه په خلافتونو کې په مسجد نبوی ﷺ کې شل شل رکعته تراويح اداکيدلی. (۳) مصنف ليکي چې (وان الزيادة انما جاءت) بعد يعني دشلو رکعتونو څخه دتراويحو په تعداد کې وروسته زياتوالی راغلو، دعمر بن العزيز رحمه الله په زمانه کې په مسجد نبوی ﷺ کې ۳۶ رکعته شروع شو. (شل رکعته تراويح اور ۱۶ رکعته نفل) دعمر بن عبد العزيز رح وفات په سنه ۱۱۱ھ) کې شوی دی اودامام مالک ولادت په سنه ۹۳ھ کې شوی دی، نودوي دعمر بن عبد العزيز سره اتلس کاله په دنيا کې تيرکړي دي، نوچې دامام مالک رحمه الله دشعور سترګي څرنګه خلاصی شوي دي نوپه مسجد نبوی ﷺ کې يې د ۳۶ رکعتونو څخه کم رکعتونه نه دی ليدلي، وهب بن کيسان هم فرمايي چې ماپه مدينه منوره کې د ۳۶ رکعتونو تراويحو څخه کمی نه دي ليدلي دوهب بن کيسان وفات په سنه ۱۲۷ھ کې شوی دی، امام شافعی رحمه الله فرمائی چې مااهل مدينه وليدل چې ۳۹ رکعته تراويح به ئی کولی شل تراويح، ۱۶ نفل) اودرې رکعته وتر - کتاب الام ج ۱ ص ۱۴۲ مخکې ليکې چې:

**دوهمه صدي:** ددوهمې صدی تر اخره پورې داعمل جارې ووچې په مکه مکرمه کې به شل رکعته تراويح کيدلی (اودهر وڅلورو رکعتوپه وقفه کې به طواف کيدلو اودهغې طواف په ځای به په مدينه منوره کې څلور رکعته نفل مونځ کيدلو نوپه) مدينه منوره کې به ۳۶ رکعته کيدل،

**ددريمې صدۍ**: په اول کې ۳۶ رکعته کيدل چې ددرې رکعته وترو سره به ۳۹ رکعته شول، چې بيا پکې دوه رکعته تهجد اضافه شول او مجموعه ۴۱ رکعته شول.

**په خلورمې ،پنځمې ،شپږمی،او اومی صدۍ** کې په مسجد نبوی ﷺ کې شل رکعته تراويح کيدلې ځکه چې په دې موده کې دلته دشوافعو اثرات غالب وو.

**په اتمه صدۍ** کې بيا ۳۶ رکعته تراويح شروع شوی، خو فرق صرف دومره وو چې دشپې په اول کې به د فرضو څخه وروسته ۲۰ رکعته تراويح کيدلې او دشپې په اخره حصه کې به ۱۶ رکعته جدا اداء کيدل.

**په نهمه صدۍ**: کې قداستمرات على ست وثلاثين ركعته عشرين فى اول الليل وست عشرة فى اخره وقداستمرهذالعمل الى نهاية الماة التاسعة واوايل الماة العاشرة

يعنې په نهمه صدۍ کې او دلسمی صدۍ تراوائيلو پورې په همدې طريقه ۳۶ رکعته اداکيدل

**په لسمه صدۍ**: کې همداد ۳۶ رکعتونو طريقه جارې وه.

**په يوولسمه صدۍ** کې هم غالبًا په همدې طريقه ۳۶ رکعته کيدل ځکه چې شيخ عبد الغني نابلسی مدينه منورې ته په يوولسمه صدۍ کې په خپله سفرنامه کې همدومره تعداد ليکلې دی.

**په دولسمه صدۍ** :کې هم دشپې په اوله حصه کې شل رکعته تراويح کيدلې او دشپې په آخره حصه کې به شپاړس رکعته کيدل او ددې ۱۶ رکعته مونځ نوم به په ستة عشره به باندې يادېدلو.

**په دريالسمه صدۍ**:کې هم په همدې طريقه ۳۶ رکعته تراويح کيدلې

**په خوارلسمه صدۍ**: کې هم په همدې طريقه تراويح کيدلې صرف دومره او شو چې امامان متعدد شو.

**عهددسعود**: دسعود دورد (۱۳۱۴هـ) څخه شروع شوی دی، او ددوی په حکومت کې به په مسجد نبوی کې چاصرف شل رکعته تراويح باجماعت اداکولې او بعضو به پاتې ۱۶ رکعته هم اداکول، دسعودی حکومت داسې طريقه مقرره کړه چې دماخوستن دمونځ پسې متصل به شل رکعته تراويح او بيا درې رکعته وتراداکيږي او دشپې په اخر کې به ۱۶ رکعته او دوباره وتراداکيږي ،اگرچې دوترو مونځ دوه ځلې صحيح نه دی (نبي کريم ﷺ فرمايې لاوتران فى ليلة ابوداود باب فى نقض الوتر)

اوس داسې کیږي چې دشپې په اول کې شل رکعته تراویح اداکیږي ،اوپه اخري عشره کې دشپې په اخرکې لس رکعته تهجد اداکیږي، یوختم په تراویحوکې کیږي ،اویوختم په تهجدوکې کیږي ص ۱۱۱ جناب عطیه محمد سالم دڅوارلسوصدیو دتراویحوتعداد شل اوددې څخه زیات لیکلې دی، ددې څخه کم نه شته.

## دمکې او د مدینې څخه دلامذهبو بیزاري:

غیرمقلدین :دعوا مود ګمراه کولو لپاره وایې چې زمونږ مذهب هغه دی کوم چې دمکي اودمدینې دخلکو دی ،مونږ دمکې اودمدینې والایو،لدې وجې زمونږ طریقه بهتره ده ،لکن چې کله بیاورته وویلي شي چې په مکه اوپه مدینه کې خوشل رکعته تراویح اداکیږي اوتاسوخواتو رکعتو تراویحوته سنت وایې اوشلو رکعتونوته بدعت وایې، نوپه دې وخت کې بیاغیرمقلدین دمکي اودمدینې دخلکو څخه بیزاري ښکاره کوي،لکه څرنګه چې یوغیرمقلد عالم محمدرفیق سلفی لیکې چې :بعضې احناف مونږ ته وایې چې تاسوولې دمکي اودمدینې په شان شل رکعته نه کوئ .... نوزه وایمه چې محترمینو ! دازیاتې اوکمی دانسانانو څخه ممکن دی ،الله ﷻ مونږته مکه اومدینه دنمونی په طریقه نه دي پیش کړي، البرهان فی قیام رمضان صـ ٦٧ همدارنګه مشهورغیرمقلد مناظراحسان الهی ظهیرلیکې چې :اهلحدیث دکوم ښارپه سنتوعمل نه کوي ،داخبره ډیرمهمه ده ډیرپه غورسره یې ولولئ دمغالطی لپاره خلکوډیرې غټې غټې خبرې جوړې کړې دي اوپه دلیل کې دمکې اودمدینې نومونه اخلي زمونږ په نیزښارونه،کلې، اوافراددلیل نه شي کیدلی، زمونږ دلیل دالله قران اودمحمد الرسول الله فرمان دی . [کتاب الصلوة باب سوم ص ۷۰].

## ۱۲- سوال:ایا دتراویحو څخه وروسته تهجدکیږي؟

**جواب** : حضرت عمر رضی الله عنه دتراویحو څخه وروسته خلکوته دتهجدوترغیب ورکوي اوفرمایې چې کوم لمونځ چې تاسوکوئ (یعنې تراویح)ددې څخه هغه مونځ بهتردی دکوم څخه چې تاسواوده کیږي (یعنې تهجد)بخاری ج۱ ص۲۹٦ ایمه اربعه وودشپې په اخرکې تهجداوپه اول کې تراویح کولی امام بخاری به هم همداسې عمل کولو ، هدی الساری مقدمه فتح الباری ص ٦٦٦ تیسر الباری ازنواب

وحیــد الزمان ج۱ ص۴۹ نصــرت البــاری صــ ۱۲ مولــف عبدالســتار امام غرباء اهلحــدیث.
دتهجد او دتراويحو تفصيلي فرق به لږ وروسته راشي ان شاء الله.

**۱۳-سوال:** کله چې حضرت عمر﷛ شل رکعته باجماعت تراويح ته بدعت وويلې نو سنت به څرنګه شي؟

**جواب:** دبدعت دوه معناګانې دي يوه لغوي او بله شرعي، دحضرت عمر﷛ مراد معنى لغوي ده، يعنې ټوله مياشت دامام په اقتداء کې په جماعت باندې تراويح کول، دانوې طريقه ده او دابدعت شرعي ځکه نه دی چې دخلفاءو طريقې سنت دي، رسول الله ﷺ فرمايي چې عليکم بسنتي وسنة الخلفاء الراشدين، خلاصه دا چې دشلو رکعتو تراويحو څخه انکار او اتو رکعتو ته تروايح ويل او بيا ورته سنت ويل مبتدعه عقيده ده او ددې عقيدې والا بدعتي دي او داهل سنت والجماعت څخه خارج دی ضال او مضل دی.

**۱۴- سوال: علامه ابن الهمام رحمه الله اته رکعته تراويح سنت ګڼي او باقی نورې مستحب ګڼي ددينه څه جواب دی؟**

**جواب:** شل رکعاته تراويح دجمهورو علماوو او د څلور مذهبونو په نيز اتفاقي دي البته امام مالک رحمه الله په يو قول کې د (۱۶) رکعتونو هم قائل دی، علامه ابن الهمام رحمه الله په حنفي مذهب کې دلوی مقام خاوند دی خو په ځينو مسايلو کې يې خروج عن المذهب کړی دی، هغه ته دده تفرّدات (شخصي نظر) ويل کيږي چې دمذهب ترجماني نه کوي، نو په داسې مسايلو کې دده قول معتبر نه دی او ذکر شوې مسئله هم ددې باب څخه ده.

**۱-وفى الشامية:** (قوله عشرون ركعة) هو قول الجمهور وعليه عمل الناس شرقا وغربا وعن مالك ست وثلاثون وذكر فى الفتح ان مقتضى الدليل كون المسنون منها ثمانية والباقي مستحبا وتمامه فى البحر وذكرت جوابه فيما علقته عليه (شاميه صـ ۵۲۱، ج ۱، باب الوتر والنوافل، مبحث صلوة التراويح، طبع رشيده كوئته)

**۲-وفى اعلاء السنن:** وناقش سنية العشرون صاحب (فتح القدير) (۱:۴۰۷) حيث قال فتحصل من هذا كله ان قيام رمضان سنته احدى عشرة ركعة بالوتر فى جماعة فعله النبى

صلى الله عليه وسلم ثم تركه لعذر الخ قلت هذا قول محدث خارق للاجماع فان الائمة الاربعة المقتدى بهم فى الدين قد اختلفوا فى عدد ركعات التراويح المسنون على قولين فالمسنون عند ابى حنيفة والشافعى واحمد عشرون ركعة وحكى عن مالک ان التراويح ست وثلاثون ركعة ، كذا فى رحمة الامة (صـ ٢٣، والامة اذا اختلفوا فى مسئلة فى اىّ عصرٍ كان على اقوالٍ فان اجماعا منهم على ان ماعداها باطل ولا يجوز لمن بعدهم احداث قول اخر ، صرح به فى (نورالانوارصـ ٢٢٣) وغير من كتب الاصول ولاشک ان احدا من الائمة لم يقل بما قاله ابن الهمام بل اتفق كلهم على سنية العشرين غير ان مالک زاد عليها ستة عشر اخرى ولم يذهب احدمنهم الى النقص من عشرين ، فمن قال ان السنة منها احد عشرة ركعة والباقي مستحب فمحجوج باجماع من قبله ، على ان ماقاله ابن الهمام ساقط رواية ودراية ، اما دراية فان مبناه على أن السنة ما واظب عليه النبي صلى الله عليه وسلم بنفسه وما واظب عليه الخلفاء بعده مندوب وهذا خلاف ماعليه المحققون من الفقهاء والاصولين فان السنة عندهم ما واظب عليه النبي صلى الله عليه وسلم او الخلفاء الرشدون، لتصريحهم بسنية الجماعة فى التراويح وعشرين ركعة فيها بمواظبتهم على ذلک وهذا هو متمسک الائمة المجتهدين فى المسئلة الخ (اعلاء السنن صـ ٧٩، ج ٧، باب التراويح طبع ادارة القرآن كراچى)

وفيه ايضا: وبالجملة فلم نجد فى اثرما انهم كانوا يقومون باقل من عشرين الا ما رواه محمد بن يوسف وقد بيّنا ما فيه من الاضطراب فى المتن فلا حجة فيه فلوكان احدى عشرة ركعة سنة والباقى من العشرين مستحبا كما زعمه ابن الهمام لنقل عن السلف العمل به وحيث لا ،فهو قول ساقط خارق للاجماع ، آه (اعلاء السنن صـ ٨٧، باب التراويح، طبع ادارة القران)

وفى معارف السنن: واختلفوا فى المختار من عدد الركعات التى يقوم بهاالناس فى رمضان فقال ابو حنيفة واصحابه ومالک فى احد قوليه والشافعي و داود وغيرهم انها عشرون ركعة

ماعدا الوتر بعشر تسليمات وخمس ترويحات ، ونقله القاضي عن جمهور العلماء كما فى شرح المهذب صـ (۲۳ج٤) ونقله الترمذي عن اكثر اهل العلم ، وقال الكاسانى فى البدائع وهذا قول عامة العلماء آه (معارف السنن ج ٥صـ ٥٤٢، باب ماجاء فى قيام شهر رمضان طبع سعيد کراچی)

وفيه ايضا: وبالجملة عشرون ركعات من التراويح هو قدر متفق بين الامة والائمة من غير خلاف وانما الخلاف فيما زاده الخ (معارف السنن ج ٥صـ ٥٤٥ طبع بالا)

وفيه ايضا وبالجملة: العشرون من التراويح وثلاث الوتر هو الذى استقر عليه الامر اخيرا كما يقوله الشعرانى فى (كشف الغمة) والسيوطي فى المصابيح فمن احدث خلافا بعد هذا الاتفاق يكون خارق للاجماع آه (معارف السنن ج ٥صـ ٥٤٦، طبع بالا)

وفيه ايضا: وذهب الشيخ ابن الهمام فى الفتح القدير (۱: ۳۳٤) الى ان الثمانى من العشرين سنة والبقية مستحبة وذكر ان ذلک مقتضى الدليل اى الفرق بين سنته وسنة الخلفاء الراشدين ، وستعلم ما فيه وهذا قول لم يقل به احد.

قال الشيخ: ان سنة الخلفاء الراشدين تكون من جملة سنة الشريعة المصطفوية لما تقرر فى الاصول ان السنةهى سنة صلى الله عليه وسلم وسنة خلفائه الخ (معارف السنن، ج ٥صـ ٥٤٧، طبع بالا)

وفى شرح عقود رسم المفتي: كلام البحر صريح فى ان المحقق ابن الهمام من اهل الترجيح حيث قال عنه أنه اهل النظر فى الدليل وحيئذٍ فلنا اتباعه فيما يحققه ويرجحه من الروايات او الاقوال ما لم يخرج عن المذهب فان له اختيارات خالف فيها المذهب فلايتابع عليها ، كما قاله تلميذه العلامه قاسم، الخ (شرح عقود رسم المفتي ، لخاتمة المحققين ابن عابدين الشامي رحمه الله صـ ۲۵، طبع قديمي کراچی)

بسم الله الرحمن الرحیم

**محمد:** محمد یو نیک سیرت او نیک صورته ځوان وو، په پوهنتون کې محصل وو، لمونځ، روژې، ذکر، او تلاوت به ئې ډیر په پابندۍ سره کول.

پدې پوهنتون کې یو متعصب غیر مقلد جعلي اهلحدیث پروفیسر استاذ وو، او یو نام نهاد شیخ الحدیث متعصب لامذهبه د قرآن د درس په نوم هلته ورتللو – کله چې دې دواړو غیر مقلدینو د محمد نیک اخلاق، او شرافت ولیدلو نو دده د ښکار کولو پخه اراده یې وکړه، نو اول یې د ځان سره بلد کړو، او بیا یې ورته په زړه کې دوسوسا چول شروع کړل، رو رو یې په دې خبره یقیني کړو چې ته د مولیانو پسې د تللو په ځای خپله د دین تحقیق کوه، د رمضان میاشت په رارسیدلو وه، محمد د تراویحو د مسئلې تحقیق شروع کړو، د اهل سنت والجماعت کتابونه یې هم وکتل او د جعلي اهلحدیثو لامذهبو کتابونه یې هم وکتل، لکن تتیجه دا راووتله چې نه یې په شل رکعتو تراویحو باندې یقین راغلو او نه یې په اتو رکعتو تراویحو باندې یقین راغلو، بلکه تراویح ورته یو مشکوک عبادت په نظر ورغلو، د رمضان میاشت وریاندې په دې کشمکش او خفګان کې تیره شوه، کله به یې شل رکعته تراویحو کولې، کله به یې اته رکعته د تراویحو په نیت باندې کولې او کله به یې بالکل پریښودې، دواړه غیر مقلدین استاذان ډیر خوشحاله وو چې د شیطان نماینده ګې یې تقریبًا کامیابه شوی وه، محمد یې د تقلید د بند څخه تقریبًا رایستلی وو، اینده چې څه پیښیدل هغه هر څه ورته د تقلید په نسبت ښه ښکاریدل.

لکن محمد ډیر خو ښیار وو، د دې مشکل او ضررناک حالت څخه یې د ځان د را ایستلو کلک عزم وکړو، طریقه یې دا ذهن ته راغله چې دیو داسې حنفیي عالم څخه تحقیق وکړي چې د غیر مقلدینو د مسلک په باره کې پوره معلومات ولري او په قرآن، حدیث او فقه کې پوره ماهر وي، لهذا د اهل سنت والجماعت د اتحاد یې دیو محقق عالم درسګاه ته ورغلو، د سلام او د کلام څخه وروسته یې د خپلو سوالونو شروع داسې وکړه.

**محمد:** مولناصاحب! د شلو رکعتو تراویحو او د اتو رکعتو تراویحو حقیقت څه دی؟

**محقق عالم**: گرانه بچیه! داصل جوآب څخه مخکې ددواړودلو داصولو څخه ځان خبرکړه، داحنافو په نیزد مسایلو دثابتولو لپاره په ترتیب سره څلوردلایل دي:

(۱)کتاب الله (۲)سنت رسول الله (۳) اجماع الامت(۴)قیاس او اجتهاد

او دغیرمقلدینو جعلی اهلحدیثو په نیزد مسایلو داثبات لپاره صرف دوه دلایل دي:

(۱) دقرآن صریح ایت (۲)صحیح صریح مرفوع متصل حدیث.

دصریح معنی داده چې دخپلې رايې لپاره به پکې دزرې په اندازه هم مداخله نه وي،دوي وايي چې دهیڅ امتي حتی چې دصحابي هیڅ قول،فعل، او رایه معتبره نه ده حتی چې ددوي په نیزدپیغمبرﷺ رایه هم بغیردوحي څخه معتبره نه ده [مقدمه نورالعینین ص۲۱ طریق محمدی ص۵۹ و ص۵۷] دغیرمقلدینو کتابونه.

اوس اصل جواب ته راشه چې داهل سنت والجماعت او دغیرمقلدینو په مابین کې دشلو رکعتو تراویحو او داتورکعتو تراویحو اختلاف نه دی ،بلکه ددوي په مابین کې اختلاف دتراویحو دمنلو او دنه منلو دی داتورکعتونو والاتراویح بالکل نه مني ،دوي دتراویحو څخه منکردي،او دشلو رکعتونو والاتراویح مني.

**محمد**: محترم مولناصاحب غیرمقلدین خوتراویح مني، لکن دتراویحو په تعداد کې اختلاف کوي، او مونږ خو همیشه دا اورو چې دتراویحو په تعداد کې اختلاف دی ،چې اته دي او که شل دي یوه ډله ورته اته وايي او بله ډله ورته شل وايي.

**محقق عالم**: محمده بچیه!دیو شي څخه دانکارلپاره دوه طریقی دي، یو صراحةً انکارکول دي او دوهم په منافقانه طریقه باندې انکارکول دي چې په ظاهر کې داقرارعنوان استعمالوي، لکن داقرارپه بیخ کې یې انکارپټ کړی وي

لکه دیوبې نمازه په باره کې چې یوسړی ووايي چې دامونځ نه کوي ،نوداصراحةً انکاردی ،او که یوسړی ووايي چې داکله کله مونځ کوي ،نودا اشارة انکاردی، ځکه چې دلته عنوان داثبات لګیدلی دی، لکن داثبات په بیخ کې انکارپټ دی ،همدارنګه غیرمقلدین دتراویحو په باره کې مثبت عنوان لګوي او وايي چې تراویح اته رکعته دي، لکن ددې په ضمن کې دتراویحو دمونځ څخه پټ انکارپروت دی.

**اول مثال:** د دوو کسانو د ماخوستن د مونځ د رکعتونو په باره کې اختلاف دی، یو وايي چې د ماخوستن مونځ څلور رکعته دی او بل وايي چې د ماخوستن مونځ درې رکعته دی، نو دلته دا اګرچې ظاهراً د ماخوستن مونځ مني ځکه چې د ماخوستن مونځ ته درې رکعته وايي لکن دا په حقیقت کې د ماخوستن د مونځ څخه منکر دی، او کوم سړی چې ورته څلور رکعته وايي نو دا سړی په حقیقت د ماخوستن د مونځ قایل دی، او هر کله چې د دې دواړو کسانو څخه وضاحت وغوښتلی شي نو د دریو رکعتونو والا و وائی چې زه په اصل کې د ماښام او د ماخوستن مونځ یو ګڼم، ځکه چې دواړه مونځونه دلمر د پرېوتلو څخه وروسته اداکیږي، نو د ماښام مونځ خو درې رکعته دی نو د ماخوستن مونځ هم درې رکعته شو، ځکه چې دواړه یو مونځ دی، او د څلورو رکعتونو والا وايي چې د ماښام او د ماخوستن دوه مستقل مونځونه دي د هریو مونځ وخت هم جدا دی، د هریو مونځ د رکعتونو په تعداد کې فرق هم دی، نو پدې مثال کې اګرچې په ظاهر کې د دریو او د څلورو رکعتونو اختلاف ښکاري، لکن په حقیقت کې کوم سړی چې د ماخوستن مونځ درې رکعته ګڼي هغه د ماخوستن د مونځ څخه منکر دی، ځکه چې دا د ماخوستن مونځ د ماښام د مونځ څخه جدا نه ګڼي او کوم سړی چې د ماخوستن مونځ څلور رکعته ګڼي، دا د ماخوستن د مونځ قایل دی، دده په عقیده کې د ماښام او د ماخوستن مونځونه دوه مستقل او جدا جدا مونځونه دي، نو همدا رنګه هغه خلک چې د تراویحو مونځ اته رکعته ګڼي، دوي په حقیقت کې د تراویحو د مونځ څخه منکر دي، ځکه چې د دوي څخه چې کله د دې خبرې وضاحت وغوښتلی شي، نو دوي د خپلې عقیدې وضاحت داسې کوي چې په اصل کې تراویح او تهجد یو مونځ دی او تهجد خو اته رکعته دي نو تراویح هم اته رکعته شوی نو دده خبره د هغه سړي د خبرې په شان شوه چې د ماخوستن او د ماښام مونځ یو ګڼي، او دواړو ته درې رکعته وايي، او کوم خلک چې د تراویحو مونځ شل رکعته ګڼي هغوی د تراویحو منونکې دي، ځکه د دوي، عقیده دا ده چې تراویح مستقل مونځ دی او تهجد مستقل مونځ دی، نو دا دوه جدا جدا مونځونه دي، نو هر کله یې چې تراویح جدا مستقل مونځ وګڼلو نو دوی د تراویحو منونکي شو.

**دوهم مثال:** شیعه ګان د قرآن څخه منکر دي، لکن په ظاهر کې یې مني، نو دوي یې چې په خوله وايي چې قرآن منو نو مراد یې د خپلې عقیدې مطابق هغه قرآن دی چې د دوي په عقیده کې د امام مهدی

سره په غار کې دی نو دا ددې موجوده قرآن څخه انکار دی همدارنګه غیر مقلدین نوم دتراویحو اخلي لکن مراد وي ترینه تهجد.

**محمد**: ایا دا عقیده دغیر مقلدینو په کتابونو کې شته چې تراویح او تهجد یو مونځ دی؟

**محقق عالم**: ددوي په ډیرو کتابونو کې دا عقیده صراحةً لیکل شوې ده، دمثال په توګه لاندې کتابونه وګوره.

(۱) غیر مقلد نذیر احمد رحمانی اعظمی لیکي چې په رمضان کې: دتهجد و اودتراویحو په مینځ کې هیڅ فرق نه شته انوار المصابیح ص ۸۰].

(۲) غیر مقلد محمد اسماعیل سلفي لیکې چې: بعضې خلک تهجد او تراویح دوه جدا جدا مونځونه ګڼي دا غلط دی، رسول اکرم کې نماز ص۹۸]

(۳) مشهور غیر مقلد صادق سیالکوټي لیکي چې: تراویح او تهجد په اصل کې دیو شي دوه نومونه دي، صلوة الرسول ص ۳۷۸]

(۴) غیر مقلد ډاکټر شفیق الرحمن لیکې چې: درمضان په میاشت کې تراویح او تهجد یو مونځ دی :نماز نبوی ص ۲۴۱]

(۵) غیر مقلد محمد خالد سیف لیکې چې: تراویح او تهجد یو مونځ دی، نماز مصطفی ص۱۶۹]

(۶) لامذهبه نیاز محمد کنړی چې په امین الله پشاوري باندې یې ځان مشهور کړی دی، لیکي چې: بعضې خلک چالاکي کوي چې یو تهجد دي او یو تراویح، اودواړه دیوبل نه جداشی دی، اودا یوولس رکعاته او اته رکعته تهجد دي، او تراویح نه دي، لکه دا خبره رشید احمد ګنګوهی په فتاوی رشیدیه کې ذکر کړې ده نو دا خبره غلطه ده ځکه چې مونږ وایو نبی کریم ﷺ دماخوستن دمانځه پسې ترصباپورې یوولس او دریالس رکعته کړي دي سره دو ترونه په رمضان او غیر رمضان کې، نو څوک دی دهغه نه زیات ثابت کړی، چې هغه شل کړی وي، نو دا هسې فرق دی، بلکه تراویح، تهجد، قیام اللیل، او قیام رمضان، ټول دیو شی نوم دی الحق الصریح ج۵ ص۴۱۲ و ص۴۱۳ ].

## د تراويحو څخه د انکار بنياد

په لاهور کې د وکټوري اهلحديثو مشهور مسجد دی، په نوم د مسجد چنيان والی، او دا مسجد په پنجاب کې د لامذ هبو اولنی مسجد دی د دې څخه مخکې په پنجاب کې د دوي د مسجد تاريخ نه شته د دې مسجد.

يو پخوانی خطيب عبد الله چکړالوی وو دا اول اهلحديث وو، بيا ورو سته پرويزی شو (رجال اهلحديث ص ۳۸ مصنف ابو علی اثري غير مقلد) او د منکرينو د حديثو سره يو ځای شو، په ټولو کې اول ده په دغه منافقانه انداز باندې د تراويحو څخه انکار شروع کړو - او يوه مستقله رساله يې وليکله په نوم د (البيان الفصيح لاثباة كراهة التراويح) پدی رساله کې ده. د تراويحو څخه د انکار بنياد په دې باندې ايښی دی چې تراويح او تهجد يو مونځ دی.

په هغه وخت کې د غير مقلدينو مشر ثناء الله امرتسری د ده په جواب کې وليکل چې: تراويح او تهجد جدا دي ،(اهل حديث کا مذهب ص ۹۶، رسائل ثنائيه ص (۸۸)

لکن د نن سبا وکټوري اهل حديث د خپل مشر خبره نه مني ، بلکې د عبد الله چکړالوي په نقش قدم روان دي.

**محمد:** مولنا صاحب! ډيره مهرباني زه اوس دومره پوه شوم چې اهل سنت والجماعت تراويح او تهجد دواړه جدا جدا مونځونه ګڼي او غير مقلدين دواړو مونځونو ته يو مونځ وايي، نو اصل اختلاف پدې کې شو چې دا دواړه يو مونځ دی، او که جدا جدا مونځونه دي، نو که دا ثابته شي چې دا دواړه جدا جدا مونځونه دي نو بيا خو يقيناً چې تراويحو ته تهجد ويل د تراويحو څخه انکار دی، لکن پدې خبره کوم دليل شته چې تراويح او تهجد دوه جدا جدا مونځونه دي؟

**محقق عالم:** هو ،يو نه بلکې بی شماره دلايل دي، تاسو يې لږ په توجه سره واورئ.

## اول دليل:

### فرق په اعتبار د ماخذ:

د تهجد و او د تراويحو د مشروعيت مأخذ جدا جدا دی، ځکه چې د تهجد و د مشروعيت ماخذ قرآن دی، الله ﷻ فرمايي چې: وَمِنَ الَّيْلِ فَتَهَجَّدْ بِهٖ نَافِلَةً لَّكَ: او د تراويحو د مشروعيت مأخذ سنت دی،

رسول اللهﷺ فرمایې چې (سنت لکم قیامه) دتراویحو طریقه محمدﷺ جارې کړې ده، یعنې دتهجدو مشروعیت په قرآن ثابت دی، اودتراویحو مشروعیت په قرآن نه دی ثابت، بلکه په حدیث ثابت دی نو څرنګه یو مونځ شو؟

## دوهم دلیل

**فرق په اعتبارد مکان دمشروعیت:** تهجدپه مکه مکرمه کې مشروع شوی وو، اوتراویح په مدینه منوره کې دنبی کریم دژوندپه آخرو کلونو دنبي ﷺ دژوند کې مشروعې شوی دي. الموسوعه الفقهیه ج ۲۷ ص ۱۳۹).

## دریم دلیل

**فرق په اعتبار د زماني دمشروعیت:** تهجد دهجرت څخه مخکې مشروع وو، اوتراویح دهجرت څخه وروسته مشروعې شوی، نو څرنګه یو مونځ شو؟

## څلورم دلیل

**فرق په اعتبار دکیفیت دمشروعیت:** تهجدپه اول کې فرض وو اوتریو کال پورې فرض پاتې شوی وو، چې وروسته یې بیا فرضوالې منسوخ شو اوتراویح هیڅکله فرض شوي نه دي– سعدبن هشام رضی الله عنه فرمایې چې:

قُلْتُ: يَا أُمَّ الْمُؤْمِنِينَ، حَدِّثِينِي عَنْ خُلُقِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَتْ: «أَلَسْتَ تَقْرَأُ الْقُرْآنَ؟ فَإِنَّ خُلُقَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ الْقُرْآنَ» قَالَ: قُلْتُ: حَدِّثِينِي عَنْ قِيَامِ اللَّيْلِ، قَالَتْ: "أَلَسْتَ تَقْرَأُ: يَا أَيُّهَا الْمُزَّمِّلُ؟"، قَالَ: قُلْتُ: بَلَى، قَالَتْ: «فَإِنَّ أَوَّلَ هَذِهِ السُّورَةِ نَزَلَتْ، فَقَامَ أَصْحَابُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى انْتَفَخَتْ أَقْدَامُهُمْ، وَحُبِسَ خَاتِمَتُهَا فِي السَّمَاءِ اثْنَيْ عَشَرَ شَهْرًا، ثُمَّ نَزَلَ آخِرُهَا، فَصَارَ قِيَامُ اللَّيْلِ تَطَوُّعًا بَعْدَ فَرِيضَةٍ (ابوداود ج۱ ص۱۸۹ ص ۱۹۱ باب فی صلوة اللیل)

سعد. یاام المؤمنین ماته دنبی دخُلق په باره کې بیان وکړه، ام المؤمنین رضی الله عنها: وفرمایل چې ایاتا قرآن نه دی لوستلی؟ درسول اللهﷺ خُلق قرآن وو، سعد رضی الله عنه: ماوویل چې: یاام المؤمنین! ماته

درسول الله ﷺ دتهجد و په باره کې یوڅه و وایه، ام المؤمنین رضی الله عنها: چې ایا تا دیا ایها المزمل سورة نه ده لوستلې؟ سعد ﷺ: ماعرض وکړو چې لوستلی می دی.

ام المؤمنین رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا و فرمایل ددې سورة ابتدائی حصه نازله شوه (په کومه کې چې دتهجد و فرضیت راغلی دی) نو صحابه وو رضی الله عنهم به دومره تهجد کول چې پښې به یې وپړسیدلې او ددې سورة اخری حصه دولس میاشتې وروسته نازله شوه نو تهجد د فرضوالي څخه نفلوالي ته نقل شول.

**فایده:** ددې حدیث څخه درې خبرې معلومیږي (۱) دتهجد و مشروعیت د قرآن څخه ثابت دی (او تراویح داسې نه دی (۲) دتهجد و مشروعیت په مکه مکرمه کې شوی دي او د تراویحو په مدینه کې (۳) تهجد تر یو کال پورې فرض وو چې وروسته بیا نفل شو او تراویح هیڅکله فرض شوي نه دی.

## پنځم دلیل

### فرق په اعتباردد ې قول چې په نبی علیه السلام باندې تراخره پورې تهجد فرض وو

بعضې علماء فرمایې چې په نبی ﷺ باندې تر اخره پورې تهجد فرض وو، صرف دامت په باره کې یې فرضوالی منسوخ شوی وو، شرح موطا امام مالک ج۱ ص۳۱۱ او د تراویحو په فرضوالي باندې هیچا قول نه دی کړی.

## شپږم دلیل

**فرق په اعتبار دسنت مؤکدوالی وغیر مؤکدوالی:** دځلورم دلیل لاندې د حضرت عایشې رضی الله عنها حدیث تیر شو چې تهجد و ته یې تطوع ویلی وو، نو تهجد سنت غیر مؤکد دي، او تراویح سنت مؤکده دي د سعودې عرب د تعلیم په نصاب کې داخل دفقه حنبلي په مشهور کتاب الروض المربع ص۶۵ کې ئی لیکلي دي چې چې: والتراويح سنت مؤكدة .ملاعلي القاری رحمه الله فرمایلي دي چې: والحاصل ان الاصح فيهاانهاسنة مؤكدة ،شرح النقايه ج۱ ص۳۴۱].

دځلورو واړو مذهبونو په نیز د تراویحو سنت مؤکدوالی په لاندې کتابونو کې وګوره البحرالرایق ج۲ ص۱۱۷ حاشیه فتاوی۹۴ النوازل ص۴۷۵ – حاشیه الطحاوی ص۴۱۱ ردالمختار ج۲ ص۴۹۳ –

فتاوی تاتارخاينه ج۱ ص۴۷۵ المهذب ج۱ ص۸٤ حلية العلماء ج۲ ص۱۱۹ - والاقناع للشربيني ج۱ ص۱۱۷ نهاية الزين ج۱ ص۱۱٤ - والفروع ج۱ ص٤۸۸ والمغنی لابن قدامه ج۱ ص ۷۹۷].

## اووم دليل

**فرق په اعتبار د جماعت اوغيرجماعت:** په تهجدوکې اصل دادی چې بغيرد جماعت څخه اداکړی شي اوپه تراويحوکې اصل جماعت دی - دسعودی عرب په تعليمي نصاب کې دهمدی داخل کتاب الروض المربع په ص۶۵ کې يې ليکي دي چې والتراويح عشرون رکعة تفعل فی جماعة مع الوتر: اوملاعلی القاری رحمه الله ليکي چې : روی الحسن عن ابی جنيفة والسنة فيها الجماعة لکن علی وجه الکفاية - شرح نقايه ج۱ ص۳۴۱] نوپه جماعت باندې تراويح اداکول سنة کفايې دی -که يوڅوکسان يې په جماعت باندې اداکړي اونوريې په کورونوکې اداکړي نودټولو ذمه فارغه شوه، اوکه هيڅوک يې په جماعت باندې ادانکړي نوپه ټولو باندې دسنتودترک وبال لازميږي اودتراويحو دسنت مؤکدعلی الکفايه والی په لاندې کتابونوکې وګوره [شرح النقايه ج۱ ص۳٤۱ فتاوی عالمگيری ج۱ ص۱۲۸ فتاوی النوازل ص۹٤ مراقی الفلاح ص۲٤۱ والبحرالرايق ج۱ ص۱۱٦].

## اتم دليل

**فرق په اعتباردترغيب دجماعت:** دتراويحودجماعت لپاره دنبي ﷺ څخه تعريف اوترغيب ثابت دی اودتهجدود جماعت ترغيب نه دی ثابت.

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: خَرَجَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَإِذَا نَاسٌ فِي رَمَضَانَ يُصَلُّونَ فِي نَاحِيَةِ الْمَسْجِدِ, فَقَالَ: «مَا هٰؤُلَاءِ؟» قِيلَ: "هٰؤُلَاءِ نَاسٌ لَيْسَ مَعَهُمْ قُرْآنٌ, وَأُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يُصَلِّي بِهِمْ, فَهُمْ يُصَلُّونَ بِصَلَاتِهِ, فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَصَابُوا أَوْ نِعْمَ مَا صَنَعُوا (قيام رمضان للمروزی ص ۱۵۵]

ابوهريرة رضی الله عنه فرمايي چې درمضان په مياشت کې يوشپه نبی کريم ﷺ راووتلونوويليدل چې يوڅوکسان دمسجد په يوکونج کې مونځ کوي، نبی ﷺ وفرمايل چې دا څوک دي؟ چاورته وويلي چې دايوڅه کسان دی چې قرآن ورته نه دي ياد، نوابی بن کعب رضی الله عنه ورته مونځ ورکوي ،نودوي دابی بن کعب رضی الله عنه په اقتداءکې مونځ کوی نبي ﷺ وفرمايل چې دوي حق ته ورسيدل اويايې وويل چې ښه يې وکړل.

## نهم دلیل

**فرق په اعتبار داهتمام دجماعت کثیره:** دتهجدو په باره دنبی کریم ﷺ څخه دکثرة دجماعت اهتمام نه دی ثابت – او دتراویحو په باره کښ ثابت دی، پدې باره کښ لاندې دوه حدیثونه وګوری:

(۱) عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ: كَانَ النَّاسُ يُصَلُّونَ فِي مَسْجِدِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي رَمَضَانَ بِاللَّيْلِ أَوْزَاعًا... الخ

یعنې خلکو د رمضان په یو شپه کښ مختلف جماعتونه جوړ کړی وو، چاته به چې څو مره قرآن یاد وو نو دهغې امامتي به یې نو ورته ورکوله، دچا به پنځه مقتدیان وو، او دچا به شپږ مقتدیان وو، دچا په دې څخه ډیر وو، او دچا به کم وو، یوه شپه نبی صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ټولو ته امامتي ورکړه، قیام رمضان للمروزی ص ۱۵۳].

حضرت ابوذر غفاري ؓ فرمایلي چې مونږ د نبی ﷺ سره روژې نیولي نو نبي کریم ﷺ مونږ ته دتراویحو مونځ نه راکولو تردې چې اوه ۷ ورځې پاتې شوې نو په ۲۳ همدرانګه په ۲۵ باندې ئې مونږ ته مونځ راکړو او بیائې په ۲۷ باندې دخپل کورو الا راجمع کړل او خلک هم راجمع شول او نبی علیه السلام اوګد مونځ راکړو قیام رمضان للمروزی ص ۱۵۳].

## لسم دلیل

**فرق په اعتبار دټولې شپې دقیام:** دتهجدو په باره کښ دنبي کریم ﷺ څخه دټولی شپې قیام نه دی ثابت، حضرت عایشة رضی الله عنها فرمایې چې: لااعلم نبی الله ﷺ قام لیلة حتی الصباح غیر رمضان، [نسائی ج ص ] الله ﷻ دتهجدو په باره کښ فرمایې چې: إِنَّ رَبَّكَ يَعْلَمُ أَنَّكَ تَقُومُ أَدْنَىٰ مِن ثُلُثَيِ اللَّيْلِ وَنِصْفَهُ وَثُلُثَهُ وَطَائِفَةٌ مِّنَ الَّذِينَ مَعَكَ. او دتراویحو په باره کښ دټولې شپې قیام ثابت دی.

## یوولسم دلیل

**فرق په اعتبار دختم قرآن:** په تراویحو کښ دقرآن ختم دخلفا راشدینو سنت دی، او په تهجدو کښ دقرات مقدار نه دی معین الله ﷻ فرمایې چې فَاقْرَءُوْا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْاٰنِ.

## دولسم دلیل

**فرق په اعتبار دوقفې دخوب:** په احادیثو کې دتهجد او دوترو په مابین کې خوب ثابت دی، بخاری ج۱ ص۱۵۴ کتاب التهجد، او د تراویحو او دوترو په مابین کې خوب نه دی ثابت.

## دیارلسم دلیل

**فرق په اعتبار دتعین درکعتونو:** دتهجد د مونځ درکعتونو دتعداد تعین نه شته او دتراویحو تعداد معین دی.

## څوارلسم دلیل

**فرق په اعتبار دجماعت دوترو:** دتهجد وڅخه وروسته دوترو جماعت نه دی ثابت، او دتراویحو څخه وروسته دوترو مونځ په جماعت باندې اداکول دخلفاء راشدینو سنت دي.

## پنځلسم دلیل

**فرق په اعتبار دشعایروالي:** دتهجد مونځ داسلام په شعایرو کې نه دی او دتراویحو مونځ داسلام دشعایرو څخه دی. نیل الاوطار ج۲ ص۲۹۵/شرح ابوداود للعینی ج۵ ص۲۷۵ شرح سیوطی علی مسلم ج۲ ص۳۸۵ شرح نووی علی المسلم ج۳ ص۱۰۱ – ص۱۲۸ ص۱۲۳ مرقات ج٤ ص ۳۱٤ ص۳۱٦ والدیباج – ج۲ ص۳۸۵ واحیاء علوم الدین ج۱ ص۳۹۰].

## شپاړسم دلیل

**فرق په اعتبار دوقت الاداء:** دتهجد وخت دنیمې شپې څخه وروسته دی، حضرت عایشة رضی الله عنها فرمایې چې: کان رسول الله ﷺ ینام اوله ویقوم اخره، بخاری ج۱ ص۱٥٤].

په فتاوی علماء حدیث کې یې هم دتهجد ولپاره وخت دنیمې شپې څخه بعد لیکلې دی، فتاوی علماء حدیث ج۶ ص۳۳۱].

او دتراویحو وخت دماخوستن دمونځ پسې په اول دشپې کې دی لامذهبان په دې اقرار کوي، فتاوی علماء حدیث ج۶ ص۳۳۱ ص۲۲۹ ص۲۵۱].

## اولسم دليل

**فرق په اعتبـاردنومونو:** لکه دنورومونځونوپه نومونوکې چې فرق دی،اودا ددوي دجداوالي دليـل دی،نوهمدارنګـه دتراويحـو اودتهجـدودمونځونو نومونـه جداجـدا دي، يوتـه تـراويح اوبـل تـه تهجدوايي همدارنګه يوته قيام رمضان اوبل ته قيام الليل وايې

## اتلسم دليل

**فرق په اعتباردبـابونو:** محدثينو حضراتو دتهجدولپاره جدا اودتراويحولپاره جداباب لګولې دی، نوکه دادواړه يومونځ وی نوبياولی ورته محدثينويوباب نه لګولو ؟په لاندې جدول کې دهرکتاب جداجدا باب کتلې شي:

| شماره | د کتاب نوم | دتهجدو باب | د تراويحو باب |
|---|---|---|---|
| ۱ | صحيح بخاری | باب فضل قيام الليل ج۱ ص ۱۵۱ | باب فضل من قام رمضان ج۱ ص ۲۶۹ |
| ۲ | صحيح مسلم | باب صلوة الليل ج۱ص ۲۵۳ | باب الترغيب فی قيام رمضان وهوالتراويح ج۱ ص ۲۵۹ |
| ۳ | سنن ابی داود | باب فی صلوة الليل ج ۱ص۱۸۸ | باب قيام شهررمضان ج۱ ص۱۹۶ |
| ٤ | سنن ترمذی | باب فضل صلوة الليل ج ۱ص۹۸ | باب ماجاءفی قيام شهررمضان ج ۱ص۱٦٦ |
| ۵ | سنن نسائی | کتاب قيام الليل ج ۱ص۲۳۷ | ثواب من قام رمضان وصام الخ ج۱ ص۳۰۷ |
| ٦ | سنن ابن ماجه | باب ماجاءفی قيام الليل ص۹٤ | باب ماجاء فی قيام شهررمضان ص۹٤ |
| ۷ | موطاامام مالک | باب فی صلوة الليل ص ۹۹ | باب فی قيام رمضان ص۹۷ |
| ۸ | موطاامام محمد | باب صلوة الليل ص ۱۱۹ | باب فی قيام شهررمضان ص۱٤۱ |
| ۹ | مشکوة | باب صلوة الليل ج۱ ص۱۰۵ | باب قيام شهررمضان ج ۱ص۱۱٤ |
| ۱۰ | رياض الصالحين | باب قيام الليل ص ۳٦۲ | باب استحباب قيام رمضان وهوالتراويح ص ۳٦۷ |
| ۱۱ | صحيح ابن حبان | فصل فی قيام الليل ج ۵ص۱۱۲ | فصل فی التراويح ج ۵ص۱۰۷ |
| ۱۲ | مجمع الزوايد | باب فی صلوة الليل ج ۲ص۵۱۹ | باب قيام رمضان ج ۳ص٤۰۱ |
| ۱۳ | سنن کبری بهيقی | باب فی قيام الليل ج ۲ص٤۹۹ | باب فی قيام شهررمضان ج ۲ص٤۹۱ |
| ۱٤ | جمع الفوايد | صلوة الليل ج۱ ص۲۰۳ | قيام رمضان والتراويح ج ۱ص۲۰٦ |
| ۱۵ | قيام الليل للمروزی | قيام الليل ص ۲ الی ص ۱٤۹ | قيام رمضان ص ۱۵۰تاص۱۷۸ |

| ١٦ | بلوغ المرام | صلوة التطوع ص ۸۳ | قيام رمضان ص ۱۵۲ |
|---|---|---|---|

نو ددې ټولو محدثينو په اجماع باندې تراويح او تهجد دوه جدا جدا مونځونه دي.

## نولسم دليل

**فرق په اعتبار داشتراط دليدلو دمياشتې:** د رسول الله ﷺ په زمانه کې يو ځلې سپوږمۍ په نظر رانغله. (فَأَرَادُوْا أَنْ لَّا يَصُوْمُوْا وَلَا يَقُوْمُوْا): نو صحابه وو اراده وکړه چې روژه ونه نيسي او تراويح ادا نه کړی، ناڅاپه يو اعرابی راغلو او د سپوږمۍ دليدلو شاهدی يې وويلی نبي کريم ﷺ حضرت بلال ﷺ امر وکړو چې اعلان وکړه (ان يصوموا وان يقوموا) چې خلک روژه ونيسي او تراويح وکړي، دارقطنی ج۲ ص۱۵۹ نو معلومه شوه چې د رمضان د تراويحو لپاره د رمضان د سپوږمۍ ليدل شرط دي او د تهجد و لپاره د رمضان د سپوږمۍ ليدل شرط نه دي، بلکه هغه ټول کال اداکيږي

## شلم دليل

### فرق په اعتبار دجماعت فی المسجد

علامه سيد انور شاه الکشميری رحمه الله فرمايي چې د رسول الله ﷺ په زمانه کې د تهجد و او د تراويحو په مابين کې په اعتبار د وقت او د کيفيت سره فرق وو.

التراويح تكون بالجماعة فى المسجد بخلاف التهجد، تراويح په مسجد کې د جماعت سره کيدلی او تهجد داسې نه وو .وان الشروع فی التراويح يكون فی اول الليل وفی التهجد فی اخر الليل.

تراويح د شپې په اوله حصه کې شروع کيدلې او تهجد د شپې په اخری حصه کې اداکيدل، عرف الشذي ص ۱۶۶].

## يوويشتم دليل

**فرق په اعتبار دخوب:** تراويح د ماخوستن د مونځ پسې اداکيږي، او تهجد د خوب څخه د راپاڅيدلو څخه وروسته اداکيږي، حضرت عبد الله بن عباس ﷺ فرمايي چې (والتهجد بعد النوم) تفسير ابن عباس ص۱۸۱ يعنې تهجد د خوب څخه د راپاڅيدلو څخه وروسته اداکيږي.

## دوه ويشتم دليل

**قيام الليل اوقيام رمضان:**

دتهجد دوهم نوم قيام الليل دی، اودتراویحو دوهم نوم قيام رمضان دی، اودلامذهبو سرګروه نواب صديق حسن خان ليکي چي: قيام الليل او قيام رمضان دوه جدا جدا مونځونه دي.

و اما قيام الليل فهو غيرقيام رمضان: نـزل الابرار بـالعلم المـاثور من الادعيـة والاذكار ص٣٠٢]
يعني دقيام الليل (تهجد) اودقيام رمضان (تراويحو) په منځ کې فرق دی.

## درويشتم دليل

**فرق په اعتبار دخوف دفرضوالی:** په بخاري اوپه مسلم کې دحضرت عايشې رضی الله عنها او دحضرت زيد بن ثابت ﷺ حديثونه دي چې رسول الله ﷺ صحابه ووته درې شپې دتراويحو امامتي وركړه، اوپه څلورمه شپه جماعت ته رانه وتلو اووی فرمايل چې:

خشيت ان تفرض عليكم فتعجزوا عنها: زه پدې ويريدم چې په تاسو به فرض شي، اوتاسو به ددې دادا کولو څخه عاجز شئ نوپه تراويحو کې دفرضوالي ويره پاتې وه- اوپه تهجدو کې دفرضوالي ويره ختمه وه، دڅلورم دليل لاندې تيرشو چې تهجد په اول کې فرض وو بيا يې فرضيت منسوخ شونو دفرضوالي ويره يې پاتې نه شوه. نو رسول الله ﷺ چې په څلورمه شپه دکوم مونځ جماعت پريښود وهغه تراويح وی چې دفرضيت ويره پکې وه تهجد نه وو.

## څلورويشتم دليل

**فرق په اعتبار دحديث دمن قام:** په كوم حديث کې چې د (من قام) الفاظ دي ددې څخه تراويح مرادی دی، داحديث هيڅ محدث هم دتهجد وپه باب کې نه دی ذکر کړی که چيرته تراويح اوتهجد يومونځ وی نوکوم محدث خوبه داحديث دتهجد وپه باب کې ذکر کړی وی.

**فايده:** غيرمقلدين چې داتورکعتونو لپاره دتهجد وکوم حديث پيش کوي دهغې څخه هم يوخو فرقونه رامعلوميږي نواول دتهجد وحديث ولولئ او بيا پکې دتراويحو اودتهجد و فرقونه وګورئ.

عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ رضي الله عنهما، أَنَّهُ سَأَلَ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا: كَيْفَ كَانَتْ صَلَاةُ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي رَمَضَانَ؟ قَالَتْ: مَا كَانَ يَزِيدُ فِي رَمَضَانَ وَلَا فِي غَيْرِهِ عَلٰى إِحْدٰى عَشْرَةَ رَكْعَةً، يُصَلِّي أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ، فَلَا تَسْأَلْ عَنْ حُسْنِهِنَّ وَطُولِهِنَّ، ثُمَّ يُصَلِّي أَرْبَعًا، فَلَا تَسْأَلْ عَنْ حُسْنِهِنَّ وَطُولِهِنَّ، ثُمَّ يُصَلِّي ثَلَاثًا، فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! تَنَامُ قَبْلَ أَنْ تُوتِرَ؟ قَالَ: «تَنَامُ عَيْنِي وَلَا يَنَامُ قَلْبِي». (بخاری ج۱ ص۱۵۴ کتاب التهجد باب قیام النبی ﷺ بالليل في رمضان وغيره

ابو سلمه بن عبد الرحمن رضی الله عنه د حضرت عايشی رضی الله عنها څخه پوښتنه وکړه چې په رمضان کې د رسول الله ﷺ (د تهجدو) مونځ څرنګه وو؟ حضرت عايشې رضی الله عنها ورته وفرمايل چې: رسول الله ﷺ په رمضان او په غير رمضان کې د يوولسو رکعتونو څخه زيات (د تهجدو) مونځ نه دی کړی، څلور رکعته يې وکړل نو د حسن او د طول پوښتنه يې مه کوه (يعني ډير ښه او اوګده رکعتونه به يې وکړل) بيا به يې څلور رکعته وکړل نو د حسن او د طول پوښتنه يې مه کوه (يعني ډير ښه او اوګده به يې وکړل) بيا به يې درې رکعته وکړل، حضرت عايشة رضی الله عنها فرمايي چې ما پوښتنه وکړه چې يا رسول الله ﷺ ته د وترو څخه مخکې اوده کيږې؟ (بغير د نوی او دس څخه وترکوې) رسول الله ﷺ وفرمايل چې ای عايشې بيشکه چې زما سترګې اوده کيږي او زما زړه نه اوده کيږي، يعنې په خوب باندې زما اودس نه ماتيږي، له دې وجې نوې اودس ته ضرورت نه شته.

## پنځه ويشتم دليل

**فرق په اعتبار د رمضان او د غير رمضان:** تهجد په رمضان او غير رمضان يعني د ټول کال په دولسو مياشتو کې کيږي، او تراويح فقط په رمضان کې اداکيږي، نو يو عبادت چې دولس مياشتې کيږي دا څرنګه د هغه عبادت سره عين شو چې صرف يوه مياشت اداکيږي؟ لکه د اشراق مونځ چې ټول کال اداکيږي، دا به څرنګه د اختر د لمونځ سره عين شي چې صرف يوه ورځ اداکيږي.

## شپږ ويشتم دليل

**فرق په اعتبار د څلورو رکعتونو او دوو رکعتونو:** د حضرت عايشې رضی الله عنها په دې حديث کې د څلورو څلورو رکعتونو او د دريو رکعتو وترو ذکر دی او تراويح دوه دوه رکعته اداکيږي، د فقې حنبلي

په معتبر كتاب الروض المربع چې د سعودي په تعليمي نصاب کې داخل دی په ص۶۵ کې ليکي چې
.تفعل ركعتين ركعتين يعني د تراويحو مونځ دوه دوه رکعته اداکيږي.

## اوو ويشتم دليل

**دتراويحوڅخه وروسته د تهجدو ثبوت:** د رمضان په میاشت کې د تراويحو څخه وروسته د تهجدو اداکول د دې خبرې دليل دی چې تراويح او تهجد دوه جدا جدا مونځونه دي، ځکه چې يو فرض لمونځ او يا يو سنت مونځ دوه ځلې نه اداکيږي او د رمضان په مياشت کې د تراويحو څخه وروسته تهجد ثابت دي

**تفصيل:** په ظاهر کې د حضرت عايشې رضی الله عنها د دې مذکوره حديث او د لاندې احاديثو په مابين کې تعارض ښکاري (اذا دخل رمضان تغيرلونه وكثرت صلوته وابتهل فى الدعاء واشفق منه. شعب الايمان للبهيقى ج۳ ص۳۱۰ كنزالعمال حديث نمبر۱۸۰۶]. کله به چې د رمضان مياشت راغله د رسول الله ﷺ رنگ به بدل شو، مونځ به يې زيات شو په دعاکې به يې عاجزي زياته شوه، او په ويره کې به يې زيادت راغلو.

حضرت عايشة رضی الله عنها فرمايي چې: اذادخل رمضان شدمزره ثم لم يأت فراشه حتى ينسلخ. صحيح ابن خزيمه ج۳ ص۳٤۳ ،شعب الايمان للبهيقى ج۳ ص۳٤] کله به چې د رمضان مياشت راغله نو نبي كريم ﷺ به د همت ملا وتړله او د رمضان تر ختميدلو پورې به بسترې ته نه راتلو

همدا رنگه حضرت عايشه رضی الله عنها فرمايي چې: يجتهد فى العشر الاواخر مالا يجتهد فى غيره. مسلم ج۱ ص۳۷۲ په يو بل روايت کې راځي چې اذادخل العشر شدمئزره واحيى ليله وايقظ اهله بخارى ج۱ ص۳۷۱ مسلم ج۱ ص۳۷۲ ].

رسول الله ﷺ به په اخرى عشره کې په عبادت کې د نورو په نسبت زيات كوشش كولو، او چې کله به د رمضان د مياشت اخرى عشره راغله د همت ملا به يې وتړله، خپل اهل به يې هم راويښ کړو، او ټوله شپه به يې (په عبادت) ويښه تيروله، نو په دې احاديثو کې په اعتبار د عدد او په اعتبار د كيف سره ډير عبادت ذکر شوی دی، فتاوى عزيز يه ص۴۵۰ شاه عبدالعزيز، د لامذهبو سره گروه نواب صديق حسن خان ليکي چې د دې احاديثو څخه معلوميږي چې: ان عدده كان كثيراً. الانتقاد الرجيح ص۶۱ د رکعتونو تعداد به

یې، ډیرو و، او دحضرت عایشې رضی الله عنها په حدیث کې راغلی دی چې نبی ﷺ به د دري رکعته وترو سره صرف یوولس رکعته کول، نو موږ نږیې تعارض داسې دفعه کوو چې تهجد او تراویح دوه جدا جدا مونځونه دي، نو نبی کریم ﷺ به تول کال د حضرت عایشې رضی الله عنها د حدیث مطابق اته رکعته تهجد کول او په رمضان کې به یې د تراویحو د رکعتونو تعداد ور اضافه کړو، نو د حضرت عایشې رضی الله عنها په حدیث کې د تهجد و بیان دی او په دې نورو مذکورو احادیثو کې د تراویحو بیان دی.

## تائیدات

(۱) د حضرت عایشې رضی الله عنها د حدیث په باره کې علامه بیجوری رحمه الله فرمایي چې: د حضرت ابو سلمه رضی الله عنها د دې قول چې: کیف کانت صلوة رسول الله ﷺ فی رمضان) معنی داده چې: کیف کانت صلوة رسول الله ﷺ فی رمضان ای فی لیالیه وقت التهجد زیادة علی ماصلاه بعد العشاء من التراویح (المواهب اللدنیه ص ۱۴۳).

یعني حضرت ابو سلمه رضی الله عنها د هغې مونځ پوښتنه کړی ده کوم چې د تراویحو څخه وروسته د تهجد و په نوم باندې اداکیږي، نو دا حدیث دلیل شو چې د تراویحو څخه وروسته تهجد اداکیدل.

(۲) د مالابد منه په حاشیه کې شاه عبد العزیز رحمه الله فرمایي چې: وانچه مروی شدی ماکان یزید فی رمضان ولا فی غیره علی احدی عشرة رکعة) مراد از آن نماز تهجد است در رمضان وغیره برابر بود و آن را صلوة اللیل میگفتند اما تراویح غیر اینست که در عرف شان بقیام رمضان مسمی بود. مالابد منه ص ۷۸ حاشیه نمبر ۳

امام بخاری په ج ۱ ص ۱۵۴ کې د کتاب التهجد لاندې باب لګولې دی په نوم د باب قیام النبی باللیل فی رمضان وغیره او د دې باب لاندې ئې د حضرت عایشې رضی الله عنها دا مذکوره حدیث راوړی دی، او بیا یې د قیام لا رمضان لاندې بیا هم هم دا حدیث ذکر کړی دی، شراح فرمایي چې په دې کې دې خبرې ته اشاره کوي چې نبی ﷺ په رمضان کې په تراویحو باندې اکتفاء نه ده کړی، بلکه د تراویحو څخه وروسته یې د شپې په اخر کې تهجد هم اداکړي دي.

## اته ویشتم دلیل

**په غیررمضان کې دیارلس رکعته تهجد:** عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: «كَانَتْ صَلَاةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثَ عَشْرَةَ رَكْعَةً

یعنې باللیل بخاري ج ۱ ص ۱۵۳) عبدالله بن عباس ﷜ فرمائی چې د رسول الله ﷺ (د تهجدو) مونځ دیارلس رکعته وو، دا د غیر رمضان بیان دی، ځکه چې د عبدالله بن عباس ﷜ د دې دیارلسو رکعتو د مشاهدی تفصیل په یو بل حدیث کې داسې راغلی دی، چې عبدالله بن عباس ﷜ په دې شپه د خپلې ترور ام المؤمنین میمونی رضی الله عنها سره پاتې شو عبدالله بن عباس ﷜ فرمایې چې نبی ﷺ د میمونی رضی الله عنها سره په یو بالخت اوده شو، او زه هم د دې بالخت د سر طرفته اوده شوم نو بیا نبی ﷺ د شپې راپاڅیدلو او د دې ځای څخه یې پنځه ایتونه تلاوت کړل چې:

ان فی خلق السموات والارض الایه) بیایې داو دس څخه وروسته دیارلس رکعته مونځ وکړو. (ثم صلی ثلث عشرة رکعته من اللیل قیام اللیل ص۸۲ ص۸۳ نو دا د غیر رمضان بیان دی ځکه چې مخکې په احادیثو کې تیر شو چې نبی ﷺ په رمضان کې په بستره نه دی اوده شوی، او پدې حدیث کې یې د خوب ذکر راغلی دی، نو که تراویح او تهجد یو لمونځ شی او په رمضان کې دواړه د دې رکعته وترو سره یوولس رکعته شي، نو بیا خو د رمضان عبادة د غیر رمضان څخه کم شو، حالانکه مخکې ډیر احادیث مونږ ولیکل چې د نبی ﷺ د رمضان عبادت زیات وو، لدې وجې مونږ وایو چې د حضرت عایشې رضی الله عنها په دې حدیث کې د تراویحو څخه علاوه د تهجد و بیان دی.

## نهه ویشتم دلیل

**فرق په اعتبار د دوام بالتهجد:** د نبي کریم ﷺ دایمي عمل وو، نبی به د نیمې شپې څخه وروسته همیشه تهجد کول او د لا مذهبو دا عقیده ده چې نبی ﷺ د رمضان المبارک په مقدسه میاشت کې د نیمې شپې څخه وروسته تهجد نه دی کړي، بلکه د شپې په اوله حصه کې به یې تراویح کولی او همدا یې تهجد وو نو دا د دوام د احادثیو څخه مخالفت دی

حضرت عایشه رضی الله عنها فرمایې چې: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: «كَانَتْ صَلَاةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثَ عَشْرَةَ رَكْعَةً (صحیح مسلم ج۱ ص۲۶۶)

عَنْ عَلْقَمَةَ رحمه الله، قَالَ: سَأَلْتُ أُمَّ الْمُؤْمِنِينَ عَائِشَةَ رضي الله عنها، قَالَ: قُلْتُ: يَا أُمَّ الْمُؤْمِنِينَ كَيْفَ كَانَ عَمَلُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ هَلْ كَانَ يَخُصُّ شَيْئًا مِنَ الْأَيَّامِ؟ قَالَتْ: «لَا، كَانَ عَمَلُهُ دِيمَةً». (صحيح مسلم ج۱ ص۲٦٦).

همدارنګه حضرت عایشة رضی الله عنها فرمایي چې: (وَإِنَّ أَحَبَّ الْأَعْمَالِ إِلَى اللهِ مَا دُووِمَ عَلَيْهِ، وَإِنْ قَلَّ». وَكَانَ آلُ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا عَمِلُوا عَمَلًا أَثْبَتُوهُ (مسلم ج۱ ص۲٦٦ عن عایشة رضی الله عنها مرفوعًا ان احب الاعمال الی الله مادام وان قل، بخاری ج۲ ص۸۷۱ په مسلم ج۱ ص۲٥۲ او په قیام رمضان ص۱٥٤ کی د حضرت انس رضی الله عنه حدیث هم په همدې مضمون باندې مشتمل دی

## دیرشم دلیل

**دتراویحو څخه وروسته لمونځ:** حضرت انس رضی الله عنه فرمایي چې د رمضان المبارک په میاشت کې نبی کریم ﷺ لمونځ کولو زه د رسول الله ﷺ پسې ودریدلم بیا یو بل سړی هم راغلو وروسته یې بل هم راغلو، تردې چې یو جماعت جوړ شو، کله چې نبی کریم ﷺ محسوس کړه چې مونږ وروسته ولاړ یو نو نبی (داو ګډ مونځ په ځای) مونځ مختصر کړو- او بیا کورته لاړو (ثم صلی صلوة لم یصلها عندنا) او دومره مونځ یې وکړو چې زمونږ سره یې نه و وکړی، نو معلومیږي چې د صحابه وو سره یې تراویح اداکړی وی او بیا یې په کور کې تهجد اداکړل.

## یودیرشم دلیل

**درې شپې په جماعت باندې تراویح:** په ابوداود ترمذی، نسائی، او په ابن ماجه کې د ابوذر غفاری رضی الله عنه حدیث دی چې (په اخری عشره کې) نبی ﷺ درې ورځې صحابه وو ته په جماعت باندې تراویح اداکړی، په اوله شپه کې د شپې تر دریمې برخې پورې، په دوهمه شپه تر نیمې شپې پورې، او په دریمه شپه تر سحر پورې، نو مونږ د لامذهبو څخه پوښتنه کوو چې نبی کریم ﷺ د اولی شپې د تراویحو څخه وروسته د شپې په پاتې دوو ثلثو کې څه کول؟ او همدارنګه یې په دوهمه شپه د نیمې شپې پورې د تراویحو د کولو څخه وروسته په پاتې نیمه شپه کې څه کول؟ که وایې چې خوب یې کولو نو دهغو احادیثو سره یې تعارض راغلو چې په هغې کې د ټولې شپې د عبادت ذکر دی، لکه څرنګه

چې د ۲۷ دلیل لاندې تیرشو - او که وایې چې تهجد یې کول نو دا صریح فرق شو په مابین دتراویحو او دتهجد وکې، ځکه چې دتراویحو څخه وروسته تهجد اداشول.

**فانقيل:** چې په دریمه شپه کې خوترسحرپورې تراویح وشوی نوتهجد خو فوت شول.

**قلنا:** چې نبی کریم ﷺ تهجد نه پریښودل نو ظاهره داده چې نبی کریم ﷺ دنیمې شپې څخه په روستنیو رکعتونو کې دتراویحو او دتهجد دواړو نیت کولو - او چې نیتونه بدل شي نومونځونه دوه شي، لکه یوسړی چې اودس وکړي او بیا مسجد ته لاړ شي، او دوه رکعته مونځ وکړي او دوه نیتونه پکې وکړي، یو دتحیة المسجد او بل دتحیة الوضوء نو دا حکمًا دوه مونځونه شول او الله ﷻ پرې ددوو مونځونو ثواب ورکوي.

## دوه دیرشم دلیل

**حضرت عمر ﷺ د تراويحو څخه وروسته د تهجدو ترغیب ورکړی دی:** حضرت عمر ﷺ ابی بن کعب ﷺ دتراویحو لپاره امام مقرر کړو، نو دشپې په اوله حصه کې یې دماخوستن دمانځه څخه وروسته تراویح اداکړي نو حضرت عمر ﷺ دتراویحو څخه وروسته دتهجد وطرفته داسې ترغیب وفرمایلو چې: والتی تنامون عنها افضل من التی تقومون (صحیح البخاری ج۱ص۲۶۹) هغه (دتهجدو) مونځ چې تاسو ترینه اوده کیږئ دهغو (تراویحو) څخه بهتر دی چې تاسو یې قایموئ، نو دتراویحو څخه وروسته دتهجد وطرفته ترغیب دادتراویحو او دتهجد وپه مابین کې دفرق دلیل دی.

شیخ عبدالقادر جیلانی رحمه الله ددې په تایید کې فرمایې چې دتراویحو څخه وروسته دتهجد و په باره کې دوه قوله دي، یو دا چې دتراویحو څخه وروسته لږ خوب او بیا دخوب څخه وروسته تهجد بهتر دي، او دوهم دا چې دتراویحو څخه وروسته بغیر دخوبه تهجد بلاکراهته جایز دي، دشیخ عبدالقادر جیلانی رحمه الله الفاظ دادي چې: والرواية الثانية ان ذلک غير مكروهة لكنه يؤخره لماروى عن عمر ﷺ قال تدعون افضل الليل اخره الساعة التى تنامون احب الى من الساعة التى تقومون) غنية الطالبين بيروت ص۲۶۹ مصر ج۲ ص۱۷ او په شرح زاد المستقنع للشنقيطى ج ۳ص۱۰ کې داسې راغلي دي چې: فقيام التهجد افضل من قيام التراويح.

## درېِ دېرشم دلیل

**حضرت طلق بن علی ﷺ دتراویحو څخه وروسته تهجدکول:** عَنْ قَيْسِ بْنِ طَلْقٍ رضي الله عنه، قَالَ: زَارَنَا طَلْقُ بْنُ عَلِيٍّ رضي الله عنه فِي يَوْمٍ مِنْ رَمَضَانَ، وَأَمْسَى عِنْدَنَا، وَأَفْطَرَ، ثُمَّ قَامَ بِنَا اللَّيْلَةَ، وَأَوْتَرَ بِنَا، ثُمَّ انْحَدَرَ إِلَى مَسْجِدِهِ، فَصَلَّى بِأَصْحَابِهِ، حَتَّى إِذَا بَقِيَ الْوِتْرُ قَدَّمَ رَجُلًا، فَقَالَ: أَوْتِرْ بِأَصْحَابِكَ، فَإِنِّي سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «لَا وِتْرَانِ فِي لَيْلَةٍ (ابوداود ج۱ ص۲۰۳ باب فی نقض الوتر نسائی ج۱ ص۱۱۹].

یوورځ طلق بن علی ﷺ درمضان په میاشت کې دخپلې ځوی حضرت قیس کورته ورغلو - روژه ماتې یې وکړواودشپې یې مونږته دتراویحواودوتروامامتي راکړه، بیاخپل مسجدته لاړو اودخپلوملګروسره یې (دتهجدو)مونځ وکړو، کله چې وترپاتې شونویوبل سړی یې مخکې کړواووی فرمایل چې (مامخکې وترکړی وواودوهم ځلې وترکول نه شته ځکه چې ما دنبي کریمﷺ څخه اوریدلي دي چې فرمایل یې چې په یوه شپه کې دوه وتره نشته نوحضرت طلق بن علی ﷺ دشپې په اول کې تراویح اداکړي دي اوبیایې وروسته تهجد اداکړي وو.

## خلوردېرشم دلیل

**ټولوصحابه کرامورضی الله عنهم به دتراویحوڅخه وروسته تهجدکول:** لوی محدث اوفقیه ابن الحاج المالکی رحمه الله فرمایې چې: أَلَا تَرَى إِلَى مَا حَكَاهُ مَالِكٌ -رَحِمَهُ اللَّهُ- فِي مُوَطَّئِهِ أَنَّهُمْ كَانُوا إِذَا انْصَرَفُوا مِنْ صَلَاةِ التَّرَاوِيحِ اسْتَعْجَلُوا الْخَدَمَ بِالطَّعَامِ مَخَافَةَ الْفَجْرِ وَكَانُوا يَعْتَمِدُونَ عَلَى الْعِصِيِّ مِنْ طُولِ الْقِيَامِ فَقَدْ حَازُوا -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ- الْفَضِيلَتَيْنِ مَعًا قِيَامَ أَوَّلِ اللَّيْلِ وَآخِرِهِ فَعَلَى مِنْوَالِهِمْ فَانْسِجْ إِنْ كُنْتَ مُتَّبِعًا. إِنَّ الْمُحِبَّ لِمَنْ يُحِبُّ مُطِيعٌ وَهُمْ سَادَتُنَا وَقُدْوَتُنَا إِلَى رَبِّنَا فَيَنْبَغِي لَنَا الِاتِّبَاعُ لَهُمْ وَالِاقْتِفَاءُ لِآثَارِهِمْ الْمُبَارَكَةِ لَعَلَّ بَرَكَةَ ذَلِكَ تَعُودُ عَلَى الْمُتَّبِعِ لَهُمْ (کتاب المدخل ج۲ ص۲۹۹].

علامه محمدعبدری المالکی معروف په ابن الحاج فرمایې چې په موطاامام مالک کې یې لیکلي دي چې صحابه کراموړضی الله عنهم به چې تراویح اداکړی نودخپلوکورونوطرفته به لاړل اودصبا کیدلودویرې له وجې به یې خپلوخادمانوته په تیزۍ سره دپیشنمې دتیارولوحکم کولو اودډیر قیام له وجې به یې په امساګانوباندې تکیه ګانې کولې نوپه تحقیق سره صحابه کرامورضی الله عنهم دشپې په اول اوپه اخرکې (دتهجدواودتراویحو)دواړه فضیلتونه یوځای حاصل کړی وو.

نو که تابعداري کول غواړی نو ددوی رضی الله عنهم تابعداري وکړه، ځکه چې محب د محبوب تابعداروي، صحابه کرام رضی الله عنهم زمونږ او زمونږ د رب ﷺ په مابین کې زمونږ سرداران او پیشوایان دي له دې وجې مونږ ته مناسبه داده چې ددوي د مبارکو اثارو پیروي وکړو، کیدی شي چې ددې برکت متبع ته هم ورسیږي.

## پنځه دیرشم دلیل

**تابعینو رحمهم الله به دتراویحو څخه وروسته تهجد کول:** امام محمد بن نصر المروزی رحمه الله په خپل کتاب کې په ص ۱۷۷ کې باب لګولی دی په نوم د باب التعقیب وهو رجوع الناس الی المسجد بعد انصرافهم عنه یعني دتراویحو څخه وروسته بیا د تهجد ولپاره مسجد ته راتلل، بیا یې په دې کې دتابعینو دوه قوله ذکر کړي دي، یو دا چې دتهجد ولپاره دوباره مسجد ته راتلل مکروه دي بلکه په کور کې یې اداکول پکار دي، او دوهم دا چې دوباره دتهجد ولپاره مسجد ته راتلل جایز دي لکن په کور کې یې اداکول په جواز کې هیڅ اختلاف نه دی کړی، یو غیر مقلد عبد التواب ملتانی دقیام اللیل په حاشیه کې لیکي چې دحضرت انس ﷺ څخه په رمضان کې دتعقیب په باره کې پوښتنه وشوه، فامرهم ان یصلوافی البیوت وقال ابن الاثیر التعقیب هوان تعمل عملاً ثم تعودفیه واراد به الصلوة النافلة بعد التراویح فکره ان یصلوافی المسجدواحب ان یکون ذلک فی البیوت وهواسحق بن راهویه وسعیدبن جبیر.

ابن اثیر رحمه الله فرمایي چې دتعقیب معنی داده چې یو کار یو ځلې وکړی بیا ورته راو ګرزی دلته یې مراد (دتهجدو) نفلي ته مونځ دتراویحو څخه وروسته راګرزیدل مراددی، نو دایې په مسجد کې مکروه وګڼله او ښه داده چې دتراویحو څخه وروسته تهجد په کورونو کې اداکړل شي او دا داسحق بن راهویه او دسعید بن جبیر رایه ده.

## شپږ دیرشم دلیل

### شیخ عبدالقادر جیلانی رحمه الله او دتراویحو څخه وروسته تهجد:

دشیخ عبد القادر جیلانی رحمه الله قول او عبارت د ۳۲ دلیل په تشریح کې تیر شو چې ده به دتراویحو څخه وروسته تهجد کول او ددې ترغیب به یې ورکولو، غنیة الطالبین ص ۲۶۹

## اوودیرشم ۳۹-۳۸ دلیل

### امام مالک رحمه الله اوددوونورومحدثینو دتراویحوخخه وروسته تهجد:

ابن الحاج دالمدخل په ج۲ص۴۹۹ کې دامام مالک رحمه الله قول رانقلوي فرمايې چې: وَقَدْ قَالَ مَالِكٌ -رَحِمَهُ اللّٰهُ تَعَالٰى- أَمَّا أَنَا فَإِذَا أَوْتَرُوا خَرَجْتُ وَتَرَكْتُهُمْ فَلِلْإِنْسَانِ بِمَالِكٍ -رَحِمَهُ اللّٰهُ- أُسْوَةٌ فِي تَرْكِ الْوِتْرِ مَعَهُمْ حَتّٰى يُوتِرَ فِي بَيْتِهِ بَعْدَ تَنَفُّلِهِ آخِرَ اللَّيْلِ إِلَّا أَنْ يَكُونَ مِمَّنْ يَحْتَاجُ إِلَى النَّوْمِ إِذَا أَتٰى إِلٰى بَيْتِهِ، وَيَخَافُ أَنْ يَسْتَغْرِقَهُ إِلٰى طُلُوعِ الْفَجْرِ فَلَا يَغُرُّ وَيَتْرُكُ الْوِتْرَ بَعْدَ نَوْمِهِ وَلْيُوقِعْهُ قَبْلَهُ، فَإِنْ أَدْرَكَ مِنْ آخِرِ اللَّيْلِ شَيْئًا ... وَقَدْ كَانَ سَيِّدِي أَبُو مُحَمَّدٍ -رَحِمَهُ اللّٰهُ- يُصَلِّي فِي الْمَسْجِدِ مَعَ النَّاسِ صَلَاةَ الْقِيَامِ وَيُوتِرُ مَعَهُمْ فَإِذَا رَجَعَ إِلٰى بَيْتِهِ صَلّٰى مَا قُدِّرَ لَهُ وَلَا يُعِيدُ الْوِتْرَ، وَكَانَ -رَحِمَهُ اللّٰهُ- يَقُولُ: إِنَّ شَيْخَهُ سَيِّدِي الشَّيْخَ أَبَا الْحَسَنِ الزَّيَّاتَ -رَحِمَهُ اللّٰهُ- كَانَ يَفْعَلُ ذٰلِكَ.

امام مالک رحمه الله به چې تراویح وکړی نو وتر به یې پرېښودل، بیا به یې په کور کې دتهجد وخخه وروسته کول او فرمایل به ئې چې سیدی ابو محمد رحمه الله او شیخ ابو الحسن الزیات رحمه الله به دتراویحو څخه وروسته وترهم دخلکو سره په مسجد کې کول او بیا به یې تهجد په کور کې کول.

## څلویښتم دلیل

**امام بخاری رحمه الله به دتراویحوخخه وروسته تهجدکول:** کان محمدبن اسماعیل البخاری اذاکان اول لیلة من شهررمضان یجتمع الیه اصحابه فیصلی بهم ویقرافی کل رکعة عشرین اية وکذلک الی ان یختم القرءان وکان یقرافی السحرمابین النصف الی الثلث من القرءان فیختم عندالسحرفی کل ثلث لیال،هدی الساری مقدمة فتح الباری ص٦٦٦ ،تیسیرالباری ازغیرمقلدنواب وحیدالزمان ج١ ص٤٩ نصرة الباری ص١٢ مصنفه عبدالستارامام غرباءاهلحدیث.

درمضان په میاشت کې به امام بخاری رحمه الله ته ملګری راجمع شو، او دتراویحو په هر رکعت کې به یې ورته شل شل ایتونه لوستل، ترڅو به یې چې قرآن ختم کړو او په پشنمي کې به یې دتهجد و په مونځ کې دنیم څخه ترثلث پورې قرآن لوستلو او په هر دریم پیشنمي کې به ئې ختمولو.

## ۴۱ دلیل

**امام ابن اللبان رحمه الله به دتراویحوخخه وروسته تهجدکول:** امام ابو محمد عبد الله بن محمد اصبهانی المعروف بابن اللبان چې مشهور شافعي فقیه دی او دابو حامد الاسفراینی شاګرد دی ده

به اول خلکو ته د تراویحو امامتي ورکړه او چې کله به د تراویحو څخه فارغ شو نو بیا به یې په مسجد کې ترطلوع الفجر پورې تهجد کول، تاریخ بغداد ج ۱۰ ص ۱۴۳

## ۴۲ دلیل

**حسن بصری رحمه الله:** حسن بصري رحمه الله د تراویحو څخه وروسته د تهجد و ترغیب ورکړی دی قیام رمضان للمروزی ص ۱۶۶].

## ۴۳ دلیل

**دسعیدبن جبیررحمه الله عمل:** سعید بن جبیر رحمه الله به تراویح او تهجد دواړه شپږ ترویحې کولی ۲۰ ترواېح + ۴ تهجد قیام رمضان للمروزی ص ۱۵۸].

## ۴۴ دلیل

**مشهورتابعي عبدالرحمن بن الاسودرحمه الله:** ده به ټول څلویښت رکعته کول (۴ فرض ۲۰+تراویح ۱۶ نفل) مصنف ابن ابی شیبه ج ۲ ص ۲۸۵].

## ۴۵ دلیل

**دسعیدبن جبیررحمه الله دوهم عمل:** ورقاء فرمایي چې سعید بن جبیر رحمه الله به د رمضان په اولو شپو کې مونږ ته شپږ ترویحې مونځ راکولو (۲۰ تراویح ۴ تهجد یا ۴ فرض) او په اخری عشره کې به یې اووه ۷ ترویحې مونځ راکولو (۲۰ تراویح ۸ تهجد یا ٤ فرض او څلور تهجد) قیام رمضان للمروزی ص ۱۵۸).

## ۴۶ دلیل

**دالقاری ابوحلیمه التابعی رحمه الله عمل:** محمد بن سیرین فرمایي چې ابو حلیمه القاری به په رمضان کې خلکو ته یو څلویښت رکعته مونځ ورکولو (۲۰ تراویح ۱۸ تهجد او درې رکعته وتر)

## ۴۷ دلیل

**دصالح رحمه الله مولی تومه شهادت:** صالح رحمه الله مولی تومه فرمایي چې د حرې د جنګ څخه مخکې به خلکو ۴۱ رکعته کول. قیام رمضان للمروزی ص ۱۵۸].

## ۴۸ دلیل

**دعمـر بن عبدالعزیز رحمه الله عمـل:** عمر بن عبدالعزیز رحمه الله به پخپل ګنبد کی وراو خلکو به دده په موجودګی کې په پنځلسو سلامونو باندې قیام اللیل کولو. (۱۰سلامه دتراویحو، په۸ رکعته تهجدو کې ۴سلامونه، اویو سلام بعد الوتر).

## ۴۹ ۵۰-۵۱ - دلیل

**ددریو تابعینو عمل:** یونس رحمه الله فرمایي چې دابن الاشعث دفتنې څخه مخکې ما په جامع مسجد کې ولیدل چې خلکو دعبدالرحمن بن ابی بکر رحمه الله او دسعد بن ابی الحسین رحمه الله او دعمران العبدی رحمه الله په امامتی کې (۵)ترویحې (شل رکعته تراویح) اداکولی او په اخري عشره کې به یې یوه ترویحه پکې زیاته کړه نو ۶ترویحې به یې کولی. قیام رمضان للمروزی ص ۱۵۸].

## ۵۲ - دلیل

**دزُراره بن اوفی رحمه الله عمل:** زراره بن اوفی دمحلې خلکوته شپږ ترویحې اداکولې ( ۲۰تراویح ۴تهجد )او په اخری عشره کې به یې اوه ترویحې اداکولی .قیام رمضان للمروزی ص۱۵۹

## ۵۳- دلیل

**دبعضی تابعینو عمل:** علامه محمد انور شاه کمشیری رحمه الله فرمایي چې: نعم ثبت عن بعض التابعین الجمع بین التراویح والتهجد فی رمضان : العرف الشندی ص ۱۶۶/ دبعضی تابعینو څخه جمع په مابین دتراویحو او دتهجدو کې ثابته ده.

## ۵۴- دلیل

**دامام ابوحنیفة التابعی عمل:** وقال ابویوسف کان ابوحنیفة رحمه الله یختم کل یوم ولیلة ختمة وفی رمضان ویوم العیداثنین وستین ختمةً .الخیرات الحسان ص۸۵ عقود الجمان ص۳۱۳ – مناقب موفق ج۱ ص۲۳۵ مناقب کردی ج۱ ص۲۴۱ ص۲۴۴]. امام صاحب هر شب او روز کې یو ختم کولو لکن په رمضان او په عید کې به یې ۶۲ختمونه کول.

علی بن الصدائی فرمایي چې : رایت اباحنیفة رحمه الله ختم القران فی شهر رمضان ستین ختمةً ختمة باللیل وختمة بالنهار مناقب موفق قال شدادبن حکیم قلت لزفربن الهذیل انی سمعت

اباجعفرالرازی یذکران اباحنیفة کان یختم فی الشھرثلاثین مرة وفی شھررمضان ستین مرة قال صدق ابو جعفر.مناقب موفق ج۱ ص۲۴۳ مناقب کردی ج۱ ص ۲۴۵]. نوظاهره داده چې امام صاحب دتراويحو دختم څخه وروسته په تهجدوکې ختم کولو ځکه چې په غيررمضان کې يې په نوافلوکې قرآن ختمولونو په رمضان کې به يې په طريق اولی پکې ختمولو.

## ۵۵- دليل

**دحرمينو د امامانوعمل:** نن سبا په حرمينو کې شل رکعته تراويح اداکيږي،او په اخری عشره کې دشپې په اخره حصه کې تهجد اداکيږي.

## ۵۶دليل

**نبوی ﷺ سنت اوعمری ؓ سنت:** علامه شنقيطی رحمه الله دتراويحو داصل مشروعيت دعنوان لاندې ليکې چې : فکان اصل الجمع مستندًامن فعله عليه الصلوة والسلام لکن الوقت الذی اختاره من کونهابعدصلوة العشاءلم يکن من هدی النبی ﷺ وکانت الصفة من کونهافی اول الليلة من سنة عمرؓولذ لک لواعترض معترض علی فعل التراويح والتهجدفی اخررمضان اجيب بهذاالجواب وقيل له ان التراويح شرعت سنة عمرية ای انهاسنة وحصل الاجماع عليهاواماالتهجدفيکون بعدالهجودلان هدی النبی ﷺ فی تهجده انماکان بعداضطجاعه فسمی التهجدتهجداًلانه بعدالهجودوهواکمل ،وافصل واعظم مايکون لکونه بعدالراحة والاستجمام کمااشارالله الی ذلک حينماامربه نبيه فقال ومن الليل فتهجدبه نافلةً لک.الشرح الممتع شرح زادالمستقنع ج ۸ص۵۳].

يعنې دتراويحو دجماعت بنياد درسول الله ﷺ مسنون فعل دی، لکن ددې لپاره دماخوستن داول وخت ټاکل درسول الله ﷺ سنت نه دي، بلکه دحضرت عمر سنت دي، لهذا که څوک دماخوستن پسې متصل په تراويحو او درمضان په اخرکې په تهجدواعتراض وکړئ نوددې جواب دادی چې دتراويحو داطريقه دحضرت عمرسنت دي، په کوم چې دصحابه کرامو اجماع ده لکن تهجدبه دخوب څخه راپاڅيدلو څخه وروسته کوی ځکه چې دنبی کريم ﷺ دتهجدوهمدا طريقه وه همدارنګه تهجدوته دهمدې له وجهې تهجدوايې چې دخوب څخه دراپاڅيدلو څخه وروسته اداکيږي اودا اکمل اوافضل اواعظم طريقه ده ځکه چې داد ارام اودسکون قلبي سره اداکيږي.

## ۵۷- دلیل

**فرق دافضیلت اودمفضولیت:** تهجد افضل او تراویح مفضولی دی - بدایة المجتهد الباب الخامس فی قیام رمضان ج۱ ص۱۷۸

## ۵۸- دلیل

**وتر د تراویحو څخه وروسته بهتردی؟ او که دتهجدو څخه وروسته:** دالروض المربع ص۶۵ کې لیکي چي: ویوتر المتهجد بعده کوم سړی چې دتراویحو څخه وروسته تهجد کولی شي هغه دی وتر دتهجد و څخه وروسته اداکړي، همدارنګه په الفقه الاسلامی وادلته ج۲ ص۷۵ کې هم دی

## ۵۹- دلیل

**وتراویحو څخه وروسته خوب او بیاتهجدکول پکاردي:** دنقه مالکی په مشهور کتاب المدخل کې لیکي چي: ینبغی للمکلف انه اذاصلی المغرب یعجل فطره ثم یقوم فیصلی بحزبین ونصف اواکثر قبل العشاء ثم یخرج یصلی مع الناس القیام ویوتر معهم .. ثم ینام ماقدرله ثم یقوم لتهجده فیصلی ماتیسرله ممابقی علیه من اللیل : خلاصه دا چې: دتراویحو څخه وروسته خوب او بیاتهجد کول بهتردی المقنع ص۳۰۰].

## ۶۰- دلیل

**دبعضی لامذهبواعمال،لامذهبه نذیرحسن دهلوی:** نذیرحسن دهلوی دلامذهبیت باني دی اولامذهبان یې په لاندې القابو یادي ستایي - شیخ العرب والعجم ،شیخ الکل ،امام المتقین، سید المحدثین، تاج الفقهاء،علم العلماء،جامع العلوم العقلیة والنقلیة ،ناصرالسنة النبویة ،عمدة العاملین، حجة الله علی الخلق ،مجددالاقرآن ،الامام ،المحدث، الفقیه ،الاصولی وګوره دا القاب دغیرمقلد بدیع الدین راشدی په کتاب هدایة المستفید ج۱ ص۱۰۰] کې، دده په باره کې دده سوانح نګار غیرمقلد فضل حسین بهاری لیکي چې ده به دتراویحو څخه وروسته تهجد کول .الحیات بعدالممات ص ۱۳۸].

## ٦١- دليل

**لامذهبه ثناءالله امرتسري:** ثناءالله امرتسري ته لامذهبان شيخ الاسلام وايي دده څخه پوښتنه شوې ده چې کوم سړي چې تراويح وکړي هغه دشپې په اخرکې تهجد کولی شي اوکه نه؟ثناءالله ليکي چې کولې ئې شي ځکه چې دتهجدو وخت دشپې په اوله حصه کې نه دی، فتاوی ثنائيه ج۱ ص۶۸۲].

## ٦٢- دليل

**غير مقلد خواجه محمدقاسم:** دې ليکي چې اکثرخلک داپوښتنې کوي چې څوک دشپې په اوله حصه کې تراويح وکړي، اياداسړی دشپې په اخره حصه کې تهجدکولی شي؟ نوجواب دادی چې بالکل يې کولی شي حی علی الصلوة ص۳۹].

**محمد:** مولناصاحب ډيره مهرباني داخبره خودلمرپه شان وځليده چې تراويح اوتهجددوه جداجدا مونځونه دي،څوک چې داووه مونځونه يوګڼي، اوتراويحوته تهجدوايي يقيناچې هغه دتراويحوڅخه منکردی، دابدبخته غيرمقلدين خپله دتراويحواودتهجدودخيراودبرکت څخه محروم دي، اونوريې هم ډيرخلک ددې دخيراودبرکت څخه محروم کړي دي ،ځکه چې په غيررمضان کې چې دتهجدوکوم برکتونه دي هغه خوپه رمضان کې ختميږي نه بلکه په څوچندوزياتيږي -لکن داراته ووايې چې دغيرمقلدينوسره په دې عقيده کې تراويح او تهجد يومونځ دی کوم بل مسلمان شريک دي اوکه نه؟ همدارنګه غيرمقلدينوداعقيده دکوم ځای څخه را اخستې ده ؟

**محقق عالم:** پدې عقيده کې ددوي سره بل هيڅ يومسلمان نه دی شريک، بلکه کفاروسره پدې عقيده کې شريک دي، لکه قاديانيان ،عبدالله چکړالوي اوروافض اودوي داعقيده ددی کفاروڅخه را اخستې ده، دقاديانيانودفقې په کتاب فقه احمديه ص۲۸۰ کې يې ليکلې دي، چې تراويح اوتهجديومونځ دی ،اوپخوانی اهلحديث عبدالله چکړالوي منکرحديث دمرزاغلام احمدقادياني په تقليدکې پدې موضوع يوه رساله وليکله په نوم د(البيان الفصيح لاثباة کراهة التراويح) په دې رساله کې يې ټول زورپه دې لګولی دي چې تراويح اوتهجديومونځ دی.

همدارنګه روافض هم ددې څخه منکردي په منحة الخالق حاشية البحرالرايق کې فرمايې چې قال فی البرهان قداجمعت الامة علی شرعية التراويح ... ولم ينکراحدمن اهل القبلة الاالروافض.

**محمد**: مولنا صاحب ډيره مهرباني، زه اوس د اختلاف په حقيقت پوه شوم، او د اهل ست والجماعت په دلايلو هم مطمئن شوم، الله ﷻ دې تاسو ته جزاءخير در کړي، محمد رخصت شو پوهنتون ته لاړ او دخپلو دواړو غير مقلد واستاذانو مجلس ته ورغلو او دسلام څخه وروسته يې ورته عرض وکړ چې محترمو! زه يو څو پوښتنې لرم، لکن دا خواهش کوم چې په جواب کې راته داهلحديثو داصولو مطابق يا د قرآن ايت پيش کړئ او يا راته دنبي ﷺ صريح صحيح پيش کړئ چې په دې کې دهيڅ اُمتي د رايې لپاره دخل نه وي او نه پکې ستاسو د رايې لپاره گنجايش وي.

**غيرمقلدين استاذان**: بالکل ضرور پوښتنه وکړئ مونږ به ان شاءالله په جواب کې ضرور خالص د قرآن صريح ايت او دنبي کريم ﷺ صريح حديث پيش کوو، مونږ د ملايانو د تاويلو او ماويلو والانه يو.

**محمد**: په لاندې سوالونو باندې شروع وکړه:

(۱) لکه څرنگه چې په احاديثو کې د نورو مونځونو نومونه راغلي دي مثلاً د صبا د مونځ نوم فجر راغلى دى، د ماسپښين د مونځ نوم ظهر راغلى دى، د ماخوستن د مونځ نوم عشاء راغلى دى، همدا رنگه د څاښت د مونځ نوم اشراق راغلى دى، دنيمې شپې د مونځ نوم تهجد راغلى دى، داختر د مونځ نوم عيد راغلى دى او په مړي باندې د مونځ نوم جنازه راغلى ده؟ نو آيا د دوى په شان په کوم ايت او يا په کوم صحيح صريح مرفوع حديث کې د کوم يو مونځ نوم تراويح راغلى دى؟ په قرآن او يا په مرفوع حديث کې ماته د تراويح لفظ وښائى.

(۲) ايا په کوم ايت او يا په کوم حديث کې راغلي دي چې تراويح او تهجد يو مونځ دى؟

(۳) ايا په کوم ايت او يا په کوم حديث کې راغلي دي چې يوولس مياشتى ديو مونځ نوم تهجد دى او صرف يوه مياشت يې نوم تراويح دى؟

(۴) آيا په کوم ايت او يا په کوم حديث کې راغلى دى چې يوولس مياشتې تهجد د شپې په اخره حصه کې کوئ او صرف يوه مياشت يې د شپې په اوله حصه کې کوئ؟

(۵) په کوم ايت او يا په کوم حديث کې راغلى دي چې دا يو مونځ يوولس مياشتې يواځې اداکوئ صرف يوه مياشت يې په جماعت باندې اداکوئ؟

(۶) کله چې تراويح عين تهجد شو نو ايا د شپې په اخر کې بيا تهجد کول سنت دي او که بدعت؟ د دې حکم صراحةً په ايت او يا په حديث کې وښايې؟

(۷) په حرمینو کې په اخري عشره کې د شپې په اوله حصه کې تراویح اداکیږي، او د شپې په اخره حصه کې تهجد اداکیږي، ایا ددې ثبوت په کوم حدیث کې شته ، که حدیث وي پیش یې کړئ او که حدیث نه وي نو ایا د حرم د خلکو دا عمل د حدیثو څخه د مخالفت په وجه بدعت دی او که نه ؟

(۸) امام بخاری رحمه الله به اول تراویح اوبیا تهجد کول، نو دده دا عمل د سنتو سره مطابق دی او که مخالف؟ که مطابق وي نو د مطابقت لپاره یې حدیث پیش کړئ او که مخالف وي نو په خلاف یې حدیث پیش کړئ؟

(۹) که امام د تراویحو نیت کړی وي او مقتدي د تهجد و نیت کړی وي نو په کوم ایت او یا په کوم حدیث کې یې د مقتدي مونځ ته صحیح او یا فاسد ویلې دی؟

(۱۰) غیرمقلدین همیشه د اتو رکعاتو اشتهار شایع کوي ،نو ایا کله یې دا اشتهار هم شایع کړی دي چې اته رکعته تهجد د شپې په اول کې د ماخوستن د مونځ پسې متصل سنت دی ؟ همدارنګه د تراویحو او د تهجدو په مابین کې دهغو ۶۲ فرقو نو جواب هم راکړئ؟ غیرمقلدین استاذان لاجوابه شو، اخریې د مادي لالچ ګوره استعمال کړه، لکن الله ﷻ محمد ته استقامت په نصیب کړو او ورته ویل چې محترمینو تاسو د لالچ په وجه زما څخه منافق اهل حدیث جوړولی شئ لکن صحیح اهل حدیث یعنې محدث را څخه نه شئ جوړولئ د صحیح اهل حدیث والی لپاره ضروری ده چې زما دغی مذکورو سوالونو ته جواب ووائی؟

**غیرمقلدین استاذان:** بچیه ته یو ځلې د ملایانو خبرې پریده، د اهلحدیثو ددې محمدی جنډې لاندې راشه، د ملایانو د کتابونو په ځای قرآن او حدیث ته راشه بیا ټول کارونه سمیږي.

**محمد:** محترمینو خپه کیږئ مه، تاسو ته دې لامذهبو د اهلحدیثو منافقت مبارک وي او ما ته دې د اهل سنت والجماعت صداقت مبارک وي.

## ۶۳- دلیل

**دتهجدو اذان:** وکتوري اهلحدیث د تراویحو څخه وروسته د شپې په اخر کې تهجدو ته اذان کوي، نو چې تهجد د شپې په اول کې ادا شو نو د شپې په اخر کې د څه لپاره اذان کوي.

## ٦٤- دلیل

**وتر بالجماعـة:** د تراویحو څخه وروسته وتر بالجماعة ادا کول د خلفاء راشدینو سنت دي او د تهجدو څخه وروسته د وترو بالجماعة ادا کول نه دي ثابت.

## ٦٥- دلیل

تداعي: په تراویحو کې تداعي کیږي او په تهجدو کې تداعي نه ده جایزه.

## ٦٦- دلیل

د یو روایت څخه صریح فرق رامعلومیږي، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ مِرْدَاسٍ، ثنا أَبُو دَاوُدَ، ثنا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، ثنا حَمَّادٌ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، أَنَّهُمْ شَكُّوا فِي هِلَالِ رَمَضَانَ مَرَّةً فَأَرَادُوا أَنْ لَا يَصُومُوا وَلَا يَقُومُوا، فَجَاءَ أَعْرَابِيٌّ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْحَرَّةِ فَشَهِدَ أَنَّهُ رَأَى الْهِلَالَ فَأُتِيَ بِهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: «أَتَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَنِّي رَسُولُ اللَّهِ؟»، قَالَ: نَعَمْ وَشَهِدَ أَنَّهُ رَأَى الْهِلَالَ، فَأَمَرَ بِلَالًا فَنَادَى فِي النَّاسِ أَنْ يَقُومُوا وَأَنْ يَصُومُوا (سنن الدارقطني، کتاب الصيام)

د رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې یوه ورځ میاشت په نظر رانغله نو دوي نه قیام وکړو او نه صیام بیا ناڅاپه یو اعرابي د میاشت دلیدلو شاهدي وویله، نو د نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په حکم حضرت بلال اعلان وکړو چې روژه هم ونیسئ او قیام هم وکړئ، نو روژه او قیام دواړه د میاشت تر لیدلو پورې موقوف شو او تهجد د رمضان د میاشتې تر لیدلو پورې موقوف نه دي.

## ٦٧- دلیل

**کیفیة اداء الرکعات:** د تهجدو د رکعاتو کیفیت نذی متعین، دوه دوه رکعته هم اداکولی شي او څلور څلور رکعته هم اداکولی شي او د تراویحو د رکعاتو کیفیت دوه دوه رکعته دی.

## ٦٨- دلیل

**د غیر مقلدینو اقرارات:** ۱-په یو ځای کې د امین الله د لیکلو نه معلومیږي چې تراویح او تهجد جدا دي، چنانچې هغه لیکلي دي چې: بعضې خلک د ماخوستن تراویح اته رکعته وکړي بیا د شپې تهجد ناجایز ګڼي (الحق الصریح ج ۱ ص ۴۴۴)

۲- د وکتهوري اهلحديثو شيخ الکل نذير حسين دهلوي به يو ختم په تراويحو کې کولو او يو په تهجدو کې (الحياة بعد الممات، ص ۱۳۸)

۳- تراويح د غير مقلدينو په نيز نفلي عبادت دی (الحق الصريح ج ۵ ص ۴۰۶)

او تهجد دغير مقلدينو په نيز فرض وو (تفسير حواشي ص ۱۶۴۴)

۴- مشهور غير مقلد نواب صديق حسن خان ليکلي دي چې: واما قيام الليل فهو غير قيام رمضان (نز الابرار ص ۴۰۳)

۵- تراويحو او تهجدو ته ديو ويلو بنياد عبد الله چکړالوي ايښی وو، بيا غير مقلد ثناء الله امرتسريي پرې رد وکړو چې: په تراويحو او تهجدو کې فرق دی (اهلحديث کا مذهب ص ۹۶، رسائل ثنائيه ص ۸۸)

***

ددې ځغه مخکې دپلچرخي دزندان په دوهم بلاک کې بندي وم، لیکن صلیبي غلامانو دلازیات تعذیب، تحقیر او توهین لپاره دریم بلاک ته رانقل کړم. صرف په دې جرم چې په دوهم بلاک کې مې بندیانو ته دقران کریم تفسیر او دمشکوة شریف درس ورکولو.

(وَمَا نَقَمُوْا مِنْهُمْ اِلَّآ اَنْ يُّؤْمِنُوْا) الاية.

یو څو ورځې مخکې همدی صلیبي غلامانو را څخه په ډیر بې رحمۍ سره دیني کتابونه دقران په شمول باندې ټول کړل.

الله الغالب الله القاهر مذل کل جبار عنید قاهر الحق حیث کان وبه الحول والقوة ان کانت الاصیحة واحدة فاذاهم خمدون

## د دري رکعتو وترو ثبوت



کاتب: للسید الشیخ، مولوي هدایت الله همت بدو

بسم الله الرحمن الرحيم

نحمده ونصلي على رسوله الكريم.

أمابعد!

هرمسلمان پوهيږي چې دسهار دوه رکعته فرض مقرر دي، د ماسپښين څلور رکعته فرض مقرر دي، دمازيگر څلور رکعته فرض مقرر دي. دماښام درې رکعته فرض مقرر دي او دماخوستن څلور رکعته فرض مقرر دي او همدارنگه دسنت مؤکده رکعتونه هم مقرر دي، په دوي کې هيڅوک پخپله خوښه زياتى اوکمى نه شي کولى.

البته دنوافلو حساب داسې دى چې څومره په کې گوره اچوې دومره خوريږي څومره يې چې څوک اداکوي هغومره يې ثواب زياتيږي.

دوتر په باره کې په احاديثو کې يوڅه اختلاف شته، په بعضې احاديثو کې يې احکام دنفلو دي. يعنې لکه دنفلو په شان يې چې څومره غواړې کولى يې شئ دارنگ په بعضو احاديثو کې دنفلو په شان په سورلې باندې هم دوترو اجازه راغلې ده او په بعضو احاديثو کې يې احکام دواجبو دي.

مثلاً په بعضې احاديثو کې يې تعداد درکعتونو درې مقرر دى. په بعضې کې يې په سورلې باندې اداکول ناجائز دي. او په بعضې احاديثو کې راغلي دي چې قضاء يې ضروري ده، اوس په کتاب او دسنت کې هيڅ داسې ثبوت نه شته چې يولمونځ دي کله دنفلو په نيت اداءشي او کله دى دواجبو په نيت اداءشي او په احاديثو کې صراحة داسې هم نشته چې دوترو احکام په اول کې يو قسم وو او بيا وروسته بدل شوا و کله چې صراحةً دا احکام پيدا نه شوو نو دحضرت معاذ ﷺ دحديث مطابق په کې داجتهاد گنجائش پيدا شو مجتهد به يو طرف ته ترجيح ورکوي.

احناف وائي چې وتر په ابتداء کې نفل وو، او په تهجد وکې شامل وو، له همدې وجهې په بعضې رواياتو کې دوترو او دتهجد و بيان يوځاى شوى دى چې رسول الله ﷺ يوولس يا ديارلس رکعته

وترد (تهجد وسره) ذکر کړي دي، خوبیا و روسته وتر واجب وګرځیدل، دلته به مونږ په لنډه توګه هغه احادیث مبارک بیان کړو چې دهغوی په وجه وتر واجب ګرزیدلي دي.

## د وترو د مسئلي اجمال:

وترو په باره کې (۱۰) مسئلې دي: (۱) وتر واجب دي. (۲) وتر درې رکعته دي (۳) پوره کال درې رکعته دي. (۴) صرف په اخر کې سلام (یعني درې رکعته په یو سلام دي) (۵) دوه قعدې لري (۶) په هر رکعت کې یو سورة، یعني درې سورتونه لوستل کیږي. (۷) د دعا قنوت الفاظ (۸) د عاء قنوت قبل الرکوع دی (۹) رفع الیدین عند القنوت (۱۰) یو وضاحت

**اوله مسئله:** وتر واجب دي: د ابو ایوب انصاري رضی الله عنه په حدیث کې درسول الله ﷺ صریحي فرمان دادی چې وتر واجب دي رسول الله ﷺ فرمائي (الوترحق واجب علي کل مسلم) اخرجه احمد وابن حبان واصحاب السنن الا الترمذی واخرجه ابو داود الطیالسي موقوفاً، رقم الحدیث ۵۹۳،

دحضرت بریدة رضی الله عنه څخه روایت دی چې مادرسول الله ﷺ څخه واوریدل چې فرمایل یې. اَلْوِتْرُ حَقٌّ، فَمَنْ لَمْ یُوتِرْ فَلَیْسَ مِنَّا! اَلْوِتْرُ حَقٌّ، فَمَنْ لَمْ یُوتِرْ فَلَیْسَ مِنَّا! اَلْوِتْرُ حَقٌّ، فَمَنْ لَمْ یُوتِرْ فَلَیْسَ مِنَّا. (مشکوة باب الوتر، فصل ثالث)

یعنې وتر ثابت اولازم دي چاچې وتر ونکړل هغه زمونږ څخه نه دی، وتر ثابت اولازم دي چاچې وترونکړل هغه زمونږ څخه نه دی، وترثابت اولازم دی چاچې وترونکړل هغه زمونږ څخه نه دی. (حاکم اوذهبی ورته صحیح ویلي دي (ج ۱ ص ۳۰٦).

**دوهم مسئله:** وتر درې رکعته دي:

**دریمه مسئله:** پوره کال درې رکعته دي:

ددواړو مسئلو لپاره دلیل: حضرت عایشه رضی الله عنه فرمایي چې: مَاکَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ یَزِیْدُ فِی رَمَضَانَ وَلَافِی غَیْرِهٖ عَلٰی إِحْدٰی عَشْرَةَ رَکْعَةً یُصَلِّی أَرْبَعًا، فَلَاتَسَلْ عَنْ حُسْنِهِنَّ وَطُوْلِهِنَّ، ثُمَّ یُصَلِّی أَرْبَعًا، فَلَاتَسَلْ عَنْ حُسْنِهِنَّ وَطُوْلِهِنَّ، ثُمَّ یُصَلِّی ثَلَاثًا (صحیح البخاري ج ۵ صـ ۱۵٤، باب قیام النبی باللیل وصحیح مسلم ج ۱ صـ ۲۵٤) وعدد رکعات النبی صلی الله علیه وسلم) رسول الله صلی الله علیه وسلم به ټول کال د اتور رکعاتو تهجد و څخه وروسته درې رکعته وتر کول.

نو په دې حدیث کې درې رکعته راغلل او ټول کال درې رکعته شوي دي.

**څلورمه مسئله:** صرف په اخر کې سلام يعنې درې رکعته په يو سلام دي، امام حاکم اول په دوو سندونو باندې د حضرت سعيد بن ابی عروبه عن قتادة عن زرارة بن ابی اوفی عن سعد بن هشام عن عايشة رضی الله عنها څخه دا حديث رانقل کړی دی، **كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُوتِرُ بِثَلَاثٍ لَا يُسَلِّمُ إِلَّا فِي آخِرِهِنَّ.**

چې رسول الله ﷺ دوتر دا اولو درې رکعتونو څخه وروسته سلام نه دی ګرځولی اوليکلي يې دي چې دا حديث د بخاري او د مسلم په شرط صحيح دی. (مستدرک حاکم، ج ۱ ص ۳۰۴، کتاب الوتر)

**پنځمه مسئله:** دوه قعدې: ام المومنين حضرت عايشه صديقه رضی الله عنها فرمائي چې: (**كَانَ يَقُولُ فِي كُلِّ رَكْعَتَيْنِ التَّحِيَّةَ**). رسول الله ﷺ به فرمايل چې په هر دوو رکعتونو کې التحيات ده. (مسلم ج ۱ ص ۱۹۴) باب مايجمع صفة الصلوة ... الخ

**شپږمه مسئله:** په هر رکعت کې يو سورة: امام ترمذي رحمه الله د باب ما يقرأ فی الوتر، لاندې د عبدالعزيز بن جريج روايت رانقل کړی دی چې: **كَانَ يَقْرَأُ فِي الْأُولَى:** بِ {**سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى**}، **وَفِي الثَّانِيَةِ** بِ {**قُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُونَ**}، **وَفِي الثَّالِثَةِ** بِ {**قُلْ هُوَ اللّٰهُ أَحَدٌ**}، **وَالْمُعَوِّذَتَيْنِ.**

د حضرت ابن عباس رضی الله څخه روايت دی چې: **كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الْوِتْرِ:** بِ {**سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى**} وَ {**قُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُونَ**}، وَ {**قُلْ هُوَ اللّٰهُ أَحَدٌ**}، (نسائي، ترمذي، تقريباً).

د څوارلسو صحابه وو څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ په درې رکعته وتر و کې درې سورتونه لوستل. هغه څوارلس صحابه کرام (رضی الله عنهم) دادي: حضرت بی بی عايشه رضی الله عنها، حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ، حضرت عبدالله بن عباس ﷺ، حضرت عبدالرحمن بن عوف ﷺ، حضرت أُبَیْ بن کعب ﷺ، حضرت علی ﷺ، حضرت عبدالله بن ابی اوفی ﷺ، حضرت نعمان بن بشير ﷺ، حضرت ابوهريرة ﷺ، حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما حضرت عمران بن حصين ﷺ حضرت معاوية بن خديج ﷺ حضرت جابر ﷺ اوحضرت ابوامامه ﷺ (ابن عبدالبر فی الاستيعاب ج ٤ ص ٧١ | ترمذی ص ١٠٦ | نسائي ص ٢٥١ | ابن ماجه ص ۸۳ . دارقطنی، ج ۲ ص ۳۵۵ طحاوي، ج ۱ ص ۱۷۲ مستدرک حاکم ۲۰۵ وابوداود، ج ۱ ص ۲۰۸)

**اوومه مسئله:** د دعاء قنوت الفاظ: دلته دوه حديثونه واورئ!

اول: په یو روایت کښې راځي چې حضرت ابو عبد الرحمن فرمايي چې: حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه مونږ ته دا الفاظ راښودل: اللَّهُمَّ إِنَّا نَسْتَعِينُكَ وَنَسْتَغْفِرُكَ، وَنُثْنِي عَلَيْكَ الْخَيْرَ، وَلَا نَكْفُرُكَ وَنَخْلَعُ وَنَتْرُكُ مَنْ يَفْجُرُكَ، اللَّهُمَّ إِيَّاكَ نَعْبُدُ، وَلَكَ نُصَلِّي، وَنَسْجُدُ، وَإِلَيْكَ نَسْعَى وَنَحْفِدُ، وَنَرْجُو رَحْمَتَكَ، وَنَخْشَى عَذَابَكَ، إِنَّ عَذَابَكَ الْجِدَّ بِالْكُفَّارِ مُلْحِقٌ (مصنف ابن أبی شیبه، باب مایدعو به فی قنوت الفجر)

دوهم: د حضرت حسن څخه روایت دی چې هغه به په قنوت کښې دا الفاظ لوستل: اللَّهُمَّ إِنَّا نَسْتَعِينُكَ وَنَسْتَغْفِرُكَ، وَنُثْنِي عَلَيْكَ الْخَيْرَ، وَلَا نَكْفُرُكَ وَنُؤْمِنُ بِكَ وَنَخْلَعُ وَنَتْرُكُ مَنْ يَفْجُرُكَ، اللَّهُمَّ إِيَّاكَ نَعْبُدُ، وَلَكَ نُصَلِّي، وَنَسْجُدُ، وَإِلَيْكَ نَسْعَى وَنَحْفِدُ، نَرْجُو رَحْمَتَكَ، وَنَخْشَى عَذَابَكَ الْجِدَّ، إِنَّ عَذَابَكَ الْجِدَّ بِالْكُفَّارِ مُلْحِقٌ (مصنف عبدالرزاق)

علماء کرامو دا دواړه جمع کړي دي او مشترک الفاظ يې دا ښودلي دي چې: اللّٰهُمَّ انا نستعینک ونستغفرک ونؤمن بک ونتوکل علیک ونثنی علیک الخیر ونشرک ولانکفرک ونخلع ونترک من یفجرک، اللّٰهُمَّ ایاک نعبد ولک نصلی ونسجد والیک نسعی ونحفد، ونرجوا رحمتک ونخشی عذابک ان عذابک بالکفار ملحق.

علامه سیوطي په الاتقان کښې په النوع السابع والاربعین من الجزء الثاني کښې فرمايي چې: دا دقران دوه سورتونه وو، سورة الخلع او سورة الحفد، اوس يې تلاوت منسوخ شوی دی: و أمر بهما انس بن مالک حین سئل عن القنوت فی الوتر (کذا فی معارف السنن ج ٤صـ ٢٤٤).

**اتمه مسئله:** دعاء قنوت به په دریم رکعت کښې د رکوع څخه مخکښې لولئ، په دریم رکعت کښې اول سورة فاتحه ده بیا سورة دی، بیا د الله اکبر سره رفع الیدین، بیا قنوت او بیا رکوع ده، وَعَنْ عَاصِمٍ الْأَحْوَلِ رضی الله عنه قَالَ: سَأَلْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ رضی الله عنه عَنِ الْقُنُوتِ فِي الصَّلَاةِ كَانَ قَبْلَ الرُّكُوعِ أَوْ بَعْدَهُ؟ قَالَ: قَبْلَهُ (مشکوة باب الوتر، الفصل الاول)

همدارنګه د حضرت أبی بن کعب رضی الله عنه څخه روایت دی چې: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «كَانَ يُوتِرُ فَيَقْنُتُ قَبْلَ الرُّكُوعِ» (ابن ماجه، باب ماجاء فی القنوت قبل الرکوع، وبعده صـ ٧٣، والنسائی، باب کیف الوتر بثلاث)

د اکثرو صحابه کرامو رضی الله عنهم عمل همدا وو چې دعاء قنوت به یې قبل الرکوع لوستله (التعلیق الصبیح ج ۲ص ۱۰۲)

په کومو روایاتو کې چې قنوت بعد الرکوع راغلي دي هغه د قنوت نازله په باره کې دی.

**نهمه مسئله:** رفع الیدین عند القنوت سنت دی: عَنْ الْأَسْوَدِ رحمه الله، عَنْ عَبْدِ اللهِ رضي الله عنه، أَنَّهُ كَانَ يَقْرأُ فِي آخِرِ رَكْعَةٍ مِنَ الْوِتْرِ قُلْ هُوَ اللهُ أَحَدٌ ثُمَّ يَرْفَعُ يَدَيْهِ وَيَقْنُتُ قَبْلَ الرَّكْعَةِ. (رواه البخاری فی جزء رفع الیدین واسناده صحیح، ( اثار السنن ص :۱۷٤) باب رفع الیدین عند القنوت.

حضرت اسود دعبد الله بن مسعود رضي الله عنه څخه روایت کوي چې هغه رضي الله عنه به دوترو په اخر رکعت کې قل هو الله احد ولوستلو، بیا به یې لاسونه اوچت کړل، بیا به یې د رکوع څخه مخکې دعاء قنوت ولوستله.

(۲) عَنْ إِبْرَاهِيمَ النَّخَعِيِّ رحمه الله قَالَ: "تُرْفَعُ الْأَيْدِي فِي سَبْعِ مَوَاطِنَ: فِي افْتِتَاحِ الصَّلَاةِ، وَفِي التَّكْبِيرِ لِلْقُنُوتِ فِي الْوِتْرِ، وَفِي الْعِيدَيْنِ، وَعِنْدَ اسْتِلَامِ الْحَجَرِ، وَعَلَى الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ، وَبِجَمْعٍ وَعَرَفَاتٍ، وَعِنْدَ الْمَقَامَيْنِ عِنْدَ الْجَمْرَتَيْنِ.
(رواه الطحاوی واسناده صحیح، اثار السنن ص : ۱۷٤)

ابراهیم نخعی رحمه الله فرمایي چې رفع الیدین په اوو ځایونو کې دی، چې دهغوي څخه یو دوترو په لمونځ کې د دعاء قنوت لپاره دی

**لسمه مسئله:** قنوت په درې قسمه دی:

۱- قنوت نازله چې د مصیبت په وخت کې جایز دی.

۲- قنوت فی الفجر بدون النازلة، نه سنت دی او نه مستحب، په مشکوة باب الوتر، دفصل ثاني اخیرنی حدیث دی، وَعَنْ أَبِي مَالِكٍ الْأَشْجَعِيِّ رحمه الله قَالَ: قُلْتُ لِأَبِي: يَا أَبَتِ إِنَّكَ قَدْ صَلَّيْتَ خَلْفَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبِي بَكْرٍ وَعُمَرَ وَعُثْمَانَ وَعَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ تَعَالَى عَنْهُمْ هٰهُنَا بِالْكُوفَةِ نَحْوًا مِنْ خَمْسِ سِنِينَ أَكَانُوا يَقْنُتُونَ؟ قَالَ: أَيْ بُنَيَّ مُحْدَثٌ.

۳- قنوت فی الوتر.

## د وترو د مسئلې تفصيل

### وتر واجب دي:

امام ابو حنيفة رحمه الله ،يوسف بن خالد السمتي رحمه الله،امام ضحاک رحمه الله، امام مجاهد رحمه الله سعيد بن المسيب رحمه الله ابو عبيدة بن عبد الله بن مسعود رضى الله عنه ،امام سيحون او په صحابه وو کې عبد الله بن مسعود رضى الله عنه ، حضرت حذيفه رضى الله عنه وغيره فرمايي چې وتر واجب دي ،أيمه ثلاثه او صاحبين ورته صراحةً سنت مؤكد وايي ، لكن ډيرې علامې د وجوب پکې مني، مثلا :۱- دټولو امامانو په نيز د وتر و قضاء واجبه ده۲- امام مالک رحمه الله فرمايي چې من تركه ادب وكنت جرحة فى شهادته(عمدة القاري،كتاب الوتر ،باب ليجعل أخر صلوته وترا) امام احمد رحمه الله فرمايي چې: من ترک الوتر عمدا فهو رجل سوء ولا ينبغى أن تقبل شهادته (مغنى ابن قدامه حكم صلوة الوتر ووقتها) امام شافعي رحمه الله دسهار د سنتو او دوترو په باره کې فرمايي چې: لا ارخص لمسلم فى ترک واحدة منهما وان لم اوجبهما ،(كتاب الأم، باب فى الوتر)

### دلايل وجوب الوتر

**اول دليل: رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې** : إِنَّ اللّٰهَ قَدْ أَمَدَّكُمْ بِصَلَاةٍ هِيَ خَيْرٌ لَكُمْ مِنْ حُمْرِ النَّعَمِ، وَهِيَ الْوِتْرُ، فَجَعَلَهَا لَكُمْ فِيمَا بَيْنَ صَلَاةِ الْعِشَاءِ إِلَى صَلَاةِ الْفَجْرِ. (مستدرک حاکم ج ۱ص ۳۰۶). حاکم او ذهبی ورته په شرط د شيخينو صحيح ويلي دي .(ترمذي باب ماجاء فى فضل الوتر)

يعنې الله ﷻ تاسو ته يو زائد لمونځ عطاء کړی دی کوم چې تاسو ته دسرو اوښانو څخه غوره دی او هغه دوترو لمونځ دی، چې د ماخوستن او دسهار د لمونځونو په مينځ کې اداء کيږي .

پورتني حديث مبارک لاندې صحابه کرامو رضي الله عنهم له حضرت رسول اکرم ﷺ څخه روايت کړی دی:

(۱) حضرت خارجه بن حذافه رضي الله عنه په (حاکم کې) .

(۲) حضرت ابو سعيد خدری رضي الله عنه په (طبراني کې) .

(۳) حضرت عمرو رضي الله عنه بن العاص رضي الله عنه.

(۴) حضرت عبد الله بن عباس رضي الله عنه په (دار قطنی) کې .

(۵) حضرت عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده رضي الله عنه په (دار قطنی) کې.

(٦) حضرت عقبه بن عامر رضي الله عنه په (طبرانی) کې.

(٧) حضرت عبدالله بن ابی اوفی رضي الله عنه په (خلافات بیهقی) کې.

(٨) حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه په (دارقطنی فی غرایب مالک) کې

له دی وجې قاضی ابوزید فرمائی چې :وهوحدیث مشهور. یعنې دا حدیث مشهور دی. (عمدة القاری، شرح صحیح البخاری ج ۳ص ۴۱۳). ددې مشهور حدیث څخه دوترو وجوب په څلورو طریقو سره ثابتیږي، (۱) زائد دمزید علیه دجنس څخه وي، مثلاً خلک وائي چې په دی مدرسه کې یو استاذ زیات شو، نو هغه به په استاذانو کې شمارلی شي، یا یو څوک ووائي چې په دې بندي خانه کې یو کس زیات شو نو هغه به بندي شمارلی شي.

همدارنګه چې وتر په فرضي لمونځونو کې ورزیات شو نو دائي د فرض کیدلو دلیل دی، لیکن چونکه ددې ثبوت د فرضو په شان متواتر نه دی له دی وجهې دیته واجب ویلی شي.

(۲) همدارنګه پدې حدیث کې د وترو د وقت تعین شوی دی او د دومره اهمیت سره د وقت تعین د واجباتو لپاره وي.

(۳) همدارنګه پدې حدیث کې د اضافه والي نسبت الله تعالی ته شوی دی، نو که وتر سنت وی پکار دی چې نسبت یې نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته شوی وی، لکه د تراویحو په باره کې چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمایي چې: سننت لکم قیامه.

(۴) همدارنګه زیادة پداسې شي کې متصور وي چې حد ورته مقرر وي او حدود په واجباتو کې متعین وی، د نوافلو حد متعین نه دی.

دوهم دلیل: د ابو ایوب انصاري رضی الله عنه په حدیث کې خپله د رسول الله ﷺ صریحي فرمان هم دادی چې وتر واجب دي رسول الله ﷺ فرمائي (الوترحق واجب علي کل مسلم) اخرجه احمد وابن حبان واصحاب السنن الا الترمذی واخرجه ابو داود الطیالسي موقوفاً، رقم الحدیث ۵۹۳،

یعنې وتر لازم او واجب دي په هر مسلمان باندې.

دریم دلیل: په مشکوة باب الوتر فصل ثاني کې د ابو ایوب انصاري رضی الله عنه حدیث دی چې: (الوتر حق علی کل مسلم) امیر یماني په سبل السلام کې لیکي چې: هو دلیل لمن قال بوجوب الوتر (سبل السلام ج ۲صـ، باب التطوع) بعضې خلکو اعتراض کړی دی چې دا حدیث موقوف دی نو امیر یماني جواب ورکوي چې: قلت وله حکم الرفع اذا لا مسرح للاجتهاد فیه ای فی المقادیر

والحديث دليل على ايجاب الوتر ويدل عليه ايضاً حديث ابى هريرة عند أحمد، من لم يوتر فليس منا (سبل السلام ج ۲ صـ ۸، باب صلوة التطوع)

څلورم دليل: دحضرت بريدة ﷺ څخه روايت دى چې مادرسول الله ﷺ څخه واوريدل چې فرمايل يې. «اَلْوِتْرُ حَقٌّ، فَمَنْ لَمْ يُوتِرْ فَلَيْسَ مِنَّا! اَلْوِتْرُ حَقٌّ، فَمَنْ لَمْ يُوتِرْ فَلَيْسَ مِنَّا! اَلْوِتْرُ حَقٌّ، فَمَنْ لَمْ يُوتِرْ فَلَيْسَ مِنَّا» .(مشكوة باب الوتر، فصل ثالث)

يعنې و ترثابت اولازم دي چاچې وترونکړل هغه زمونږڅخه نه دى، وترثابت اولازم دي چاچې وترونکړل هغه زمونږڅخه نه دى، وترثابت اولازم دى چاچې وترونکړل هغه زمونږڅخه نه دى .( حاكم اوذهبى ورته صحيح ويلي دي (ج ۱ ص ۳۰۶ ) .

ددې حديث راوى عبيد الله العتكى ته ابن معين ثقه ويلى دى ،ابن عدى ورته لاباس به ويلى دى، اوابوحاتم ورته صالح الحديث ويلي دي ،وانكرعلى البخارى لذكره اياه في الضعفاء ،قال الحاكم هذاحديث صحيح وعبيدالله ثقة ،ورواه وسكت عنه وهذايدل علي صحته عنده ،وقال العيني هذاحديث صحيح . (التعليق الحسن ص ۱۶۰ باب ماستدل به علي وجوب الوتر).

(۵) عن عبدالله بن عمر ﷺ عن النبي ﷺ قال اجعلواخرصلوتكم بالليل وترا،بخاري ج ۱ ص ۱۳۶ ) ومسلم ج ۱ ص ۲۵۷ ) .

عبدالله بن عمر ﷺ درسول الله ﷺ څخه روايت كوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي ،چې وګرزوئ وتراخيرنى لمونځ دشپې ،اودفرضي لمونځونواخيرنې لمونځ هم فرض وي، لكن چونكه ددې ثبوت دفرضو په شان متواترندى له دې وجهې ورته واجب ويلى شي .

(۶) عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «بَادِرُوا الصُّبْحَ بِالْوِتْرِ». (مسلم ج ۱ ص ۲۵۷)

رسول الله ﷺ فرمائي چې دسهار څخه مخكې وتروكړئ . والامر للوجوب.

(۷) عَنْ أَبِي سَعِيدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «أَوْتِرُوا قَبْلَ أَنْ تُصْبِحُوا» (مسلم ج ۱ ص ۲۵۷)

رسول الله ﷺ فرمائي چې وتردسهار دلمانځه څخه مخكې وكړئ. والاَمر للوجوب.

(٨) عَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ خَافَ أَنْ لَا يَقُومَ مِنْ آخِرِ اللَّيْلِ فَلْيُوتِرْ أَوَّلَهُ، وَمَنْ طَمِعَ أَنْ يَقُومَ آخِرَهُ فَلْيُوتِرْ آخِرَ اللَّيْلِ، فَإِنَّ صَلَاةَ آخِرِ اللَّيْلِ مَشْهُودَةٌ، وَذٰلِكَ أَفْضَلُ» (مسلم ج ١ص ٢٥٨) په حديث کې دوه د امر صيغې دي، والأمر للوجوب.

حضرت جابر﷛ فرمائي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې څوک چې ويريږي چې دشپې په اخرکې به پانځيږم نوهغه دې دشپې په اوله حصې کې وتروکړي اوڅوک چې دشپې په اخرکې دپاڅيدلو ،يدلري نوهغه دې دشپې په اخرکې وتر وکړي ځکه چې دشپې اخري حصه دملايکو د حاضريدلو وخت دی اودابهتره ده.

(٩) د زيد بن اسلم رضی الله عنه څخه روايت دی چې: من نام عن وتره فليصل اذا اصبح، مشکوة، باب الوتر، فصل ثاني، همدارنګه: عَنْ أَبِي سَعِيدٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ نَامَ عَنْ وِتْرِهِ أَوْ نَسِيَهُ، فَلْيُصَلِّهِ إِذَا أَصْبَحَ أَوْ ذَكَرَهُ. (مستدرک ج/١ ص ٣٠٢ ،دارقطني ج ٢ص ٢٢، مشکوة ج ١، باب الوتر، فصل ثالث) په دارقطني کې د عبدالله بن عمر رضی الله عنه روايت دی چې: من فاته الوتر من الليل فيلقضه من الغد، (دارقطني، باب من نام عن وتر او نسيه)

پدې احاديثو کې ذکر شو چې دچاڅخه چې په خوب اويا په هيره وترقضاء شول نوسهار چې کله وربه يادشونوقضائي دې يې راوړي. او وجوب القضاء فرع د وجوب الاداء ده.

(١٠) عَنْ مُجَاهِدٍ رحمة الله عليه، قَالَ: «هُوَ وَاجِبٌ وَلَمْ يُكْتَبْ. (مصنف ابن ابي شيبه ج ٢ص ١٩٧)

(١١) د حضرت علی رضی الله عنه په روايت کی راځي چی (اوترو يا اهل القرآن، (مشکوة، باب الوتر، الفصل الثانی) او امر د وجوب لپاره دی.

(١٢) نبي کريم صلی الله عليه وسلم په وترو مواظبت من غير ترک کړی دی او مواظبت من غير ترک د وجوب دليل دی.

(١٣) حضرت عبدالله بن مسعود﷛ فرمائي: الوترواجب على كل مسلم. وترواجب دي په هرمسلمان باندې (رواه البزار) ظاهره ده چې کله واجب شونو دنفلوالي ټول احکام يې منسوخ شو، نو

اوس يې د ركعتونو تعداد د چا خوښي ته پاتې نه شوا ونه يې په ناسته باندې اداكول جايز شوا ونه يې په سورلۍ باندې كول جائز شو.

فانقيل: چې د ضمام بن ثعلبة رضی الله عنه په واقعه كې راځي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل چې: خمس صلوة فى اليوم والليلة؟ امام شافعي رحمه الله فرمايي چې: ففرائض الصلوة خمسٌ وما سواها تتطوعٌ؟

قلنا (۱) ممكنه ده چې دا حديث نبي ﷺ د وترو د وجوب څخه مخكې فرمايلى وى لهذا ددې حديث څخه په عدم د وجوب د وترو باندې استدلال نه دى صحيح، له دې وجې غير مقلد شوكاني ليكي چې: و فى جعل هذ الحديث دليلاً على عدم وجوب ماذكر نظر عندى، لان ما وقع فى مبادى التعليم لايصح التعلق به فى صرف ما ورد بعده، والا لزم قصر واجبات الشريعة بأسرها على الخمس المذكورة وانه خرق للاجماع (نيل الاوطار، كتاب الصلوة، باب افتراضها ومتى كان؟ ج ۱ص ۳۳۶)

(۲) دا هم مكنه ده چې په دې حديث كې د وترو ذكر له دې وجې څخه نه وي شوى چې وتر تابع د عشاء دي، لهذا مستقل وقت نه لري بلكې د عشاء وقت د وترو وقت دى، اذان او اقامت هم نه لري بلكې د عشاء اذان او اقامت ورته كافي دى.

(۳) دا حديث د وجوب د وترو سره خلاف نه دى ځكه چې دلته پنځه فرائض ذكر شوي دي او احناف وترو ته فرض نه بلكې واجب ورته وايي او د فرضو او د واجبو په مابين كې غټ فرق دى.

**حكايت:**

امام محمد بن نصر المرزوي رحمه الله په قيام الليل كې يو حكايت رانقل كړى دى چې يو سړي د امام صاحب رحمه الله څخه پوښتنه وكړه چې په يوه شپه او ورځ كې څو لمونځونه فرض دي؟ امام صاحب رحمه الله ورته وفرمايل چې پنځه لمونځونه فرض دي، بيا يې پوښتنه وكړه چې د وترو څه حكم دى؟ امام صاحب رحمه الله ورته وفرمايل: چې (عملاً) فرض دي، بيا يې پوښتنه وكړه چې فرض لمونځونه څوشو؟ امام صاحب رحمه الله ورته وفرمايل: چې پنځه، هغه سړي ورته وفرمايل چې ته يې راته وشماره امام صاحب رحمه الله ورته وفرمايل چې: فجر، ظهر، عصر، مغرب، او عشاء، بيا يې پوښتنه وكړه چې وتر فرض دي او كه سنت؟ امام صاحب رحمه الله ورته وفرمايل چې (عملاً) فرض دي، بيا يې پوښتنه وكړه چې څو لمونځونه فرض

شو؟ امام صاحب ورته وفرمایل چې پنځه، هغه سړی اخر عاجزه شوه،امام صاحب ته یې وفرمایل چې: انت لاتحسن الحساب (فتح الملهم، کتاب الایمان، باب بیان الصلوة اللتی هی احد ارکان الاسلام ج۱صـ ۵۰۰)دامام صاحب مقصد دا وو چې اعتقاداً فرض لمونځونه پنځه دي او وتر عملي فرض دي.

## دیوسف بن خالد السمتی رحمه الله واقعه:

یوسف بن خالد السمتی رحمه الله دامام صاحب رحمه الله څخه د وترو په باره کې پوښتنه وکړه،امام صاحب رحمه الله ورته وفرمایل چې وتر واجب دي، یوسف بن خالد السمتی رحمه الله ورته وفرمایل چې (کفرت یا ابا حنیفه)یعنې کافر شوې یا ابو حنیفه، دده خیال دا وو چې امام صاحب وترو ته فرض وایي، نو دفرائضو تعداد بیا د پنځو څخه زیاتیږي، لکن امام صاحب رحمه الله ورته وفرمایل چې: ایُهوِلُنِي اکفارک ایای ، وانا اعرف الفرق بین الواجب والفرض کفرق ما بین السماء والارض، یعنې دتکفیر په فتوی باندې ما مه ویروه ځکه چې زه د فرضو او د واجبو په مابین کې دومره فرق پیژنم لکه څومره فرق چې داسمان او د زمکې په مابین کې دی، بیا ورته امام صاحب هغه فرق بیان کړو، یوسف بن خالِد السمتی رحمه الله مطمئن شو او بیا دامام صاحب رحمه الله په حلقه د درس کې شاګرد شو، تر دې چې دبصرې په وچتو فقهاوو کې شمار شو (بدائع الصنائع، کتاب الصلوة، فصل فی الصلوة الواجبة)

## الفرق بین الفرض والواجب:

دلایل شرعیه په څلور قسمه دي:

۱-قطعي الثبوت قطعی الدلالت.۲- ظني الثبوت ظني الدلالت. ۳- قطعی الثبوت ظنی الدلالت.۴- ظنی الثبوت قطعی الدلالت.

کله چې په دواړو طرفونو کې قطعیت وي نو هلته په جانب د آمر کې فرضیت او په جانب د نهی کې حرمت لازمیږي، او کله چې په دواړو طرفونو کې ظنیت وي نو هلته استحباب او سنتیت لازمیږي او کله چې په یو جانب کې قطعیت او په بل جانب کې ظنیت وي، نو هلته په جانب د أمر کې وجوب یاسنت مؤکد والی او په جانب د نهی کې کراهت تحریمي لازمیږي.

غالباً دامام صاحب مقصد دا وو چې د وترو ثبوت په دليل ظني باندې راغلى دى، لهذا دا واجب دي او ددې مرتبه د فرضو څخه کمه ده.

(۴): دا هم ممکنه ده چې په دې حديث کې رسول الله ﷺ دهغو لمونځونو ذکر کړى وي چې هغه په قطعي الثبوت دلايلو باندې ثابت وي يعنې دلته د صلواتو مطلقه وو کامله وو ذکر دى او د وترو دلايل ظني الثبوت دي لهذا په صلواتو مطلقه وو کامله وو کې نه دي داخل.

(۵) الزامي جواب دادى چې په دې حديث کې صرف دزکوة ذکر راغلى دى د نورو صدقو ذکر پکې نه شته نو ددې څخه خومعلوميږي چې د زکوة څخه علاوه نور نفقات ماليه فرض نه دي حالانکې امام شافعي رحمه الله صدقة الفطر (سرسايه) ته فرض وايي فما هو جوابکم فهو جوابنا که تاسو ووايئ چې صدقة الفطر له توابعو د زکوة څخه دى نو مونږ هم وايو چې وتر له توابعو دعشاء څخه دي.

(۶) د وترو د وجوب قول يواځې دامام صاحب رحمه الله قول نه دى، بلکې نور امامان هم ددې قائل دي فرق صرف دومره ده چې امام صاحب په واجبْ باندې تعبير کوي او نور امامان ورته نور عنوانونه لګوي، دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه، حضرت حذيفه رضي الله عنه ابراهيم نخعي رحمه الله يوسف بن خالد رحمه الله امام مجاهد رحمه الله وغيره وو څخه د وجوب قول رانقل شوى دى (عمدة القاري، کتاب الوتر، باب ليجعل أخر صلوته وترا)

امام مالک رحمه الله فرمايي: من ترک أدب وکانت جرحة فى شهادته)

امام احمد رحمه الله فرمايي چې: من ترک الوتر عمداً فهو رجل سوء ولا ينبغى أن تقبل شهادته (مغنى ابن قدامه، حکم صلوة الوتر ووقتها)

امام شافعي رحمه الله د وترو او دسهار دسنتو په باره کې فرمايي: ولا أرخص لمسلم فى ترک واحدة منهما وان لم اوجبهما.(کتاب الأم، باب فى الوتر)

نو ټول امامان ورته ضروري وايي لهذا که ددې حديث څخه د وترو ضروري والى نفى شي نو په ټولو امامانو باندې به اعتراض راشي.

فانقيل: چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم فرضو ته د راحلې (سپرلى) څخه راکوز شو او وتر يې په راحله (سپرلى) ادا کړل؟

قلنا: داد وترو د وجوب څخه مخکنی واقعه ده (شرح معاني الاثار، ج۱ص۲۰۹) عبد الله ابن عمر رضی الله عنهما به نوافل په راحله کول او وترو ته به راکوزيدلو او بيا به يې فرمايل چې ان رسول الله صلی الله عليه وسلم كان يفعل ذلک (شرح معاني الاثار، ج۱ص۲۰۹) او دعبد الله ابن عمر رضی الله عنهما واقعه د نبي کريم صلی الله عليه وسلم د وفات څخه وروستنۍ ده.

## دمابسام دلمانځه په شان وترهم درې رکعته دي

(۱) حضرت عايشه رضی الله عنه فرمايي چې: مَاكَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَزِيدُ فِي رَمَضَانَ وَلَا فِي غَيْرِهِ عَلٰى إِحْدٰى عَشْرَةَ رَكْعَةً يُصَلِّي أَرْبَعًا، فَلَا تَسَلْ عَنْ حُسْنِهِنَّ وَطُولِهِنَّ، ثُمَّ يُصَلِّي أَرْبَعًا، فَلَا تَسَلْ عَنْ حُسْنِهِنَّ وَطُولِهِنَّ، ثُمَّ يُصَلِّي ثَلَاثًا (صحيح البخاري ج ۵ص ۱۵٤، باب قيام النبي بالليل وصحيح مسلم ج ۱ص ۲۵٤)وعدد ركعات النبي صلى الله عليه وسلم ) رسول الله صلى الله عليه وسلم به ټول کال د اتو رکعاتو تهجد و څخه وروسته درې رکعته وتر کول.

(۲) د حضرت عايشې رضی الله عنها څخه روايت دی چې: كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُوتِرُ بِثَلَاثٍ لَا يُسَلِّمُ إِلَّا فِي آخِرِهِنَّ» (مستدرک حاکم، كتاب الوتر، ج ۱ص ۳۰٤)

رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به درې رکعته وتر کول، صرف په اخر کې به يې سلام ګرځولو.

(۳) حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنه فرمائي چې الوتر كصلوة المغرب وتر د مابسام دلمانځه په شان دي. (موطا امام محمد. ص ۱۴۶).

(۴) حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه فرمائي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې وتر الليل ثلاث كوتر النهار، صلوة المغرب، دشپې وتر درې رکعته دي لکه دورځې وتريعنې دمابسام لمونځ. (مصنف ابن ابی شيبه ج ۲ص ۱۹۵ طحاوی، ج۱ ص ۱۷۳ ).دا حديث دار قطني دحسن سند سره روايت کړی دی. (دار قطنی ج ۲ص ۲۸).

(۵) دحضرت عايشې رضی الله عنها څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې: الوتر ثلاث كثلاث المغرب وتر درې رکعته دي لکه دمابسام لمونځ چې درې رکعته دی. ( طبراني في الاوسط) ومجمع الزوايد،ج ۲ص ۲۴۲ )

ددې حديث په سند کې البکراوي ضعيف دی ، لکن ددې حديث مفهوم د متعددو صحابه وو څخه مروي دی، لکه: ابن عباس، ابن مسعود ، وګوره موطاء امام محمد ، لهذا دا حديث حسن لغيره دی.

(۶) امام طحاوي دابو العاليه روايت رانقل کړی دی چې: عَلَّمَنَا أَصْحَابُ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوْ عَلَّمُونَا أَنَّ الْوِتْرَ مِثْلُ صَلَاةِ الْمَغْرِبِ, غَيْرَ أَنَّا نَقْرَأُ فِي الثَّالِثَةِ, فَهٰذَا وِتْرُ اللَّيْلِ, وَهٰذَا وِتْرُ النَّهَارِ.

د حضرت محمد ﷺ صحابه وو مونږ ته دا تعليم راکولو چې د وترو لمونځ د ماښام د لمونځ په شان اداکيږي، نو دا د شپې وتر دي او د ماښام لمونځ د ورځې وتر دي. (شرح معانی الاثار، کتاب الصلوة، باب فی الوتر ج ۱صـ ۲۰۲)

ددې احاديثو څخه معلوميږي چې وتر واجب دي او ددې لپاره درې رکعته مقرر دي، په دوو تشهدونو او په يو سلام باندې، لکه د ماښام لمونځ.

په دی طريقه باندې صحابه وو خپله هم عمل کولو او همدا طريقه يې خپلو شاګردانو ته هم وربښودله او په همدې طريقه باندې بلاتردده په خير القرون کې عمل جاري وو.

ددې څخه معلوميږي چې په کومو احاديثو کې چې د وترو تعداد مختلف راغلی دی نو دا د هغه وخت خبره وه چې وتر نفل وو.

(۷) امام ترمذي رحمه الله د باب ما يقرأ فی الوتر، لاندې د عبد العزيز بن جريج روايت رانقل کړی دی چې: كَانَ يَقْرَأُ فِي الْأُولٰى: بِ {سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلٰى}، وَفِي الثَّانِيَةِ بِ {قُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُونَ}، وَفِي الثَّالِثَةِ بِ {قُلْ هُوَ اللّٰهُ أَحَدٌ}، وَالْمُعَوِّذَتَيْنِ .

د حضرت ابن عباس رضی الله څخه روايت دی چې: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الْوِتْرِ: بِ {سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلٰى} وَ {قُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُونَ}، وَ {قُلْ هُوَ اللّٰهُ أَحَدٌ}. (نسائي، ترمذي، تقريباً)

د څوارلسو صحابه وو څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ په درې رکعته وترو کې درې سورتونه لوستل. هغه څوارلس صحابه کرام (رضی الله عنهم) دا دي: حضرت بی بی عايشه رضی الله عنها، حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ، حضرت عبدالله بن عباس ﷺ ، حضرت عبدالرحمن بن عوف ﷺ، حضرت أبي بن کعب ﷺ، حضرت علی ﷺ، حضرت عبدالله بن ابی اوفی ﷺ، حضرت نعمان بن بشير ﷺ، حضرت ابوهريرة ﷺ، حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما حضرت عمران بن حصين

ﷺ حضرت معاوية بن خديج ﷺ حضرت جابر ﷺ اوحضرت ابوامامه ﷺ (ابن عبدالبرفی الاستيعاب ج ٤ص ۷۱ \ترمذی ص ۱۰٦ \نسائي ص ۲٥۱\ ابن ماجه ص۸۳ .دارقطنی ،ج۲ص۳٥٥ طحاوي ،ج۱ص ۱۷۲ مستدرک حاکم ۲۰٥وابوداود، ج۱ص ۲۰۸)

نو دا څوارلس حديثونه شو چې وتر درې رکعته دي.

(۸) حضرت علي رضی الله عنه فرمايي چې: وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُوتِرُ بِثَلَاثٍ يَقْرَأُ فِيهِنَّ بِتِسْعِ سُوَرٍ مِنَ الْمُفَصَّلِ يَقْرَأُ فِي كُلِّ رَكْعَةٍ بِثَلَاثِ سُوَرٍ آخِرُهُنَّ: (قل هو الله أحد،(مشکوة، باب الوتر، الفصل الثالث)

(۹) د حضرت أنس رضی الله عنه څخه روايت دی چې: (الوتر ثلاث رکعات) شرح معانی الاثار ج ۱صـ ۲۰۲، کتاب الصلوة باب الوتر.

بل خواته په عهد فاروقي کې په شل رکعته تراويحو اوپه درې رکعته وترو باندې د صحابه و رضی الله عنهم اجماع منعقده شوی وه او همدغه اجماع د حضرت عثمان او د حضرت علی ﷺ او تر ډيره وروسته زمانې پورې باقي وه، لهذا درې رکعتونو څخه علاوه د څو مره رکعتونو ذکر چې په احاديثو کې راغلي دي هغه اجماعًا متروک العمل دي. (مجموعة الرسايل ج ۳ص ۱۱۲ وص ۳۳۰ وص ۳۳۲ لمحمد امين صفدر رحمه الله، بحواله عبدالرزاق ج ۳ص ۱۲٦\ والمستدرک ج ۱ص ۳۰٤ \قيام الليل ص ۱٥۸ موطاامام مالک ص ٤۰/ کنزالعمال ج ۸ ص۲٤٦)

(٦) عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، أَنَّهُ رَقَدَ عِنْدَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، (إِلَى أَنْ قَالَ) ثُمَّ أَوْتَرَ بِثَلَاثٍ (اثار السنن ص ۱٦٦ باب الوتر بثلاث رکعاتٍ/مسلم ج ۱ص ۲٦۱ \ مجموعة الرسايل، ج ۳ص ۳۲۲).

(۷) حضرت عمر رضی الله عنه چې د ابو بکر صديق د دفن څخه د شپې فارغ شو، ثم دخل المسجد فأوتر بثلاث، (مصنف ابن أبی شيبه، کتاب الصلوة، من کان يوتر بثلاث او اکثر)

(۸) عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، أَنَّهُ قَالَ: «مَا أُحِبُّ أَنِّي تَرَكْتُ الْوِتْرَ بِثَلَاثٍ، وَإِنَّ لِي حُمُرَ النَّعَمِ» [موطاامام محمد ص ۱٥۰، جامع المسانيد ج۱صـ ٤۱۷]

حضرت عمر ﷺ فرمائي چې ماته د سرو اوښانو څخه درې رکعته وتر خوښ دي.

(۹) عَنْ عُمَرَبْنِ الْخَطَّابِ رضي الله عنه: «أَنَّهُ أَوْتَرَ بِثَلَاثِ رَكَعَاتٍ لَمْ يَفْصِلْ بَيْنَهُنَّ بِسَلَامٍ» (مصنف ابن ابی شیبه، ج۲ص ۴۳)

دحضرت عمر ﷺ څخه روايت دى چې هغه درې ركعته وتر وكړه او ددوی په مينځ كې يې په سلام باندې جدايي رانوستله.

(۱۰) عَنْ زَاذَانَ رحمه الله، «أَنَّ عَلِيًّا رضي الله عنه كَانَ يُوتِرُ بِثَلَاثٍ مِنْ آخِرِ اللَّيْلِ قَاعِدًا»

دحضرت زاذان رحمه الله ابو عمر څخه روايت دى چې حضرت على ﷺ به دشپې په اخر كې درې ركعته وتر كول. (كنز العمال ج۸صـ ۴۲، رقم ۱۲۸۵)

(۱۱) عَنْ عُقْبَةَ بْنِ مُسْلِمٍ رحمه الله، قَالَ: سَأَلْتُ عَبْدَ اللهِ بْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا عَنِ الْوِتْرِ، فَقَالَ: أَتَعْرِفُ وِتْرَ النَّهَارِ؟ قُلْتُ: نَعَمْ، صَلَاةُ الْمَغْرِبِ قَالَ: صَدَقْتَ أَوْ أَحْسَنْتَ (طحاوى ج١ ص : ١٦٤)

حضرت عقبه بن مسلم فرمايي : چې ما د حضرت ابن عمر رضى الله عنهما څخه د وتر و په باره كې پوښتنه وكړه هغه راته وفرمايل چې ته د ورځې وتر پيژنې ؟ ما ورته وويل : چې هو ! د ماښام لمونځ دى هغه راته وفرمايل : چې تا صحيح او رشتيا وويلې.

(۱۲) حضرت ابن عباس ﷺ به درې ركعته وتر كول: كان يوتر بثلاث بسبح اسم ربك الاعلى، وقل يآايها الكافرون، وقل هو الله أحد (موطاامام محمد ص : ۱۵۰طحاوى ج١ ص : ۱۷۰)

(۱۳) حضرت انس ﷺ به درې ركعته وتر كول : قَالَ ثَابِتٌ رضي الله عنه: «صَلَّى بِي أَنَسٌ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ الْوِتْرَ أَنَا عَنْ يَمِينِهِ وَأُمُّ وَلَدِهِ خَلْفَنَا، ثَلَاثَ رَكَعَاتٍ، لَمْ يُسَلِّمْ إِلَّا فِي آخِرِهِنَّ، ظَنَنْتُ أَنَّهُ يُرِيدُ أَنْ يُعَلِّمَنِي (كنزل العمال ،ج۸ص : ٦٦ وطحاوى ج١ ص: ۱۷۳ )

(۱۴) حضرت ابى بن كعب ﷺ به درې ركعته وتر كول : كان أبى بن كعب يوتر بثلاث لايسلم الا فى الثالثة مثل المغرب ( مصنف عبدالرزاق ج۳ ص : ٢٦)

(۱۵) حضرت ابو امامة ﷺ به درې ركعته وتر كول. ( مصنف ابن ابى شيبه ج۲ ص : ۱۹۴) .

(۱۶) حضرت سعيد بن جبير ﷺ فرمايي چې وتر درې ركعته دي. ( مصنف ج۲ ص : ۱۹۴)

(۱۷) حضرت علقمة ﷺ فرمايي چې وتر درې ركعته دي. ( مصنف ج۲ ص : ۱۹۴)

(۱۸) حضرت مكحول رحمه الله په يو سلام باندې درې ركعته وتر كول. ( مصنف ج۲ ص : ۱۹۴)

(۱۹) حضرت ابو العاليه رحمه الله فرمايي چې وتر درې رکعته دي: عَلَّمَنَا أَصْحَابُ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوْعَلَّمُونَا أَنَّ الْوِتْرَ مِثْلُ صَلَاةِ الْمَغْرِبِ, غَيْرَ أَنَّا نَقْرَأُ فِي الثَّالِثَةِ, فَهٰذَا وِتْرُ اللَّيْلِ, وَهٰذَا وِتْرُ النَّهَارِ (طحاوی ج۱\ص:۱۷۳)

(۲۰) حضرت عمر بن العزيز رحمه الله دفقهاوو دقول مطابق په مدينه منوره کې درې رکعته وتر مقرر کړي وو.

«أَثْبَتَ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ الْوِتْرَ بِالْمَدِينَةِ بِقَوْلِ الْفُقَهَاءِ ثَلَاثًا, لَا يُسَلِّمُ إِلَّا فِي آخِرِهِنَّ (طحاوی باب الوتر، واثار السنن صـ۱۶۴)

(۲۱) دمديني منورې داوو فقهاوو، سعيد بن المسيب، عروة بن الزبير رحمه الله، قاسم بن محمد رحمه الله، ابوبكر بن عبد الرحمن، خارجه بن زيد رحمه الله، عبيد الله، سليمان بن يسار، اوددوی څخه علاوه دنورو فقهاوو اجتماعي فتوی په سند سره رانقل شوې ده چې: قَدْ أَجْمَعُوا أَنَّ الْوِتْرَ ثَلَاثٌ لَا يُسَلِّمُ إِلَّا فِي آخِرِهِنَّ (شرح معانی الاثار، کتاب الصلوة، باب الوتر ج ۱صـــ۳۰٤)

(۲۲) عَنِ الْحَسَنِ رحمه الله، قَالَ: «أَجْمَعَ الْمُسْلِمُونَ عَلَى أَنَّ الْوِتْرَ ثَلَاثٌ لَا يُسَلِّمُ إِلَّا فِي آخِرِهِنَّ ( مصنف ابن ابی شيبه ج۲| ص:۱۹٤، نصب الرأيه ج۲صـــ ۱۲۲) حضرت حسن بصری رحمه الله فرمايي چې دټولو مسلمانانو په اتفاق او اجماع سره وتر په يو سلام سره درې رکعته دي.

(۲۳) دحضرت عايشې رضی الله عنها څخه روايت دی چې: أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ لَا يُسَلِّمُ فِي رَكْعَتَيِ الْوِتْرِ (نسائی، باب کيف الوتر بثلاث، ج ۱ صـ۲٤۸)

رسول الله صلى الله عليه وسلم به د وترو په دوو رکعتونو سلام نه ګرځولو يعنې درې رکعته به يې په يو سلام ادا کول.

(۲۴) دعبد الله بن عمر رضی الله عنه روايت دی چې: كَانَ يُوتِرُ بِثَلَاثِ رَكَعَاتٍ وَيَجْعَلُ الْقُنُوتَ قَبْلَ الرُّكُوعِ (مجمع الزوايد ج ۲صـ ۱۳۸)

(۲۵) امام مالک رحمه الله فرمايي چې: ادنی الوتر ثلاث (مؤطا صـ ۱۲۵)

(۲۶) حضرت عايشه رضی الله عنها فرمايي چې: أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا صَلَّى الْعِشَاءَ دَخَلَ الْمَنْزِلَ، ثُمَّ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ صَلَّى بَعْدَهُمَا رَكْعَتَيْنِ أَطْوَلَ مِنْهُمَا، ثُمَّ أَوْتَرَ بِثَلَاثٍ لَا يَفْصِلُ بَيْنَهُنَّ (رواه احمد اثار السنن صـ ۱٦۲، باب الوتر بثلاث رکعاتٍ)

(۲۷)عَنْ عَلْقَمَةَ، قَالَ: أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْعُودٍ، «أَهْوَنُ مَا يَكُونُ الْوِتْرُ ثَلَاثُ رَكَعَاتٍ» (موطا امام محمد، باب السلام فی الوتر صـ(۱٤٦) اسانه وتر دري رکعته دي.

(۲۸)عن ثابت ﷺ قال: "قال أنس ﷺ «يَا أَبَا مُحَمَّدٍ! خُذْ عَنِّي، فَإِنِّي أَخَذْتُ عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَخَذَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ اللّٰهِ عَزَّوَجَلَّ، وَلَنْ تَأْخُذَ عَنْ أَحَدٍ أَوْثَقَ مِنِّي ثم صلى بی العشاء، ثم صلّی ست رکعات یسلم بین الرکعتین ثم أوتر بثلاث یسلم فی آخرهن (کنز العمال ج ۸صـ٤٢)

## وتر په يو سلام اداء کيږي ددرې رکعتو په اخر کې

داسلام په ابتداء کې ډیرحرکات په لمونځ کې جایز وو، مثلاخبرې کول ،سلام وغیره او داسلام په ابتداء کې وترنفل وونوپه دې کې هم دډیرو حرکاتواوسلامونوګنجائیش وو،له دې وجهې په بعضې وتتونوکې رسول الله ﷺ دوترو په درې رکعتونو کې په دوورکعتونوسلام ګرزولو اویورکعت به یې ځانته کولو.

لیـدونکودوه قسـمه روایـات کـړي دي، بعضـې راویانوصـرف داخـري رکعـت فکرکـړی دی اودیورکعت وتروروایت یې کړی دی اوبعضو ددرې رکعتونوپه دووسلامونوروایت کړی دی، لیکن دوخت په تیریدلوسره لکه څرنګه چې په نورولمونځوکې سلام کلام ممنوع شو، همدارنګه دوتروپه مینځ کې هم سلام اوکلام منع شول.

(۱)(۲)عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَعَلَى آلِهِ وَسَلَّمَ كَانَ لَا يُسَلِّمُ فِي رَكْعَتَيِ الْوِتْرِ. (موطاامام محمد ص ۱۵۱\ نسائي ج ۱/ ص۲٤۸، کتاب الصلوة، باب کیف الوتر بثلاث؟).

دحضرت عایشې رضی الله عنها څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ دوتروپه اولو دواړو رکعتونو کې سلام نه ګرځولو په مخکې صفحه کې هم دحضرت عایشې رضی الله عنها حدیث تیر شو چې: ثم اوتر بثلاث لا يفصل بينهن، اوپه همدې طریقې باندې عمل جاري وو، کله چې صحابه کرام رضوان الله علیهم دحضرت ابوبکرصدیق ﷺ ددفن څخه فارغ شول، نو حضرت عمرﷺ وفرمایل چې مالاتراوسه پورې وترنه دي اداکړي نوهغه دوترودلمانځه لپاره ودریدلواوحاضرینوهم وروسته صفونه جوړ کړل، حضرت مسعودﷺ بن مخرمه فرمائي چې : فصلّي بناثلاث رکعات لم يسلم الا في اخرهن.

يعنې حضرت عمر ﷺ مونږته په جماعت باندې د درې رکعته وترو امامتي را کړه او صرف په دريم رکعت يې سلام و ګرځولو. (طحاوي ج ۲ص ۱۷۳/ عبدالرزاق ج ۳ص ۱۹۳/ مصنف ابن ابی شيبه ج۱/ ص۲۹۳)

(۳) دا خبره مخکې ذکر شوه، چې په دور فاروقي ﷺ، دور عثمانی ﷺ او دور مرتضی ﷺ کې لکه څرنګه چې په شل رکعته تراويحو باندې اجماع منعقده شوې وه، همدا رنګه په يو سلام باندې په درې رکعته وترو باندې هم اجماع منعقده شوې وه. حضرت أبي بن کعب امام التراويح (کان يوتر بثلاث لايسلم الا في الثالثة مثل المغرب. [عبدالرزاق ج ۳ص ۲٦]

د تراويحو امام حضرت ابی بن کعب ﷺ به درې رکعته وتر کول او د ماښام د لمانځه په شان به يې صرف په دريم رکعت باندې سلام ګرځولو، يعنې په دې خبره اجماع وه چې وتر درې رکعته، دوه قاعدې او يو سلام دی، لکه څرنګه چې د ماښام لمونځ دی.

(۴) حضرت ابو اسحق (رحمه الله) فرمائي چې د حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ او د حضرت علی ﷺ (په زرګونو) اصحابو به (درې رکعته وتر کول) او په دوو رکعتونو کې به يې سلام نه ګرځولو: كَانَ أَصْحَابُ عَلِيٍّ، وَأَصْحَابُ عَبْدِ اللّٰهِ لَا يُسَلِّمُونَ فِي رَكْعَتَيِ الْوَتْرِ (مصنف ابن ابی شيبه، من کان يوتر بثلاث او کثر)

(۵) حضرت ابو الزناد (رحمه الله) فرمائي چې د مدينې منورې اووه واړه فقهاء (سعيد بن مسيب، عروة بن زبير، قاسم بن محمد ابوبکر بن عبد الرحمن، خارجه بن زيد، عبيد الله بن عبد الله، سليمان بن يسار) په دې متفق وو چې (أن الوتر ثلاث لا يسلم الا فی أخرهن) وتر درې رکعته دي او سلام صرف د دريم رکعت په اخر کې دی او په همدې باندې حضرت عمر بن عبد العزيز ﷺ فيصله کړې وه. (طحاوی ج ۱ص ۲۰۳ وص ۲۰۴، شرح معانی الاثار ج۱ص۲۰٤، کتاب الصلوة، باب الوتر)

(٦) حضرت امام حسن بصری (رحمه الله) فرمائي: (اجمع المسلمون ان الوتر ثلاث لايسلم الا في اخرهن. د ټولو مسلمانانو په دې خبره اجماع ده چې وتر درې رکعته دي او سلام به نه ګرځول کيږي مګر يوائې په اخر کې. (استاذ البخاری إبن ابی شيبه ج ۲ص ۲۹٤، نصب الرأيه ج ۲ص ۱۲۲)

د دې ټولو رواياتو څخه معلوميږي چې د ټولو مسلمانانو په دې خبره اجماع وه چې په دې احاديثو عمل جاري وو او د دوه رکعتونو څخه وروسته په سلام ګرځولو عمل خولا پرېږده چې کله به شاګرد دا حديث واوريدلو نو ورسره به يې خپله ويره په دا سې الفاظو ظاهروله چې: إِنِّي لَأَخَافُ أَنْ يَقُولَ النَّاسُ هِيَ الْبُتَيْرَاءُ.

زه دا ریږم چې خلک به وو ائي چې ددې لمونځ لکې غوڅه ده (یعنې یو رکعتي لمونځ دی ؟) (طحاوی ج ۱ص ۱۹۲).

د خلکو څخه مراد صحابه او تابعین دي. صحابه او تابعین چې دې ته بې لکې لمونځ وائي، نو دا ددې دلیل دي چې دا سې لمونځ متروک العمل وو، لکه څرنګه چې څوک په ولاړه د متیازو ذکر وکړي او خلک وویریږي چې هسې نه چې دیته څوک سنت ووایي.

(۷) د درې رکعتو وتر کوم دلایل چې مخکې ذکر شو په هغوي کې په یو حدیث کې هم د دوو سلامونو ذکر نه شته، افسوس چې غیر مقلدین د احنافو په ضد کې په هغو احادیثو عمل نکوي په کوموچې بلانکیره عمل جاري وو. او په ضعیفو او شاذو روایاتو باندې عمل کوي. اللهم ارنا الحق حقا وارزق اتباعه...الخ.

## دشبابه بن سوار او دحضرت عایشې رضی الله عنها دحدیثونو تشریح:

أن النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كان يوتر بركعةٍ وكان يتكلم بين الركعتين والركعة (معارف السنن، خاتمة بحث الوتر، باب ما جاء فى الوتر على الراحلة)

همدا رنګه د حضرت عایشې رضی الله عنها په روایت کې راځي چې: كان يوتر بركعةٍ وكان يتكلم بين الركعتين والركعة (معارف السنن، خاتمة بحث الوتر)

علامه بنوري رَحِمَهُ اللهُ دلته د علامه کشمیري رَحِمَهُ اللهُ قول رانقل کړی دی چې: وهو (اى هذا الحديث) مشكل وقد مكثت نحو اربع عشرة سنة أتفكر فيه ثم سنح لى جوابٌ يكفى ويشفى) دا جواب علامه بنوري رَحِمَهُ اللهُ د معارف السنن باب ماجاء فى الوتر بخمس، ج ۴ص ۲۰۳) لاندې رانقل کړي دي چې د تکلم څخه مراد د وتر او د سهار د سنتو په مابین کې تکلم دی، یعنې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به دوه رکعته په یو دریم رکعت باندې طاق کړل، بیا به یې د سهار د سنتو څخه مخکې خبرې کولې او یا دا حدیث د هغې زمانې دی چې نهی عن البتیراء نه وه راغلې.

## د عبدالله بن عمر رضی الله عنه د عمل تفصیل:

په صحیح البخاري کې د عبدالله بن عمر رضی الله عنهما عمل داسې رانقل شوی دی چې: كَانَ يُسَلِّمُ بَيْنَ الرَّكْعَةِ وَالرَّكْعَتَيْنِ، او په مسند احمد کې يې دا عمل نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته منسوب کړی دی چې: كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَفْصِلُ بَيْنَ الْوَتْرِ وَالشَّفْعِ بِتَسْلِيمَةٍ (اثار السنن صـ ۱۵۸، باب الوتر بركعة)

تهميد: عبدالله بن عمر رضی الله عنهما په اول کې په تشهد کې د سلام الفاظ يعنې: السلام عليک أيها النبی لوستلو، په مؤطا الامام مالک صـ ۷۳، باب التشهد فی الصلوة کې د حضرت نافع په روايت کې راځي چې: (يَقُولُ (يقرأ) (ابن عمر رضي الله عنه) هٰذَا فِي الرَّكْعَتَيْنِ الْأُولَيَيْنِ. وَيَدْعُو، إِذَا قَضٰى تَشَهُّدَهُ، بِمَا بَدَا لَهُ. فَإِذَا جَلَسَ فِي آخِرِ صَلَاتِهِ، تَشَهَّدَ كَذٰلِكَ أَيْضاً.

ددې روايت څخه معلوميږي چې عبدالله بن عمر په تشهد کې د سلام الفاظ لوستل، لکن وروسته يې پريښودل وروسته به عبدالله بن عمر رضی الله عنهما په تشهد کې د سلام الفاظ دلمانځه فسخه ګڼله، په مصنف عبدالرزاق کې د باب التشهد لاندې مروي دي چې: «لَا يُسَلِّمُ فِي الْمَثْنَى الْأُولٰى، كَانَ يَرٰى ذٰلِكَ فَسْخًا لِصَلَاتِهِ.

همدارنګه دد عبدالله بن عمر رضی الله عنهما په باره کې مروي دي چې: انه كان لا يقول فی الركعتين السلام عليک أيها النبی.

او يا يې په نفلي لمونځونو کې د سلام الفاظ لوستل او په فرضي لمونځونو کې يې نه لوستل.

دجواب تشريح: کله چې عبدالله بن عمر رضی الله عنهما په تشهد کې د سلام الفاظ «السلام عليک أيها النبی» دلمانځه لپاره قطعه ګڼله او نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خو د وترو په اوله قعده کې دا الفاظ لوستل، نو د عبدالله بن عمر رضی الله عنهما په ګمان نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دوو رکعاتو څخه وروسته د دې الفاظو په وجه دلمانځه څخه خارج شوی وو، (وان لم يكن هو تسليم القطع)

په دې وجه حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما دا روايت کول شروع کړل چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د وترو په دوهم او دريم رکعت کې فصل کولو او خپل عمل يې هم دهمدې مطابق وو، نو دا د عبدالله بن عمر رضی الله عنهما اجتهاد وو، چې د مرفوعو رواياتو او د جمهورو صحابه وو کرامو د عمل په مقابله کې حجت نه دی.

خلاصه: دا چې د عبدالله بن عمر رضی الله عنهما په حدیث کې د تسلیم څخه د تشهد سلام، یعني «السلام علیک أیهاالنبی» مراد دی.

## دمینځنۍ قعدې اهمیت

داحنافو په ضد کې غیرمقلدین یا په دوو رکعتونو باندې سلام ګرځوي، چې دا غلطه طریقه ده، ځکه چې په دې باندې عمل باقي نه وو پاتې.

او یا د احنافو په ضد کې د دوو رکعتونو څخه وروسته قعده نکوي، حالانکه دا هم دا وجبو ترک دی، په ابوداود شریف کې حدیث دی چې د رسول الله ﷺ څخه یوه ورځ مینځنۍ قعده هیره شوه، نو سجده سهوه یې وکړه له دې وجهې د چا څخه چې مینځنۍ قعده هیره شي نو سجده سهوه پرې واجب ده، او که و یې نکړه د لمانځه اعاده پرې واجبه ده.

(۱) ام المومنین حضرت عایشه صدیقه رضی الله عنها فرمائي چې :(کان یقـول في کل رکعتـین التحیـة). رسول الله ﷺ به فرمایل چې په هر دوو رکعتونو کې التحیات ده. (مسلم ج ۱ ص ۱۹۴) باب مایجمع صفة الصلوة ... الخ

(۲) حضرت فضل بن عباس ﷺ فرمائي : چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي چې : الصلوة مثني مثـني تشهد في کل رکعتین.

یعنې لمونځ دوه دوه رکعته دي او د هر دوو رکعتونو څخه وروسته التحیات ده. (ترمذی ج ۱ ص ۵۰).

**فایده:** دلته لفظ د کل په خاص طور باندې د توجه قابل دی.

(۳) د حضرت ابوهریرة ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ دوي ته د ماسپښین یا د ماز یګر لمونځ ورکړو او د دوو رکعتونو څخه یې وروسته قعده ونکړه بلکه نیغ ودریدلو خلکو سبحان الله سبحان الله وویلو، مګر رسول الله ﷺ هیڅ پروا ونکړه. کله یې چې لمونځ خلاص کړو نو دوه سجدې د سهوې یې وکړې او بیا یې سلام وګرځولو. (رواه البزار مجمع الزواید، ج ۱ ص ۲۰۲).

(۴) د حضرت عبدالله بن عمر ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي چې : صلوة اللیل مثني مثني . دشپې لمونځ دوه دوه رکعته دی، کله چې د حضرت عبدالله بن عمر ﷺ څخه پوښتنه وشوه چې ددوو دوو رکعتونو څه معنی ده نوویې فرمایل چې : ان تسلم في کل رکعتین . (صحیح مسلم ، ج۱ ص ۲۵۷ ) .

چې د هر دوو رکعتونو څخه وروسته سلام وګرځوه لکه څرنګه چې په تهجد وکې د هر دوو رکعتونو څخه وروسته سلام ګرځول کیږي، لیکن وتر دوه دوه رکعته نه دي، نو د دوو رکعتونو څخه وروسته یې سلام هم باقي پاتې نه شو، بلکې د تشهد څخه وروسته به بغیر د سلام څخه پورته کیږي، نو په کوموا حادیثو کې چې د سلام نفی وه هغه هم د قعدې دلایل دی

(۵) هغه ټول احادیث چې په هغوی کې دابیان وو چې د وترو لمونځ د ماښام د لمونځ په شان دی هغه هم د مینځنې قعدې دلایل دي، ځکه چې د ماښام په لمانځه کې چې په درې رکعته فرضو کې د دو رکعتونو څخه وروسته قعده ونکړئ نو بالاتفاق سجده سهوه واجبیږي .

(٦) حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ فرمائي چې یوه شپه زه د خپلې مور سره د رسول الله ﷺ کور ته ددې لپاره ورغلم چې وګورم چې رسول الله ﷺ وتر په کومه طریقه کوي؟

حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ فرمائي چې رسول الله ﷺ چې په کومه طریقه وترو کړل هغه داسې وه : په اول رکعت کې یې ( سبح اسم ربک الاعلي ولوستلو او په دوهم رکعت کې یې ( قل یاایها الکافرون ) ولوستلو ، ددې څخه وروسته یې اوله قعده وکړله او دا دوه رکعتونه یې د دریم رکعت څخه په سلام باندې جدا نکړل ددې څخه وروسته یې په دریم رکعت کې د ( فاتحې څخه وروسته ) قـل هـوالله احـد) ولوستلو کله چې ددې څخه فارغ شو نو الله اکبر یې وویلو ، ددې څخه وروسته یې قنوت ولوستلو او بیا رکوع ته لاړو . (رواه ابن عبدالبر فی الاستیعاب ، ج ۴ ص ۷۱ ) .

(۷) حضرت ابن عمر ﷺ فرمائي چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي چې د شپې لمونځ دوه دوه رکعته دي، کله مو چې ددوو رکعتونو څخه وروسته د سلام اراده وکړه نو پاتې شیږئ یو رکعت ورسره یو ځای کړئ هغه به وتر (طاق) شي . حضرت قاسم بن محمد فرمائي چې زه بالغ شوی یم ( د هغه څخه تراوسه) ما خلک په درې رکعته وترو باندې لیدلي دي .(صحیح البخاری ج ۱ ص ۱۳۵ ) ابواب الوتر).

وګوره دبخاري شريف ددې حديث څخه درې رکعته وتر په يو سلام او دوه التحيا تو سره ثابت شو، ددې ټولو مشهورو احاديثو په خلاف چې غير مقلدين دکوم روايت څخه استدلال کوي دهغه حال وګورئ.

(۸) امام حاکم اول په دوو سندونو باندې د حضرت سعيد بن ابى عروبه عن قتادة عن زرارة بن ابى اوفى عن سعد بن هشام عن عايشة رضى الله عنها څخه دا حديث رانقل کړى دى، كان النبى صلى الله عليه وسلم يوتر بثلاث لايسلم الا فى أخره، چې رسول الله ﷺ دوتر دواولو دوارو رکعتونو څخه وروسته سلام نه دى ګرځولى اوليکلي يې دي چې دا حديث دبخاري او دمسلم په شرط صحيح دى. (مستدرک حاکم، ج ۱ص ۳۰۴، کتاب الوتر) او دحضرت سعد ﷺ دا حديث دمستدرک حاکم څخه علاوه په لاندې کتابونو کې هم راغلى دى.

(۱) نسائي: ج ۱ص ۲٤٨ (۲) دارقطني: ص ۱۷۵

(۳) موطاامام محمد: ج ۱ص ۱۵۱ (٤) طحاوى: ج ۱ص ۱۹۳].

(۵) محلى ابن حزم: ج ۲ص ٤٨]. (٦) ابن ابى شيبه: ج ۲ص ۲۹۵]

(۷) بهيقى: ج ۳ص ۳۱] (۸) مسنداحمد: ج ٦ص ۱۵٦]

(۹) طبرانى صغير...

په دى لسو کتابونو کې دحديثو الفاظ داسې دي چې رسول الله ﷺ دوتر په دوو رکعتونو سلام نه دى ګرځولى (كان رسول الله ﷺ يوتر بثلاث لايسلم الا فى اخر هن) نو ددې لسو سندونو په دې اتفاق دى چې دحديث الفاظ (لايسلم) دى يعنې رسول الله ﷺ ددو رکعتونو څخه وروسته سلام نه دى ګرځولى اوپه يوولسم سند کې دوه نسخې دي يوه نسخه د (لايعقد) ده اوبله نسخه د (لايسلم) ده.

أَخْبَرْنَاهُ أَبُونَصْرٍ أَحْمَدُ بْنُ سَهْلٍ الْفَقِيهُ بِبُخَارَى، ثنا صَالِحُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ حَبِيبٍ الْحَافِظُ، ثنا شَيْبَانُ بْنُ فَرُّوخَ بْنِ أَبِى شَيْبَةَ، ثنا أَبَانُ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ زُرَارَةَ بْنِ أَوْفَى، عَنْ سَعْدِ بْنِ هِشَامٍ، رحمة الله تعالى عليهم عَنْ عَائِشَةَ رضي الله عنها، قَالَتْ: «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُوتِرُ بِثَلَاثٍ لَا يُسَلِّمُ (فِى نُسْخَةٍ لَا يَقْعُدُ) إِلَّا فِى آخِرِهِنَّ» وَهَذَا وِتْرُ أَمِيرِ الْمُؤْمِنِينَ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ «وَعَنْهُ أَخَذَهُ أَهْلُ الْمَدِينَةِ (المستدرک ج ۱ص ۳۰٤).

کله چې لس سندونه په دې متفق وو چې په حديث کې د (لايسلم) لفظ راغى يعنې رسول الله ﷺ ددو رکعتونو څخه وروسته سلام نه دى ګرځولى.

اوپه یو ولسم سند کې هم یو نسخه د (لایسلم) وه لکن بله نسخه د لایقعد وه یعني رسول الله ﷺ د دوو رکعتو نو څخه وروسته ناسته نه وه کړی نوله دې وجهې ضروري ده چې د دې نسخې د متن او د سند تحقیق وکړی شي چې دلسو سندونو څخه مخالفه ده، ځکه چې د دې نسخې مثال داسې دی لکه د کوم متواتر قرائت په خلاف چې شاذ قرائت راشي او یاد محکم په مقابل کې چې متشابه راشي :

(۱) د دې نسخې د سند داولو دواړو راویانو حال نه په تقریب کې شته، نه په تذکرة الحفاظ کې، نه په میزان الاعتدال کې او نه په تهذیب التهذیب کې (مجموعة الرسایل : ج ۲ص ۱۱۷ وص ۳۳٦ ) وتجلیات صفدر ،ج ۲ص ۵٦۷ )

(۲) د دریم راوی شیبان بن فروخ په باره کې په تقریب التهذیب کې لیکل شوي دي چې (صدوق یهم ورمی بالقدر) یعنې رشتینې دي لکن د وهم ښکار وو او د تقدیر څخه د انکار تهمت هم پرې لګیدلی وو . (تقریب التهذیب ص ۱٤۸ ) .

(۳) څلورم راوی ابان دی، د ابان ولدیت په حدیث کې نه دی ذکر شوی .

په تقریب التهذیب کې د ابان په نوم لس کسان دي، په دې لسو کې اته ضعیف دي او دوه ثقه دي . علامه نیموی رحمه الله فرمائی چې ابان بن یزید ثقه دی، لکن دده دا روایت د ثقه وو څخه د مخالفت په وجه غیر محفوظ دی . اثار السنن ،ج ۱ص ۱۷۰ (باب من قال ان الوتر بثلاث انما یصلي بتشهد واحدٍ)

(٤) د غیر مقلدینو په معتمده فتاوی کې یې لیکلي دي چې د ابان په روایت کې د لایقعد په ځای لایسلم دی له دی وجهې د امام بیهقی د تصریح مطابق د لایقعد الفاظ و ته غلط ویل پکار دي. (فتاوی علماء حدیث : ج ۳ص ۱۹۹).

(۵) د دې روایت مدار په قتادة دی او قتادة چې په عن سره روایت وکړي، نو د غیر مقلدینو په دې اتفاق دی چې دده هغه روایت حجت نه دی ، ځکه چې د صحیح مسلم شریف د (اذا قرء فانصتوا ) روایت دوي له دې وجهې څخه نه مني چې په هغې کې قتادة په عن سره روایت کړی دی او د نسائي ( جلد اول ص ۱۲۳ ) کې د حضرت مالک بن حویرث په سجدو کې د رفع الیدین د روایت د منلو څخه هم ځکه انکار کوي چې هلته قتادة ﷺ په عن سره روایت کړی دی، نو د سند له لحاظه دا حدیث قابل د استدلال نه دی .

(٦) ددې حديث په متن کې چې فکروکړای شي نو هم د (لايقعد) جمله صحيح نه ده، ځکه چې ددې څخه وروسته په همدې روايت کې دا هم شته چې دوترودا طريقه د حضرت عمر ﷺ وه او همدا طريقه اهل مدينه وو د حضرت عمر ﷺ څخه اخستې وه، نو اوس به وګورو چې د حضرت عمر ﷺ طريقه دلايقعد وه او که دلايسلم وه؟

مخکې تيره شوه چې د حضرت صديق اکبر ﷺ ددفن څخه وروسته چې کله حضرت عمر ﷺ صحابه وو رضی الله عنهم ته دوترو لمونځ ورکولو نو په اخرکې يې سلام وګرځولو، په هغه روايت کې لايسلم الفاظ دي دلايقعد نه دي (لم يسلم الافی اخرهن) (طحاوی ج ۲ ص ۲۰۲).

(۷) حضرت حسن بصری (رحمه الله) ته چې کله وويل شول چې حضرت عبدالله بن عمر ﷺ په وورکعتونو سلام ګرځوي، نو حسن بصری (رحمه الله) ورته وفرمايل چې دده والد حضرت عمر ﷺ ديرغټ فقيه وو هغه به په دوو رکعتونو د سلام څخه بغير دريم رکعت ته پورته کيدلو. (مستدرک ج ۱ ص ۳۰۴، صحيح البخاري ج ۱ ص ۱۳۵، حاشيه نمبر ۸)

## دحضرت عمر ﷺ څخه په هيڅ صحيح سندسره د(لايقعد) لفظ نه دی ثابت

(۸) - داهل مدينه وو طريقه هم دلايسلم والاوه، لکه څرنګه چې مخکې تيره شوه، داهل مدينه وو څخه په يوروايت کې هم لايقعد نه دی رانقل شوی. خلاصه دا چې د (لايقعد) والا روايت نه سنداً صحيح دی او نه متناً او د اکثرو احاديثو څخه د مخالفت په وجه منکر روايت دی، له دی وجهې مولوی عبدالروف (چې غير مقلد دی) هم دی اقرار ته مجبور شوی دی چې په دې حديث کې د (لايقعد) لفظ محل دنظر دی. (حاشيه صلوة الرسول ص ۳۹۱) امام بيهقی هم ورته خطاويلی دی (ج ۳ ص ۲۸)

(۹) _ او که په طريقې د فرض المحال صحيح شي نو بيا به نفی القعود په هغه قعود ورحملو چې په هغې کې سلام وي جمعاً بين الاحاديث ،التعليق الحسن، ص ۱۷۱)

## لاتشبهوا الوتر بصلوة المغرب

غيرمقلدين د اولی قعدې دنفې لپاره د ابوهريرة ﷺ حديث هم پيش کوي چې الفاظ يې داسې دي چې: عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ ﷺ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ قَالَ لَاتُوْتِرُوْا بِثَلَاثٍ اَوْتِرُوْا بِخَمْسٍ اَوْ بِسَبْعٍ وَلَا تُشَبِّهُوْا الصَّلَاةَ الْمَغْرِبَ (دارقطني ج ۲ ص ۲۵، لاتشبهوا الوتر بصلوة المغرب).

لکن ددینه استدلال بالکل غلط دی، ځکه چې ددې حدیث معنی داده چې دوترو څخه مخکې سنت مه پریږدئ لپاره ددې چې دماښام دلمانځه سره یې فرق راشي ، یا دوترو څخه مخکې تهجد مه پریږدئ نو دتهجدو طرف ته ترغیب دی، ځکه چې پدې حدیث کې د دریو رکعتو وترو څخه ممانعت دی، حالانکې درې رکعته بالاتفاق جایز دي، دغیر مقلدینو دحال څخه تعجب دی، چې ددې حدیث دکوم ځای څخه نفی دقعدې رامعلوموي؟ په دې حدیث کې خودنفی دمشابهت لپاره خپله نبوي ﷺ تشریح موجوده ده، چې اوتروبخمس اوبسبع ای باداء الرکعتین تطوعا قبله اوبرکعتین بعده ایضا.

همدا تاویل دحضرت عایشې رضی الله عنها په حدیث کې ذکر شوی دی چې: لَا یُوتَرُ بِثَلَاثٍ بُتْرَاءَ صَلِّ قَبْلَهَا رَكْعَتَيْنِ، أَوْ أَرْبَعًا (مصنف ابن ابی شیبه ، من کان یوتر بثلاث او اکثر)

همدارنګه په طحاوي، باب الوتر کې د عبدالله بن عباس رضی الله عنهما اثر دی چې: إِنِّي لَأَكْرَهُ أَنْ يَكُونَ بُتْرَاءَ ثَلَاثًا، وَلَكِنْ سَبْعًا أَوْ خَمْسًا.

**نتیجه** :غیر مقلدین چې درې رکعته وتر په کومو دوو طریقو باندې کوي دواړه طریقې یې غلطې دي.

یوه طریقه یې بالاجماع متروکه ده اوداجماع څخه وتونکي د حدیث دتصریح مطابق دوزخي دی اودوهمه طریقه یې په شاذ اومنکر روایت باندې بناء ده اود مشهورو احادیثو په مقابل کې په منکراتو باندې عمل کونکی هم یقیناً چې ګمراه دی.

دغیر مقلدینو دریمه طریقه یو رکعت وتر کول دي اوداهم غلطه ده.

## دیو رکعت وترو مسئله

مخکې خبره تیره شوه چې په ابتداء داسلام کې په لمانځه کې سلام اوکلام جایزوو، له دی وجهې رسول الله ﷺ په بعضې وقتونو کې دوتروپه دوورکعتونو سلام ګرځولی دی اویو رکعت یې ځانته کړی دی. نوددغې واقعې لیدونکو. راویانو دوه قسمه روایت کړی دی، بعضو دریو رکعتونو په دوو سلامونو روایت کړی دی او بعضو صرف داخري رکعت فکر کړی دی اودیو رکعت وترو روایت یې کړی دی اوپاتې شو صرف اوصرف یو رکعت بغیر ددوو رکعتونو څخه نو دا درسول الله ﷺ څخه هیڅکله نه دي ثابت، لکه څرنګه چې امام رافعي رحمه الله اوابن صلاح فرمایي چې: لـم یثبـت منـه صـلى الله عليـه وسلم الاقتصار على واحدة ولانعلم فى روايات الوتر مع كثرتها أنه صلى الله عليه وسلم اوتر بواحدة

فحسب (معارف السنن ج٤صـ ٢١٥) ملا علي القاري رحمه الله فرمايي چې: ولا يوجد مع الخصم حديث يدل على ثبوت ركعةٍ مفردة فى حديث صحيح ولاضعيف (مرقات ج ٣صـ ١٦٠)

دوترورواياتِ سره ددې چې ډيرزيات دي ليكن مونږته په كې داسې روايت نه دى معلوم چې په هغه كې راغلي وي چې رسول الله ﷺ يو ركعت وتر كړى دى.

حافظ ابن حجر د حافظ ابن الصلاح په دعوې اعتراض كړى دى چې په دار قطني كې روايت دى چې: عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ رحمه الله عَنْ عَائِشَةَ رضي الله عنها أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «أَوْتَرَ بِرَكْعَةٍ»(سنن الدارقطني: مَا يَقْرَأُ فِي رَكَعَاتِ الْوِتْرِ وَالْقُنُوتُ فِيهِ

لكن د حافظ ابن حجر دا اعتراض صحيح نه دى، ځكه چې د دارقطني دا روايت په اصل كې د صحيح البخاري د: بَابٌ: كَيْفَ كَانَ صَلاَةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ وَكَمْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي مِنَ اللَّيْلِ، د روايت ځخه اختصار دى چې د عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ رحمه الله عَنْ عَائِشَةَ رضي الله عنها په سند سره ذكر شوى دى پدې اصل روايت كې ايتار بركعة واحدةٍ فقط نه دى ذكر شوى، (وګوره صحيح البخاري، كتاب التهجد، رقم الحديث ١١٤٠).

ليكن غير مقلدين د احنافو سره په ضد كې په يو ركعت وتروباندې زورونه وهي او ديو ركعت وترو لپاره يو ځو دلايل پيش كوي، چې په هغوي كې د ټولو ځخه اول د حضرت ابو ايوب انصاري رضي الله عنه حديث دى، چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې د چاخوښه وي پنځه ركعته وتردي وكړي او كه د چاخوښه وي درې ركعته وتردې وكړي او كه د چاخوښه وي يو ركعت وتردې وكړي.

**ليكن غيرمقلدين په دې كې دوه خبرې پټوي:**

(١) دا حديث په اصل كې د صحابي قول دى.

حافظ ابن حجر ليكلي دي چې امام ابو حاتم، زيلعي دارقطني درعلل بيهقي او ډيرو حضراتو دې حديث ته موقوفاً صحيح ويلي دي او همدا خبره صحيح ده. (التلخيص الحبير، ج ٢ص ١٣). موقوف د صحابي قول ته وائي او د غير مقلدينو مسلمه قاعده ده. (كه موقوفات صحابه حجت نيست).

د صحابي قول دليل نه شي جوړيدلى، الحق الصريح، ج١ص ٤٠ تحت قول صاحب المشكوة كانى اسندت الى النبى ﷺ.

(۲) دنسائي شريف په، ج ۱ص ۲۴۹) کې ددې روايت په اخير کې داهم شته چې دچاخوښه وي اشاره دې وکړي داجمله غير مقلدين هيڅکله نه بيانوي. ځکه چې په دې جمله کې يورکعت وترو ته هم رخصت ورکړل شوی دی. اوعجيبه خوندوره اساني ده ؟؟؟ چې دوترو ټولو اختلافاتو ته يې خاتمه هم ورکړې ده.

(۳) حضرت ابن عباس ﷺ او حضرت ابن عمر ﷺ مرفوعًا بيان کوي چې: (الوتر ركعة من اخر الليل) مسلم ج ۱ص ۲۵۷). حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چې داحديث صرف ديورکعت وترو لپاره صريح نه دی ځکه چې په دې کې دا احتمال شته چې ددې معنی داوي چې دتيرودوورکعتونو سره يورکعت يوځای کړئ چې درې رکعته وتر(طاق) شي. (فتح الباری ج ۲ص ۳۸۵ وفی البعض، صــ ٤٨١، کتاب الوتر، باب ماجاء فی الوتر)همدا تاويل امام طحاوي رحمه الله هم ذکر کړی دی(شرح معانی الاثار ج ۲صــ ۱۹۱، باب الوتر) همدا تاويل ملا علي قاري هم ذکر کړی ده.

(۴) مخکې تيرشوچې په ابتداء داسلام کې کله رسول الله ﷺ د وترو په دوورکعتونو سلام ګرځولی دی او يورکعت يې ځانته بيان کړی دی خو بيا وروسته داعمل منسوخ شو.

(۵) ددې څخه وروسته خپله حضرت عبدالله بن عباس ﷺ او حضرت عبدالله بن عمر ﷺ داحديث روايت کړی دی چې دوترو لمونځ دماښام دلمونځ په شان دي. (موطاامام محمد ص ۱۴۶\۱ مصنف عبدالرزاق ج ۳ص ۲۸).

اوظاهره ده چې دماښام لمونځ هيڅکله يورکعت نه دی جايز.

(٦) په اخر کې حضرت عبدالله بن عباس ﷺ ديورکعت وترو سره دومره مخالف وو چې چا به يورکعت وتر کول نو هغه ته به يې حمار (خر) ويلو. (طحاوی ج ۱ص ۱۹۹).

افسوس چې غيرمقلدين دعبدالله بن عباس ﷺ دتيرې زمانې روايت پيش کوي لکن داخري زمانې روايت يې پټوي حالانکه :کتمان سبيل اليهود)دی.

(۷)عَنْ أَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهٖ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنِ الْبُتَيْرَاءِ أَنْ يُّصَلِّيَ الرَّجُلُ وَاحِدَةً يُوْتِرُ بِهَا. (رواه ابن عبدالبرفی التمهيد ج ۱۳، صــ ۲٥٤، اعلاء السنن ج ٦ص ٤٠).

حضرت ابو سعید خدری ﷺ فرمائی چې رسول الله ﷺ دبتیراء څخه منعه کړی ده یعنې ددې څخه چې سړی یو رکعت وتر وکړي. علامه عیني دطحاوي په شرحه کې ددې روایت په رجالو فرداً فرداً کلام کړی دی او فرمایلي یې دي چې د دې روایت صرف په یو راوي عثمان بن محمد بن عثمان باندې عقیلي دا جرحه کړې ده چې الغالب على حديثه الوهم لکن بل هیڅ کوم محدث ورباندې جرحه نده کړې، لهذا دا حدیث داستدلال قابل دی.

د بتیراء صحیح تفسیر همدا دی چې: أن يصلى الرجل ركعة واحدة، دا په مرفوع حدیث کې راغلي دي، دوهم تفسیر یې د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما څخه مروي دی چې: انما البتيراء أن يصلى الرجل الركعة التامة فى ركوعها وسجودها وقيامها ثم يقوم فى الأخرى فلا يتم لها ركوعاً ولاسجوداً ولا قياماً فتلك البتيراء ( بيهقى ، باب الوتر بركعتة واحدة الخ) اول تفسر راجح دی، ځکه چې هغه دنبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تفسیر دی او یا که د ابو سعید خدري رضی الله عنه تفسیر شي نو بیا هم راجح دی، ځکه چې ابو سعید خدري رضی الله عنه د بتیراء د حدیث راوي دی او ابن عمر رضی الله عنهما دبتیراء دحدیث راوي نه دی، د راوي تفسیر ته ترجیح ده.

(۸) عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ كَعْبٍ الْقُرَظِيِّ رحمة الله تعالى عليه أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ نَهَى عَنِ الْبُتَيْرَاءِ (زیلعی ج۱ص ۳۰۲ وهو مرسل معتضد). محمد بن کعب ﷺ فرمائي چې رسول الله ﷺ دبتیراء یعنې دیو رکعت وتر څخه منع فرمایلی ده.

دصحابه وو (رضوان الله علیهم اجمعین) او تابعینو (رحمهم الله) په دور کې دهمدې احادیثو موافق عمل جاري وو، دیو رکعت وترو هیڅ راوج نه وو، که کوم چا به شاذ اونادر یو رکعت وکړو، په هغه به خلکو اعتراض کولو او خلکو به ورته په تعجب کتل، هغه به ددې اعتراض په جواب کې هیڅ حدیث نه شوی پیش کولی.
{مجموعة الرسایل، ج ۲ص ۳۳۹ وص ۱۲۱) از مولانا محمد امین صفدر رحمه الله.

علامه بنوري رحمه الله فرمايي چې: داحنافو دمذهب دترجیح لپاره دا خبره کافي ده چې درې رکعته بالاتفاق جایز دي او د دریو څخه په کمو او زیاتو کې اختلاف دی او متفق علیه د مختلف فیه څخه راجح وي.

مونږ ډير واقعات د صحيحو احاديثو څخه داسې پيش کولی شو، چې په هغې کې په يو رکعت وتر کونکي باندې سخت اعتراضونه شوي دي. او تاسو دا ثابته کړئ چې په چا باندې چې اعتراض شوی وي هغه په فلان صحيح حديث باندې د اعتراض کونکي په مخ کې يو رکعت وتر ثابت کړی دی.

**(۱)- اوله واقعه** : بَلَغَ ابْنَ مَسْعُوْدٍ أَنَّ سَعْدًا يُوتِرُ بِرَكْعَةٍ قَالَ: مَا أَجْزَأَتْ رَكْعَةٌ قَطُّ (مجمع الزوايد، باب عدد الوتر ج ۲ صـ ۲٤۲)

يوه ورځ حضرت سعد ﷺ يو رکعت وتر وکړل، نو حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ ورته وفرمايل چې: يو رکعت وتر هيڅکله نه دی جايز. (وعاب ذلک علی سعد ﷺ) د حضرت سعد ﷺ دا فعل يې معيوب وګڼلو (طحاوی ج ۱ ص ۲۰۳) مگر حضرت سعد ﷺ د دې اعتراض په مقابل کې يو صحيح حديث هم پيش نکړو که په غير مقلدينو کې ذره همت وي نو د حضرت سعد ﷺ څخه دی جواب ثابت کړي.

مَالِكٌ رحمه الله، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ رحمه الله، أَنَّ سَعْدَ بْنَ أَبِي وَقَّاصٍ رضي الله عنه كَانَ يُوتِرُ بَعْدَ الْعَتَمَةِ بِوَاحِدَةٍ، قَالَ يَحْيَى رحمه الله، قَالَ مَالِكٌ رحمه الله: وَلَيْسَ عَلَى هَذَا الْعَمَلُ عِنْدَنَا. وَلَكِنْ أَدْنَى الْوِتْرِ ثَلَاثٌ، (موطا امام مالک، باب الامر باالأمر بالوتر ج ۱ صـ ۲۵)

**(۲) دوهمه واقعه** :حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ صراحةً په ښکاره اعلان وکړو چې : مااجزأت رکعة واحدة قط (موطاامام محمد ص ۱۵۰) يعنې ما هيڅکله هم يو رکعت وتر کافي نه دي ګڼلي، په دغه وخت کې په کوفه کې په زرګونو صحابه (رضی الله عنهم) او تابعين موجود وو. ليکن هيڅ کوم صحابي يا تابعي د ده په خلاف يو حديث هم پيش نکړو.

**(۳) دريمه واقعه** : حضرت عبدالله بن سلمه ﷺ فرمائي چې حضرت سعد ﷺ په کوفه کې يو رکعت وتر وکړل زه ورپسې ورغلم د مټ څخه مې ونيولو او ورته مې وويل چې. ( ياابااسحق ماهذه الرکعة ). يعنې دا رکعت څه شی دی ؟ (طحاوی ج ۱ ص ۲۰۳).

(۴) حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ فرمائي چې : اهون مايکون الوتر ثلاث رکعات، موطاامام محمد، ص ۱۵۰ وتر کم از کم درې رکعته دي. د دې څخه معلوميږي چې د شاذ و قراء تونو په شان يو رکعت

وترهم صحابه وو او تابعینو ته یو عجیب کار ښکاریدو. حضرت سعد ﷺ د حضرت عبد الله بن سلمه ﷺ په خلاف هیڅ حدیث پیش نکړو.

(۴) غیر مقلدین وائي چې حضرت امیر معاویه ﷺ یو رکعت وتر کړي دي او د حضرت ابن عباس ﷺ قول دلیل شرعي دی. احناف وائي چې د جمهورو صحابه وو قول او فعل دلیل شرعي دی، د جمهورو صحابه وو (رضی الله عنهم) په خلاف د هیچا قول او فعل دلیل شرعي نه دی، اګرچې د ابن عباس ﷺ په شان مونږ هم د اجتهادي اختلاف تاویل کوو.

بهر حال د دې خلاصه داده چې حضرت امیر معاویة ﷺ یو رکعت وتر وکړل او یو رکعت وتر په هغه زمانه کې یو اجنبی فعل وو. ابن ابی ملیکه راغلو ابن عباس ﷺ ته یې وویل، ابن عباس ﷺ ورته وویل چې: انـه نقیـه (یعنې د یو رکعت وترو په باره کې د امیر معاویة ﷺ سره هیڅ صریح حدیث نه شته البته) دا د امیر معاویة ﷺ خپله فقیه رایه ده. او فقیه که په خپل اجتهاد کې خطاء هم وي نو یو اجر ورته میلاویږي، له دی وجهې یې (اصاب) هم فرمایلي دي او یقیناً چې هیڅ غیر مقلد دا نه شي ثابتولی چې حضرت امیر معاویه ﷺ دې کوم صریح حدیث پیش کړی وي. د دې څخه معلومیږي چې په پوره مکه مکرمه کې هیچا هم یو رکعت وتر نه پیژندل، ځکه خو د امیر معاویة ﷺ په دې فعل باندې لیدونکي حیران شوي وو.

(۵) حضرت ابن ابی ملیکه ته ابن عباس ﷺ مذکور جواب ورکړ او کله چې حضرت عکرمه ﷺ هم راغلو او ورته وی ویل چې حضرت معاویة ﷺ یو رکعت وتر وکړل (شاید په دې خیال چې د دې اجتهادي خطائي رواج نه وو). نو حضرت ابن عباس ﷺ سخت الفاظ هم فرمایلي دي. (طحاوی ج ۱ ص ۱۹۹).

(٦) غیر مقلدین وائي چې حضرت عثمان ﷺ یو رکعت وتر کړي دي او په یو رکعت کې یې ټول قرآن ختم کړی دی. (دار قطنی طحاوی). مونږ وایو چې ستاسو په نیز د حضرت عثمان ﷺ فعل دلیل شرعي نه دی. او همدارنګه په یو رکعت کې قرآن ختمول ستاسو په نیز د حدیثو څخه مخالفت او بدعت دی، نو تاسو ته د دې دلیل څه فایده ده؟ او همدارنګه مونږ وایو چې د دې په سند کې فلیح بن سلیمان راوي ضعیف دی.

او همدارنګه په دې روایت کې دا هم شته چې جلیل القدر صحابی حضرت عبد الرحمن التیمی چې کله حضرت عثمان ﷺ په دې یو رکعت وترو باندې ولیدلو نو وي فرمایل چې (اوهم الشیخ).

کـه د وَهـم يـادهيرې لـه وجهـې کـوم چايو رکعـت وترکـرې وي نوممکنـه ده، لـيکن بغيـرد وَهـم اوبغير دهيرې څخه يو رکعت وترپه هغه دورکې دچاپه تصورکې هم نه راتلل او حضرت عثمان ﷺ هم کوم حديث نه دی پيش کړی چې دا وهم نه دی بلکې زه په فلان حديث باندې عمل کوم او همدارنګه د حضرت عثمان ﷺ په زمانه کې دشل رکعته تراويحو څخه وروسته ټولو صحابه وو په جماعت باندې درې رکعته وترکول او هيچا انکار نه کولو.

ددې ټولو رواياتو څخه دا هم ثابتيږي چې يو رکعت وتر د صحابه وو په زمانه کې يو منکر کار وو، دا تعامل ددې دليل دی چې د بتيراء حديث بې اصله نه دی.

(۷) په ټولو صحاح ستة وو کې د رسول الله ﷺ دا فرمان موجود دی چې: (صلوة الليل مثني مثني).
د شپې لمونځ دوه دوه رکعتـه دي، ددې حديث څخه صفا معلوميږي چې د لمانځـه نصاب کم از کم دوه رکعته دي، ددې څخه کم لمونځ نه شته، همدا وجه ده چې په فرايضو او نوافلو کې که په په سفرکې وي يا په حضرکې، تر دې چې په صلوة خوف کې هم يو رکعت لمونځ نه شته.

(۸) دام المومنين حضرت عايشې رضی الله عنها څخه حضرت عبدالله بن ابی قيس ﷺ پوښتنه وکړه چې رسـول الله ﷺ څو رکعتـه وترکړي دي؟ هغې (رضـی الله عـنهم) ورتـه جـواب ورکړو چې څلور او درې .شپږ او درې اتـه او درې، لـس او درې رکعتـه يـې کـړي دي. هيڅکلـه يـې د ديارلسـو رکعتو څخه زيـات او داوو (۷) رکعتو څخه کم نه دی کړی. [احمد ج ٦ ص ١٥٦ / طحاوی ج١ ص ١٩٨ / ابوداود ج ١ ص ٢٠٠].

ددې څخه معلوميږي چې رسول الله ﷺ د درې رکعتونو څخه نه زيات وترکړي دي او نه يې د درې رکعتونو څخه کم کړي دي.

## پنځه،اوه ، نهه، يوولس او ديارلس رکعته وتر

د شپې په اخرکې دوه لمونځونه کيږي يو صلوة الليـل او دوهم وتر دا دواړه دوه جدا جدا لمونځونه دی، محدثينو هم ورته جدا جدا بابونه لګولي دي، لکن دا دواړه په يو وخت کې ادا کيږي، لهذا يو په بل يې اطلاق کيږي، نو راويانو دوه قسمه رانقل کړي دي، بعضو د تفقه څخه کار اخستی دی دواړه يې جدا جدا ذکرکړي دي، لکه د مشکوة په باب الوتر، فصل ثاني کې چې د حضرت عايشې رضی الله عنها په روايت کې راځي چې

دحضرت عايشې رضی الله عنها څخه پوښتنه وشوه چې بِكَمْ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُوتِرُ؟ حضرت عايشې رضی الله عنها ورته وفرمايل چې: كَانَ يُوتِرُ بِأَرْبَعٍ وَثَلَاثٍ وَسِتٍّ وَثَلَاثٍ وَثَمَانٍ وَثَلَاثٍ وَعَشْرٍ وَثَلَاثٍ).

حضرت عايشې رضی الله عنها دسبع په ځای داسې تعبير وکړو چې: بِأَرْبَعٍ وَثَلَاثٍ ،نو څلور تهجد شو اودرې وتر او د تسع په ځای يې داسې تعبير وکړو چې: سِتٍّ وَثَلَاثٍ نو شپږ رکعته تهجد شو او درې رکعته وترشو او د احدعشر په ځای يې داسې تعبير وکړو چې ثَمَانٍ وَثَلَاثٍ اته رکعته تهجدو او درې رکعته وتر شو او د ثلاثة عشر په ځای يې داسې تعبير وکړو چې عَشْرٍ وَثَلَاثٍ لس رکعته تهجد او درې رکعته وتر ،نو تهجد زياتيدل او کميدل او وتر درې رکعته وو ، نه کميدل او نه زياتيدل دا روايت مفصل دی او بعضې راويانو اجمال کړی دی، مجازاً يې صلوة الليل ته هم وتر ويلي دي او د دواړو څخه يې په وترو تعبير کړی دی،مثلاً دا اتو رکعتو تهجدو او درې رکعته وترو مجموعې څخه يې په أَوْتَرَ بِأَحَدَ عَشَرَةَ رَكْعَةً سره تعبير کړی دی، نو مجمل به د مفصل تابع وي.

## د يو تشهد او يو سلام سره پنځه رکعتونه

حضرت عايشه رضی الله عنها فرمايي چې: كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي مِنَ اللَّيْلِ ثَلَاثَ عَشَرَةَ رَكْعَةً يُوتِرُ مِنْ ذٰلِكَ بِخَمْسٍ لَا يَجْلِسُ فِي شَيْءٍ إِلَّا فِي آخِرِهَا (متفق عليه)

شوافع وايي چې د دوو څخه زيات رکعتونه هم په يو تشهد سره جايز دي، نو پنځه رکعته په يو تشهد سره ادا کيږي او احناف فرمايي چې دهرو دوو رکعتونو څخه وروسته قعده ضروري ده، په مشکوة باب صفة الصلوة صـ ۷۷ فصل ثالث کې حديث دی چې الصلوة مثنی ،مثنی ،تشهد فی کل رکعتين، همدارنګه په صحيح مسلم کې حديث دی چې :كَانَ( رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ) يَقُولُ فِي كُلِّ رَكْعَتَيْنِ التَّحِيَّةَ (صحيح مسلم باب ما يجمع صفة الصلوة ج ۱صـ ۱۹۴)، لهذا د دې حديث لپاره مختلف توجيهات دي مثلاً : ۱–په دې حديث کې د پنځو رکعتونو څخه درې رکعته وتر او دوه رکعته نفل مراد دي، او د لا يجلس څخه جلسة الفراغ او جلسة الاستراحت مراد ده دنفس قعدې نفي نه ده مراد، يعنې جلسة الفراغ او جلسة الاستراحت به يې بالکل په اخر کې کوله، يعنې د وترو څخه وروسته به د ذکر او دعا لپاره نه کيناستلو ، بلکې د وترو څخه وروسته به يې دوه رکعته نفل وکړل.

یا به یې معنی داشي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم به د وترو څخه مخکښي نوافل په ولاړه کول او د وترو څخه وروستني نوافل به یې په ناسته کول، نو د جلوس څخه مراد جلوس فی الصلوة دی.(ای لایصلی جالساً الا الرکعتین بعدالوتر)

## لایجلس فیها الا فی الثامنة

سعد بن هشام رضی الله عنه د حضرت عایشې رضی الله عنها څخه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د وترو په باره کې پوښتنه وکړه، حضرت عایشې رضی الله عنه ورته وفرمایل چې ما به نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته مسواک او اوبه تیارې کړې، بیا به نبي کریم صلی الله علیه وسلم نهه رکعته وکړل، لایجلس فیها الا فی الثامنة؟

قلنا: پدې حدیث کې شپږ رکعته تهجد دي حضرت عایشې رضی الله عنها دهغوي د جلساتو او سلامونو تفصیل ندی کړی، درې رکعته پکې وتر دی، دهغې تفصیل یې داسې وکړو، په مجموعي نهو رکعتونو کې اتم رکعت د وترو دوهم رکعت کیږي، نو د دې رکعت څخه وروسته نبي کریم صلی الله علیه وسلم صرف جلسه کړې ده او د دریم رکعت څخه وروسته نبي علیه السلام جلسه مع السلام کړې ده، لکه په بل حدیث کې راځي حضرت عایشة رضی الله عنها فرمایي چې: كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يُسَلِّمُ فِي رَكْعَتَيِ الْوَتْرِ. نو د لایجلس څخه د سلام جلسه مراده ده.

## په وترو کې رفع اليدين کول سنت دي

(۱) عَنْ الْأَسْوَدِ رحمه الله، عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ رضي الله عنه، أَنَّهُ كَانَ يَقْرَأُ فِي آخِرِ رَكْعَةٍ مِنَ الْوِتْرِ قُلْ هُوَ اللّٰهُ أَحَدٌ ثُمَّ يَرْفَعُ يَدَيْهِ وَيَقْنُتُ قَبْلَ الرَّكْعَةِ. (رواه البخاری فی جزء رفع الیدین واسناده صحیح ،( اثار السنن ص :۱۷٤) باب رفع الیدین عندالقنوت.

حضرت اسود د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه روایت کوي چې هغه رضي الله عنه به د وترو په اخر رکعت کې قل هو الله احد ولوستلو، بیا به یې لاسونه اوچت کړل، بیا به یې د رکوع څخه مخکې دعاء قنوت ولوستله.

(۲) عَنْ إِبْرَاهِيمَ النَّخَعِيِّ رحمه الله قَالَ: "تُرْفَعُ الْأَيْدِي فِي سَبْعِ مَوَاطِنَ: فِي افْتِتَاحِ الصَّلَاةِ، وَفِي التَّكْبِيرِ لِلْقُنُوتِ فِي الْوِتْرِ، وَفِي الْعِيدَيْنِ، وَعِنْدَ اسْتِلَامِ الْحَجَرِ، وَعَلَى الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ، وَبِجَمْعٍ وَعَرَفَاتٍ، وَعِنْدَ الْمَقَامَيْنِ عِنْدَ الْجَمْرَتَيْنِ (رواه الطحاوى واسناده صحيح، اثارالسنن ص : ۱۷٤)

ابراهيم نخعي رحمه الله فرمايي چې رفع اليدين په اوو ځايونو کې دی، چې دهغوي څخه يو دوترو په لمونځ کې ددعاء قنوت لپاره دی

## په وترو کې دعاء قنوت ټول کال ويلی کيږي درکوع څخه مخکې واجب دی

(۱) وَعَنْ أَنَسٍ رضي الله عنه «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَنَتَ حَتَّى مَاتَ وَأَبُو بَكْرٍ رضي الله عنه حَتَّى مَاتَ وَعُمَرُ رضي الله عنه حَتَّى مَاتَ (مجمع الزوايد ج۲ ص : ۳۳۱) يعنې رسول الله ﷺ او ابوبکر رضي الله عنه او عمر رضي الله عنه تر وفاته پورې دعاقنوت نه دی پريښی .

(۲) - عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ رضي الله عنه، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُوتِرُ بِثَلَاثِ رَكَعَاتٍ (إِلَى أَنْ قَالَ) وَيَقْنُتُ قَبْلَ الرُّكُوعِ. (نسائي/(ج۱\ص : ۲٤۸) رسول الله ﷺ به درکوع څخه مخکې دعاقنوت لوستلو .

(۳) عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ رضي الله عنه: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ يُوتِرُ فَيَقْنُتُ قَبْلَ الرُّكُوعِ. ( ابن ماجه ص : ۸۳، باب ماجاء فى القنوت قبل الركوع وبعده). رسول الله ﷺ به وترکول او دعاقنوت به يې درکوع څخه مخکې لوستلو .

(۴) عبدالله بن عمر رضي الله عنه فرمايي : أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - «كَانَ يُوتِرُ بِثَلَاثِ رَكَعَاتٍ وَيَجْعَلُ الْقُنُوتَ قَبْلَ الرُّكُوعِ .

چې رسول الله ﷺ به درې رکعته وترکول او دعاقنوت به يې د رکوع څخه مخکې لوستله .(مجمع الزوايد ، باب القنوت ج ۲ص ۱۳۸)

(۵) حضرت انس رضي الله عنه فرمايي : چې رسول الله ﷺ به دعاء قنوت درکوع څخه مخکې لوستلو . (بخاری ج۱ ص: ۱۳۶ ،باب القنوت قبل الركوع وبعده ، ومسلم ج۱ ص؛ ۲۳۷ )

(۶) دعبدالله بن مسعود رضى الله عنه څخه روايت دی چې : عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، «أَنَّهُ قَنَتَ فِي الْوِتْرِ قَبْلَ الرُّكُوعِ (مصنف ابن ابى شيبه ، فى القنوت قبل الركوع او بعده)

(۷) - حضرت انس ﷺ فرمایي : چې دعاء قنوت به په هغه وخت کې لولئ چې کله دقراءت څخه فارغ شوې .(رواه البخاری فی المغازی، اثار السنن ص: ۱۷۲).

(۸) ابراهیم نخعی رحمه الله فرمایي چې : كان يقنت السنة كلها فى الوتر قبل الركـوع، عبدالله بن مسعود ﷺ به ټول کال په وترو کې دعاء قنوت لوستلو . (مصنف ابن ابی شیبه ج۱۲ص : ۲۰۵) .

(۹) حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ فرمایي چې : رسول الله ﷺ صحابه وو به په وترو کې دعاء قنوت د رکوع څخه مخکې لوستله ،أن أصحاب النبى ﷺ كانـوا يقنتـون فى الـوتر قبـل الركـوع، (معارف السنن ج ٤صـ ۲٤۱)

(۱۰) مولانا ادریس کاندهلوي رحمه الله فرمایي چې : دا کثرو صحابه وو عمل دا وو چې قنوت به يې د رکوع څخه مخکې لوستلو (التعليق الصبيح ج ۳صـ۱۰۲)

## ددې دلایلو څخه لاندې څوشیان ثابتیږي :

(۱) یو رکعت وتر جایزنه دی . اودیو رکعت وترو روایات د بتیراء دمنع څخه مخکې وو .

(۲) په دوو رکعتونو دسلام گرځولو طریقه هم صحیح نه ده ځکه چې په دې باندې عمل نه وو جاري .

(۳) په درې رکعتونو کې مینځنې قعده نه کول ،هم صحیح نه ده . په هیڅ حدیث کې ددې ثبوت نه شته .

(۴) د وترو صحیح طریقه په کومه چې د خیرالقرون تعامل جاري وو داده چې :درې رکعته، دوه التحیاته، اویو سلام وګرځول شي .

# د جنازې په لمونځ کې دسورة فاتحې شرعي حیثیت

بسم الله الرحمن الرحیم

نحمده ونصلي علی رسوله الکریم.

أمابعد!

افغانستان ،پاکستان ، اوهندوستان ته داسلام ددولت راورونکي اهل سنت والجماعت وو اوددولس سوو څخه ترزیاتو کلونوپورې په دې ملکونو کې داتفاق او اتحادپسرلی وو ، نه دلمانځه په باره کې جنګونه وو اونه دأودس په باره کې اختلاف وو اونه دجمعې په باره کې دنظراختلاف وو ، اونه داخترونوپه باره کې اختلاف وو لیکن کله چې دبرطانویانو فحاش منحوس قدم په هندوستان کې کیښودل شو . نوداختلافاتوتیارې اودنفاق طوفان ئې دځان سره راوړواودامت مسلمه اتحادیې ټوټې ټوټې کړو ، مسلمانان یې دمسلمانانوپه خلاف راوپارول . اوپه مسلمانانوکې داختلافاتوپه د راپیداکولو لپاره یې زیات کار دخپلو روحاني بچیانو غیرمقلدینو څخه و اخستلو ، ځکه چې ددې فرقې خمیره دبدګمانی ،بدزبانی اودفتنې اوفساد څخه جوړه شوې ده .

دی فرقې دمساجدو څخه دجنګ میدانونه جوړکړل ،دې فرقې دمسلمانانواتفاق اواتحادته یونظرهم نشوورکتلې ، په کوم ځای کې به چې مسلمانان متحدوودوي به هلته دنفاق اودفسادسپرغې جوړې کړی اورابنکاره به شو . داخوت اوددوستۍ فضابه یې خره پره کړه . هغه مسلمانان چې دیوجسد اوددووقالبونو مصداق ووپه هغوی کې یې دبغض او دعنادتخم وکرلوچې ثمره یې په خپلو کې یوبل ته کنځلې کول او جنګ او جګړه شوه .

کله به چې مسلمانان یوځای شو اودجماعت لمانځه ته به راغلل نو هلته به یې اختلاف جوړولو ، دجمعې دلمانځه لپاره به چې یوځای شونوپه څو دقیقو کې به سره په جنګ شول .

دحج عظیمه اجتماع هم ددوي دمشرانوورونودشراودفتنوڅخه په امن پاتې نه شوه اوهلته یې هم دومره عظیمه فتنه راپورته کړه چې مثال یې داسلام په تاریخ کې نه دی تیرې شوی .

حرمین شریفین یې ناپاک کړل او ۱۶ ورځې یې د الله ﷻ بندګان د طواف څخه محروم کړي وو.

مجموعة الرسایل ج ۱ ص ۲۳۳).

دجنازې لمونځ چې د انتهائي غم وخت دی او هیڅاته په کې نور غمونه نوي ورپه یاد، لیکن ددوی دفتنې څخه هغه هم په امن پاتې نه شوه. معلومیږي داچې ددوي په خوله کې ژبې نه دي بلکې زهریله نیشونه دی، بس فتوی بازي شروع کړي چې تاسو ټول بې نمازه یئ، په تاسو کې دهیچا دجنازې لمونځ نه کیږي. ستاسو ددولسو سوو کلونو څخه راپیدیخوا چې څومره علماء اولیاء او عوام وفات شوي دي اوشهیدان شوي دي ټول بغیر د جنازی، دفن شوي دي.

مـرګی مـردود نه فاتـحه نـه درود.

(استغفرالله معاذالله)

له دې وجهې دعوامو مسلمانانو همیشه داغوښتنه وي چې دجنازې دلمونځ شرعي طریقه که واضحه شي نو د اهل سنت والجماعت د مسلمانانو زړونه به مطمئن شي او کیدی شي چې کوم غیرمقلد ته هم وربانديې هدایت په نصیب شي

## دجنازې دلمانځه حکم

**دجنازې لمونځ فرض کفائي دی:**

الله ﷻ دجنازې دلمونځ حکم کړی دی فرمائي: (وَصَلِّ عَلَيْهِمْ) الاية. ددوي دجنازې لمونځ اداکړه.

ددې څخه یې فرض والی ثابتیږي، لکن کله کله به داسې کیدله چې جنازه به حاضره شوه او په مړي به قرض وو او یابه بله څه وجه وه نو رسول الله ﷺ به صحابه وو ته وفرمایل چې تاسو یې جنازه وکړئ او خپله به په کې نه شریکیدلو، ددې څخه معلومیږي چې دجنازې لمونځ فرض عین نه دی کنه رسول الله ﷺ به هیڅکله نه وه پریښی له دی وجهې اهل سنت والجماعت دجنازې لمونځ ته فرض کفایي وایي.

## دجنازې دلمانځه شرطونه

دجنازې دلمانځه داداء کولو لپاره څو شرطونه دي چې په لاندې ډول یې بیان کیږي:

**(۱) اسلام** : دجنازې دلمانځه لپاره اول شرط دا دی، چې متوفی به مسلمان وي، الله ﷻ فرمائي:
هيڅکله دکافرانو جنازه مکوه او مه يې په قبر دريږه.

**(۲) طهارت** : مړي ته غسل ورکول فرض دي، ددې لپاره چې د نجاست حقيقي او حکمي څخه پاک شي همدارنګه ضروري ده چې دبدن په شان يې کفن هم پاک وي او په کوم کټ او يا تابوت کې چې مړی کيښنودلی شي هغه به هم پاک وي، په دې باندې دټول امت اجماع ده .

**(۳) دمتوفی موجوديت** : دجنازې دلمونځ دصحيح والي لپاره دا هم شرط دی چې دمتوفی ټول بدن او يا اکثره بدن به دجنازه کونکو په مخه کې موجود وي .

رسول الله ﷺ چې څومره جنازې کړې دي نو متوفی به يې په مخ کې موجود وو. درسول الله ﷺ ډيرزيات صحابه ﷺ دمدينې منورې څخه بهر فوت شوي دي، ليکن ديو صحابي غايبانه جنازه يې هم نه ده کړې . همدارنګه درسول الله ﷺ ډير صحابه ﷺ دمدينې منورې څخه بهر اوسيدل، په مدينه منوره کې به چې څوک وفات شو نو په هيڅ ځای کې به دده غايبانه جنازه نه کيدله .

درسول الله ﷺ دخلفاء راشدينو رضی الله عنهم، دعشره مبشره رضی الله عنهم، داصحاب بدر رضی الله عنهم، داصحاب احد رضی الله عنهم، داصحاب بيعت الرضوان رضی الله عنهم، دامهات المومنين رضی الله عنهم دسيده فاطمة الزهراء ﷺ، دحسنين رضی الله عنهما ، وغيره صحابه وو رضوان الله عليهم سره چې دمسلمانانو څومره محبت وو او دی هغه دهيچا څخه پټ نه دی . ليکن په ټوله اسلامي نړۍ کې په دوی کې دهيچا غائبانه جنازه نه ده شوې.

که چا په صحيح سند سره دا ثابته کړه چې په ټوله اسلامي نړۍ کې صرف يو کس درسول الله ﷺ غائبانه جنازه کړې ده، يا يې دخلفاء راشدينو او يا يې دنورو صحابه وو غائبانه جنازه کړې ده . نو دفی حديث په مقابل کې ورته يو لاکهه روپۍ او غير مقلدينو ته ددوی يو خوندوره دسمسيرې ناشته انعام دی .

## دحضرت نجاشی رضی الله عنه دجنازې لمونځ

حضرت نجاشی ﷺ مسلمان وو ، کله چې وفات شو نو په حبشه کې دده دجنازې لپاره هيڅ مسلمان نه وو او دهيڅ حديث څخه ثابته نه ده چې په حبشه کې دحضرت نجا[illegible]نازه شوې ده

نو الله ﷻ لکه څرنګه چې د مکی مکرمې څخه رسول الله ﷺ ته بيت المقدس ښکاره کړو، همدارنګه د نجاشي ﷺ مړی هم ورته مکشوف شو.

حضرت عمران ابن حصين ﷺ فرمائي چې: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ... وَهُمْ لَا يَظُنُّونَ إِلَّا أَنَّ جَنَازَتَهُ بَيْنَ يديه. (ابن حبان) وفى رواية: وَمَا نَحْسِبُ الْجِنَازَةَ إِلَّا مَوْضُوعَةً بَيْنَ يَدَيْهِ. (مسند احمد ج۴ ص۴۴۶)

يعنې د رسول الله ﷺ او د صحابه وو ﷺ ټولو دا ګمان وو چې د نجاشي مړي د رسول الله ﷺ په مخه کې پروت دی، نو دا د رسول الله ﷺ معجزه وه او دا غائبانه جنازه نه وه ځکه چې د نجاشی مړی رسول الله ﷺ ته مخامخ شوی وو، بهرحال په خير القرون کې غاييانه جنازه په صحيح سند سره نه ده ثابته.

## دجنازې په لمونځ کې دعا

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَقُولُ: «إِذَا صَلَّيْتُمْ عَلَى الْمَيِّتِ فَأَخْلِصُوا لَهُ الدُّعَاءَ. (رواه ابوداود، ج ۲ ص ۱۰۰) وصححه ابن حبان ١. بلـوغ المـرام ص ١٠٧ \ مشـكوة ص ١٤٦ طبع نور محمد دهلى)

د حضرت ابو هريرة ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې کله مو په مړي باندې لمونځ کولونو په اخلاص ورته دعا وکړئ. صاحب د مرقات ليکلي دي چې په دې حديث کې د دعا څخه هغه دعا مراد ده چې د جنازې د لمانځه په داخل کې د دريم او د څلورم تکبير په مينځ کې لوستلی شي. (مرقات ج۴/ ص۵۹) (فتاوی سعديه عين الهدايه)

**ددعا طريقه:** حضرت فضاله بن عبيد ﷺ فرمائی چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې: إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ، فَلْيَبْدَأْ بِتَمْجِيدِ رَبِّهِ جَلَّ وَعَزَّ، وَالثَّنَاءِ عَلَيْهِ، ثُمَّ يُصَلِّي عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ثُمَّ يَدْعُو بَعْدُ بِمَا شَاءَ (ابوداود شريف. ج ١ ص ١٧٨ ترمذى نسائي، بهيقى، حاكم احمد ابوداود مترجم ج ١ ص ٥٥٢).

**ترجمه:** کله چې لمونځ وکړلو يو ستاسو، نو اول دې د الله ﷻ صفت او ثنا بيان کړي، بيا دې په رسول الله ﷺ درود ووائي بيا دې وغواړي د الله ﷻ څخه چې د څه شي اراده يې وي.

حضرت عبدالله بن مسعود ﷜ فرمائي چې ما المونځ کولو، رسول الله ﷺ حضرت ابوبکر صديق ﷜ او حضرت عمر ﷜ هم موجود وو (کله چې زه د تشهد لپاره کيناستلم) بَدَأْتُ بِالثَّنَآءِ عَلَى اللّٰهِ، ثُمَّ الصَّلَاةِ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ثُمَّ دَعَوْتُ لِنَفْسِي.

ما اول د الله ﷻ ثنا بيان کړه، بيا مې په رسول الله ﷺ باندې درود شريف وويلو بيا مې دخپل ځان لپاره دعا وکړه نو رسول الله ﷺ وفرمايل غواړه ستا دعا قبليږي، غواړه ستا دعا قبليږي (ترمذی). د دې احاديثو څخه معلوميږي چې د دعا د قبوليت لپاره سنت طريقه داده چې اول ثناء وي بيا درود وي او بيا دعا وي.

دجنازې لمونځ هم چونکه دعا ده نو د دې ترتيب هم همدا سې پکار دی، ترڅو يې چې الله ﷻ قبوله کړي.

**دجنازی دلمانځه طريقه:**

حضرت ابوسعيد مقبری رَحِمَهُ اللّٰهُ د حضرت ابوهريرة ﷜ څخه پوښتنه وکړه چې تاسو دجنازې لمونځ په کومه طريقه باندې کوئ؟ نو هغه ورته وفرمايل چې زه په جنازې پسې شاته ځم بيا چې کله جنازه کيښودل شي: كَبَّرْتُ، وَحَمِدْتُ اللّٰهَ. وَصَلَّيْتُ عَلَى نَبِيِّهِ». ثُمَّ أَقُولُ: «اللّٰهُمَّ. (موطا امام مالک، ص۷۹). زه اول الله اکبر وايم بيا د الله ﷻ ثناء وايم، بيا په رسول الله ﷺ درود شريف وايم، بيا د مړي لپاره دعا غواړم.

**محترمو!** وګورئ حضرت ابوهريرة ﷜ دجنازې دلمانځه طريقه بيان کړه او په دې کې يې دسورة فاتحې ذکر هم ونکړو:

۱- عَنِ الشَّعْبِيِّ رحمه الله، قَالَ: «فِي التَّكْبِيرَةِ الْأُولَى يَبْدَأُ بِحَمْدِ اللّٰهِ وَالثَّنَآءِ عَلَيْهِ، وَالثَّانِيَةُ صَلَاةٌ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَالثَّالِثَةُ دُعَآءٌ لِلْمَيِّتِ، وَالرَّابِعَةُ لِلتَّسْلِيمِ. [ابن ابی شيبه، ج ۳ص ۲۹۵ وعبدالرزاق ج ۳ص ۴۹۱].

امام شعبی رحمه الله فرمائي چې په جنازه کې د اول تکبير څخه وروسته ثنا ده، د دوهم تکبير څخه وروسته درود دی د دريم تکبير څخه وروسته د مړي لپاره دعا ده او د څلورم تکبير څخه وروسته سلام دی.

۲- عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ إِيَاسٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، وَعَنْ أَبِي الْحُصَيْنِ، عَنِ الشَّعْبِيِّ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ، قَالَا: «لَيْسَ فِي الْجِنَازَةِ قِرَآءَةٌ (مصنف ابن ابی شيبه، ج ۳ ص ۲۹۹)

ابراهيم نخعي او شعبي رحمهما الله فرمايي چې په جنازکې قراءة نشته.

۳ - عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللهُ أَنَّهُ كَانَ «لَا يَقْرَأُ عَلَى الْمَيِّتِ (مصنف ابن ابی شیبه، ج ۳ ص ۲۹۸، مصنف عبدالرزاق، ج ۳ ص ۴۹۱)

محمد ابن سیرین رَحِمَهُ اللهُ به په جنازه کې قراءت نه کولو.

۴ - عَنْ حَجَّاجٍ رحمة الله عليه، قَالَ: سَأَلْتُ عَطَاءً رحمة الله عليه عَنِ الْقِرَاءَةِ عَلَى الْجِنَازَةِ فَقَالَ: «مَا سَمِعْنَا بِهَذَا. (مصنف ابن ابی شیبه، ج ۳ ص ۲۹۹)

عطاء ابن ابی رباح رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې ما په جنازه کې قراءت نه دی اوريدلی.

**داسلام په مرکزمدینه منوره کې :** عَنْ نَافِعٍ رحمة الله تعالى عليه، أَنَّ عَبْدَ اللهِ بْنَ عُمَرَ رضي الله عنهما كَانَ لَا يَقْرَأُ فِي الصَّلَاةِ عَلَى الْجِنَازَةِ) (موطا امام مالک ص ۲۱۰) حضرت نافع ﷺ فرمايي چې حضرت عبد الله بن عمررضی الله عنهما به د جنازې په لمانځه کې قران (فاتحه) نه لوستلو.

حضرت سالم ﷺ چې د حضرت عبد الله بن عمررضی الله عنهما ځوی دی او د فقهاء وسبعه وو ځخه دی او فتوی يې چليد له، فرمايي ( لاقراءة علي الجنازة ) (مصنف ابن ابي شيبه ج ۳ ص ۲۹۹) د جنازې په لمونځ کې قراءت (فاتحه) نشته او د حضرت سالم ﷺ ځخه وروسته په مدينه منوره کې صرف او صرف د امام مالک رحمه الله فتوی چلېدله هغه فرمايي ( قراءة الفاتحة ليس معمولا بهافي بلدنا في صلواة الجنازة) د جنازې په لمونځ کې د فاتحې په لوستلو باندې زمونږ په ښار کې عمل نشته . (مجموعة الرسايل ج ۱ ص ۲۳۷ بحواله عمدة القاري شرح بخاري)

د بخاري شريف شارح ابن بطال فرمايي چې کوم صحابه وو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ د جنازې په لمونځ کې د فاتحې د لوستلو ځخه انکار کولو، په هغوی کې حضرت عمر ﷺ حضرت علی ﷺ حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا او حضرت ابو هريرة ﷺ په خاص طور باندې د ذکر قابل دی. (مجموعة الرسايل ج ۱ ص ۲۳۷).

امام مالک رحمه الله په ۱۷۹ ھ کې وفات شوی دی، نو د خلافت راشده ځخه شروع تر ۱۷۹ ھ پورې چې په مدينه منوره کې ځومره جنازې شوي دي، ټولې بغير د سورة فاتحې ځخه اداء شوي دي، په صحابه وو، تابعينو، او تبع تابعينو کې په مدينه منوره کې ځوک ديو کس نوم هم نه شي پيش کولی چې د جنازې په لمانځه کې يې د سورة فاتحې لوستلو ته فرض ويلي وي او د دې د فرض والی فتوی يې ورکړې وي.

دمديني منورې په قبرستان کې چې څومره خلک ښخ شوي دي، دهغوی ټول جنازې بې له سورت فاتحې اداء شوي دي. او هيڅ مورراوړی به داثابته نه شي کړی چې دخلفاء راشدينو، يادعشره مبشره وو، په جنازه کې دی سورة فاتحه لوستلې شوي وي. مجموعة الرسايل ج ۱ص ۲۳۷).

**داسلام په مرکز مکه مکرمه کې:**

مکه مکرمه هم داسلام اودمسلمانانو مرکزوواودی. دتابعينوپه دورکې حضرت عطابن ابی رباح رحمه الله دمکې مکرمې مفتي وو.

غيرمقلدين دامين بالجهرپه مسئله کې دعوه کوي چې دده سوه صحابه وو رضی الله عنهم سره يې ملاقات شوی دی دده استاذان صحابه دي اوشاګردان يې تبع تابعين دي.

خلاصه داچې ټول خيرالقرون دده دنظرلاندې وو، کله چې دده څخه دجنازې په لمانځه کې دسورة فاتحې په باره کې پوښتنه وشوه، نوحيران شواوويې فرمايل چې: (ماسمعنابهذا) يعنې مونږپه جنازه کې دسورة فاتحې لوستل نه دي اوريدلي. (استاذالبخاری مصنف ابن ابی شيبه، ج۱ص ۲۹۹)

بلکې ديمن مفتی اعظم حضرت طاوس رحمه الله اودمکی مکرمې مفتی حضرت عطاء رحمه الله دواړوپه جنازه کې دسورة فاتحې دلوستلو څخه انکارکولو: طاوس وعطاء کانا ينکران القراءة في الجنازة. (ابن ابی شيبه ج ۳ص ۱۸۳ مصنف عبدالرزاق ج۳ ص ٤۹۱)

ددې څخه معلوميږي چې په ټول خيرالقرون کې په مکه مکرمه کې يوکس هم په جنازې کې دسورة فاتحې دفرضيت قائل نه وو، ټولې جنازی بغيردسورة فاتحې اداء کيدلې اوهيچاپداسې جنازه باندې انکارنه کولواوهيچاورته نه ويل چې:

*نه فاتحہ نہ درود مرگے مردود*

که چاپه هيره باندې ويلي وي نواکابروبه پرې خفګان ښکاره کولو، لکه څرنګه چې عبدالله بن عباس رضی الله عنهما يوځلې په جنازه کې سورة فاتحه اويوسورة ولوستلو، خوچونکه په خيرالقرون کې دايوه عجيبه خبره وه، نويوصحابی دمت څخه ونيولواوپوښتنه يې ترينه وکړه چې ماهذا؟ داڅه شی دی؟ نوحضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما ورته وفرمايل: (انهاسنة)

د سنة لفظ يې نكره ذكر كړو دی ته يې اشاره وكړه، چې دا د جنازې دلمانځه يوه غير مغروفه طريقه ده چې عام صحابه او تابعين يې نه پيژني، ددې څخه وروسته ابن عباس رضی الله عنهما هيڅكله فاتحه نه لوستله، بلكه كله يې چې ابو حمزه ﷺ ته د جنازې لمونځ ورخودلو، نوورته ويفرمايل چې (تصل علي الجنازة تسبح وتكبر ولاتركع) سنده صحيح فتح الباری، ج ۳ص ۳۷۶) د قرائت ذكريې ونكړو.

**داسلام په مركز كوفه كې :**

كوفه حضرت عمر ﷺ اباده كړي ده، هلته تقريبا اوه لس سوه صحابه كرام اوسيدل، د كوفې اولنی شيخ القرءان والحديث والفقه حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ وو.

وروسته حضرت علی ﷺ ددې څخه دار الخلافه جوړه كړه، كوفه د خلافت راشده اخري مركزوو، اخري خليفه الراشد حضرت علی ﷺ به چې كله د جنازې لمونځ كولونو: يبداء الحمد، ويصلي علي النبي ﷺ ثم يقول اللّٰهُمَّ الخ. ( ابن ابی شيبه ج۳ص ۲۹۵).

اول به يې د الله په صفت شروع كوله، بيا به يې درود ويلو، بيا به يې دعا كوله. مخكې تيره شوه چې حضرت علی ﷺ به خپله فاتحه نه لوستله، بلكې چې چا به لوستله نو هغه ته به غوصه كيدلو. [مجموعة الرسايل ج ۱ص ۲۳۹]. د تابعينو په زمانه كې د امام شعبی رحمه الله فتوی چليدله، د امام شعبی رحمه الله د پنځه سوه صحابه وو سره ملاقات شوی دی، ده به هم د اول تكبير څخه وروسته ثنا، د دوهم تكبير څخه وروسته درود شريف، او د دريم تكبير څخه وروسته د مړي لپاره دعا كوله او د څلورم تكبير څخه وروسته به يې سلام ګرځولو. (ابن ابی شيبه ج ۳ص ۲۹۵) او امام شعبی رحمه الله او امام نخعی رحمه الله فرمائي چې ليس في الجنازة قراءة. يعنې په جنازه كې قراءة نه شته نه د فاتحې او نه نور. (ابن ابی شيبة ج ۳ص ۲۹۹).

ددې څخه وروسته ددې دار العلم مشري د امام الايمه، سراج الامة، سيدنا امام اعظم ابو حنيفه رحمه الله په لاس كې شوه ده ده فتوی په ټوله دنيا كې چليدله، چې د جنازې په لمانځه كې د فاتحې لوستل نه شته.

خلاصه دا چې د علم په مركز كوفه كې هم هيڅوك د هيڅ داسې كس نوم نه شي پيش كولی چې په جنازه كې يې سورة فاتحې ته فرض ويلي وي او دا اعلان يې كړی وي چې څوک د جنازې په لمانځه كې سورة فاتحه ونه لولي لمونځ يې نه كيږي.

**دبصرې څخه تر يمن پورې:**

بصره هم په خير القرون کې د اسلام زانګو وه، هلته علامه محمد بن سيرين رحمه الله دا فتوی ورکولې چې د جنازې په لمانځه کې قرائت نه شته او په يمن کې حضرت طاوس رحمه الله هم دا فتوی ورکولې. (ابن ابی شيبه ج ۲ص ۲۹۹) ليکن د بصرې څخه تر يمن پورې يو کس هم د دې ترديد نه دی کړی، چې سورة فاتحه په جنازه کې فرض ده او تاسو د فرضو څخه منکرئي ستاسې جنازې باطلې دي.

**الحاصل:** رسول الله ﷺ هيڅکله نه دي فرمايلي چې په جنازه کې د سورة فاتحې لوستل فرض دي، يا چې چا په جنازه کې سورة فاتحه ونه لوستله د هغه جنازه باطله ده، د دنيا په هيڅ کتاب کې داسې حديث نه شته چې په جنازه کې يې د سورة فاتحې لوستلو ته فرض ويلي وي. که کوم غير مقلد داسې حديث پيدا کړو نو هغه ته به يو لاکهه روپۍ انعام ورکړم.

مونږ وايو چې تاسو خپل محسن اعظم (انګريز) هم د ځان سره يو ځای کړئ، هغه محسن اعظم چې د دې فتنو د راپارولو په سر يې تاسو ته جائدادونه او امتيازونه درکړل او د خزانو دروازې يې درباندې خلاصې کړې او د اهلحديث نوم يې درته کيښودلو. او بيا همت وکړې او صرف يو داسې حديث پيدا کړئ چې په جنازه کې يې د سورة فاتحې لوستلو ته فرض ويلي وي. او که د رسول الله ﷺ حديث نه شئ پيدا کولی او تر قيامت پورې به يې پيدا نکړئ نو د کوم خليفة الراشد په قول کې د فرضيت حکم پيدا کړئ.

او که د خليفة الراشد په قول کې يې نشئ پيدا کولی، نو بيا په ټول خير القرون کې په لکهونو صحابه وو رضی الله عنهم، په کروړونو تابعينو او تبع تابعينو کې صرف ديو داسې کس نوم پيش کړئ چې په جنازه کې يې د سورة فاتحې لوستلو ته فرض ويلي وي.

**ای غيرمقلدينو!** واورئ او په ښکاره يې واورئ د ښځو په شان په چادرې کې چپ مه تيريږئ د ګونګټې په شان په سوټو کې مه پټيږئ.

بلکې د نرانو په شان راميدان ته شئ، په جنازه کې د سورة فاتحې د فرضوالي حکم وښائي او که نه يې شئ خودلی نو بيا ضد پريږدئ او د هدايت لارې ته راشئ.

**فايده:** د مخکې احاديثو څخه ثابته شوه چې جنازه د مړي لپاره دعا ده او په سورة فاتحه کې مړي ته د دعا يو لفظ هم نه شته، نو نه پوهيږو چې غير مقلدين ولې په جنازه کې د دې په فرض والي باندې زور ونه

وهي، حالانکه د جنازې اصل مقصد چې مړي ته دعا ده، په دې کې د سره موجوده نه ده، البته د دعا څخه مخکې د ثنا لوستل سنت دي، که څوک يې د ثنا په نيت ووائي نو ګنجايش يې شته.

## التنبيه لايقاظ السفيه

**غيرمقلدينو!** چې کله د رسول الله ﷺ په لکهونو صحابه وو، په کروړونو تابعينو، او تبع تابعينو، په جنازه کې سورة فاتحې ته فرض نه دي ويلي نو تاسو ولې ورته فرض وائي؟

ايا تاسو ته د عبد الله بن مسعود ﷺ ارشاد نه دی معلوم، چې په خپل لمونځ کې شيطان ته برخه مه ورکوئ؟ د شيطان برخه دا معنی ده چې يو شی فرض او ضروري نوي او تاسو يې فرض او ضروري وګڼئ. همداسې چې کله رسول الله ﷺ په جنازه کې سورة فاتحې ته فرض ندي ويلي او تاسو ورته فرض وائي نو يقينا چې دا په جنازه کې شيطان ته برخه ورکول دي.

**غيرمقلدينو!** د شيطانانو په شان دا ډرامې مه کوئ چې احناف سورة فاتحې ته د شيطان برخه وائي. ځکه چې احناف د نبوي فرمان مطابق غير ضروري شي ته ضروري ويل د شيطان برخه ګڼي.

حضرت ابو وايل ﷺ فرمائي چې د رسول الله ﷺ په زمانه کې د جنازې په لمانځه کې کله اوه، کله شپږ، کله پنځه، او کله څلور، تکبيرونه کيدل، د حضرت عمر ﷺ په زمانه کې دا اختلافات ختم کړی شول. فجمع عمر الناس علي اربع کاطول الصلوة. [بهيقی ج ٤ص ٣٧ واسناده حسن فتح الباری]. يعني حضرت عمر ﷺ ټول خلک په څلورو تکبيرونو راجمع کړل ځکه چې د غټ لمونځ څلور رکعتونه دي.

د حضرت عمر ﷺ مقصد دا وو چې مونږ کوم لمونځونه کوو، نو بعضې دوه رکعته دي په يو سلام باندې. بعضې درې رکعته دي په يو سلام باندې، او بعضې څلور رکعته دي په يو سلام باندې، د څلورو رکعتونو څخه زيات فرض لمونځ نه شته او د جنازې د لمونځ هر تکبير د يو رکعت قايم مقام دی، نو لکه څرنګه چې فرض لمونځ له څلورو رکعتونو څخه زيات نشته دي همدا رنګه د جنازې لمونځ هم له څلورو تکبيرنو څخه زيات نشته. مجموعة الرسايل ج ١ص ٢٤١).

د دې حديث څخه معلوميږي چې ټولو صحابه وو رضی الله عنهم د جنازې تکبيرات د فرضي لمونځ د رکعتونو قايم مقام ګڼلو، که په جنازه کې د سورة فاتحې لوستل فرض يا واجب او يا سنت وئ نو دا به

څلور ځلې فرض یا واجب او یا سنت وی، ځکه چې په څلور رکعته لمونځ کې سورة فاتحه څلور ځلې لوستلې شي د غیر مقلدینو په نیز په هر رکعت کې مستقله فاتحه فرض ده نو همدارنګه په هر تکبیر کې مستقله فاتحه پکار ده . لیکن د ابن حزم څخه بغیر په ټول امت کې هیچا هم په جنازه کې څلور ځلې فاتحې ته فرض نه دي ویلي، د دې څخه معلومیږي چې کوم خلک په جنازه کې سورة فاتحه لولي نو د ثنا په نیت یې لولي، د قرائت په نیت یې بالکل نه لولي، ځکه چې په څلور رکعته لمونځ کې څلور ځلې قرائت ده او ثنا په کې صرف یو ځلې ده، نو هر څوک چې یو ځلې فاتحه لولي هغه یې د ثنا په نیت لولي د قرائت په نیت یې نه لولي .

**ایا د ثنا په نیت فاتحه لوستلې شي؟**

زمونږ په حنفی مسلک کې اصل ثنا سبحنک اللّٰهُمَّ ده لکن که د دې سره سورة فاتحه هم د ثنا په نیت ولوستل شي نو جایز ده لیکن نن سبائي نه ویل بهتر دي .

**دغیرمقلدینو فتنه:** د غیر مقلدینو هیڅ مذهب نه شته، د دوي کار فتنه او فساد او د عوامو پریشانه کول دي. غیر مقلدین وائي چې په جنازه کې فاتحه ووائي اګرچې د ثناء په نیت یې وائي، د دې لپاره چې د جنازې لمونځ مو صحیح شي، مونږ د غیر مقلدینو څخه پوښتنه کوو چې :ایا دا کیدی شي چې یو سړی د ماسپښین څلور رکعته فرض د فرضو په نیت باندې و نه کړئ بلکې د نفلو په نیت یې وکړي ؟یا یو سړی زکوة نه ورکوي . بیا چاته لس روپې ورکړي او صفا وائي چې زما نیت د زکوة نه دی، بلکې صرف د هدئي دی، نو کوم جاهل به ووائي چې د ده زکوة ادا شو ؟

رسول الله ﷺ فرمائي انما الاعمال بالنیات نو یو سړی چې یو کار د فرضو په نیت باندې نه کوي بلکې د فرضیت څخه یې انکار کوي نو د ده فرض به څرنګه اداء شي ؟

اصل خبره دا ده چې کله د غیر مقلدینو سره د سورة فاتحې په فرض والي د قران او سنت څخه هیڅ دلایل نه وو نو د ساده حنفی عوامو د دوهکه کولو لپاره یې ورته دا مسئله واوروله چې فاتحه د ثنا په نیت ووائي . لیکن اهل علم په دې پوهیږي چې د اخپله د غیر مقلدینو د فاتحې د فرضیت څخه انکار دی .

غیر مقلدینو اول په جنازه کې د فاتحې لوستلو ته فرض ویلي، لیکن اوس یې حوصله بایللې ده نه قران د دوی په سر لاس کیښود لو او نه په صحیح حدیث کې ورته فرضوالی پیدا شو، نو بیچاره ګانو د فقیرۍ کچکول را واخستو او د فقهاوو د رشل ته و دریدل او چې د فقهاوو په درشل کې هم ورته د فرضوالي

خیرات پیدا نه شو ، نو اخرې دفقهې په درشل باندې دفاتحې دفرضوالي عقیده ذبح کړه اودثناء په طریقه باندې یې دفاتحې دلوستلو وعظ شروع کړو.

**حنفي مذهب:** په حنفي مسلک کې سبحنک اللهم بالاتفاق ثناء ده، لیکن که په جنازه کې سورة فاتحه دثناء په نیت باندې ولوستل شي، نو جوازئي شته او که دقرائت په نیت باندې ولوستل شي نو مکروه تحریمي دی اوس عوامو ته دا باریک فرق کول مشکل دي او درسول الله ﷺ حکم دی چې: ( دَعْ مَایُرِیْبُکَ اِلٰی مَالَایُرِیْبُکَ ) یعنې مشکوک شی پرېږده او په غیر مشکوک شي باندې عمل کوه.

خلاصه دا چې دفاتحې لوستل دثناء په نیت جایز او دقرائت په نیت مکروه تحریمي دي، نو دفاتحې په لوستلو کې دکراهة تحریمي له وجهې دګناه خطر دی او دسبحنک اللهم په لوستلو کې هیڅ خطر نه شته، لدې وجهې احتیاط دادی چې دفاتحې دلوستلو څخه پرهیز و شي. او بل یې ددې وجهې په جنازه کې دلوستلو څخه پرهیز پکار دی چې غیر مقلدین بغیر ددلیل څخه ورته فرض وائي او بې دلیله یو شي ته په لمانځه کې فرض ویل په لمانځه کې شیطان ته برخه ورکول دي ، نو کله چې غیر مقلدینو په خپلو لمونځونو کې شیطان ورداخل کړی دی نو که اوس په هر نیت باندې فاتحه ولوستل شي، دشیطان تائید ترینه کیږي، له دې وجهې ترینه بالکل پرهیز پکار دی .

**دغیر مقلدینو دلایل:** دغیر مقلد دادعوه ده چې دجنازې په لمونځ کې دسورة فاتحې لوستل فرض دي او دسورة فاتحې دلوستلو څخه بغیر دجنازې لمونځ باطل دی او ظاهره ده چې دیو شي دفرضوالي لپاره داسې دلیل پکار دی چې دوه صفته ولري اول دا چې دا دلیل به یقیني ثابت وي او دوهم دا چې قطعي الدلالة به وي.

دیقیني ثبوت دا معنی ده چې یا قراني آیت وي او یا متواتر حدیث وي . او دقطعي الدلالة دا معنی ده چې په دلیل کې صفا دا خبره ذکر شوی وي چې دجنازې په لمونځ کې دسورة فاتحې لوستل فرض دي او څوک چې دجنازې په لمونځ کې سورة فاتحه ونه لولي دهغه لمونځ باطل دی، لکن غیر مقلدین چې کوم دلایل بیانوي په هغوی کې یو دلیل هم داسې نه شته چې قطعي الثبوت او قطعي الدلالة وي .

یعنې ددوي په دلایلو کې نه کوم قراني ایت شته او نه په کې کوم متواتر حدیث شته، او نه یې په کوم دلیل کې دا خبره ذکر شوې ده چې دسورة فاتحې دلوستلو څخه بغیر دجنازې لمونځ باطل دی .

غیر مقلدین چې کوم دلایل پیش کوي هغه دومره ضعیفه دی چې فرضیت او وجوب خو لاڅه کوی سنت والی او مستحب والی هم ترینه نه شي ثابتیدلی، راشئ چې ددوي دلایل ولولو:

(١) عَنْ أُمِّ عَفِيفٍ النَّهْدِيَّةِ رضي الله عنها قَالَتْ أَمَرَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ نَقْرَأَ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ (طبرانی)

حضرت ام عفیف رضي الله عنها فرمائي چې مونږ ته رسول الله ﷺ د فاتحې دلوستلو حکم کړی وو.

**اول جواب:** په دې حدیث کې بالکل د جنازې د لمانځه ذکر نه دی شوی.

**دوهم جواب:** ددې حدیث په سند کې عبد المنعم ابو سعید ضعیف دی. (مجمع الزواید ج ٣ص ٣٣)

(٢) عَنْ أُمِّ شَرِيكٍ الْأَنْصَارِيَّةِ رضي الله عنها، قَالَتْ: أَمَرَنَا رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنْ نَقْرَأَ عَلَى الْجِنَازَةِ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ. (ابن ماجه) ام شریک رضي الله عنها فرمائي چې رسول الله ﷺ مونږ ښځو ته امر کړی وو چې په جنازه کې سورة فاتحه ولولو.

ځواب: حافظ ابن حجر رحمه الله په تلخیص الحبیر کې ددې حدیث سند ته ضعیف ویلی دی. (مجموعة الرسایل ج ١ص ٢۴۵).

(٣) عَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيدَ رضي الله عنها، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا صَلَّيْتُمْ عَلَى الْجِنَازَةِ فَاقْرَءُوا بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ. (طبرانی). حضرت اسماء بنت یزید رضي الله عنها فرمائي چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي چې کله تاسو په مړي د جنازې لمونځ کولو نو سورة فاتحه ولولئ.

ځواب: ددې په سند کې معلی بن حمران دی او دده ثقه والی نه دی ثابت، لدی وجهې دا حدیث ضعیف دی. [مجموعة الرسایل ج ١ص ٢۴۵].

همدارنګه په دې درې واړو احادیثو کې ښځو ته په جنازه کې د سورة فاتحې دلوستلو حکم دی، عجیبه خبره ده چې په ښځو جنازه فرض نه ده او د سورة فاتحې دلوستلو حکم ورته شوی دی او سړي چې د جنازې لمونځ ورباندې فرض کفائي دی، هغوي ته یو ځلې هم په جنازه کې د سورة فاتحې دلوستلو حکم نه دی راغلی.

دوهمه خبره داده چې په صحیح بخاري کې حدیث دی چې :( نهینا عن اتباع الجنائز) . مونږ زنانه (د سورة فاتحې لوستل خو لا پریږده چې) د جنازې پسې د تللو څخه منع شوي وو او دا په هیڅ حدیث کې نه ده ثابته چې د خلفاءو په زمانه کې دې کومه زنانه په کومه جنازه کې شریکه شوي وي.

(۴) عن ابْنِ عَبَّاسٍ رضی اللہ عنہما: أَنَّ النَّبِیَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَرَأَ عَلَى الْجَنَازَةِ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ [ابـن ماجـه ترمذی] حضرت ابن عباس ﷺ فرمائي چې رسول الله ﷺ په جنازه باندې سورة فاتحه ولوستله.

ځواب: ددې حدیث په سند کې ابوشیبه دی کوم ته چې دتراویحو په باب کې غیرمقلدین بالاتفاق ضعیف وائي. (مجموعةالرسایل ج ۱ص ۲۴۵).

(۵) عَنْ جَابِرٍ ﷺ إِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ قَرَأَ بِأُمِّ الْقُرْاٰنِ بَعْدَ التَّكْبِيْرَةِ الْأُوْلٰى. (کتاب الام). حضرت جابر ﷺ فرمایي چې رسول الله ﷺ د اول تکبیر څخه وروسته سورة فاتحه ولوستله.

ځواب: ددې په سند کې ابراهیم بن ابی یحیی دی چې متروک دی. (مجموعة الرسایل ج ۱ ص ۲۴۵). داپنځه روایته دي چې ټول ضعیف دي، ددې روایاتو څخه دسورة فاتحې سنتیت هم نه ثابتیږي، دفرضیت خوبالکل تصور نه دی ممکن.

**څلور تکبیرونه:** عَنْ إِبْرَاهِيمَ رحمہ اللہ، قَالَ: قُبِضَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالنَّاسُ مُخْتَلِفُوْنَ فِي التَّكْبِيْرِ عَلَى الْجَنَائِزِ, لَا تَشَاءُ أَنْ تَسْمَعَ رَجُلًا يَقُوْلُ: سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُكَبِّرُ سَبْعًا, وَآخَرُ يَقُوْلُ: سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُكَبِّرُ خَمْسًا, وَآخَرُ يَقُوْلُ: سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُكَبِّرُ أَرْبَعًا إِلَّا سَمِعْتُهُ, فَاخْتَلَفُوْا فِي ذٰلِكَ, فَكَانُوْا عَلٰى ذٰلِكَ حَتّٰى قُبِضَ أَبُوْبَكْرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ. فَلَمَّا وَلِيَ عُمَرُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ, وَرَأَى اخْتِلَافَ النَّاسِ فِي ذٰلِكَ, شَقَّ ذٰلِكَ عَلَيْهِ جِدًّا, فَأَرْسَلَ إِلٰى رِجَالٍ مِّنْ أَصْحَابِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالَ: إِنَّكُمْ مَعَاشِرَ أَصْحَابِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَتٰى تَخْتَلِفُوْنَ عَلَى النَّاسِ, يَخْتَلِفُوْنَ مِنْ بَعْدِكُمْ, وَمَتٰى تَجْتَمِعُوْنَ عَلٰى أَمْرٍ يَجْتَمِعُ النَّاسُ عَلَيْهِ, فَانْظُرُوْا أَمْرًا تَجْتَمِعُوْنَ عَلَيْهِ فَكَأَنَّمَا أَيْقَظَهُمْ. فَقَالُوْا: نِعْمَ مَا رَأَيْتَ يَا أَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ, فَأَشِرْ عَلَيْنَا, فَقَالَ عُمَرُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ: بَلْ أَشِيْرُوْا أَنْتُمْ عَلَيَّ, فَإِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ. فَتَرَاجَعُوا الْأَمْرَ بَيْنَهُمْ, فَأَجْمَعُوْا أَمْرَهُمْ عَلٰى أَنْ يَجْعَلُوا التَّكْبِيْرَ عَلَى الْجَنَائِزِ, مِثْلَ التَّكْبِيْرِ فِي الْأَضْحٰى وَالْفِطْرِ, أَرْبَعَ تَكْبِيْرَاتٍ, فَأَجْمَعَ أَمْرَهُمْ عَلٰى ذٰلِكَ. طحاوی مترجم ج ۱/ ص ۷۳۴).

امام ابراهیم نخعی ﷺ فرمائي چې د رسول الله ﷺ تر وفاته پورې دجنازې په تکبیرونو کې اختلاف وو. بعضو به ویل چې ما د رسول الله ﷺ څخه اوه تکبیرونه اوریدلي دي. بعضو به ویل چې ما ترې پنځه تکبیرونه اوریدلي دي او بعضو به ویل چې ما ترې نه څلور تکبیرونه اوریدلي دي.

دحضرت ابوبکر صدیق ﷺ تر وفاته پورې دا اختلاف راروان وو، کله چې حضرت عمر ﷺ خلیفه شو، نو دا اختلاف ورته ډیر سخت ښکاره شو، نو صحابه وو رضی الله عنهم ته یې وفرمایل چې تاسو د

رسول الله ﷺ صحابه یې که تاسو اختلاف وکړئ نو ستاسو څخه وروستني خلک به هم اختلاف وکړي او که تاسو اتفاق وکړئ نو ستاسو څخه وروستني خلک به هم اتفاق وکړي، نو اکابرو صحابه وو رضی الله عنهم دپوره بحث څخه وروسته په دې اتفاق وکړو چې د جنازې دلمونځ څلور تکبیرونه کړي، لکه څرنګه چې دلوی اختر او دوړوکي اختر په هر رکعت کې څلور تکبیرونه دي.

نو دټولو صحابه وو رضی الله عنهم په دې اجماع شوه، دحضرت ادم علیه السلام دحضرت ابوبکر صدیق دحضرت عمر ﷺ دحضرت علی ﷺ دحضرت حسن ﷺ ټولو جنازې په څلورو تکبیرونو باندې شوې دي. (مجموعة الرسایل ج۱ ص ۲۴٦ بحواله بهیقی وحاکم).

رسول الله ﷺ په اخري عمر کې په څلورو تکبیرونو جنازې کولې. (مجموعة الرسایل ج ۱ ص ۲۴٦ بحواله کتاب الاثار محمد) غیر مقلد نواب صدیق حسن خان لیکلي دي چې د څلورو تکبیرونو څخه زیات تکبیرونه کول بدعت دی. [بدور الاهله ص ۹۱ و ص ۹۲].

## صرف د اول تکبیر سره لاسونه پورته کول

(۱) عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضی الله عنه، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: كَبَّرَ عَلَى جَنَازَةٍ، فَرَفَعَ يَدَيْهِ فِي أَوَّلِ تَكْبِيرَةٍ، وَوَضَعَ الْيُمْنَى عَلَى الْيُسْرَى. ( ترمذي ج ١ص ٢٠٦ ) دارقطنی ،ج٢ ص ٧٥ )بهیقی،ج ٤ص٣٨)

دحضرت ابوهریرة ﷺ څخه روایت دی چې بې شکه رسول الله ﷺ د جنازې په لمونځ کې الله اکبر وویلو نو لاسونه یې د اول تکبیر سره پورته کړل بیا یې ښي لاس په چپ لاس باندې کیښودلو.

(۲) عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضی الله عنهما، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ عَلَى الْجِنَازَةِ فِي أَوَّلِ تَكْبِيرَةٍ ثُمَّ لَا يَعُودُ.

حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما فرمائي چې رسول الله ﷺ به د جنازې په لمونځ کې صرف د اول تکبیر سره لاسونه پورته کول. ( دارقطنی ج ۲ص ۷۵ ).

( ۳ ) عَنِ الْحَسَنِ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ رحمه الله أَنَّهُ كَانَ «يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي أَوَّلِ تَكْبِيرَةٍ عَلَى الْجِنَازَةِ (مصنف ابن ابی شیبه،ج۳/ص۱۸۰).

## ښي لاس په چپ لاس دنو م څخه لاندې کیښودل

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضی الله عنه قَالَ: مِنَ السُّنَّةِ وَضْعُ الْكَفِّ عَلَى الْكَفِّ تَحْتَ السُّرَّةِ.

حضرت ابو هريرة ﷺ فرمائی چې سنت طريقه داده چې يو ورغوي په بل ورغوي باندې د نوم څخه لاندې کيږدئ. (مصنف ابن ابی شیبه ج۱/ ص۳۰۱ \مسند احمد ج ا ص ۱۱۰).

**اول تکبیر:** د اول تکبیر سره به لاسونه پورته کړئ، بیا به ښي لاس په چپ لاس باندې د نوم څخه لاندې کیږدئ او سبحنک اللّٰهُمَّ الخ به ووائي، لکه څرنګه چې په لمانځه کې همداسې کوئ.

**فتنه:** د غیر مقلدینو سره د شور و شرا و فساد څخه بغیر بل هیڅ نشته، کله چې د فتنې دراپارولو بله بهانه ورته پیدا نه شي نو یو اشتهار شایع کړي، چې په هغې کې یې یو طرفته سبحانک اللهم الخ داسې لیکلی وي لکه څرنګه یې چې مونږ په عام لمونځ کې وایو، او بل طرفته یې په سبحنک اللّٰهُمَّ کې د (جل ثناک) جمله هم ورزیاته کړې وي او اسمان یې په سر را اخستی وي. مونږ دې غیر مقلدینو ته وایو چې تاسو چې څو مره ثناګانې لیکلي دي نو په خاص طور د جنازې په لمونځ کې د هغو لوستل د رسول الله ﷺ څخه ثابت کړئ، بیا به مونږ به د جل ثناءک جمله ثابته کړو.

په حنفي مذهب کې مسئله داسې ده. چې که چاد جنازې په لمونځ کې د اول تکبیر څخه وروسته د سبحنک اللهم سره د جل ثناءک جمله ولوستله نو منع کیږي به نه او که چا ونه لوستله نو ملامتیږي به نه. ځکه چې په مشهورو احادیثو کې د جل ثناءک ذکر نه دی راغلی. حافظ الحدیث ابن شجاع په کتاب الفردوس کې یو حدیث راوړی دی.

عَنْ اِبْنِ مَسْعُوْدٍ ﷺ مِنْ اَحَبِّ الْكَلَامِ اِلَى اللّٰهِ عَزَّوَجَلَّ اَنْ يَّقُوْلَ الْعَبْدُ سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالٰى جَدُّكَ وَجَلَّ ثَنَآءُكَ وَلَآ اِلٰهَ غَيْرُكَ.

حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ فرمائي چې الله ﷻ ته دا کلام چې: سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالٰى جَدُّكَ وَجَلَّ ثَنَآءُكَ وَلَآ اِلٰهَ غَيْرُكَ. ډیر محبوب دی. مجموعة الرسایل حاشیه ج۱ص۲۴۸).

دا خبره یاده لرئ چې غیر مقلدین میبنې ته حلاله وائي حالانکه د دې ثبوت د جل ثناءک د ثبوت په مقدار هم د دوي سره نه شته.

**دوهم تکبیر:** د دوهم تکبیر څخه وروسته درود لوستلی شي او هغه درود بهتر دی کوم چې په عامو لمونځونو کې لوستلی شي، لکن غیر مقلدینو دلته هم د فتنې بازار ګرم کړی دی. دوړو وړو رسالو لکه

دیسرلناالقران وغیره څخه د (رحمت وترحمت) الفاظ په اشتهارونو کې لیکي او بیا وائي چې داالفاظ په کوم حدیث کې ثابت دي ؟ د ې جاهلانو ته دا معلومات نشته چې حنفی فقهه په مستندو کتابونو کې درج ده، لکه په هدایه . شرح الوقایه ، درمختار ،قدوری ،کنز وغیره نوکه په حنفی فقهه څوک اعتراض کوي، نو دحنفي فقهې د دغو مستندو کتابونو څخه دي اول یو درود رانقل کړي او بیادی په د ې اعتراض وکړي، غیرمقلدین دیسرناالقران غوندې رسالو څخه درود رانقلوي او دامام ابوحنیفه په خلاف پروپاگند کوي.

## چلینج

**غیرمقلدینو!** رسول الله ﷺ خاص په جنازه کې کوم درود لوستلی دی ؟

که کوم غیر مقلد دصحیح صریح حدیث څخه دا ثابته کړه چې رسول الله ﷺ په جنازه کې لفظ په لفظ دغه ابراهیمی درود لوستلی دي، نوزه به ورته لس زره روپې انعام ورکړم، او که غیرمقلدین د رسول الله ﷺ د مبارکې خولې څخه خاص په جنازه کې دا درود نه شي ثابتولی نو بیا دوي د کوم باغ مولی دي چې د خپل ځان څخه په جنازه کې یو خاص درود مقرروي.

مونږ وایو چې افضل درود ابراهمي دی، او نور چې د چاکوم درود خوښ وي همغه دی ولولي، په حدیث شریف کې صفا راځي چې په جنازه کې کوم خاص درود نه دی مقرر بلکې هر درود لوستلی شي.

**عَنْ جَابِرٍ ﷛، قَالَ: مَا أَبَاحَ لَنَا رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَلَا أَبُوبَكْرٍ، وَلَا عُمَرُ ﷛ فِي شَيْءٍ مَا أَبَاحُوا فِي الصَّلَاةِ عَلَى الْمَيِّتِ، يَعْنِي لَمْ يُوَقِّتْ.** (ابن ماجه ص ۱۰۹ \ مسنداحمد ج ۳ ص ۳۵۷).

حضرت جابر ﷛ فرمائي چې رسول الله ﷺ او ابوبکر ﷛ او عمر ﷛ د جنازې دلمانځه لپاره هیڅ خاص شی نه دی مقرر کړی.

**نوټ** : حافظ ابن حجر په تلخیص الحبیر کې د د ې حدیث ترجمه داسې کړی ده چې رسول الله ﷺ او ابوبکر ﷛ او عمر ﷛ هیڅکله د جنازې لمونځ په اوچت اوازندی لوستلې .



**دلامذهبو څلور عناصر :**

غیرمقلد مولوی عبد الجبار غزنوی لیکلي دي چې زما په فهم کې دا ټول تشددات (یعنې بې ځایه سختی دی) ده په الفاظو مأثوره وو (کوم چې په حدیث کې راغلي دي) که څه الفاظ حسنه زیات شي

نو هیڅ حرج نه شته. لکه څرنګه چې عبد الله بن عمر ﷺ د رسول الله ﷺ په تلبیه باندې د الاندې الفاظ ورزیات کړي وو.

لبیک وسعدیک والخیر بیدیک لبیک ولرغباء الیک والعمل

همدارنګه په ډیرو ځایونو کې ثابته ده چې صحابه کرامو او علماء و داسلام په ماثورو دعاګانو او درودونو باندې بعضې الفاظ ورزیات کړي دي او په دې عمل باندې هیچا انکار نه کولو، نو په لمانځه کې هم که په ماثورو دعاګانو باندې زیادت وکړل شي نو هیڅ حرج نه شته. خپله په رسول الله ﷺ پسې یو سړي د حمدا کثیرا الخ غیر ماثوره دعا ولوستله، نو رسول الله ﷺ ورته وفرمایل چې د دیرشو څخه زیاتې ملایکې ددې دعا لیکلو لپاره راغلې دي. ددې څخه صفا معلومیږي. چې په ماثورو دعاګانو زیادت جایز دی، ځکه دا دعا صحابي د خپل طرف څخه زیاته کړه او رسول الله ﷺ ورباندې خوښ شو. ددې ډیر مثالونه دي که ټول را نقل کړو نو یو مستقل کتاب به ترینه جوړ شي.

خلاصه دا چې دا قسم زیادات د بدعاتو څخه نه دی، بلکې په (فمن تطوع خیرا فهو خیر له) کې داخل دي.

(فقط عبد الجبار عفی عنه، سید محمد نذیر حسین، عبد الرحمن مبارک پوري، مولنا شمس الحق عظیم ابادي فتاوی نذیریه ص ۳ ص ۱۲\ عون المعبود شرح ابوداود ج ۴ ص ۴۰۹).

د غیر مقلدینو دې څلورو واړو امامانو دا فیصله کړې ده، چې په درود او په دعا کې د الفاظو حسنه ورزیاتوالی د صحابه کرامو څخه را واخله ترننه پورې څوارلس سوه کلونه بلا انکاره جاري دي.

نو لامذهبان دې فکر وکړي چې څوارلس سوه کلونه د صحابه وو څخه ترننه پورې په کومو خبرو چا انکار نه دی کړی نو دوي د فتنو د راپارولو لپاره ولې سرونه نیولي دي او چیغې وهي؟

ایا غیر مقلدین د خپلو دغې څلورو علماوو د قبرونو و رانولو ته تیار دي؟ چې دوي د احادیثو څخه د زیادت جواز ثابت کړی دی او د دوي د فتنو په اوریې او به اړولي دي.

**دریم تکبیر:** د دریم تکبیر څخه وروسته د بالغ سړي او ښځې لپاره مشهوره دعا ده، اګرچې د غیر مقلدینو ددې دعا په الفاظو کې اختلاف نشته، لیکن بیا یې هم د شرارت رګ نه دی دریدلی رسول الله ﷺ هیڅکله د جنازې په لمانځه کې درې څلور دعاګانې نه دي یو ځای کړي او نه یې ضروري ګرځولې دي، لکن غیر مقلدو روپړي یوه دعا لوستل د جنازې پورې ریشخند ګڼي، حالانکه رسول الله ﷺ په لمانځه

کې تخفیف تـه مستحب ویلی دی او تطویـل تـه یې فتنه ویلې ده. (افتــان انــت یامعــاذ) خو دغیر مقلدینو فتنه خوښیږي.

**نابالغه مړي:** ابن حزم غیر مقلد لیکلي دي چې دنابالغ مړي جنازه نه کیږي، بلکې بلا جنازه به خښیږي

حالانکه رسول الله ﷺ فرمایلي دي چې: یصلي علیه ویدعي لوالدیه بالمغفرة والرحمة. په نابالغ مړي به دجنازې لمونځ کیږي او دده مور او پلار تـه به د مغفرت او بخښش دعا کیږي. (مجموعة الرسایل، ج ا ص ۲۵۱ بحواله ترمذی وقال صحیح).

حضرت ابو هریرة رضی الله عنه داد عا کوله: اللّٰهُمَّ اجعلـه لنا فرطا وسـلفا واجرا. (مجموعة الرسایل ج اص ۲۵۱ بحواله بهیقی). امام حسن بصری رحمه الله هم همداسې دعا کوله. (مجموعة الرسایل ج ا ص ۲۵۱ بحواله بخاری. ددې احادیثوله وجهې فقهاء ودنابالغ مړي لپاره دبالغ څخه ځانته دعا لیکنې ده.

**څلورم تکبیر:**

دڅلورم تکبیر څخه وروسته به دواړو طرفونو ته سلام ګرځولی شي. دحضرت عبدالله بن ابی اوفی رضی الله عنه څخه روایت دی چې. سلم عن یمینـه وعـن شـماله. یعنې نبي او چپ طرفته یې سلام وګرځولو. [مجموعة الرسایل، ج اص ۲۵۱) بحواله بهیقی].

حضرت عبدالله رضی الله عنه هم فرمائي چې: التسلیم علي الجنـازة کالتسـلیم في الصـلوة. یعنې دجنازې سلام دلمانځه دسلام په شان دی. (مجموعة الرسایل ج ا ص ۲۵۲ بحواله تلخیص الحبیر ج اص ۱۶۲)

## دجنازې لمونځ به په پټه لوستلی شي

دټولو څخه اول داواوره چې دجنازې لمونځ دعاده او ددعا په باره کې دالله جل جلاله حکم داسې دی:
اُدْعُوْا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَّخُفْيَةً اِنَّه لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِيْنَ.

ترجمه: غـواړئ دخپـل رب څخـه پـه عـاجزې او پـه پټـه بانـدې بـې شـکه چـې الله جل جلاله دحد څخه تجاوز کونکي نه خوښوي.

حضرت زید بن اسلم ﷺ فرمائی چې: الاعتداء الجهر. یعنې د حد څخه د تجاوز دا معنی ده چې په زوره دعا وکړي. حضرت ابو امامه ﷺ فرمائي چې د جنازې د لمونځ سنت طریقه داده چې: سرًافي نفسه :یعنې په پټه به د ځان سره لوستلی شي. (مجموعة الرسایل، ج ۱ص ۲۵۲).

او غیر مقلدینو لیکلي دي چې د صحابی د (من السنة کذا) جمله د مرفوع حدیث په حکم کې وي (فتاوی علما. حدیث ج ۵ص ۱۴۷) قال الامام النووی الصحیح الذی علیه الجمهور یسر ابن قدامه الحنبلی (رحمه الله) فرمائي چې په [شرح مسلم ج ۱ص ۳۱۱] کې چې پټه لوستلو کې د هیڅ اختلاف نشته .(المغنی لابن قدامه، ج ۲ص ۴۸۶) شوکاني هم لیکلي چې د جمهورو په نیز جهر ندی مستحب. (نیل الاوطار، ج ۴ص ۱۰۱).

نو د کتاب او د سنت په رڼا کې تر دیارلس سوه کلونو پورې بغیر د هیڅ اختلاف څخه د جنازې لمونځ په پټه لوستل کیدلو، د دیارلس سوه یمې صدی په اخر کې په ډهلي کې یو غیر مقلد مولوی عبد الوهاب دانګریزانو په حکم د سید احمد شهید د تحریک د ناکامولو لپاره د امامت دعوی وکړه .(تحریک مجاهدین ص ۵۲ و ص ۵۳).

دغه غیر مقلد د ټولو څخه مخکې په ډهلي کې په جیګ اواز باندې د جنازې د لمونځ رسم شروع کړو. (مقدمه تفسیر ستارې ص ۱۵ د غیر مقلدینو کتاب).

د همغې ورځې څخه خپله د غیر مقلدینو په مینځ کې هم خانه جنګي شروع ده. قاضی شوکانی په نیل الاوطار ج ۲ص ۲۹۸ کې او میاںنذیر حسن په فتاوی نذیریه ج ۱ص ۶۶۳ ص ۶۶۴ کې او مولوی عبد الرحمن مبارکپوري په فتاوی علماء حدیث ج ۵ص ۱۰۷ کې لیکلي چې د جنازې په لمونځ کې جهر ندي مستحب او همدا د جمهورو مذهب دی، د غیر مقلدینو په مشهور اخبار (الاعتصام) کې یې لیکلي دي چې د تعلیم لپاره په اوچت اواز لوستل جایز دي، لکن د دې څخه عادت جوړول او سنت یې ګڼل صحیح نه دی .(جلد ۲ شماره ۱۹ فتاوی علما حدیث).

او د نن سبا غیر مقلدین په جنازه کې په اوچت اواز باندې لوستلو ته مستحب وائي او په دې باندې ډیر اصرار کوي . دې غیر مقلدینو ته پکار دی چې د خپل مشر غیر مقلد مولوی داود غزنوي نصیحت

واوري، مولوي داود غزنوي ليکلي دي چې: يو مستحب کار په بعضې وختونو کې مکروه ګرځي، چې کله دا مستحب کار د استحباب د مرتبې څخه پورته کړی شي.

کوم سړی چې په يو مستحب کار اصرار کوي، نو دا دې په دې پوهه شي چې شيطان دده د ګمراه کولو پسې دی، دا کار عبدالله بن مسعودﷺ شيطاني عمل ګڼلی دی او د دې د بدعت والي طرف ته يې اشاره کړې ده. (فتاوی علماء حديث ج ٥ ص ١١٦).

بهرحال د جنازې د لمونځ پټ لوستل په کتاب او په سنت باندې صريح عمل دی، په کومو روايتونو کې چې د جهر ذکر راغلی دی، هغه صرف د جنازې د لمونځ د تعليم لپاره دی، سنت نه دی، اوس د غير مقلدينو خوښه ده چې په کتاب الله او په سنت باندې عمل کوي او که د غير مقلد مولوی عبدالوهاب په جاري کړه بدعت باندې اصرار کوي.

## دغير مقلدينو څخه يو څو پوښتنې

غير مقلدين وائي چې مونږ اهلحديث يو او زمونږ هره مسئله په قرآن او په حديث باندې ثابته ده، له دې وجهې مونږ يو څو مسائل ذکر کوو، غير مقلدين دې مهرباني وکړي او د دې مسايلو په باره کې دې ايا تونه او يا احاديث وښائي.

(۱) غير مقلد نواب صديق حسن خان ليکلي دي چې (پس تنها نماز کردن بر جنازه صحيح باشد) (بدور الاهله ص ٩٠). صحيح والی يو شرعي حکم دی، له دې وجهې صحيح حديث پيش کړئ چې رسول اللهﷺ څو مره جنازې يو اځې کړی دي؟ دده په ژوند کې دده څلور لور ګانې، درې ځامن، او دوه بيبيانې وفات شوي دي په دوي کې يې د کوم يو جنازه يو اځې کړې ده؟.

(۲) نواب صديق حسن خان ليکلي دي چې په جنازه کې د څلورو تکبيرونو څخه زيات تکبيرونه کول بدعت دی. (بدور الاهله ص ٩١ و ص ٩٢) او نواب وحيد الزمان ليکلي دي چې څلور تکبيرونه اقله اندازه ده زيات هم جايز دي. (کنز الحقائق ص ٤٠). په دې دواړو غير مقلدينو کې د کوم غير مقلد قول صحيح او د حديث سره موافق دی؟

(۳) غیرمقلد نواب وحید الزمان لیکلي دي چې: په جنازه کې سبحنک اللّٰهُمَّ ویل نه دي پکار، لیکن غیرمقلد حکیم صادق سیالکوټي په صلوة الرسول کې ورته د جنازې سنت وائي، په دې دواړو کې د چا قول د حدیث سره موافق دی؟

(۴) غیرمقلد نواب صدیق خان لیکلي دي چې قبر مربع جوړول پکار دي او داوبښ د کوهان په شان قبر جوړول لکه نن سبا چې جوړیږي دا ټول د حدیثو څخه مخالف دي، او منکر کار دی، په مسلمانانو باندې واجبه ده چې په دې منکر کار باندې انکار وکړي. (بدور الاهله ص ۹۵)

افسوس چې غیرمقلدین د احنافو سره د فاتحې دوجوب په مسئله کې جنګیږي، لکن د قبرونو په حق کې د خپل مشرد فتوی په باره کې ګونګي شیطانان دي.

(۵) غیرمقلد نواب صدیق حسن خان لیکلي دي چې د مریض تعزیت د مرګ څخه مخکې جایز دی. (بدور الاهله ص ۹۷). جواز شرعي حکم دی، دا په حدیث صحیحه صریحه مرفوعه کې وښائي.

(٦) غیرمقلد وحید الزمان لیکلي دي چې د جنازې په لمونځ کې صرف یو طرف ته سلام ګرځول پکار دي. (کنز الحقایق ص ۴۱).

(۷) غیرمقلد: نواب وحید الزمان لیکلي دي چې کله د څلورو میاشتو حمل ساقط شي د جنازې لمونځ یې کیږي. (کنز الحقایق ص ۴۱) لیکن لامذهبه ابن حزم لیکلي دی چې ندي جایز (المحلي) د دې دواړو مسئلو لپاره صریح حدیث پیش کړئ.

(۸) غیرمقلدینو په فتاوی علماء حدیث ص ۳۸ کې لیکلي دي چې د دنیوی مشکلاتو له وجهې د مرګ تمنا نه ده جائزه او استدلال یې د (بخاری ص ۴۰) څخه کړی دی، لیکن خپله امام بخاري د امیر د خراسان څخه تنګ شو او د خپل مرګ دعا یې وکړه، اخر ولې امام بخاری رحمه الله د دې صحیح حدیث مخالفت وکړو؟

(۹) د ښځې په مړي باندې د کفن څخه علاوه یو څادر هم اچولی شي.

غیرمقلد مولوی عبد الجبار لیکلي دي، چې د دې څادر د اچولو په احادیثو کې هیڅ معلومات نه شته، دا مسنون ګڼل بالکل جهالت دی او دا کار بدعت مردوده دی، لیکن لامذهبه مولوی علی

محمد سعیدي لیکلي دي چې که په احادیثو کې ددې ذکر پیدا نه شي نو بیا هم ددې دعدم جواز دلیل نه شته، ددې ځادر ځخه بغیر مړی بد ښکاري . ( فتاوی علماء حدیث ص ۴۴ ) .

**نو ای غیرمقلدینو!** دبدعت پرېښودنکي ته بدنما ویل څه حکم لري ؟

(۱۰) محدث دهلوی فتوی ورکړې ده چې دزکوة دمال ځخه دمړي تکفین اوتجهیزنه دی جایزاو لامذهبه علی محمد سعیدي لیکلي دي چې جایزدی . ( فتاوی علماء حدیث ج ۵ص ۴۴ وص ۴۵) .

(۱۱) په قبرکې دختهو دا چولو په وخت کې د (منها خلقنکم) الایه لوستل مستحب دي، لکن ددې حدیث ضعیف دی. ( فتاوی علماء حدیث ج ۵ص ۶۰ ص ۶۱ ) .

(۱۲) دجنازې دهرتکبیرسره به رفع الیدین کیږي، اولاسونه به بیرته تړل کیږي. (فتاوی علما حدیث ج ۵ص ۱۲۱ وص ۱۲۲). په اکثروځایونو کې غیرمقلدین په دې ولې عمل نکوي ؟ دا لاسونه پورته کول مستحب دي لکن دضعیف حدیث ځخه ثابت دي. ( فتاوی علماء حدیث ج ۵ص ۱۵۶ وص ۱۵۷ ) .

(۱۳) دجنازې دپورته کولو په وخت کې بیا بیا په اوچت اواز باندې کلمه دشهادت ویل په خیرالقرون کې ثبوت نلري، لیکن بیا هم مستحب ده . (فتاوی علماء حدیث ج ۵ص ۱۳۲).

(۱۴) دجنازې په لمونځ کې دسورة فاتحې لوستل فرض دي . (بدور الاهله ص ۹۲) دجنازې په لمونځ کې دسورة فاتحې لوستل سنت دي . فتاوی علماء حدیث ج ۵ص ۱۴۲ وص ۱۴۳ ) لامذهبان یې په کوم نیت باندې لولي؟ فرضو ته سنت ویل څه حکم لري ؟ اوسنتو ته فرض ویل څه حکم لري ؟

نن مې دصلیبی زندان په بندو پنجرکې یو کال پوره شو ، دپلچرخي دریم بلاک اول منزل ۸ دهلیز

۱۴۳۳/۸/۱۲ هق ۱۳۹۱/۴/۱۲ هش ۲۰۱۲/۷/۲م

* * *

فان طلقها فلا تحل له من بعد حتى تنكح زوجاً غيره.

# د دريو طلاقونو مسئله

ليكوال: الشيخ رحيم الله الحقاني الننجرهاري غفر له الباري

كاتب: تلميذ الشيخ، مولوي هدايت الله همت بدر

بسم الله الرحمن الرحيم

# د دريو طلاقونو مسئله

الحمدلله وحده والصلوة والسلام علي من لانبي بعده.

أمابعد!

په يو مجلس کې په يوه کلمه باندې د دريو طلاقونو په باره کې د رسول الله ﷺ د زماني څخه تر اتمې صدۍ پورې ټول امت پدې متفق وو چې دا درې طلاقه دي.

په اتمه صدۍ کې د جمهور امت په خلاف علامه ابن تيميه رحمه الله په دېر شور او زور سره دا اواز اوچت کړو چې دا درې طلاقه ندي، په هغه وخت کې دده ترديد دده هم مذهبو (حنابله وو) هم وکړو، علامه ابن قيم رحمه الله د نورو انفرادي مسايلو په شان پدې مسئله کې هم د خپل استاذ تائيد وکړو، چې ددې او دده د نورو تفرداتو له وجهې ورباندې د خپل وخت حکومت سخت تشدد وکړو او خاص ددې مسئلې له وجهې د وخت حکومت دا په اوښ سپور کړو او د وهلو وهلو سره يې په ښار کې وګرځولو، او دده سخت توهين يې وکړو او ددې څخه وروسته يې قيد کړو (سبل السلام، ج ۳ ص ۲۱۵).

ځکه چې په هغه وخت کې د دريو طلاقونو څخه وروسته ښځې ته حلال ويل نه يوازې دا چې د اجماع د امت څخه مخالفت وو، بلکې دا د روافضو او د شيعه ګانو شعار وو. (کمافي فروع کافی. ج ۲ _ ۱۷۸).

نو د اتمې صدۍ د ټولو مذاهبو علماوو او د اسلام بادشاهانو، په اتفاق سره دا فتنه خاموشه کړه، مګر تقريبا پنځه صدۍ وروسته چې کله انګريزانو هندوستان ونيولو او د مسلمانانو د اختلاف لپاره يې د غير مقلدينو (اهلحديثو) او قاديانيانو کافرانو فرقې را پيدا کړې..

نو د وي د خپل اقاء نعمت د خوشحالولو او پد وئ باندې د اعتراض څخه د جواب لپاره بيا دا فتنه راپورته کړه، ځکه چې په انګريزانو دا اعتراضونه کيدل چې تاسو دا عقيده څرنګه د عقل سره موافق ګڼئ چې (اَلتَّوْحِيْدُ فِي التَّثْلِيْثِ وَالتَّثْلِيْثُ فِي التَّوْحِيْدِ)؟

يعنې يو والې په دريو کې دی او درې والې په يو کې دی، کله چې انګريزان لاجوابه شول، نو خپلو زرخريدو غلامانو د خپلو روحاني پلرونو د عقيدې د ممکن ثابتولو لپاره د طلاق مسئله راپورته کړه!

درې طلاقه یو طلاق دی، قادیانیانو هم دریو طلاقونه ته یو وویل فقه احمدیه ص۸۰، مجموعه فتاوی احمدیه ج۲ ص۳۳، او وکټوري اهلحدیثو هم ورته یو وویل.

قادیانیان او وکټوري اهل الحدیث درې طلاقه یو ګڼي او ددوي اقاګان (انګریزان) خدایان درې مني او درې خدایان یو ګڼي، نو ددې فتنې دخاموشولو لپاره دهغه وخت علماوو ډیرې رسالې ولیکلي، زه به ان شاء الله ددې رسالو مضامین له ډیر اختصار سره رانقل کړم او خپله رساله به په دریو فصلونو مشتمله کړم.

په اول فصل کې به دهغو ایمه وو اقوال او دلایل ذکر کړم کوم چې دریو طلاقونو ته جایز وائي او هم به دجمهورو اقوال او دلایل ذکر کړو، چې دریو طلاقونو ته واقع او مکروه وایي.

په دویم فصل کې به دجمهورو دلایل ذکر کړو، چې د دریو طلاقونو څخه وروسته ښځې ته حرامه وائي او درې طلاقه په دریو طلاقو حسابوي، او په دریم فصل کې به دغیر مقلدینو ددلایلو حال ذکر کړو، چې ددریو طلاقونو څخه وروسته ښځې ته حلاله وائي او درې طلاقونه په یو طلاق حسابوي.

## اول فصل

دانسان دژوند په سفر کې یوه مرحله دنکاح هم راځي، دنکاح احکام او د نکاح طرفته ترغیب په قران او په حدیث کې ډیر موجود دی. رسول الله ﷺ کله نکاح ته نیم ایمان وائي. (مشکوة/ج۲/۲۶۸).

او کله طاقت لرونکي ته داوعید ورکوي چې دنکاح څخه مخ اړول زما دسنتو څخه مخ اړول دي (بخاري ج۲ /ص ۷۵۸) او کله کله فرمائي چې څلور شیان دانبیاؤ دسنتو څخه دي. حیاء کول، خوشبو لګول، نکاح کول او د مسواک استعمالول. (الجامع الصغیر، ج۱ ص ۳۷) خلاصه دا چې نکاح دالله جل جلاله درضاء، درسول الله ﷺ دسنتو داتباع، او دانساني تکمیل یوه اهمه ذریعه ده، نو ددې ختمول په همدو مره اندازه مبغوض او دالله ﷻ دناراضګۍ سبب دی لکه څو مره یې چې نکاح کول محبوب او دالله ﷻ درضا سبب دی، دحضرت عبدالله بن عمر ؓ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي چې الله ﷻ چې کوم شیان حلال کړي دي، په هغوی کې دطلاق څخه زیات مبغوض بل هیڅ شی نشته. (مستدرک حاکم، ج ۲ ص ۱۹۶).

وقال صحیح: والجامع الصغیر، ج ۲ ص ٤٢، وقال حسن وقال الذهبی صحیح علی شرط مسلم). ددې څخه معلومیږي چې په بلا وجه طلاق باندې الله ﷻ خفه کیږي.

دحضرت ثوبان ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې: کومه ښځه چې بغير د څه مجبورۍ څخه دخپل خاوند څخه طلاق وغواړي نوپداسې ښځه بانـدې الله ﷻ دجنت خوشبوئي حراموي. (الجامع الصغير، ج ۲ ص ۱۳۷) وقال حسن والمستدرک، ج ۲ ص ۲۰۰).

وقال الحاكم والذهبي صحيح علي شرطهما. مګرانسان بياهم انسان دی، نو دځينو سختوحالا تو له وجهې ورته شريعت د طلاق اجازه هم ورکړې ده، خوبياپې هم ورته حدود او قيود مقرر کړي دي، دجاهليت په زمانه کې سل، سل، بلکې زر، زر طلاقونه اچول کيدل او بيا به بيرته رجوع کيدله.

شريعت د طلاق لپاره يو حد مقرر کړو، او د دريو طلاقونو څخه وروسته يې ښځې ته مغلظه ويله اوښځې مغلظ والې يې په دريو طلاقونو کې منحصر کړو، د الله ﷻ د کلام خلاصه داسې ده چې: طلاق دوه ځلې دی، ددې څخه وروسته ياپه ښه طريقه د ښځې ساتل پکار دي او يا يې په ښه طريقه پرېښودل پکار دي. لکن ددې څخه وروسته يې که دريم طلاق هم ورکړو، نو بيا دغه ښځه دې اول ميړه ته ترهغه پورې نده جايزه ترڅوېې چې دبل ميړه سره نکاح نه وي کړې.

تردې ځای پورې دټولو مسلمانانو اتفاق دی، لکن په طلاق او ددې څخه وروسته د رجعت په بعضې صورتونو کې يو څه اختلاف شته، اول په دې کې اختلاف دی چې په يو مجلس کې په يوه خوله باندې د دريو طلاقونو ورکول جايز اود سنتو سره موافق دی؟ اوکه بدعت او د سنتو څخه مخالف دی؟ او که بالکل نه واقع کيږي؟ په دې کې درې مذهبه دي.

(۱) امام شافعي، امام بخاري، امام بيهقي او ابن حزم وغيره رحمهم الله ورته سنت اود سنتو سره موافق وايي.

(۲) اوجمهورعلماء رحمهم الله فرمائي چې دا طلاق واقع کيږي. لکن داسې طلاق بدعت دی، غير مستحسن او مکروه دی. امام نووی رحمه الله فرمايي چې په يو وخت کې د دريو طلاقونو ورکول زمونږ د شوافعو په نزد حرام نه دي، لکن بهتره داده چې درې طلاقه جدا جدا ورکړل شي. او امام احمد او ابوثور رحمهما الله هم ددې قايل دي. اود امام مالک، اوزاعی، امام ابوحنيفة اود ليث بن سعد رحمهم الله په نزد داسې طلاق بدعت دی. (نووی ج ۱ ص ۲۷۱).

(۳) بعضې خلک وائي چې دا طلاق بالکل نه واقع کيږي، ځکه چې دا طلاق بدعت دی اوکوم شی چې بدعت وي هغه نه واقع کيږي.

## داول مذهب دلايل:

(۱) ابن حزم المتوفی ۴۵٦ هـ ليکلي دی چې : ثُمَّ وَجَدْنَا مِنْ حُجَّةِ مَنْ قَالَ: إِنَّ الطَّلَاقَ الثَّلَاثَ مَجْمُوعَةً سُنَّةٌ وَلَا بِدْعَةٌ قَوْلُ اللهِ تَعَالَىٰ: {فَإِنْ طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهُ مِنْ بَعْدُ حَتَّىٰ تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ} [البقرة: ۲۳۰] فَهٰذَا يَقَعُ عَلَى الثَّلَاثِ مَجْمُوعَةً وَمُفَرَّقَةً، وَلَا يَجُوزُ أَنْ يُخَصَّ بِهٰذِهِ الْآيَةِ بَعْضُ ذٰلِكَ دُونَ بَعْضٍ بِغَيْرِ نَصٍّ. (محلی ج ۱۰/۲۰۷).

بيـا مونږ دهغـو خلکو لپـاره چـې دريو طلاقونو تـه سنت وائـي او بـدعت ورتـه نـه وائـي داقـول دالله ﷻ پيدا کړو چې (پس که ده خپلې ښځې ته طلاق ورکړو، نو دده لپاره نده جايزه، ترڅو چې دا ښځه دبل ميړه سره نکاح وکړي) دامضمون هغو دريو طلاقو ته هم ورځي چې يو ځاى وي او هغو دريو طلاقو ته هم ورځي، چې جداجدا وي او ددې تخصيص تر بعضو پورې ندی جايز، ترڅو چې نص نه وي موجود. يعنې جدا جدا درې طلاقـه او پـه يو ځـاى بانـدې درې طلاقـه دواړه ددې ايـت لانـدې داخـل دي، نـو دواړو حکم بـه هـم يـو وي او جدا جدا درې طلاقه خو بدعت ندی نو همدا رنګې په يو ځاى درې طلاقه به هم بدعت نه وي.

(۲) حضـرت عـويمر بن ابـيض العجلانـی ﷺ چـې کلـه د رسـول الله ﷺ پـه مـخ کـې د خپلـې بـی بی (خولی ﷺ بنت قيس) سره لعان وکړو نو دلعان څخه وروسته حضرت عويمر ﷺ وفرمايل چې :

كَذَبْتُ عَلَيْهَا يَا رَسُولَ اللهِ! إِنْ أَمْسَكْتُهَا، فَطَلَّقَهَا ثَلَاثًا، قَبْلَ أَنْ يَأْمُرَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. (بخاری، ج ۲ ص ۷۹۱ ومسلم، ج ۱ ص ٤۸۹/ ونسائی، ج ۲ ص ۸۳).

که ما دا ځان سره وساتله او خپله ښځه مې کړه، نو ما به دې پسې دروغ ويلي وي. بيا ده د رسول الله ﷺ د حکم څخه مخکې درې طلاقه ورکړل. نو که په يو ځاى باندې د درې طلاقو ورکول بدعت او د سنتو څخه مخالف وی رسول الله ﷺ به هيڅکله پرې خاموشي نه وی کړې، بلکې ددې څخه به يې منع کړې وی. (سنن کبری للبيهقی، ج ۷ ص ۲۲۱). او امام بخاری رحمه الله ددې حديث لپاره باب د (من جوز الطلاق الثلاث). او امام نسائی رحمه الله ورته (باب الرخصة في ذلک) لګولي دي، ددوی لپاره نور هم يو څه دلائل شته.

## د دوهم مذهب دلایل:

د دوهم مذهب په قول کې دوه دعوې دي. اول دا چې: په یو وخت کې درې طلاقه واقع کیږي. دوهم دا چې: داسې طلاق بدعت، مکروه او غیر مُستحسن دی .د واقع کیدلو دلایل خویې یو څه همغه دي کوم چې داول مذهب په دلایلو کې بیان شول،اود مکروه والي لپاره یې یو څو دلایل دادي چې:

(۱) محمود بن لبید ﷺ فرمائي چې :أُخْبِرَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ رَجُلٍ طَلَّقَ امْرَأَتَهُ ثَلَاثَ تَطْلِيقَاتٍ جَمِيعًا، فَقَامَ غَضْبَانًا ثُمَّ قَالَ: «أَيُلْعَبُ بِكِتَابِ اللّٰهِ وَأَنَا بَيْنَ أَظْهُرِكُمْ؟» حَتّٰى قَامَ رَجُلٌ وَقَالَ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ، أَلَا أَقْتُلُهُ؟(نسائی ،ج ۲ ص ۸۲ الثلاث المجموعة ومافیه من التغلیظ).

رسول الله ﷺ ته خبرورکړل شو چې یو سړي خپله ښځه په دریو طلاقونو طلاقه کړې ده، نورسول الله ﷺ ډیرپه غوسه شو، ودریدو او ویې فرمایل چې ایا زما په موجودګۍ کې دالله ﷻ دکتاب سره لوبې کیږي ؟ تردې چې یو سړی پاڅید واورسول الله ﷺ ته یې وفرمایل چې: أیا زه داسړی ونه وژنم ؟

حافظ ابن قیم رحمه الله المتوفی (۷۵۱ هـ) فرمائي چې: (اسناده علی شرط مسلم .(زادالمعادج ۵۲/۴، ) یعنې داسند دمسلم په شرط صحیح دی او علامه ماردیني رحمه الله فرمائي چې ددې حدیث سندصحیح دی. (الجوهرالنقی ،ج ۷ص ۳۳۳) .

حافظ ابن کثیر رحمه الله فرمائي چې (اسناده جید) (بحواله نیل الاوطار،ج ٦ ص ۲۴۱) اوحافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چې: رواته موثقون (بلوغ المرام ص ۲۲۴) (ومع سبل السلام ،ج ۳ص ۲۱۲).

ددې صحیح روایت څخه معلومه شوه چې درې طلاقه درسول الله ﷺ خوښ نه وو ، کنه رسول الله ﷺ به دومره وربانډې نه په غوسه کیدلو اونه به یې داسې فرمایل چې زما په موجودګۍ کې دالله ﷻ دکتاب پورې لوبې کیږي؟

لکن رسول الله ﷺ دخفګان سره سره دادرې طلاقه نافذوګرځول، لکه څرنګه چې حافظ ابن قیم رحمه الله ددې حدیث په تشریح کې د قاضی ابوبکر بن العربی رحمه الله عبارة رانقل کوي اولیکي چې (فلم یرده النبي ﷺ بل امضاه وکما في حدیث عویمر العجلاني في اللعان امضا طلا قـه الثـلا ث ولـم یرده ) (تهذیب سنن ابی داود ،ج ۳ ص ۱۲۹ ، طبع مصر)پس رسول الله ﷺ دادرې طلاقه ردنکړل بلکې نافذیې کـړل اود حضـرت عـویمر ﷺ پـه حـدیث کـې هـم رسـول الله ﷺ درې طلاقـه نافـذکړل اوپـه

ابوداود جلد اول ص(۳۰٦) باب في اللعان کې د حضرت سهل بن سعد ﷺ روایت ذی چې:
(فطلقها ثلاث تطليقات عند رسول الله ﷺ فانفذه رسول الله ﷺ).

- حضرت عویمر ﷺ د رسول الله ﷺ په مخکې خپلې بی بی ته درې طلاقه ورکړل، نو رسول الله ﷺ نافذ کړل.

ددې څخه معلومیږي چې رسول الله ﷺ درې طلاقه نافذ کړل، لکن ددې سره سره یې د خفګان اظهار هم وکړو. حافظ ابن قیم رحمه الله فرمائي چې بعضو خلکو د محمود بن لبید ﷺ په حدیث کې دا لفظ هم ورزیات کړی دی چې (وامضاه علیه ولم یرده) او دا لفظ موضوع دی، قایل د تقلید او د حمایت دخپل مذهب له وجهې څخه پکې ورزیات کړی دی. (اغاثة اللهفان، ج ۱ ص ۲۹۷ و ۲۹۸).

لکن د جمهورو استدلال پداسې طریقه نه دی چې د محمود بن لبید ﷺ په حدیث کې دا لفظ موجود دی، بلکې د جمهورو استدلال په دې طریقه دی چې په ابوداود جلد اول، ص ۳۰٦، کې د حضرت سهل بن سعد په روایت کې دا الفاظ موجود دي چې (فطلقها ثلاث تطليقات فانفذه رسول الله ﷺ ابوداود، باب فی اللعان) الحدیث، پس ده د رسول الله ﷺ په مخکې خپله ښځه په دریو طلاقونو طلاقه کړه، نو رسول الله ﷺ دده طلاقونه نافذ کړل.

ددې روایت نور ټول راویان ثقه دي، یوائې په عیاض بن عبدالله الفهري کې اختلاف دی، ابوحاتم فرمائي چې (لیس بالقوی)، ساجی رحمه الله فرمائي چې ده د ابن وهب رحمه الله څخه داسې روایات هم نقل کړي دي په کومو کې چې نظر دی.

امام یحیی بن معین رحمه الله فرمائي چې هغه ضعیف الحدیث دی او امام بخاری رحمه الله ورته منکر الحدیث وائي، لکن امام ابن حبان رحمه الله او امام ابن شاهین رحمه الله ورته ثقه وائي، او امام ابوصالح رحمه الله فرمائي چې: (ثبت له بالمدینة شان کبیر في حدیثه شي) او همدارنګې دا د مسلم، ابوداود، نسائی او ابن ماجه راوي دی، تهذیب التهذیب، ج ۸ ص ۲۰۱).

امام ابوداود رحمه الله او ابن منذری رحمه الله دا روایت رانقل کړی دی او سکوت یې پرې کړی دی او ضعف حکم یې بالکل پرې ندی لګولی، دا ددې خبرې صاف دلیل دی چې دا روایت ددوي په نیز قابل د اعتماد دی او امام خطابي رحمه الله په معالم السنن، ج ۳ ص ۱٦۲، کې ددې حدیث فقهي معاني بیانوي، مګر د ضعف حکم پرې نه لګوي، نو دده په نیز هم دا روایت د اعتماد قابل دی.

او امام خطابی رحمه الله په یو ځای کې په دې تصریح کړې ده چې موضوع ،مقلوب او مجهول حدیثونه دضعیف حدیث په اقسامو کې دي، او بیا فرمائي چې (کتاب ابي داود خلي منهابرئ من جملة وجوهها). نو دامام خطابي رحمه الله دتحقیق په بناء باندې په ابوداود کې هیڅ موضوعي روایت نشته او همدارنګې که دمحمود بن لبید ﷺ په حدیث کې دالفاظ نه وي نو بیاهم دجمهورو استدلال واضح دی. ځکه چې که درې طلاقه نه واقع کیدلې نو رسول الله ﷺ به ولې دخفګان او دغوصې اظهار کولو؟

ددې داسې مثال دی لکه دحیض په حالت کې چې دطلاق ورکول ممنوع او دسنتو څخه مخالف دی مګر دجمهورو ایمه وو په نیز داسې طلاق واقع کیږي . (بدایة المجتهد ،جلد ۲ص ٦۴ ومعالم السنن ،ج ۳ ص ۹۳) لکه حضرت عبدالله بن عمر ﷺ چې خپلې بی بی ﷺ ته دحیض په حالت کې طلاق ورکړی وو او دده طلاق ته اعتبار ورکړل شوی وو. (بخاری ج ۲ص ۷۹۰ ومسلم ج ۱ص ۴۷۷ ونسائی ج ۲ص ۸۲ ومسند الشافعی ص٦۷ والسنن الکبری جلد ۷ص ۳۲٦ ، والدار قطنی ،ج ۲ص ۴۲۷ وجامع المسانیدج ۲ص ۱۴۱ وتلخیص الحبیر ص ۳۱٦).

دابیا بیله خبره ده چې رسول الله ﷺ ده ته بیرته درجوع کولو حکم وکړو او ارشادیې ورته وکړو چې په داسې طهر کې طلاق ورکړه چې دجماع څخه خالي وي.(بخاری ،ج ۲ص ۷۹۰ ) ومسلم جلد اول ،ص ۴۷٦). د خوارجو او د روافضو په نیز د حیض په حالت کې طلاق نه واقع کیږي. (معالم السنن ،ج ۳ ص ۹۳).

**تعجب**: مګر تعجب دی په امام ابن حزم رحمه الله ، په حافظ ابن تیمیه رحمه الله او په علامه ابن القیم رحمه الله باندې چې د حیض په حالت کې طلاق ته د روافضو او د خوارجو په شان کالعدم وائي . وګورئ: (محلی ،ج ۷ص ۱۹۷ ،فیض الباری ،ج ۴ص ۳۱۰ و زاد المعاد ، ج ۴ ص ۴۴ و سُبل السلام ،ج ۳ص ۲۰۷ ) او د دوي غټ دلیل دادی چې د حیض په حالت کې طلاق اچول ناجایز دي او ناجایز شي شرعاً نه واقع کیږي او شرعي حکم ورباندې نه مرتبیږي، لکن دا دلیل یې اوهنُ من بیت العنکبوت دی، د ډیرو وجهو څخه :

**اول** : ددې وجهې څخه چې دا دلیل عقلي دی او دنص په مقابله کې دی او دداسې دلیل لپاره هیڅ اعتبار نشته.

**دويم** :ديو شي ناجايزوالې جدا خبره ده ،اوددې واقع كيدل اوشرعي حكم وربانديې مرتب كيدل جدا خبره ده، مثلاً ارتداد، زنا، غلا، قتل، وغيره شيان ناجايزدي، لكن شرعي حكم وربانديې مرتبيږي چې كله داشيان ثابت شي نومرتدبه ددريو ورځو څخه وروستهٔ شرعاً قتليږي، په زناكار به شرعاً حد جاري كيږي، د غل څخه به شرعاً لاس غوڅيږي. اوقاتل به شرعاً قصاصيږي، نو ايا دا خبره دلته صحيح ده چې دا افعال ناجايز دي. فلهذا په دوي باندې شرعي حكم اوسزا نه مرتبيږي.

او همدارنګه دخپلې ښځې تشبيه وركول له داسې خپلوانو ښځوسره چې مؤبداً حرامې وي دې ته ظِهار وايي. او دې كارته الله پاک ناخوښه او دروغ ويلي دي .(منكراً من القول وزوراً).

مګر له دې سره سره وربانديې شرعي حكم مرتب دى چې كفاره ورته وائي . همدرانګه قذف ناجايز او ممنوع دى، مګربياهم شرعي حكم وربانديې مرتب دى چې حد او رد الشهادة دى.

همدارنګه د جمهوروعلماوو په نيزپه يومجلس كې درې طلاقه ناجايز او ممنوع دي، مګرشرعي حكم وربانديې مرتب دى، لكه څرنګه چې امام احمدبن حنبل المتوفى (۲۴۱هـ)فرمائي چې وَمَنْ طَلَّقَ ثَلَاثًا فِي لَفْظٍ وَّاحِدٍ فَقَدْ جَهِلَ وَحَرَّمَتْ عَلَيْهِ زَوْجَتُهُ وَلَا تَحِلُّ أَبَدًا حَتّٰى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ... الخ

عبد الله ابن احمد بن حنبل فرمايي چې: قلت لأبى رجل طلق ثلاثا وهو ينوى واحدة قال هى ثلاث، الخ. [مسايل احمد برواية ابنه (ص ۳۷۳، شرح مسلم ج ۱ص ۴۷۸) كتاب الصلوة ص، ۴۷ طبع قاهره]. چا چې په يوه خوله درې طلاقه واچول، نوبې شكه چې ده دجهالت كاروكړ، خو بيا هم دا ښځه په دې ميړه باندې حرامه شوه او هيڅكله ورته نه حلاليږي، ترڅويې چې له بل ميړه سره نكاح نه وي كړې.

## دوهم فصل

په يومجلس كې په يوه كلمه باندې درې طلاقه څه حكم لري ؟آيا داسې طلاق واقع كيږي او كه نه ؟اوكه واقع كيږي نو يو واقع كيږي او كه درې ؟ په دې مسئله كې څلورمذهبه دى:

| | |
|---|---|
| امام ابوحنيفه رحمه الله | امام شافعى رحمه الله |
| امام احمد رحمه الله | امام مالک رحمه الله |

جمهور صحابه ﷺ او تابعین او د څلورو واړه امامانو په نیزدرې طلاقه واقع کیږي او ددې ځخه وروسته په دې میره باندې دا ښځه ترهغې پورې حرامه ده، ترڅو یې چې د بل میره سره نکاح او بیا جماع نوي کړې، او بیا دهغه ځخه د طلاق او یا خلع او یا د مرګ په وجه جدا شوي نه وي.

**(۲) بعضې روافض:** د روافضو په نیزد اطلاق بالکل نه واقع کیږي.

ابن حزم رحمه الله دا قول یو ځلې دا امام احمد رحمه الله طرفته منسوب کړی دی، لکن بیا یې بېرته وربانده رد کړی دی، چې دا د امام احمد رحمه الله مذهب ندی، بلکې دا د روافضو قول دی.

**(۳) جمهور روافض او غیرمقلدین او قادنیان:** شیعه ګان، غیرمقلدین او قادنیان وائي چې دا سې درې طلاقه په یو رجعي طلاق حسابیږي او همدا په یوه توجیه د طاوس رحمه الله او د عکرمه رحمه الله قول هم دی او په یوه توجیه ابن تیمیه رحمه الله هم همدا قول مختاره کړی دی.

داود ظاهري دا قول د ابن عباس ﷺ طرفته هم منسوب کړی دی، لکن دا غلطه خبره ده، ځکه چې په ابوداود، ج ۱ _ ص ۲۹۹). کې د حضرت عبد الله بن عباس ﷺ ځخه د (قبـل ان یـدخل بهـا) قید روایت شوی دی او د اصولو د حدیثو مطابق به په مطلقو روایتونو کې ددې قید لحاظ ساتلې شي، تفصیل به وروسته راشي ان شاء الله تعالی. او همدا قول په یو روایت کې د اسحق بن راهویه رحمه الله هم دی. او په بل روایت کې د جمهورو سره دی او د نن زمانې غیرمقلدین (اهلحدیث) په دې مسئله کې د شیعه ګانو قادیانیانو او د ابن تیمیه رحمه الله راجمع کړي ضعیف دلایل په مختلفو ژبو اړوي او زاړوي او د فتنو بازاریې وربانده ګرم ساتلی دی.

**(٤) بعض اصحاب ابن عباس** رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ **:** د حضرت عبد الله بن عباس ﷺ دا صحابو یوه ډله فرمائي چې: که د ښځې سره همبستري شوی وه، نو بیا درې طلاقه په دریو طلاقو حسابیږي او که همبستري ورسره نه وه شوي، نو بیا درې طلاقه په یو رجعي طلاق حسابیږي. امام محمد بن نصر المروزی رحمه الله دا قول د امام اسحق رحمه الله طرفته هم منسوب کړی دی. [زاد المعاد، ج ۴ ص ۵۴، و اعلام الموقعین، ج ۳ ص ۲۴، ځخه تر ص ۳۴ پورې فتاوی ابن تیمیه، ج ۳ ص ۱۳ تا ص ۲۵.

نو د اول مذهب والا فرمائي چې په یوه کلمه باندې په دریو طلاقونو سره ښځه مغلظه کیږي اوترهغې پورې اول میړه ته نه حلالیږي ، ترڅو پورې چې بل میړه ورسره نکاح اوبیا جماع وکړي اوبیایې یا طلاقه کړي اویاترینه مړشي، ددلایلو څخه مخکې به یو څو حوالې رانقل کړو چې محل د نزاع پوره واضحه شي .

**(۱) حافظ ابو الولید محمدبن احمد** رحمه الله المعروف بابن رشد المالکي المتوفي ،۵٦۵ ،فرمائي: د اطرافو اود ښارونو جمهور فقهاء کرام فرمائي چې په یوه کلمه باندې درې طلاقه درې طلاقه دي اوددې څخه وروسته ښځه حرامیږي او اهل ظواهراویوه ډله نوروائي چې یوائې یو طلاق واقع کیږي . (بدایة المجتهد جلد۲ص ٦۰ ) .

**(۲) حضرت امام ابوذکریایحي بن شرف النووي الشافعي** رحمه الله المتوفي (٦۷٦)هـ فرمائي چې کوم سړی چې خپلې ښځې ته ووائي چې ته پرماپه درې طلاقو طلاقه یې نو امام شافعي رحمه الله امام مالک رحمه الله ،امام ابو حنیفه رحمه الله، امام احمد رحمه الله، اودجمهورو سلفو او خلفو دا مذهب دی چې دا درې طلاقه واقع شو. حضرت طاوس رحمه الله اوبعض اهل ظواهر فرمائي چې دایوائې یو طلاق دی. دحجاج بن ارطاة او محمد بن اسحق رحمه الله څخه هم همداسې روایت دی .( شرح مسلم ،ج :۱ص ۴۷۸ )

**(۳) امام ابوالبرکات عبدالسلام ابن تیمیه الحنبلي رحمه الله** المتوفي (٦۲۱هـ )فرمائي چې : په یوه کلمه باندې درې طلاقه په اجماع سره واقع کیږي .(منتقی الاخبار،ص ۲۳۷ والنیل ،ج ٦ ص ۲۴۳ )

**(٤) اوحافظ احمدبن عبدالحلیم ابن تیمیه الحنبلي رحمه الله** (المتوفي ۷۲۸ هـ دجمهورو مسلک داسې رانقل کوي چې : (وَلِمَا ثَبَتَ عِنْدَهُمْ عَنْ أَئِمَّةِ الصَّحَابَةِ رضي الله عنهم أَنَّهُمْ أَلْزَمُوا بِالثَّلَاثِ الْمَجْمُوعَةِ قَالُوا: لَا يُلْزَمُونَ بِذٰلِكَ إِلَّا وَذٰلِكَ مُقْتَضَى الشَّرْعِ، وَاعْتَقَدَ طَائِفَةٌ لُزُومَ هٰذَا الطَّلَاقِ وَأَنَّ ذٰلِكَ إِجْمَاعٌ لِكَوْنِهِمْ لَمْ يَعْلَمُوا خِلَافًا ثَابِتًا (فتاوی ج ۳ص ۲۱ طبع مصر) .

اوكله چې ددوي په نيز دامامانو صحابه وورضى الله عنهم څخه داثابته وه چې درې طلاقه لازم دي، نو جمهورو وفرمايل چې د امامانو صحابه وو ﷺ څخه بې دليله داسې نه كيږي، نو دوي ددرې طلاقو دلزوم عقيده وساتله اوداددوي په نيزيو اجماعي امردى چې ددې په خلاف ددوي په علم كې هيڅ شى هم نه دى ثابت، ددې څخه معلوميږي چې د جمهورو په علم كې ددې اجماع په خلاف هيڅ شى هم ندى ثابت.

**(۵) امام ابوجعفر احمد بن محمد الطحاوي الحنفي رحمه الله** المتوفي (۳۲۱ هـ)

فرمائي چې: فَخَاطَبَ عُمَرُ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ بِذٰلِكَ النَّاسَ جَمِيعًا، وَفِيهِمْ أَصْحَابُ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرَضِيَ عَنْهُمْ، الَّذِينَ قَدْ عَلِمُوا مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذٰلِكَ، فِي ذٰلِكَ، فِي زَمَنِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَلَمْ يُنْكِرْهُ عَلَيْهِ مِنْهُمْ مُنْكِرٌ، وَلَمْ يَدْفَعْهُ دَافِعٌ، فَكَانَ ذٰلِكَ أَكْبَرَ الْحُجَّةِ فِي نَسْخِ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذٰلِكَ. لِأَنَّهُ لَمَّا كَانَ فِعْلُ أَصْحَابِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَمِيعًا فِعْلًا يَجِبُ بِهِ الْحُجَّةُ، كَانَ كَذٰلِكَ أَيْضًا إِجْمَاعُهُمْ عَلَى الْقَوْلِ إِجْمَاعًا يَجِبُ بِهِ الْحُجَّةُ. وَكَمَا كَانَ إِجْمَاعُهُمْ عَلَى النَّقْلِ بَرِيئًا مِنَ الْوَهْمِ وَالزَّلَلِ، كَانَ كَذٰلِكَ إِجْمَاعُهُمْ عَلَى الرَّأْيِ بَرِيئًا مِنَ الْوَهْمِ وَالزَّلَلِ. اهـ. (شرح معاني الاثار، ج۲ص۲۹). وفي البعض ص ۳۴، باب الرجل يطلق امرأته ثلاثا معاً.

حضرت عمر ﷺ ټولو خلكو ته پدې باره كې تقرير وكړو او پدوى كې د رسول الله ﷺ صحابه رضى الله عنهم هم وو، كوم چې په دې ښه پوهيدل چې د رسول الله ﷺ په زمانه كې پدې باره كې څه كيدل؟

لكن پدوي كې هيچا انكار ونكړو او نه چا د حضرت عمر ﷺ حكم وغور ځولو. نو داپدې يوغټ دليل دى چې: ددې څخه مخكې ددې په خلاف چې څه كيدل هغه منسوخ دى.

ځكه چې د حضور ﷺ د صحابه وو په يو عمل باندې راجمع كيدل داسې لازمي دليل دى، لكه څرنگه يې چې په يو قول باندې راجمع كيدل لازمي دليل دى اولكه څرنگه چې د صحابه وو ﷺ اجماع په نقل باندې دوهم او د خطائي څخه پاكه ده، نو همدارنگه ددوي ﷺ اجماع په رايه باندې هم دوهم او د خطائي څخه پاكه ده. ددې څخه معلومه شوه چې پدې مسئله باندې د حضرت عمر ﷺ په زمانه كې قولي اوفعلي اجماع منعقده شوه او دا يو قطعي دليل دى.

**(٦) حافظ ابن حجرعسقلاني رحمه الله** المتوفي ،۸۵۲ هـ فرمائي چې: دمتعې په حراموالي او ددريو طلاقو په درې والي باندې د حضرت عمر ﷺ په زمانه كې اجماع وشوه او دا اجماع پدې خبره يوواضح دليل دى چې دوي ته ناسخ معلوم وو، اگرچې ددې څخه مخكې دبعضوپدې

باندې علم نه وو، نوځوک چې ددې اجماع څخه وروسته هم ددې مخالفت کوي نوهغه د اجماع تارک ،او د اجماع څخه منکردی او د ټول امت په دې اتفاق دی چې د اجماع څخه وروسته اختلاف پیدا کول مردود دي. (فتح الباری، ج: ۹ ص ۲۹۳ باب من جوز الطلاق الثلاث)

**(۷) حافظ محمدبن عبدالواحد رحمه الله** المعروف بابن الهمام (المتوفي ،۸٦۱ھ) فرمائي چې:

د جمهورو صحابه وو رضی الله عنهم، تابعینو رضی الله عنهم او د مسلمانانو د امامانو رحمهم الله دا مسلک دی چې درې طلاقه درې واقع کیږي. (فتح القدیر، ج : ۳ ص ۲۵ طبع مصر). او په دې باندې د صحابه وو رضی الله عنهم اجماع ده، ص ۲٦.

**(۸) علامه بدرالدین ابوعبدالله محمدبن علي البعلي الحنبلي** رحمه الله (المتوفی ،۷۷۷ )فرمائي چې: درې طلاقه چې ښځې ته د همبستری څخه مخکې ورکړل شي او که وروسته ورکړل شي، د دواړو صورتونو حکم د ټولو امامانو د دین په نیز یو دی او هغه دادی چې دا ښځه په میړه باندې حرامه شوه. (مختصر الفتاوی المصریه ،ص ۲۳٦).

**(۹) حافظ ابن قیم رحمه الله** لیکي: چې صحابه کرامو رضي الله عنهم او د صحابه کرامو رضي الله عنهم : پیشوا سیدنا حضرت عمر رضی الله عنه چې کله ولیدل چې خلک د دریو طلاقو په معامله کې د خپلو حماقتونو د ثبوت پیش کول شروع کړي دي، نو الله ﷻ ددې خلیفة الراشد او دده د نورو ملګرو په ژبه دا تقریر جاری او ساري کړو چې ځوک کوم شی په ځان باندې لازم کړي ، نو هغه شی په هغه باندې جاري کیږي .اعلام الموقعین جلد ۲ ص ۲۷ .

**(۱۰) حافظ بدرالدین محمودبن احمدالعیني الحنفي رحمه الله** (المتوفي ۸۵۵ ھ )لیکي چې: د جمهورو علماو و چې په هغوئ کې تابعین او تبع تابعین او وروستني حضرات داخل دي دا مذهب دی چې درې طلاقه دي او وي به. او همدا د امام اوزاعي رحمه الله، امام [illegible] رحمه الله، امام ثوری رحمه الله، امام ابو حنیفه رحمه الله، امام مالک [illegible]

امام احمد رحمه الله ، امام اسحق ابن [illegible]

الله ، وغیره [illegible]

**(۱۱) او علامه محمدعبدالرحمن الدمشقی الشافعی** رحمه الله ليکي چې : دايمه يې اربعه وويدې خبره اتفاق دی چې کومې ښځې ته چې دحيض په حالت کې طلاق ورکړل شي او ددې سره همبستري هم شوی وي، نوداکارحرام دی لکن واقع کيږي ؛ الا انه يقع وكذلک جمع الطلاق الثلاث محرم و يقع. (رحمة الامة برهامش ميزان الشعرانی جلد۲ ص ۷۹ طبع مصر)يعني دحيض په حالت کې طلاق حرام دی، لکن واقع کيږي اوهمدارنګې د دريو طلاقو جمع کول حرام دي لکن واقع کيږي.

**(۱۲) حافظ ابن قيم** رحمه الله **ليکي** چې : امام ابوالحسن علی بن عبدالله بن ابراهيم اللخمی المشطی رحمه الله په الوثايق الکبيرکې ليکي چې : ( الجمهورمن العلماء علی انه يلزمه الثلاث وبه القضاء وعليه الفتوی وهوالحق الذي لاشک فيه ) اغاثة جلد۱ص ۳۲۶).

جمهورعلماء پدې متفق دي چې درې طلاقه په ده لازم دي، په همدې فيصله ده، اوپه همدې فتوی ده اوهمدا خبره حقه ده چې هيڅ شک پکې نشته.

**(۱۳) امام محمدبن عبدالباقي بن يوسف الزرقاني المالکي رحمه الله** (المتوفي ۱۱۲۲) ليکي: والجمهور علی وقوع الثلاث بل حکی ابن عبدالبرالاجماع قايلاً ان خلافه شاذلا يلتفت اليه. [زرقانی شرح موطاج ۳،ص ۱۶۷].

جمهورعلماءپه دې قايل دي چې درې طلاقه واقع کيږي، بلکې امام ابن عبدالبر رحمه الله په دې خبره اجماع رانقل کړی ده، اوددې خبرې قايل دی چې ددې خلاف شاذدی چې هيڅ التفات به ورته نه شي کولی.

**(۱٤) امام جلال الدين عبدالرحمن السيوطی رحمه الله** المتوفي(۹۱۱هـ )فرمائي چې: دخلوروواړو امامانو د مقلدينو دامسلک دی چې درې طلاقه دفعة (په يوځل)واقع کيږي اودابه درې طلاقه وي. (محصله مسالک الحنفاء ص۵٦ مکتبة دايرة المعارف ).

عومي ... علامه اميرياني محمدبن اسماعيل رحمه الله (المتوفي ۱۱۸۲)فرمائي چې :

**(٦) حافظ ابن حجرعس...**

... يو مجلس کې درې طلاقه په دريو طلاقو حسابولې شي.

حراموالي اوددريو طلاقوپه درې والي باندې دحضرت عمر ... ابن عباس رضی الله عنهما اود پدې خبره يو واضح دليل دی چې دوي ته ناسخ معلوم وو، اګرچې ددې څخه مخکې ...

حضرت عايشى رضى الله تعالى عنها او د حضرت على ﷺ او د حضرت عثمان ﷺ مذهب دى او همدا د جمهورو فقهاو و سلفو او خلفو مسلک دى. (سبل السلام ،ج ۳ص ۲۱۴ ، تعليق المغنى ج ۲ص ۴۳۰.

**(۱٦) حافظ ابن قيم رحمه الله** فرمائي چې: جمهورو علماوو دا مذهب د حضرت عمر ﷺ ،حضرت على ﷺ حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ ، حضرت عبد الله بن عمر رضى الله عنهما حضرت عبد الله بن عمرو ﷺ حضرت عبد الله ابن عباس رضى الله عنهما حضرت عبد الله بن زبير رضى الله عنهما حضرت عمران بن حصين رضى الله عنهما حضرت مغيرة ابن شعبه ﷺ او د حضرت حسن بن على ﷺ ځخه رانقل کړى دى او د تابعينو خو شمار نه کيږي (اغاثة جلد ا ص ۳۲۲ ،طبع مصر) او همدا رنګې همدا مذهب د حضرت ابو هريره ﷺ حضرت عايشى رضى الله تعالى عنها او حضرت زيد بن ثابت ﷺ هم دى. (اغاثة جلد ا ص ۳۲۰ ،تا ص ۳۲۲).

او وروسته ليکي چې : وذكر الاجماع على وقوع الثلاث ابوبكر بن العربي وابوبكر الرازي وهو ظاهر كلام احمد. (اغاثة ج ا ص ۳۲۳) .

يعنې د دريو طلاقو په وقوع باندې امام ابوبكر بن العربى رحمه الله او امام ابوبكر الرازى رحمه الله اجماع رانقل کړى ده او همدا ظاهر كلام د امام احمد هم دى .

**(۱۷) - علامه سيد الوسى الحنفى رحمه الله** (المتوفى ۱۲۷۰ هـ) فرمائي چې :كله په دې خبره د صحابه ؤ رضى الله عنهم اجماع شوه او بغير د نص ځخه داسې نه کيږي ، فلهذا د جمهور امت په دې باندې اتفاق دى . (روح المعانى ،ج ۲ص ۱۱۸) .

**(۱۸) - او قاضى محمد بن على الشوكانى رحمه الله** (المتوفى ،۱۲۵۰ هـ) فرمائي چې: د جمهورو تابعينو رحمهم الله او د حضراتو صحابه وو رضى الله عنهم اكثريت او ايمه اربعه رحمهم الله او د اهل بيتو يوه ډله په شمول د حضرت على ﷺ فرمائي چې : درې طلاقه په دريو حسابيږي .(نيل الاوطار ،ج ٦ص ۲۴۵) .

**(۱۹) دغیرمقلدینومشهورعالم شمس الحق عظیم ابادي** لیکي: چې دځلورو واړو امامانو او دجمهورو علماء وو داسلام مذهب دادی چې دري طلاقه دري واقع کیږي. [عون المعبود ص ۲۲۹ والتعلیق المغنی، ج۲ ص ۴۴۴].

**(۲۰) د تعجب خبره داده چې** د اهل ظواهرو مشهور محدث محمد بن حزم هم د دریو طلاقونو د وقوع قایل دی. (محلی جلد ۱۰ص ۲۰٦)

حافظ ابن قیم لیکي چې: و خالفهم ابومحمدبن حزم في ذلک فاباح جمع الثلاث واوقعها. [اغاثة جلد۱ص ۳۲۹]. د اهل ظواهرو سره ابن حزم په دې مسئله کې اختلاف کړی دی، ځکه چې ابن حزم فرمائي چې: دري طلاقه په یوځای مباح دي او واقع کیږي.

**(۲۱) قال الامام ابو بکر ابن المنذر النیشابوري:** واجمعوا على أن الرجل اذا طلق امرأته ثلاثا انها لاتحل له الا بعد زوج على ماجاء به حديث النبي صلى الله عليه وسلم، ثم قال: واجمعوا على أنه ان قال انت طالق ثلاثا الا ثلاثا انها اطلق ثلاثا (کتاب الاجماع لابن المنذر صـ ۹۲)

**(۲۲)** اجمعوا على انه من قال لامرأته انت طالق ثلاثا يقع ثلاث بالاجماعَ (التفسير المظهري ج ۲صـ ۳۰۰، تفسير قوله تعالى الطلاق مرتين)

ځینې خلک وائي چې دمالکیانو په نیز یو قول دادی چې دري طلاقه په یو طلاق حسابیږي. لکه شیخ خلیل احمد المالکی رحمه الله چې فرمائي چې زمونږ په نیز یو قول داهم دی چې که څوک په یو مجلس کې په یو ه کلمه باندې خپلې ښځې ته دري طلاقه ورکړي، نو هغه په یو حسابیږي او بیایې لیکلي دي چې دا قول په نوادرو کتابونو کې دی لکن ماپخپله نه دی لیدلی. ((ارشادالساری، ج ۸ص ۱۵۸، طبع مصر).

نو خبره یې واضحه کړی ده، ځکه چې د ظاهرو کتابونو په خلاف په نوادرو باندې هیڅ اعتماد نه وي. او دخوند خبره داده چې په نوادرو کې یې هم نه دی پیدا کړې، بلکې یو اځې داورید و خبره ده. حافظ ابن قیم رحمه الله او مولانا عبدالحی لکهنوی رحمه الله د حضرت امام مالک رحمه الله طرف ته یو قول داهم منسوب کړې دی چې دري طلاقه نه واقع کیږي (اغاثة جلد ۱ ص ۲۹۰، وحاشیه شرح وقایه ج ۳ص ٦۳.

لکن دا نسبت یقینا غلط او باطل دی، ځکه چې امام مالک رحمه الله خپله په خپل کتاب موطا ص ۱۹۹ وص ۲۰۰ کې درې طلاقونو ته درې ویلي دي، بلکې د بتة لفظ یې هم په دریو وحمل کړی دی. موطا امام مالک ص ۲۰۰ وترمذی ج ۱ص ۱۴۰. ابواب الطلاق واللعان.

بعضې دیو حنفی محمد بن مقاتل رحمه الله قول هم ذکر کوي چې په دریمه طبقه کې شماردی. (فتاوی ج ۲ص ۱۷) او ابن تیمیه رحمه الله دامام احمد رحمه الله دبعضې اصحابو قول هم ذکر کوي، لکن حافظ ابن قیم رحمه الله فرمائي چې که دده د امام احمد رحمه الله دبعضو اصحابو څخه خپل نیکه ابو البرکات ابن تیمیه رحمه الله مراد وي، نو دا بیا ځانته خبره ده، ځکه چې دده خپل قول اګر چې دا و چې درې طلاقه په دریو حسابیږي، لکه د دریم نمبر شمارې لاندې چې دده قول بیان شو، لکن زما استاذ حافظ ابن تیمیه رحمه الله د خپل نیکه یعنې دابو البرکات ابن تیمیه رحمه الله څخه نقل کوي چې ده به کله کله په پټه باندې دا فتوی ورکوله چې درې طلاقه یو طلاق دی (یفتی بذلک سِراً) او که بل څوک یې مراد وي، نو بیا دا غلطه خبره ده، ځکه چې زه د بل حنبلي په اختلاف باندې نه یم خبر. [اغاثه جلد ۱ص ۳۲۷].

د مالکیانو هیڅ قول په هیڅ معتبره طریقه ندی نقل کړشوی، یوائې قصې دی چې فلانې فتوی ورکړې ده او فلانې فتوی ورکړې ده، په احنافو کې یوائې د محمد بن مقاتل رحمه الله نوم اخستل کیږي نو رند: معلومه چې دده قول صحیح دی او که نه؟ او که صحیح وي نو بیا د جمهورو احنافو او خپله دامام ابو حنیفه د قول په مقابله کې دده ذاتي رائې ته هیڅ اعتبار نشته، او بیا د تحلیل او د تحریم په مسئله کې د جمهورو د قول پرینبودل او د شاذو اقوالو لټول هیڅ مقام نلري. لکه څرنګه چې علامه احمد بن محمد القسطلانی الشافعی رحمه الله (المتوفی ۹۲۳) د هغه چا په باره کې چې دریو طلاقو ته یو طلاق وائي دا سې لیکي چې: (بانه مذهب شاذفلا یعمل به اذهو منکر). [ارشاد الساری ج ۸ ص ۱۵۷]. دا شاذ مذهب دی. په دې مذهب به عمل نه کیږي ځکه چې دا منکر مذهب دی.

بعضې غیر مقلدین د خپلې ډلې د زیاتو لو لپاره د قاسم، باقر او ناصر نومونه هم یادوي چې د دې هم دریو طلاقو ته یو طلاق وایي. (کما في نیل الاوطار ج ۶ ص ۲۴۵). لکن دا خلک تول زیدي شیعه ګان وو. [وګورۍ (دلیل الطالب، ص ۷۵۶) او د شیعه ګانو په نیزه په یو مجلس کې درې طلاقه په

یو طلاق حسابیږي، لکه څرنګه یې چې د دوی په مشهور کتاب فروع کافي کې لیکلي دي چې (عن ابي جعفرعلیه السلام قال اباک والمطلقات الثلاث في مجلس فانهن ذوات ازواج . (جلد۲ ص ۱۷۸).

دابی جعفر څخه روایت دی چې کوم ښځو ته چې په یو مجلس کې درې طلاقه ورکړل شوي دي، د داسې ښځو سره د نکاح څخه ځان وساته ځکه چې داسې ښځې میړوخی دي (یعنې دوي تراوسه پورې په اول میړه باندې نه دي حرامې شوي).

غیر مقلدین د احمد بن عیسی او د عبدالله بن موسی، نومونه هم ذکر کوي، حالانکه دا مجهول خلک دي (الا زهار المربوعة ص ۱۵) او د حلالو او د حرامو په مسئله کې د دین د امامانو او د جمهورو صحابه وو رضی الله عنهم او د امت مرحومه د اجماع پریښودل او د داسې غیر معتبر و او مجهولو خلکو دلمنې پورې نښتل حماقت، عناد، او د تعصب په کنده کې غورزیدل دي.

**سوال**: چې حافظ ابن تیمیه الحنبلی رحمه الله او د ده شاګرد حافظ ابن قیم رحمه الله په اتمه صدی کې د جمهور امت په خلاف او همدارنګه د خپل امام احمد بن حنبل رحمه الله په خلاف څرنګه دا فتوی ورکړه چې په یو مجلس کې درې طلاقه په یو طلاق حسابیږي؟

**جواب**: په دې مسئله کې اګرچې حق د جمهورو قول دی او د دوهم قول انتهائي ضعیف او مرجوح دی، لکن بیا به هم د تابعینو د زمانې څخه تر اتمې صدی پورې کوم یو شخص په دوهم قول اعتمادکولو. نو په اتمه صدی کې کوم یو متشدد او غالي مفتي دا فتوا ورکړه چې کوم سړی چې درې طلاقه په یو طلاق حسابوي هغه کافر، مرتد او واجب القتل دی، نو کله چې د دې مفتي له طرفه دومره سختي وشوه، نو د دې فتوی په خلاف حافظ ابن تیمیه رحمه الله او د ده وفادار شاګرد حافظ ابن قیم رحمه الله راپورته شول او دلایل یې را جمع کړل.

د دوي اصل مقصد دا و چې د دوهم قول اګرچه انتهائي کمزوری او مرجوح دی، لکن بیا هم کفر او ارتداد نه دی، نو د جمهورو سره د دوي اختلاف ضمني اختلاف دی. اصل اختلاف یې د دغه متشدد مفتي د کفر او د ارتداد د فتوی سره وو، لکه څرنګه چې حافظ ابن قیم رحمه الله د ابن زنباع، محمد بن

بقی، محمد بن عبدالسلام او د اصبغ او نورو ظواهرو نوموړنه اخلي او بيا ددې مفتي په باره کې فرمائي چې: افترى الجاهل الظالم المعتدي بجعل هولاء كلهم كفارا مباحة دمائهم. [اغاثة ج ۱ ص ۳۲۹].

ايا ته ګورې دغه ظالم جاهل او بې انصافه ته، چې دغو ټولو علماوو ته يې کافر او مباح الدم ويلي دي.

په بل ځای کې د امام طحاوی رحمه الله په حواله ليکي چې: ثم ذكر حجج الاخرين والجواب عن حجج هؤلاء على عادة اهل العلم والدين في انصاف مخالفيهم والبحث معهم ولم يسلک طريق جاهل ظالم معتد يبرک على رکبتيه ويفجر عينيه ويصول بمنصبه لا بعلمه وبسوء قصده لا بحسن فهمه ويقول القول بهذه المسئلة كفر يوجب ضرب العنق. [اغاثة ،ج ۱ ص ۳۲۷]

بيا امام طحاوي رحمه الله د دوهم قول والا دلايل ذکر کړي دي او د دوي دلايلو ته يې جوابونه ورکړي دي، لکه څرنګه چې د علماوو عادت دی چې د خپلو مخالفينو سره د انصاف څخه کار اخلي او ددوي سره بحث کوي او امام طحاوی رحمه الله د کوم ظالم، جاهل او بې انصافه په لاره باندې نه دی روان، کوم چې په دوو زنګنونو کيني او د مکر نه سترګې روانوي، محض د خپل منصب په ذريعه په نورو حمله کوي نه د علم په ذريعه او په غلطو ارادو په خلکو پسې نښتي وي، نه د علم او د پوهې په وجه او وايي چې په دې مسئله کې بحث کول کفر دی، چې د څټ وهل واجبوي ...الخ.

ددې څخه معلوميږي چې په دې مسئله کې د حافظ ابن تيميه رحمه الله او دده د وفادار شاګرد حافظ ابن قيم رحمه الله تشدد يوا ځې د دې بل مفتي د تشدد مقابله وه.

او ددې خبرې غټ دليل دادی چې حافظ ابن قيم رحمه الله په زاد المعاد، په اغاثة اللهفان او په اعلام الموقعين کې بنه په زور سره ددې خبرې دلايل بيانوي چې درې طلاقه يو طلاق دی، لکن چې کله په بل ځای کې ددې مفتي خبرې نه دي ورپه ياد، نو بيا يوا ځې د جمهورو مذهب ذکر کوي او ددې دوهم قول بالکل نوم هم نه اخلي. په تهذيب سنن ابی داود کې د قاضی ابوبکر ابن العربی رحمه الله په حواله د جمهورو دلايل بيانوي، او بيا نه په دې دلايلو رد کوي او نه ددې په خلاف د بل چا دلايل بيانوي، حتی چې محشي ته يې د اشکايت پيدا کيږي چې حافظ ابن قيم رحمه الله د لته ولې بالکل خاموش دی؟ او د جمهورو دلايلو ته ولې جواب نه ورکوي؟ وګوره: (حاشيه تهذيب سنن ابی داود، ج ۳ ص ۱۲۹ طبع مصر).

او دوهمه وجه داوه چې ددې مسئلې په وجه دغو دواړو سخت مصیبتونه برداشت کړل اودا طبعي خبره ده چې دیو طرف څخه تشدد او سختي وشي، نو ددوهم طرف څخه هم سختي اختیارولی شي، لکه څرنګه چې امیر یماني لیکي چې : واشتد نكيرهم على من خالف ذلك وصارت هذه المسئلة علماعندهم للرافضة والمخالفين وعوقب بسبب الفتيا بهاشيخ الاسلام ابن تيميه وطيف بتلميذه الحافظ ابن القيم على جمل بسبب الفتوى بعدم وقوع الثلاث. [سبل السلام ،ج ۳ص ۲۱۵].

او هغوی په خپلو مخالفینو سخت انکار وکړو او دا مسئله ددوئ په نزد د روافضو او د شیعه ګانو علامه وه او ددې فتوی په وجه ابن تیمیه رحمه الله ته سزا ورکړل شوه او دده شاګرد ابن قیم رحمه الله ددې فتوی په وجه د سزا لپاره په اوښ باندې سپور کړل شو، نو خلاصه دا چې : درې طلاقه درې طلاقه دي اجماعاً.

**اعتراض :** شیعه ګانو او غیر مقلدینو اعتراض کړی دی چې په دې مسئله کې خو یو څه اختلاف شته نو څرنګه به اجماعي شي ؟ (تنویر الافاق صـ۲۰۷،تا ۲۱۵،ملخصا محمد رئیس ندوي غیر مقلد).

**الجواب :** ۱- د درې طلاقو به درې وایي د حضرت عمر رضی الله عنه په زمانه کې اجماع شوی ده په هغه وخت کې یو صحابي هم مخالفت ندي کړی.

۲- دا اجماع تعریف دادی چې (اتفاق المجتهدین من أمة محمد فی عصر علی حکم شرعي (توضیح تلویح ج ۵۲۲.۲) ، اتفاق المجتهدین من أمة محمد صلی الله علیه وسلم فی عصر علی دینيٍّ مجموعة قواعد الفقه صـ ۱۶۰، لمحمد عمیم الاحسان) تقریبا په هر کتاب کې همدا تعریف پیدا کیږی نو ددې تعریف مطابق د صحابه وو نه شروع تر أتمې صدی د ټولو اهل سنتو په اجماع درې طلاقه دي.

۳- دا امت داکثرو مجتهدینو په اتفاق باندې هم د اجماع اطلاق کیږي ، صاحب د هدایې فرمایي چې وعلی ترک القراءة خلف الامام اجماع الصحابة، نو علامه عیني رحمه الله فرمایي چې : فسماه اجماعاً باعتبار اتفاق الاکثر ومثل هذا یسمی اجماعا عندنا، عمدة القاري ، باب وجوب القراءة، فلهذا د جمهورو صحابه وو او مجتهدینو د اتفاق او د اجماع په مقابل کې د هیچا قول ته اعتبار نشته او نه ددوی په قولونو باندې اجماع ته نقصان رسیږي، خصوصا اختلاف کونکي مجتهدین هم نه دی، یو څو مثالونه وګورئ !

(۱) ټول مسلمانان پوهیږي چې د روافضو مخالفت د قران په قطعي والي باندې هیڅ اثر نشي غورزولی.

(۲) دمنکرینو د حدیثو انکار د حدیثو په حُجیت باندې هیڅ اثرنشي غورزولی .

(۳) دختم نبوت مسئله قطعي او اجماعي ده، لکن د قادیانیانو په مخالفت وباندې هیڅ اثرنه غورزیږي.

(۴) متعه اجماعاً حرامه ده، مگر د شیعه گانو او دابن جریج مخالفت وباندې هیڅ اثرنشي غورزولی .

ابن جریج د بخاری او د مسلم راوي دی، لکن د نوي (۹۰) زنانه وو سره یې متعه کړې وه او دې کارته به یې جایزهم ویلې. (میزان ،ج ۲ص ۱۵۱).

(۵) دخپلې ښځې سره لواطت اجماعاحرام دی، لکن په بخاری ،ج ۲ ص ۲۴۹ کې علی تفسیرٍ بل څه روایت شوي دي او حافظ ابن تیمیه ددې فعل نسبت دبعضې مدنیینو طرفته هم کړی دی رفع الملام ص ۷۰ .

(٦) امام نووي رحمه الله، قاضی شوکانی او علامه جزایري لیکلي دي چې: د داود ظاهري مخالفت له وجهې په اجماع باندې هیڅ اثرنه غورزیږي شرح مسلم ،ج ۲ص ۱۸۷ ،شرح بلوغ المرام ص٦ وتوجیه النظر ص ۴۱۲].

(۷) دغیر مقلدینو سرگروه هم لیکلي دي چې د اجماع لپاره دټولو مجتهدینو اتفاق ندی ضروري، که چیرته دا شرط شي نو بیا خو به دسره اجماع پیدا نشي . الجنة ،ص ۹ فلهذا څوک چې ددې اجماع په خلاف ځینې اقوال رانقلوي نو دهغې په وجه اجماع ته هیڅ نقصان نه رسیږي .

لکه څرنگه چې علامه احمد رحمه الله (المتوفی ۹۲۳ھ) فرمائي چې کوم کسان چې دریو طلاقونو ته یو طلاق وائي، نو ددوي مذهب شاذ او منکر دی او دسره قابل دعمل ندی. [ارشاد الساری ،ج ۸ص ۱۵۷ طبع مصر].

## د جمهورو دلایل

**قرآني دلایل:**

**اول دلیل**: الله ﷻ د طلاقونو لپاره قانون جوړ کړی دی، چې د دوو طلاقونو څخه وروسته خاوند ته د رجوع حق حاصل دی .

لکن (فَإِنْ طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهُ مِنْ بَعْدُ حَتّٰى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ) پس که خاوند ښځې ته بل طلاق هم ورکړو، نو اوس دا ښځه دې سړي ته تر هغې پورې نه حلالیږي تر څو چې د کوم بل خاوند سره نکاح ونکړي .

**دوهم دليل :**

امام بخاري رحمه الله ددې ايت څخه استدلال کړی دی چې : (الطَّلَاقُ مَرَّتَانِ فَإِمْسَاكٌ بِمَعْرُوفٍ أَوْ تَسْرِيحٌ بِإِحْسَانٍ) امام بخاري باب قائم کړی دی چې : بَابُ مَنْ أَجَازَ طَلَاقَ الثَّلَاثِ وفي نسخة باب من جوّز طَلَاقَ الثَّلَاثَ لِقَوْلِ اللهِ تَعَالٰى: {الطَّلَاقُ مَرَّتَانِ فَإِمْسَاكٌ بِمَعْرُوفٍ أَوْ تَسْرِيحٌ بِإِحْسَانٍ.

امام ابوبکر احمد الرازي الجصاص (المتوفی سنه ۳۷۰ هـ) کې ليکي چې قوله تعالی : الطَّلَاقُ مَرَّتَانِ فَإِمْسَاكٌ بِمَعْرُوفٍ أَوْ تَسْرِيحٌ بِإِحْسَانٍ} الْآيَةَ، يَدُلُّ عَلٰى وُقُوعِ الثَّلَاثِ مَعًا مَعَ كَوْنِهِ مَنْهِيًّا عَنْهَا.(احکام القرآن للجصاص ج ۱ صـ۵۲۷،ذکر الحجاج لايقاع الثلاث معاً)

امام ابو عبدالله محمدبن احمد الانصاري المتوفي (۶۷۱،هـق)ددې ايت په تفسير کې فرمايي چې: وَاتَّفَقَ أَئِمَّةُ الْفَتْوٰى عَلٰى لُزُومِ إِيقَاعِ الطَّلَاقِ الثَّلَاثِ فِي كَلِمَةٍ وَاحِدَةٍ (الجامع الاحکام القرآن للقرطبی ج ۱ صـ ۶۹۲).

د امام بخاري رحمه الله د استدلال دوه تقريرونه دي: ۱-د (مرتان) معنی ده مرةً بعد مرةٍ.

تنبيه: کله د تکثير لپاره وي لکه ثم ارجع البصر کرتين، نو معنی يې داده چې متعدد طلاقونه واقع کيږي پيادا متعدد طلاقونه دوه وي او که درې. ۲-امام بخاري رحمه الله خپل مقصد د تسريح باحسان څخه ثابتوي ځکه چې د تسريح معنی پريښودل دي په هره طريقه سره چې وي، په يو طلاق سره وي که په دوو طلاقونو سره وي او که په يو ځای په درېو طلاقونو سره وي.

اعتراض: ددې ايت څخه درې طلاقه خارج دي ځکه چې درې طلاقه ممنوع دی نو ممنوع به څرنګه واقع شي؟

جواب: يو جواز دی او بل نفاذ دی په يو مجلس کې درې طلاقه جايز ندي، خو نافذيږي مثلا د حيض په حالت کې طلاق جايز ندي ، خو نافذيږي.

اعتراض: پدې ايت کې مرتان لفظ دی او د مرتان معنی ده مرّة بعد مرّة نو دا په مختلفو مجالسو کې متفرق طلاقونه شو؟

جواب: مخکې مونږ طريقې د استدلال ذکر کړی مرةً بعد مرةٍ په يو مجلس کې هم کيدلی شي او د مرتان معنی اثنتان هم ده، علامه الوسي رحمه الله فرمايي چې : وهذا يدل على ان معنى مرتان اثنتان په يو حديث کې راځي چې أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «تَوَضَّأَ مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ (صحيح البخاری ج ۱ صـ ۲۷)ددې معنی خو دا نده چې يو اندام يې يو ځلې په يو مجلس کې وينځلو او بل ځل يې په بل مجلس کې وينځلو.

**دریم دلیل:** ﴿يَآ أَيُّهَا النَّبِيُّ إِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ فَطَلِّقُوهُنَّ﴾ [الطلاق: ۱] (اخرج الامام ابوبكر البيهقي رحمة الله عليه: (وَأَمَّا الْأَثَرُ الَّذِي أَخْبَرَنَا أَبُو عَلِيٍّ الرُّوذْبَارِيُّ، أنا أَبُو بَكْرِ بْنُ دَاسَةَ، نا أَبُو دَاوُدَ، نا حُمَيْدُ بْنُ مَسْعَدَةَ، نا إِسْمَاعِيلُ، أنا أَيُّوبُ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ كَثِيرٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ رحمهم الله قَالَ: كُنْتُ عِنْدَ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا فَجَاءَهُ رَجُلٌ فَقَالَ إِنَّهُ طَلَّقَ امْرَأَتَهُ ثَلَاثًا، قَالَ: فَسَكَتَ حَتَّى ظَنَنَّا أَنَّهُ رَادُّهَا إِلَيْهِ ثُمَّ قَالَ: يَنْطَلِقُ أَحَدُكُمْ فَيَرْكَبُ الْحُمُوقَةَ ثُمَّ يَقُولُ: يَا ابْنَ عَبَّاسٍ يَا ابْنَ عَبَّاسٍ! وَإِنَّ اللهَ جَلَّ ثَنَاؤُهُ قَالَ: ﴿وَمَنْ يَتَّقِ اللهَ يَجْعَلْ لَهُ مَخْرَجًا﴾ [الطلاق: ۲] وَإِنَّكَ لَمْ تَتَّقِ اللهَ فَلَا أَجِدُ لَكَ مَخْرَجًا عَصَيْتَ رَبَّكَ وَبَانَتْ مِنْكَ امْرَأَتُكَ وَإِنَّ اللهَ قَالَ: ﴿يَآ أَيُّهَا النَّبِيُّ إِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ فَطَلِّقُوهُنَّ...﴾ [الطلاق: ۱] "فِي قُبُلِ عِدَّتِهِنَّ" هَكَذَا فِي هَذِهِ الرِّوَايَةِ ثَلَاثًا) (السنن الكبرى للبيهقي، ج ۷ صـ ۳۳۱، باب الاختيار للزوج ان لا يطلق الاواحدة)

ومن يتق الله او څوک چې (په طلاق ورکولو کې) د الله تعالی څخه ووېرېږي (يعنې په شرعي طريقې سره طلاق ورکړي (يجعل له مخرجا) نو الله تعالى به دده لپاره د وتلو لار پيدا کړي، يعنې څوک چې د الله تعالى څخه ووېرېږي او په شرعي طريقې سره په دريو طهرونو کې په متفرقه طريقه طلاق ورکړي نو دده لپاره الله تعالى د اول او دوهم طلاق څخه وروسته د رجوع حق ورکړی دی، نو د رجوع حق هغه چاته ورکړل شوی دی چې د الله تعالى څخه وېرېږي ددې څخه معلومه شوه چې څوک چې د الله تعالى څخه ونه وېرېږي او په غير شرعي طريقه په يو ځای درې طلاقه ورکړي نو د هغه لپاره د رجوع حق نشته او س که د الله تعالى د وېرېدلو او د نه وېرېدلو دواړو صورتونو کې د رجوع حق وی نو بيا د (ومن يتق الله) شرط بې فايدې کېږي.

**څلورم دليل:** الله تعالى په سورة طلاق کې اجمالاً او نبي کريم صلى الله عليه وسلم په حديث کې تفصيلاً د طلاق شرعي طريقه ذکر کړې ده چې په يو طهر کې يو طلاق دی، په دوهم طهر کې دوهم طلاق دی په دريم طهر کې دريم طلاق دی، بيا يې فرمايلي دي چې ﴿وَمَنْ يَتَعَدَّ حُدُودَ اللهِ فَقَدْ ظَلَمَ نَفْسَهُ﴾ چا چې د الله تعالى د حدودو څخه تجاوز وکړو (يعنې په يو ځای يې درې طلاقه ورکړل) نو د خپل ځان سره يې ظلم وکړو او پخپل ځان ظلم هلته راځي چې درې طلاقه درې شي، که درې طلاقه يو شي نو يو طلاق خو نه د حدود الله څخه تجاوز دی او نه پخپل نفس ظلم دی، د حدود الله څخه تجاوز او په خپل ځان ظلم هلته راځي چې کله درې طلاقه واقع شي.

**پنځم دلیل:** الله تعالی فرمايي: ﴿لَعَلَّ اللَّهَ يُحْدِثُ بَعْدَ ذَٰلِكَ أَمْرًا﴾(پاره ۲۹، سورة الطلاق ایت ۱) یعني کیدلی شي چې الله تعالی د طلاق څخه وروسته د طلاق ورکونکي په زړه کې ندامت پیدا کړي، نو که طلاق ورکونکی په دریو طهرونو کې متفرق طلاقونه ورکړي وي، نو د اول او دوهم طلاق څخه وروسته به د رجوع حق وی پدې کې د ندامت هیڅ خبره نشته ندامت په هغه صورت کې راځي چې درې طلاقه واقع شي او د رجوع حق ساقط شي.

۱- قاضي عیاض رحمه الله فرمايي چې: والرد علی هؤلاء قوله تعالی ومن یتعد حدود الله الخ) یعنې: ان المطلِّق قد یکون له ندم فلا یمکن تلافیه لوقوع البینونة (اکمال المعلم ج ۵ص ۲۰)

ځوک چې درې طلاقه یوځای په هغوي باندې د الله تعالی پدې قول کې رد دی یعنې کله طلاق ورکونکی پښیمانه شي ځکه چې جدائي واقع شي او تدارک یې ممکن نه وي.

۲- ملا علي قاري رحمه الله فرمايي یعنې: يَعْنِي الْمُطَلِّقَ ثَلَاثًا قَدْ يَحْدُثُ لَهُ نَدَمٌ، فَلَا يُمْكِنُهُ التَّدَارُكُ لِوُقُوعِ الْبَيْنُونَةِ، فَلَوْ كَانَتِ الثَّلَاثُ لَا تَقَعُ، لَمْ يَقَعْ إِلَّا رَجْعِيًّا فَلَا يَتَوَجَّهُ هُنَا التَّهْدِيدُ (مرقات ج ٦ص ۲۹۳)

۳- علامه نووي رحمه الله فرمايي چې: وَاحْتَجَّ الْجُمْهُورُ بِقَوْلِهِ تَعَالَى: (وَمَنْ يَتَعَدَّ حُدُودَ اللَّهِ فَقَدْ ظَلَمَ نَفْسَهُ) لَا تَدْرِي لَعَلَّ اللَّهَ يُحْدِثُ بَعْدَ ذَلِكَ أَمْرًا، قَالُوا مَعْنَاهُ أَنَّ الْمُطَلِّقَ قَدْ يَحْدُثُ لَهُ نَدَمٌ فَلَا يُمْكِنُهُ تَدَارُكُهُ لِوُقُوعِ الْبَيْنُونَةِ فَلَوْ كَانَتِ الثَّلَاثُ لَا تَقَعُ لَمْ يَقَعْ طَلَاقُهُ هَذَا إِلَّا رَجْعِيًّا فَلَا يَنْدَمُ (شرح النووي علی مسلم ج ۱ص ٤٧٨)

## احادیث مرفوعه

### دحضرت عایشې رضی الله عنها اول حدیث:

**شپږم دلیل: اول حـدیث:** دحضرت عایشې رضی الله تعالی عنها حدیث دی چې: أَنَّ رَجُلًا طَلَّقَ امْرَأَتَهُ ثَلَاثًا، فَتَزَوَّجَتْ فَطَلَّقَ، فَسُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَتَحِلُّ لِلْأَوَّلِ؟ قَالَ: «لَا، حَتَّى يَذُوقَ عُسَيْلَتَهَا كَمَا ذَاقَ الْأَوَّلُ».

(بخاری، ج ۲ص ۷۹۱ باب من اجازطلاق الثلاث) واللفظ له ومسلم، ج ۱ص ٤٦٣ باب لاتحل المطلقة ثلاثا لمطلقها/ وسنن الکبری، ج ۷ص ۳۳٤ باب ماجاء فی امضاء الطلاق الثلاث وان کنّ مجموعات)

یو سړي خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکړي وو. بیا دی ښځې دبل میړه سره نکاح وکړه او هغه (دهمبستری څخه مخکې) ورته طلاق ورکړو نو ددې ښځې په باره کې د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه

وشوه چې ایا دا ښځه اول میړه ته رواده او که نه؟ نو رسول الله ﷺ جواب ورکړ چې: نه ده روا، ترڅو یې چې ددې دوهم خاوند سره همبستري نه وي کړې، په دې حدیث کې د (طلق ثلاثا) جمله ددې تقاضی کوي چې دا درې طلاقه په یو ځای او دفعةً ورکړل شوي وو.

لکه څرنګه چې حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چې: فَالتَّمَسُّكُ بِظَاهِرِ قَوْلِهِ طَلَّقَهَا ثَلَاثًا فَإِنَّهُ ظَاهِرٌ فِي كَوْنِهَا مَجْمُوعَةً.

ددې حدیث دا جمله ددې تقاضا کوي چې دا درې طلاقه په یو ځای او دفعةً ورکړل شوي وو. [فتح الباری، ج ۹ص ۲۹۵ وفی البعض صـ ۴۵۵، باب من جوز الطلاق الثلاث، او همدا مطلب حافظ بدرالدین عینی رحمه الله هم بیان کړی دی. [عمدة القاری، ج ۹ص ۵۳۷ صـ ۲۲۰].

او علامه قسطلاني د (او تسریح باحسان) په تفسیر کې لیکي چې (وهذاعام یتناول ایقاع الثلاث دفعةً واحدةً وقددلت الایة علی ذلک من غیرنکیرخلافاً لمن لم یجزذلک الخ) [ارشادالساری، ص ۱۵۷ طبع مصر]. او دا عام دی په دریو طلاقو دفعةً باندې هم صادق دی، او ایت په دې دلالت کوي، او په دې کې دهیڅا انکار نه دی را نقل شوی، خلاف ثابت دی هغه چاله چې دی کار ته جایز نه وایي. او امام بخاري ددې لپاره باب تړلي دی چې: (باب من جوز-وفي نسخه اجاز- طلاق الثلاث).

او ددې باب لاندې یې دا حدیث ذکر کړی دی، چې مطلب یې دا دی چې ددې څخه دفعةً درې طلاقه مراد دي، ځکه چې په درې طُهرونو کې جدا جدا د دریو طلاقونو په وقوع کې د هیچا اختلاف نشته او امام بخاري رحمه الله په دې عنوان کې اختلاف ته اشاره کړې ده او امام بیهقی رحمه الله ددې حدیث لپاره په دې الفاظو باب قایم کړی دی چې: (باب ماجاء في امضاء الثلاث وان كن مجموعات) [سنن کبری، ۷ص ۳۳۳].

## دحضرت عایشي رضی الله عنها دوهم حدیث:

**اوم دلیل، دوهم حدیث**: د حضرت عایشی رضی الله تعالی عنها څخه پوښتنه وشوه: عَنِ الرَّجُلِ يَتَزَوَّجُ الْمَرْأَةَ فَيُطَلِّقُهَا ثَلَاثًا، فَقَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَحِلُّ لِلْأَوَّلِ حَتَّى يَذُوقَ الْآخَرُ عُسَيْلَتَهَا وَتَذُوقَ عُسَيْلَتَهُ [مسلم، ج ۱ص ٤٦٣ باب لاتحل المطلقة ثلاثا لمطلقها، سنن الکبری باب نكاح المطلقة ثلاثا، ج ۷ص ۳۷٤ واللفظ له].

د هغه سړي په باره کې چې ديوې ښځې سره يې نکاح کړې وي او د دې ځخه وروسته يې ورته درې طلاقه ورکړي وي، نو حضرت حضرت عايشې رضی الله تعالی عنها ورته وفرمايل چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې دا ښځه اول ميړه ته ترهغې پورې نه حلاليږي، ترڅو چې دوهم ميړه ورسره جماع ونه کړي.

په دې حديث کې هم د (ثلاثا) لفظ د دې تقاضی کوي چې دا درې طلاقه يو ځای ورکړل شوي دي.

او په دارقطني ج ۲ص ۴۳۸ کې د روايت الفاظ داسې دی چې: قال رسول الله ﷺ اذاطلق الرجل امرأته ثلاثالم تحل له ...الخ. چاچې خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکړل نو هغه دده لپاره نده حلاله.

**دحضرت عايشې رضی الله عنها دريم حديث:**

**اتم دليل، دريم حديث:** عن ام محمد عن عايشة رضی الله عنها قالت قال رسـول الله صـلى الله عليه وسلم اذا طلق الرجل امرأته ثلاثا لم تحل له حتى تنكح زوجـا غـيره ويـذوق كل واحـد منهما عسيلة صاحبه.(سنن دارقطني ج ٤صـ ٣٢)

حضرت عايشة رضی الله عنه فرمايي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې کله چې څوک خپله ښځه په درې طلاقو طلاقه کړي نو بيا ترهغې پورې ورته نده جايزه ترڅو چې د بل خاوند سره نکاح وکړي او يو دبل شهد وڅکي.

**دمحمود بن لبيد رضی الله عنه حديث:**

**نهم دليل، څلورم حديث:** د حضرت محمود بن لبيد ﷺ څخه روايت دی چې: أَخْبَرَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ رَجُلٍ طَلَّقَ امْرَأَتَهُ ثَلَاثَ تَطْلِيقَاتٍ جَمِيعًا فَقَامَ غَضْبَانَ ثُمَّ قَالَ: «أَيُلْعَبُ بِكِتَابِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ وَأَنَا بَيْنَ أَظْهُرِكُمْ؟» حَتَّى قَامَ رَجُلٌ فَقَالَ: يَارَسُولَ اللَّهِ أَلَا أَقْتُلُهُ؟

يو سړي خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکړي وو نو رسول الله ﷺ ډير په غوسه شو، ودريدلو، او ويې فرمايل چې: ايا زما په موجودګۍ کې د الله ﷻ له کتاب سره لوبې کيږي؟ تردې چې يو سړی پاڅيدلو او ويې فرمايل چې يارسول الله ﷺ! زه ددې سړي سرغوڅ نه کړم؟ (نسائی ،ج ۲ص ۸۲ وفى البعض صـ ۹۹ الثلاث المجموعة وما فيه من التغليظ )

د رسول الله صلی الله عليه وسلم غوصه کيدل ددې د وقوع دليل دی.

## دعويمر عجلاني حديث:

**لسم دليل، پنځم حديث:** حضرت عويمر عجلانی ﷺ چې کله د خپلې بی بی خولی رضی الله تعالی عنها سره لعان وکړو، نو ددې څخه وروسته يې وفرمايل چې يارسول الله ﷺ که زه ددې څخه وروسته هم دا له ځان سره وساتم، نو ما به په دې پورې دروغ تړلي وي، نو حضرت عويمر ﷺ د رسول الله ﷺ د فيصلې څخه مخکې مخکې دې ته درې طلاقه ورکړل.

قَالَ عُوَيْمِرٌ ﷺ: كَذَبْتُ عَلَيْهَا يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنْ أَمْسَكْتُهَا، فَطَلَّقَهَا ثَلَاثًا، قَبْلَ أَنْ يَأْمُرَهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [بخاری، ج ۲ص ۷۹۱ باب من أجاز طلاق الثلاث. ومسلم، ج ۱ص ۴۸۹ كتاب اللعان. ونسائی، ج ۲ص ۸۳. وفی البعض صـ ۱۰۶، کتاب الطلاق باب بدء اللعان)

وفی روایة ابی داوٗد: فَطَلَّقَهَا ثَلَاثَ تَطْلِيقَاتٍ عِنْدَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَنْفَذَهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (سنن ابی داوٗد ج ۱صـ ۳۲۴ باب فی اللعان)

امام بيهقي رحمه الله فرمايي چې: وَلَوْكَانَ ذٰلِكَ مُحَرَّمًا لَنَهَاهُ عَنْهُ، وَقَالَ: إِنَّ الطَّلَاقَ وَإِنْ لَزِمَكَ فَأَنْتَ عَاصٍ بِأَنْ تَجْمَعَ ثَلَاثًا (السنن الكبرى للبيهقي ج ۷صـ ۳۲۹، باب الاختيار للزوج ان لايطلق الا واحدة)

په دې دريو طلاقونو رسول الله ﷺ سکوت وکړو، امام نووی الشافعی رحمه الله فرمائي چې:
وَاسْتَدَلَّ بِهِ أَصْحَابُنَا عَلٰى أَنَّ جَمْعَ الطَّلَقَاتِ الثَّلَاثِ بِلَفْظٍ وَاحِدٍ لَيْسَ حَرَامًا وَمَوْضِعُ الدَّلَالَةِ أَنَّهُ لَمْ يُنْكِرْ عَلَيْهِ إِطْلَاقَ لَفْظِ الثَّلَاثِ وَقَدْ يُعْتَرَضُ عَلٰى هٰذَا فَيُقَالُ إِنَّمَا لَمْ يُنْكِرْ عَلَيْهِ لِأَنَّهُ لَمْ يُصَادِفِ الطَّلَاقُ مَحَلًّا مَمْلُوكًا لَهُ وَلَا نُفُوذًا وَيُجَابُ عَنْ هٰذَا الِاعْتِرَاضِ بِأَنَّهُ لَوْكَانَ الثَّلَاثُ مُحَرَّمًا لَأَنْكَرَ عَلَيْهِ وَقَالَ لَهُ كَيْفَ تُرْسِلُ لَفْظَ الطَّلَاقِ الثَّلَاثِ مَعَ أَنَّهُ حَرَامٌ وَاللّٰهُ أَعْلَمُ (شرح مسلم ج ۱ص ۴۸۹).

په دې حديث باندې زمونږ شوافع استدلال کوي چې په يو لفظ باندې درې طلاقه ورکول حرام نه دي. او وجه داستدلال يې داده چې رسول الله ﷺ په دې دريو طلاقونو انکارونکړو. په دې باندې بعضو اعتراض کړی دی چې (د لعان په وجه) دا ښځه د طلاقونو لپاره محل پاتې نشوه. او د طلاقونو د نافذيدلو ځای پاتې نشو، لکن ددې اعتراض څخه جواب دادی چې: که په يو ځای درې طلاقه حرام وای، نو رسول الله ﷺ به په دې خبرې ضرور انکار کړی وی او ورته به يې ويلي وای چې څرنګه په يو ځای درې طلاقه ورکوې؟ سره ددينه چې دا کار حرام دی. يعنې د رسول الله ﷺ عدم ګرفت ددې د وقوع دليل دی.

## دعبد الله بن عمر (۱) حديث:

**يوولسم دليل، شپږم حديث:** حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما دحيض په حالت کې خپلې ښځې ته يو طلاق ورکړی وو، بياېې اراده کړی وه چې پاتې دوه طلاقه هم ورکړي، رسول الله ﷺ چې ددې څخه خبر شو نو حضرت ابن عمر ﷺ ته يې وفرمايل چې داسې مکوه بلکې اوس ورته رجوع وکړه، او چې کله پاکه شوه نو بيا دهر طهر په وخت کې طلاق ورکړه. بيا فرمائي چې: فَقُلْتُ: يَارَسُولَ اللّٰهِ! أَفَرَأَيْتَ لَوْأَنِّي طَلَّقْتُهَا ثَلَاثًا كَانَ يَحِلُّ لِي أَنْ أُرَاجِعَهَا؟ قَالَ: "كَانَتْ تَبِينُ مِنْكَ وَتَكُونُ مَعْصِيَةً ( سنن کبری ،ج ۷ ،ص ۳۳٤ کتاب الخلع والطلاق، باب ماجاء في امضاء الطلاق الثلاث وان کن مجموعات ،دارقطنی ،ج ۲ص ۲۳۸ حديث نمبر ۳۹۲۹ .مجمع الزوايد. ج ٤ص ۳۳٦ باب طلاق السنة وکيف الطلاق ،ونصب الرايه ،ج ۳ص ۲۲۰]. ما رسول الله ﷺ ته عرض وکړو چې يارسول الله ﷺ ماته ووايه چې که زه ديته درې طلاقه ورکړم نو ايا بيا ماته حلاله ده چې رجوع ورته وکړم ؟

رسول الله ﷺ وفرمايل چې نه ده حلاله، هغه ستا څخه جدا شوه او دا کار گناه ده. ددې څخه معلومه شوه چې دد ريو طلاقو نو څخه وروسته د رجوع هيڅ صورت نه پاتې کيږي، ددې حديث روايان په سنن کبری کې ذکر دی.

(۱) ابوعبدالله الحافظ المعروف بالحاکم صاحب المستدرک، الحافظ، الکبير، وامام المحدثين .تذکرة الحفاظ ،ج ۳ص ۲۲۷].

(۲) ابوبکر احمد بن الحسن رحمه الله، او ابو العباس محمد بن يعقوب رحمه الله علامه ذهبي رحمه الله ورته امام، ثقه او دمشرق محدث وايي. [تذکرة الحفاظ ،ج ۳ص ۷۳]

(۳) ابو اميه طرطوسي رحمه الله، علامه ذهبی رحمه الله ورته الحافظ الکبير ليکلي دي، امام ابوبکر الحلال رحمه الله فرمائي چې هغه د حديثو د فن امام او د غټ شان مالک دی. [تذکرة ،ج ۲ص ۱۴۴]

(۴) معلی بن منصور رحمه الله. علامه ذهبي رحمه الله دده په باره کې الحافظ، الفقيه او احد الاعلام ليکلي دي. [تذکرة ،ج ۱ص ۳۴۳].

(۵) شعيب بن رزيق رحمه الله، امام دارقطنی رحمه الله ورته ثقه ويلي دي. ابن حبان رحمه الله په ثقاتو کې شميرلی دی، مګر د عطاء خراساني له طريقه دده په روايت کې يو څه کلام کوي. محدث

وحیم رحمه الله فرمائي چې لا بأس به. [میزان، ج ا ص ۴۴۷، تهذیب التهذیب، ج ۴ ص ۳۵۳]. ابن حزم رحمه الله ورته ضعیف ویلی دی، لکن ابن حزم رحمه الله د راویانو د جرح او د تعدیل په مسئله کې فاحشې غلطیانې کړې دي. (لسان المیزان، ج ۴ ص ۱۹۸).

ابن حزم رحمه الله د امام ترمذی رحمه الله په شان محدث ته مجهول وائي. (میزان، ج ۳ ص ۱۱۷) که امام ترمذی رحمه الله هم مجهول شي، نو په دنیا کې به څوک معروف پاتې شي؟ او همدارنګه په امام ابو القاسم البغوی رحمه الله باندې هم جرحې کوي. [وګوره (الرفع والتکمیل، ص ۱۹] حالانکې هغه د حدیثو د فن بې نظیره امام دی.

که بالفرض په دې روایت کې یو څه ضعف راشي بیا هم د جمهورو ایمه وو د تعامل له وجهې د دې حدیث صحت ثابتیږي، خپله ابن حزم فرمائي چې: (واذا ورد حدیث مرسل و فی احد ناقلیه ضعف فوجدنا ذلک الحدیث مجمعا علی اخذه والقول به علمنا یقینا انه حدیث صحیح لاشک فیه) [توجیه النظر الي اصول الا ثر، ص ۵۰ طبع مصر].

مُرسل او یا بل داسې حدیث چې په راویانو کې یې ضعف وي، لکن چې کله په دې حدیث باندې عملي او یا قولي اجماع راشي، نو مونږ یقیناً دا را فهمو چې دا حدیث صحیح دی او په دې کې هیڅ شک نشته او چونکه د دریو طلاقونو په درې والي باندې اجماع ده، له دې وجهې د دې حدیث په صحت کې هیڅ شک نه دی پاتې.

(٦) عطاء خراسانی رحمه الله د ده په باره کې د ابن حبان دا خبره (چې هغه روایت چې د عطاء خراسانی له طریقه وي معتبر نه دی)؛ صحیح نه ده، ځکه چې جمهور محدیثن د عطاء خراسانی رحمه الله توثیق کوي، علامه ذهبی رحمه الله په کبارو محدثینو کې شمیرلی دی، امام احمد رحمه الله، او امام یحیی رحمه الله، او محدث عجلی رحمه الله وغیره وو ورته ثقه ویلي دي، امام یعقوب بن شیبه رحمه الله ورته معروف او ثقه ویلي دي، امام ابو حاتم رحمه الله ورته ثقه او د احتجاج قابل ویلي دي. امام دارقطنی رحمه الله ورته ثقه ویلي دي، امام ترمذی رحمه الله ورته ثقه ویلي دي، د امام مالک رحمه الله او د امام معمر رحمه الله په شان قوی محدثین ترینه روایتونه کوي. [میزان، ج ۲ ص ۱۹۹]. همدارنګه امام نسائی رحمه الله فرمائي چې: لاباس به [تهذیب التهذیب، ج ۷، ص ۲۱۳] علامه ابن سعد رحمه الله فرمائي چې ثقه دی [ایضا، ص ۲۱۵] امام ترمذی رحمه الله

فرمائي چې عطاء ثقه دی، امام مالک رحمه الله او معمر رحمه الله ترینه روایتونه کوي او په متقدمینو کې هیڅ پکې څه نه دي ویلي. [بحواله اعلام مرفوعه، ص ۱۰].

همدارنګه ابو الفتح ازدی رحمه الله هم د شعیب بن رزیق رحمه الله تضعیف کړی دی، لکن دده تضعیف ته څکه اعتبار نشته چې ازدی رحمه الله خپله متکلم فیه دی (میزان، ج ۱ص ۴) حافظ ابن حجر رحمه الله لیکلي دي چې ازدی رحمه الله خپله ضعیف دی، نو څرنګه د نورو ثقاتو تضعیف کوي. [مقدمه فتح الباری، ص ۴۶۵].

(۷) الحسن البصری رحمه الله: علامه ذهبی رحمه الله ده ته امام او شیخ الاسلام ویلی دی. علامه ابن سعد رحمه الله فرمائي چې هغه ثقه، حجت، مامون، عابد، ناسک او کثیر العلم و. [تذکره، ج ۱ص ۶۷].

(۸) عبد الله بن عمر ﷺ خو جلیل القدر صحابي دی.

خلاصه دا چې د دې حدیث راویان ثقه دي او دا حدیث د حسن د مرتبې څخه هیڅ کله ښکته نه دي او جمهور محدیثن حسن حدیث ته حجت وايي، د دی څخه علاوه دیر صحیح احادیث د دې تائید کوي او د جمهور و ایمه وو، خصوصاً د ایمه اربعه وو رحمهم الله تعالی او د جمهور اهل اسلام په دې باندې اعتماد او عمل دی.

**دحضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما (۲)حدیث:**

**دولسم دلیل، اووم حدیث:** د حضرت عبد الله بن عُمر ﷺ څخه چې کله د دا سې مسئلې په باره کې پوښتنه وشوه، نو هغه و فرمایل چې (أمّا أنت طلقت امرتک مرة او مرتين فان رسول الله ﷺ امرني بهذا وان كُنت طلقتها ثلاثا فقد حرمت عليک حتي تنكح زوجا غيرک ،وعصيت الله فيما امرک من طلاق امرءتک) مسلم ج۱ص ٤٧٦ واللفظ له په بخاري کې الفاظ داسې دي چې: كان ابن عمر اذا سئل عمن طلق ثلثا قال لو طلقت مرةً او مرتين فان النبي صلى الله عليه وسلم امرني بهذا فان طلقتها ثلثا حرُمت حتى تنكح زوجا غيرک (صحيح البخاري ج ۲صـ ۸۰۳، صـ ۷۹۲)

که تا خپلې ښځې ته یو او یا دوه طلاقه ورکړي وي، نو بې شکه چې رسول الله ﷺ (په دې صورت کې) ما ته د رجوع حکم کړی وو او که تا سو خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکړي وي، نو یقیناً چې هغه په تا باندې حرامه شوه، تر هغې پورې چې هغه د بل خاوند سره نکاح و کړي او همدارنګې (چې تا خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکړی دي)، نو د الله ﷻ د حکم نافرماني دی هم کړی ده.

ددې روایت څخه هم معلومه شوه چې: د دریو طلاقو نو څخه وروسته د رجوع هیڅ گنجایش نشته اوددې څخه داهم معلومه شوه چې دیواو دوو طلاقو نو څخه وروسته د رجوع حکم د رسول الله ﷺ څخه ثابت دی، لکن د دریو طلاقو نو څخه وروسته د رجوع حکم د رسول الله ﷺ څخه ندی ثابت، که ثابت وی نو حضرت ابن عمر رضی الله عنه به هیڅکله ددې په خلاف د فتوی ورکولو جرأت نه وو کړی.

اوددې څخه داهم معلومه شوه چې دی سړي په یوځای درې طلاقه ورکړي وو، که داسې نه وی نو حضرت ابن عمر رضی الله عنه به ورته نه ویل چې تا د طلاق په سلسله کې د خپل رب نافرماني کړی ده.

## دحضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما (۳) حدیث:

**دیارلسم دلیل اتم حدیث:** عن نافع كان ابن عمر اذا سئل عن الرجل يطلق امرأته وهي حايض يقول أمّا انت طلقتها واحدة او اثنتين ان رسول الله صلى الله عليه وسلم امره أن يرجعها ثم يمهلها حتى تطهر ثم يطلقها قبل ان يمسها وأما انت طلقتها ثلثا فقد عصيب ربك فيما أمرك به من طلاق أمرتك وبانت منك (صحیح مسم ج ١ صـ ٤٧٦)

حضرت نافع فرمايي چې کله به چې دعبد الله بن عمر رضی الله عنهما څخه د داسې سړي په باره کې پوښتنه وشوه چې خپلې ښځې ته به يې د حیض په حالت کې طلاق ورکړی وو، نو فرمایل به یې چې که تا یو یا دوه طلاقه ورکړي وي نو پدې صورت کې ماته رسول الله صلی الله علیه وسلم د رجوع حکم کړی دی او که تا په یو ځای درې طلاقه ورکړي وي، نو په درې طلاقو ورکولو کې تا د خپل رب نافرماني کړې ده او ددې با وجود ښځه در څخه جدا شوه.

حافظ عیني او حافظ ابن حجر رحمهما الله فرمايي چې د امام بخاري استدلال د طلقها ثلثا د لفظ څخه دی فالتمسک بظاهر قوله: طلقها ثلثا فانه ظاهر فی کونها مجموعة (عمدة القاري صـ ٢٨٠، فتح الباري ج ٩ صـ ٤٥٩)

## د رکانة رضی الله عنه حدیث:

**خوارلسم دلیل، نهم حدیث:** حضرت نافع بن عُجَیر رضی الله عنه بن یزید بن رکانة فرمائي چې حضرت رکانة رضی الله عنه بن عبد یزید خپلې بی بی سهیمی رضی الله تعالی عنها ته البتة (د تعلق ختمونکی) طلاق

ورکړو، ددې څخه وروسته دوي رضی الله عنهم رسول الله ﷺ ته خبر ورکړو او ویې ویل چې : وَاللّٰهِ مَا أَرَدْتُ إِلَّا وَاحِدَةً، فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «وَاللّٰهِ مَا أَرَدْتَ إِلَّا وَاحِدَةً؟»، فَقَالَ رُكَانَةُ رضي الله عنه: وَاللّٰهِ مَا أَرَدْتُ إِلَّا وَاحِدَةً، فَرَدَّهَا إِلَيْهِ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَطَلَّقَهَا الثَّانِيَةَ فِي زَمَانِ عُمَرَ رضي الله عنه، وَالثَّالِثَةَ فِي زَمَانِ عُثْمَانَ رضي الله عنه. [ابوداود، ص ۳۰۰ باب فی البته، والمستدرک جلد۲ص ۱۹۹ والدارقطنی ،ج ۲ص ۳۹ وموارد الظمان ،ص ۳۲۱ ]

په الله مې دې قسم وي چې ما دیو طلاق اراده کړې وه، رسول الله ﷺ وفرمایل چې ایا ستا دې په الله ﷻ قسم وي چې دیو طلاق اراده دې کړې وه ؟ حضرت رکانة ﷺ وفرمایل چې په الله ﷻ مې دې قسم وي چې دیو طلاق اراده مې کړې وه، نو رسول الله ﷺ ورته دا بي بي واپس کړه ،بیا د حضرت عمر ﷺ دخلافت په زمانه کې حضرت رکانة ﷺ ورته دویم طلاق ورکړو او د حضرت عثمان ﷺ دخلافت په زمانه کې یې ورته دریم طلاق ورکړو. نو که رکانة رضی الله عنه د دریو طلاقو نیت کړې وي دریې به نافذیدل که د دریو طلاقونو د نیت په صورت کې هم یو طلاق واقع کیدلی نو بیا د نیت په باره کې دپوښتنې او د قسم څه ضرورت وو؟ امام نووي رحمه الله فرمایي چې: فَهٰذَا دَلِيْلٌ عَلٰى أَنَّهُ لَوْ أَرَادَ الثَّلَاثَ لَوَقَعْنَ وَإِلَّا فَلَمْ يَكُنْ لِتَحْلِيْفِهِ مَعْنًى (شرح مسلم ج ۱ص ۴۷۸)

## دالبتة دلفظ په مصداق کې دایمه وو اختلاف دی

امام سفیان ثوری رحمه الله او اهل کوفه یعني امام ابو حنیفه رحمه الله وغیره فرمائي چې ددې لفظ څخه کله یو او کله درې طلاقه مراد وي، ددوو طلاقونو مرادول ترینه صحیح ندي، ځکه چې دوه عدد محض دی او امام شافعي رحمه الله فرمائي چې ددوو مرادول هم صحیح دي . [ ترمذی جلد ۱ص ۱۴۰] او د امام مالک رحمه الله په نیز ددې لفظ څخه د مدخول بها په باره کې درې طلاقه علی التعین مراددي . [ موطا ،ص ۲۰۰ وترمذی ،ج ۱ص ۱۴۰].

که د البتّـةَ دلفظ څخه ددریو طلاقونو جواز نه ثابتیدلی، نو رسول الله ﷺ بیا ولې ورته قسم ورکولو؟ د بتة لفظ کنائی طلاق دی، او په کنائی طلاق کې د نیت مداخله هم شته ،او د البتّـةَ لفظ ددریو احتمال هم لري، له دې وجهې ورته رسول الله ﷺ قسم ورکړلو.

که د دریو طلاقو نو څخه وروسته رجوع جایزه وی او دریې طلاقه یو وی، نو رسول الله ﷺ به قسم نه
ورکولو، په مستدرک کې ددې حدیث راویان دادي:
(۱) ابو العباس محمد بن یعقوب رحمه الله، دده ترجمه مخکې ذکرشوی ده.
(۲) ربیع بن سلیمان رحمه الله، امام نسائی رحمه الله ورته لاباس به وائي، محدث ابن یونس رحمه الله او خطیب رحمه الله فرمائي چې ثقه دی، ابن ابی حاتم رحمه الله فرمائي چې هغه صدوق او ثقه دی، محدث خلیل رحمه الله فرمائي چې دده په ثقه والي د ټولو اتفاق دی، مسلمه رحمه الله فرمائي چې هغه ثقه دی. (تهذیب التهذیب، ج ۳ص ۲۴۶).
(۳) الامام الشافعی رحمه الله، خو جلیل القدر امام دی، دده په باره کې خو بالکل خبره نشته.
(۴) محمد بن علی بن شافع رحمه الله: امام شافعی رحمه الله ورته ثقه ویلی دی. [تقریب، ص ۳۲۲ وتهذیب التهذیب، ج ۹ ص ۳۵۳ وزاد المعاد، ج ۳ص ۱۴۹].
(۵) نافع بن عُجیر ﷺ، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چې د بعضو په قول دا صحابي دی او محدث ابن حبان رحمه الله په تابعینو کې شمیرلی دی. [تقریب، ص ۳۷۱].
ابن حجر رحمه الله په بل ځای کې لیکي چې ابن حبان رحمه الله دا په ثقاتو کې شمیرلی دی او همدارنګې بې په صحابه وو کې شمیرلی دی، همدارنګه امام ابو القاسم بغوی رحمه الله، محدث ابو نعیم رحمه الله او حافظ ابو موسی رحمه الله او نورو ورته صحابي ویلی دی [تهذیب التهذیب، ج ۱۰ ص ۴۰۸].
نو چې دا ثقه بلکې صحابي شو، نو د حافظ ابن القیم دده په باره کې دا لیکل چې دا مجهول دی (نافع بن عجیر المجهول الذي لا یعرف حاله البتة ولا یدری من هو ولا ما هو...الخ). [زاد المعاد ج ۴ص ۵۹]؛ یوه بې کاره خبره ده:
امام حاکم او علامه ذهبی رحمهم الله اول د زبیر بن سعد رحمه الله حدیث پیش کوي او بیا فرمائي چې ددې حدیث متابع موجود دی (لكن له متابع ايصح به الحديث).
او بیا یې د حضرت نافع بن عجیر رحمه الله حدیث پیش کړی دی. [وګوره (المستدرک، ج ۲ص ۱۹۹ وتلخیص المستدرک، ج ۲ص ۱۹۹]. له دې څخه معلومیږي چې دا حدیث د امام حاکم رحمه الله او علامه ذهبي رحمه الله د وارو په نیز صحیح دی [تلخیص الحبیر، ص ۳۱۹] او امام دارقطنی د اروایت د ابوداود په حواله

رانقل کړی دی او بیا یې فرمایلي دي چې: (وقـال ابـوداود وهذاحـدیث صـحیح) دارقطنی ،ج ۲ص ۴۳۹.
زمونږ سره چې دابوداود کومې نسخې دي په دې کې د صحیح په ځای د اصح لفظ دی. [ابوداود، ج ۱ص ۳۰۰].

او د امام دارقطني رحمه الله سره چې کومه نسخه ده په هغې کې د صحیح لفظ دی، په هرحال د اصولو د حدیثو مطابق دا حدیث صحیح او قابل د احتجاج دی، البته د (خوی بد را بهانها بسیار)؛ هیڅ علاج نشته.

امام حاکم رحمه الله او نورو د خپل سند سره روایت نقل کړی دی، چې زبیر بن سعد رحمه الله د عبدالله بن علی رحمه الله بن زید بن رکانة رحمه الله څخه روایت کوي، هغه د خپل نیکه څخه روایت کوي چې: ده د حضرت رسول الله ﷺ په زمانه کې خپلې بي بي ته بتّی طلاق ورکړو، بیا ما د رسول الله ﷺ څخه په دې باره کې پوښتنه وکړه، رسول الله ﷺ راته وویل چې: (ما اردتَ بذلک ؟) ستا دې څخه څه مراد وو؟ ما ورته وویل چې: (اردتُ به واحدةً) له دې څخه مې یو طلاق مراد وو. رسول الله ﷺ بیا راته وفرمایل چې: (الله ؟) ایا ستا دې په الله ﷻ قسم وي چې یو طلاق دې مراد دی؟ حضرت رکانة ؓ وفرمایل چې (الله ﷻ) په الله ﷻ مې دې قسم وي چې یو طلاق مې مراد دی. نو رسول الله ﷺ راته وویل چې: (فهو ما اردت) تا چې څنګه اراده کړې وه خبره همدغسې شوه. ددې روایت په سند کې زبیر بن سعید رحمه الله ته اکثره محدثین ضعیف وایي، لکن امام یحیی بن معین رحمه الله په یو روایت کې ورته ثقه ویلي دي، امام دارقطنی رحمه الله فرمایلي دي چې (یعتبر به). امام ابو ذرعه رحمه الله ورته شیخ ویلي دي. [شرح نخبة الفکر، ص ۱۰۹].

او امام ابن حبان رحمه الله ورته ثقه ویلي دي. [تهذیب التهذیب، ج ۳ص ۳۱۵.] او عبدالله بن علی رحمه الله ته بعضو مجهول ویلي دي، امام عقیلي رحمه الله فرمائي چې: حدیثه مضطرب ولایتابع) لکن امام ابن حبان رحمه الله ورته ثقه ویلي دي (تهذیب التهذیب، ج ۵ص ۳۲۵).

خلاصه دا چې (زبیر بن سعید رحمه الله او عبدالله بن علی رحمه الله مختلفٌ فیه راویان دی. له دی وجهې دا حدیث د حسن د درجې څخه کم نه دی. ددې حدیث متابع هم موجود دی، چې مخکې ذکر شو، ددې څخه علاوه د جمهورو عمل هم ددې تایید کوي، نو ددې حدیث په حجیت کې هیڅ شک پاتې نشو.

## د فاطمې رضی الله عنها بنت قيس حديث:

**پنځلسم دليل، لسم حديث:** عَنْ سَلَمَةَ بْنِ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِيهِ ، «أَنَّ حَفْصَ بْنَ الْمُغِيرَةِ طَلَّقَ امْرَأَتَهُ فَاطِمَةَ بِنْتَ قَيْسٍ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثَ تَطْلِيقَاتٍ فِي كَلِمَةٍ وَاحِدَةٍ، فَأَبَانَهَا مِنْهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَمْ يَبْلُغْنَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (دارقطني ج ٤ صـ ١٢)، حفص بن مغيرة رضی الله عنه دنبي صلى الله عليه وسلم په زمانه کې خپله ښځه فاطمه بنت قيس په يوه کلمه دريو طلاقونو طلاقه کړې وه يعنې أنت طالق ثلاثا يې ورته ويلي وو، نو رسول الله صلى الله عليه وسلم ترې جدا کړه.

په سنن ابن ماجه کې باب قائم شوی دی په نوم د باب من طلق ثلاثا فی مجلس واحد امام ابن ماجه دا ثابتول غواړي چې په يو مجلس کې درې طلاقه نافذيږي، بيا يې د فاطمې بنت قيس حديث ذکر کړی دی چې: قَالَتْ: طَلَّقَنِي زَوْجِي ثَلَاثًا وَهُوَ خَارِجٌ إِلَى الْيَمَنِ، فَأَجَازَ ذَلِكَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (صـ: ١٤٥).

زما خاوند يمن ته روان وو ما ته يې درې طلاقه راکړل، نو رسول الله صلى الله عليه وسلم نافذ کړل، د فاطمې بنت قيس حديث امام مسلم رحمه الله په کتاب الطلاق صـ (۲۳) کې د سند سره روايت کړی دی، امام بيهقي رحمه الله فرمايي چې: وَاحْتَجَّ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ أَيْضًا بِحَدِيثِ فَاطِمَةَ بِنْتِ قَيْسٍ أَنَّ أَبَا عَمْرِو بْنَ حَفْصٍ طَلَّقَهَا الْبَتَّةَ يَعْنِي وَاللَّهُ أَعْلَمُ ثَلَاثًا (بيهقی ج ۷ صـ ۵۳۸) بيا امام بيهقي د ابو سلمه د حديث واقعه ذکر کړې ده، چې را روان حديث کې ذکر شوی ده.

**پنځلسم دليل، (۱۱) حديث:** (سلمة بن ابی سلمه د خپل والد ابي سلمه رضی الله څخه روايت کوي چې: أَنَّهُ ذَكَرَ عِنْدَهُ أَنَّ الطَّلَاقَ الثَّلَاثَ بِمَرَّةٍ مَكْرُوهٌ، فَقَالَ: «طَلَّقَ حَفْصُ بْنُ عَمْرِو بْنِ الْمُغِيرَةِ فَاطِمَةَ بِنْتَ قَيْسٍ بِكَلِمَةٍ وَاحِدَةٍ ثَلَاثًا، فَلَمْ يَبْلُغْنَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَابَ ذَلِكَ عَلَيْهِ، وَطَلَّقَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَوْفٍ امْرَأَتَهُ ثَلَاثًا فَلَمْ يَعِبْ ذَلِكَ عَلَيْهِ أَحَدٌ (سنن الدار قطنی نمبر ۳۸۷۷، کتاب الطلاق)

يو چا د ابو سلمه رضی الله عنه په مخکې وويلې چې په يو ځل درې طلاقه مکروه دي نو ابو سلمة رضی الله عنه ورته وويلې چې حفص بن عمرو فاطمې بنت قيس ته په يوه کلمه درې طلاقه ورکړي وو او مونږ ته وربانډې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم انکار او اعتراض نه دی رارسيدلی همدارنګه عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه خپله بي بي په دريو طلاقو طلاقه کړې وه او هيچا وربانډې اعتراض ونه کړو.

ابو سلمه دوه خبرې ثابتول غواړي، یو دا چې درې طلاقه واقع کیږي او دوهم دا چې درې طلاقه ګناه نه ده، دا دوهمه خبره یې د خپل علم مطابق کړې ده، نور احادیث په دې دلالت کوي چې درې طلاقه ګناه ده.

د مسند احمد په یو روایت کې الفاظ داسې دي: حَدَّثَنَا عَامِرٌ رحمه الله، قَالَ: قَدِمْتُ الْمَدِينَةَ فَأَتَيْتُ فَاطِمَةَ بِنْتَ قَيْسٍ رضي الله عنها فَحَدَّثَتْنِي، أَنَّ زَوْجَهَا طَلَّقَهَا عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَبَعَثَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَرِيَّةٍ قَالَتْ: فَقَالَ لِي أَخُوهُ: اخْرُجِي مِنَ الدَّارِ، فَقُلْتُ: إِنَّ لِي نَفَقَةً وَسُكْنَى حَتَّى يَحِلَّ الْأَجَلُ، قَالَ: لَا، قَالَتْ: فَأَتَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ: إِنَّ فُلَانًا طَلَّقَنِي، وَإِنَّ أَخَاهُ أَخْرَجَنِي وَمَنَعَنِي السُّكْنَى وَالنَّفَقَةَ، فَأَرْسَلَ إِلَيْهِ فَقَالَ: «مَا لَكَ وَلِابْنَةِ آلِ قَيْسٍ؟» قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! إِنَّ أَخِي طَلَّقَهَا ثَلَاثًا جَمِيعًا (مسند احمد ج ٦ صـ ٣٧٣، ج ٦ صـ ٤١٦)

په المعجم الكبير کې حدیث دی: عَنْ عَامِرٍ الشَّعْبِيِّ رحمه الله، قَالَ: سَأَلْتُ فَاطِمَةَ بِنْتَ قَيْسٍ رضي الله عنها كَيْفَ كَانَ أَمْرُهَا؟ قَالَتْ: طَلَّقَنِي زَوْجِي ثَلَاثًا جَمِيعًا (المعجم الكبير ج ٢٤، صـ ٣٨٣)

عن سلمة بن أبي سلمة عن أبيه أن حفص بن المغيرة طلق امرأتـه فاطمـة على عهـد النبي صلى الله عليه وسلم ثلث تطليقات فى كلمة واحدةٍ (معرفـة الصـحابة لأبي نعـيم الاصـبهاني ج ٦ صـ٤٩٧، معرفة الصحابة لابن مندة ج ١صـ ٤٤٦)

نو د فاطمې بنت قیس رضی الله عنها د طلاق په احادیثو کې دوه قسمه الفاظ دي.

اول: طَلَّقَنِي بِكَلِمَةٍ وَاحِدَةٍ ثَلَاثًا، طَلَّقَ ثَلَاثَ تَطْلِيقَاتٍ فِي كَلِمَةٍ وَاحِدَةٍ، طَلَّقَنِي زَوْجِي ثَلَاثًا، إِنَّ أَخِي طَلَّقَهَا ثَلَاثًا جَمِيعًا. دا الفاظ محکم دي چې دا درې طلاقه په یو مجلس کې وو.

دوهم: مبهم الفاظ چې دا احتمال هم پکې شته چې دا درې طلاقه په مختلفو مجالسو کې وو او دا احتمال هم پکې شته چې دا درې طلاقه په یو مجلس کې وو، لکن مبهم په محکم ورحملولی شي.

## د عبادة بن صامت حدیث:

**اولسم دلیل، (١٢)حـدیث:** عبادة بن صامت رضی الله عنه فرمایي چې: عَنْ دَاوُدَ بْنِ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ رحمه الله قَالَ: طَلَّقَ جَدِّي امْرَأَةً لَهُ أَلْفَ تَطْلِيقَةٍ، فَانْطَلَقَ أَبِي إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَذَكَرَ ذَلِكَ لَهُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَمَا اتَّقَى اللَّهَ جَدُّكَ، أَمَّا ثَلَاثٌ فَلَهُ، وَأَمَّا تِسْعُ مِائَةٍ وَسَبْعَةٌ وَتِسْعُونَ فَعُدْوَانٌ وَظُلْمٌ، إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى عَذَّبَهُ، وَإِنْ شَاءَ غَفَرَ لَهُ» (مصنف عبدالرزاق حدیث نمبر ١٣٨٣، باب المطلق ثلاثا)

زما نیکه خپلې ښځې ته زر طلاقه ورکړې وو بیا زما پلار نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته ورغلو او زما دنیکه قصه یې ورته ذکر کړه، نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې ایا ستا نیکه د الله تعالی څخه نه ویریدلو؟ درې طلاقه دده لپاره دي او نه سوه او ه نوي ګناه او ظلم دی که الله تعالی وغواړي دده په وجه به عذاب ورکړي او که وغواړي بخشش به ورته وکړي، د بل حدیث الفاظ داسې دي چې: قَالَ: طَلَّقَ بَعْضُ آبَائِي امْرَأَتَهُ أَلْفًا فَانْطَلَقَ بَنُوهُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ! إِنَّ أَبَانَا طَلَّقَ أُمَّنَا أَلْفًا فَهَلْ لَهُ مِنْ مَخْرَجٍ؟ فَقَالَ: «إِنَّ أَبَاكُمْ لَمْ يَتَّقِ اللَّهَ فَيَجْعَلَ لَهُ مِنْ أَمْرِهِ مَخْرَجًا، بَانَتْ مِنْهُ بِثَلَاثٍ عَلَى غَيْرِ السُّنَّةِ، وَتِسْعُمِائَةٍ وَسَبْعَةٌ وَتِسْعُونَ إِثْمٌ فِي عُنُقِهِ (سنن دارقطني ج ٤ص ٢٠)

دده بي بي په خلاف الشرع دریو طلاقونو باندې جدا شوه او باقي نه سوه او ه نوي دده په غاړه ګناه ده.

**دحسن بن علي رضی الله عنه حدیث:**

**اتلسم دلیل، (۱۳) حدیث:** عَنْ سُوَيْدِ بْنِ غَفَلَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ، قَالَ: لَمَّا مَاتَ عَلِيٌّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ جَاءَتْ عَائِشَةُ بِنْتُ خَلِيفَةَ الْخَثْعَمِيَّةُ امْرَأَةُ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، فَقَالَتْ لَهُ: لِتَهْنِكَ الْإِمَارَةُ، فَقَالَ لَهَا: تُهَنِّينِي بِمَوْتِ أَمِيرِ الْمُؤْمِنِينَ؟ انْطَلِقِي فَأَنْتِ طَالِقٌ فَتَقَنَّعَتْ بِثَوْبِهَا، وَقَالَتِ: اللَّهُمَّ إِنِّي لَمْ أُرِدْ إِلَّا خَيْرًا فَبَعَثَ إِلَيْهَا بِمُتْعَةٍ عَشَرَةِ آلَافٍ وَبَقِيَّةِ صَدَاقِهَا فَلَمَّا وُضِعَ بَيْنَ يَدَيْهَا بَكَتْ، وَقَالَتْ: مَتَاعٌ قَلِيلٌ مِنْ حَبِيبٍ مُفَارِقٍ فَأَخْبَرَهُ الرَّسُولُ، فَبَكَى وَقَالَ: لَوْلَا أَنِّي أَبَنْتُ الطَّلَاقَ لَهَا لَرَاجَعْتُهَا، وَلَكِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «أَيُّمَا رَجُلٍ طَلَّقَ امْرَأَتَهُ ثَلَاثًا عِنْدَ كُلِّ طُهْرٍ تَطْلِيقَةً أَوْ عِنْدَ رَأْسِ كُلِّ شَهْرٍ تَطْلِيقَةً أَوْ طَلَّقَهَا ثَلَاثًا جَمِيعًا لَمْ تَحِلَّ حَتَّى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ» ( دراقطني رقم ۳۹۲۷، کتبا الطلاق والخلع)

یعنې کله چې حضرت علي رضی الله عنه وفات شو نو د حضرت حسن رضی الله عنه بي بي عایشې رضی الله عنها حضرت حسن ته د خلافت مبارکي ورکړه نو حضرت حسن رضی الله ورته وفرمایل چې ایا تا ماته د حضرت علي رضی الله عنه په وفات مبارکي را کړه؟

څه ته طلاقه یې هغې ځان په جامو کې پټ کړو او وې فرمایل چې زما خو د خیر اراده وه، بیا ورته حضرت حسن رضی الله عنه د مهر څخه بغیر لس زره روپۍ د متعې په طریقه ورولیږلې، کله چې قاصد دا روپۍ دې په مخکې کیښودلې نو حضرت عایشې الخثعمي وژړل او وې ویل چې دا خو د جدا کیدونکي محبوب څخه لږه متاع ده، نو قاصد حضرت حسن رضی الله عه ته دا قصه وکړه هغه هم وژړل

او وې فرمايل چې که ما ددې طلاق باين کړی نه وي نو رجوع به مې ورته کړې وه ، لکن ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه اوريدلي دي چې د دريو طلاقو څخه وروسته د ابنځه طلاق ورکونکي ته نه ده حلاله تر څو يې چې د بل خاوند سره نکاح نه وي کړې او درې طلاقه بيا عام دي چې په هر طهر کې يو يو وي او که په هره مياشت کې يو يو وي او که په يو ځای يې درې طلاقه ورکړي وي (قال الهيثمي: وفى رجاله ضعف وقد وثقوا (مجمع الزوايد ج ٤صـ ٦٢٤، باب متعة الطلاق)

## د رفاعة القرظي حديث:

**نولسم دليل (۱۴) حديث:** أَنَّ امْرَأَةَ رِفَاعَةَ الْقُرَظِيِّ ﷺ جَاءَتْ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! إِنَّ رِفَاعَةَ طَلَّقَنِي فَبَتَّ طَلَاقِي، وَإِنِّي نَكَحْتُ بَعْدَهُ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ الزَّبِيرِ الْقُرَظِيَّ ﷺ، وَإِنَّمَا مَعَهُ مِثْلُ الْهُدْبَةِ، قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَعَلَّكِ تُرِيدِينَ أَنْ تَرْجِعِي إِلَى رِفَاعَةَ ﷺ؟ لَا، حَتَّى يَذُوقَ عُسَيْلَتَكِ وَتَذُوقِي عُسَيْلَتَهُ» (صحيح البخاري ج٢صـ ٧٩١)

حضرت عايشه رضی الله عنها فرمايي چې د رفاعه قرظي بي بي (تميمه) رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راغله او وې فرمايل چې ای د الله رسوله! رفاعه ماته طلاق راکړی دی نو زما طلاق يې پوخ کړو بيا ما ذعبدالرحمن بن زبير القرظي رضی الله عنه سره نکاح وکړه، لکن هغه د نکاح قابل ندی رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمايل چې کيدلی شي چې ته رفاعه ته واپس کيدل غواړې؟ ته تر هغې پورې هغه ته نشې واپس کيدلی تر څو چې تاسو د يو بل شهد ونه څکئ .

د پوخ طلاق څخه امام بخاري رحمه الله درې طلاقه مراد وي، ځکه چې امام بخاري د دريو طلاقونو د وقوع او د جواز لپاره د دليل په طريقه دا حديث ذکر کړی دی ، رسول الله صلی الله علیه وسلم هم دا پوښتنه نده کړې چې دا درې طلاقه په يو مجلس کې وو او که په جدا جدا مجلسونو کې وو نو د دواړو حکم يو دی .

## د حضرت معاذ رضی الله عنه حدیث:

**شلم دلیل (۱۵) حدیث:** عَنْ أَنَسٍ رضي الله عنه، قَالَ: سَمِعْتُ مُعَاذَ بْنَ جَبَلٍ رضي الله عنه، يَقُولُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «يَا مُعَاذُ! مَنْ طَلَّقَ لِلْبِدْعَةِ وَاحِدَةً أَوِ اثْنَتَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا أَلْزَمْنَاهُ بِدْعَتَهُ» (سنن دارقطنی ج۴ صـ۴۴)

حضرت انس رضی الله عنه فرمايي چې ما د معاذ بن جبل رضی الله عنه څخه واوريدل هغه فرمايي چې ما د نبي کريم صلی الله عليه وسلم څخه واوريدل چې فرمايل يي چې ای معاذه څوک چې په غير شرعي طريقه يو يا دوه يا درې طلاقه ورکړي نو مونږ ورباندې دا غير شرعي طلاق لازمو و.

## دسعيد بن المسيب رضی الله عنه مرسل حديث:

**يويشتم دليل (۱۶) حديث:** سعيد بن المسيب فرمايي چې د اسلم د قبيلې يو سړي د رسول الله صلی الله عليه وسلم په زمانه کې خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکړي وو، نو بيا ورته بعضې دوستانو وويلې (دکومو چې د دريو طلاقونه وروسته د حرمت علم نه وو) چې ستا لپاره د رجوع حق شته، نو دده بي بي رسول الله صلی الله عليه وسلم ته ورغله او وې فرمايل چې: (ان زوجی طلقنی ثلاث تطليقات فی کلمة واحدة فقال لها رسول الله صلی الله عليه وسلم قد بنت منه ولا ميراث بينکما)

زه خپل خاوند په يوه کلمه په دريو طلاقو طلاقه کړې يم نو رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته وفرمايل چې ته ترينه جدا شوې او تاسو يو دبل وارثان نه شي جوړيدلی.

مرسل حديث د جمهورو په نيز حجت دی او د امام شافعي رحمه الله په نيز د مرسل حديث د حجيت لپاره شرائط دی او هغه شرائط د سعيد بن المسيب رضی الله عنه په حديث کې شته، صاحب د ظفر الاماني ليکلي: ( فاذا وجد هذه الشروط فالمرسل حجة ولذا نص الشافعي على قبول مراسيل سعيد بن المسيب لانها وجدت مسانيد من جهة أخرى ومن الشافعية قالوا مراسيل التابعين ليست بحجة عندنا الا مراسيل ابن المسيب (ظفر الامانی فی مختصر الجرجانی صـ ۳۸۲)

يحيی بن معين رحمه الله او امام احمد فرمايي چې: اصح المراسيل، مراسيل سعيد بن المسيب، (کتاب الکفاية فی علم الرواية للخطيب صـ ۴۰۴)

## د صفوان رحمه الله مرسل حديث:

**دوه ویشتم دلیـل، (۱۷)حـدیث:** د صفوان بن عمران الطائي څخه روایت دی چې یو سړی دخپلې ښځې سره اوده وو نو ښځه یې را پاڅیدله چاړه یې را واخستله او دخپل خاوند په سینه کیناسلته په مری یې ورته چاړه کیښودله او ورته وې ویل چې یا به ماته درې طلاقه را کوې او یا به دې ذبحه کوم سړي ورته قسم وکړو لکن ښځې نه منلو: فَطَلَّقَهَا ثَلَاثًا فَذَكَرَ ذٰلِكَ لِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: «لَا قَيْلُولَةَ فِي الطَّلَاقِ» ( سنن سعيد بن منصور ج ۱ صـ ۳۱٤)

خاوند یې درې طلاقه ورکړل چا دا قصه نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته ذکر کړه رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې په طلاق کې اقاله نه شته.

## موقوف احادیث

## دحضرت عمر رضی الله عنه (۸) فیصلې

**۲۳- دلیل اول حـدیث:** حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه فرمایي چې یو سړې حضرت عمر رضی الله عنه ته راغلو او ورته یې وویل چې ما خپلې ښځې ته البتة (د تعلق ختمونکی) طلاق ورکړی دی (د البتة څخه دلته درې طلاقه مراد دي). حضرت عمر رضی الله عنه ورته وفرمایل چې تا د خپل پروردګار نافرماني کړې ده او ستا ښځه ستا څخه جدا شوه.

هغه سړي ورته وویـل چې: عبدالله بن عمر رضی الله عنه تـه هم همداسې معامله پیښه شوې وه حالانکې رسول الله ﷺ ورته د رجوع حق ورکړی وو.

فَقَالَ لَهُ عُمَرُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ: إِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَمَرَهُ أَنْ يُرَاجِعَ امْرَأَتَهُ لِطَلَاقٍ بَقِيَ لَهُ، وَإِنَّهُ لَمْ يَبْقَ لَكَ مَا تَرْتَجِعُ بِهِ امْرَأَتَكَ (سنن الكبرى ،ج ۷ ص ۳۳٤ ومجمع الزوايد،ج ٤ص ۳۳۵ ). وقـال رجـاله صحيحُ خلا اسماعيل ابن ابراهيم وهوثقة.

حضرت عمر رضی الله عنه ورته وفرمایل چې بې شکه چې رسول الله ﷺ عبدالله بن عمر رضی الله عنه ته امر کړی وو چې دخپلې بی بی طرفته رجوع وکړي، لکن هغه لدی وجهې وو چې: د هغه طلاقونه پاتې وو او ستا لپاره دخپلې بي بي طرفته د رجوع حق نشته (ځکه چې ستا طلاقونه پوره شو)

حضرت عبد الله بن عمر ﷺ خپلې بي بي ،ته يو طلاق ورکړی وو ،له دې وجهې يې د رجوع حق محفوظ وو ،او دی سړي د خپلې رجوع حق ختم کړی و ، د دې څخه صراحةً دا ثابتيږي چې ده خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکړي وو ، ځکه ورته حضرت عمر ﷺ وفرمايل چې ته رجوع نشی کولی .

**۲۴ دليل، دوهم حديث**: د حضرت زيد بن وهب ﷺ څخه روايت دی چې په مدينه منوره کې يو خوش طبعه سړی و ، هغه خپلې ښځې ته زر (۱۰۰۰) طلاقه ورکړي وو ، کله چې دا معامله حضرت عمر ﷺ ته را ورسيدله، نو هغه سړي ورته وويل چې ما خو خوش طبعي کوله ، د طلاق اراده مې نه وه. (فعلاه عمر ﷺ بالدرة وقال ان کان ليکفيک ثلاث .( سنن الکبری ،ج ۷ص ۳۳۴ حديث نمبر ۱۴۹۵۷) حضرت عمر ﷺ دوره وچته کړه او ورته يې وفرمايل چې ستا لپاره درې طلاقه کافي وو.

د دې څخه معلومه شوه چې: حضرت عمر ﷺ دريو طلاقونو ته اعتبار ورکولو ، که د زرو طلاقونو دستوروی نو حضرت عمر ﷺ به زرواړه نافذ کړي وو ، لکن د دريو طلاقونو څخه د زيات ثبوت په شريعت کې نشته، لدې وجهې عمر ﷺ د دريو څخه زايد طلاقونه لغوه کړل، په طحاوی ج ۲ص ۳۰ کې دي چې: حضرت عمر ﷺ ته به چې کله داسې سړی راوستلی شو چې خپلې ښځې ته به يې درې طلاقه ورکړي وو ، نو هغه ته به يې سزا ورکوله او طلاقونه به يې نافذول .

**۲۵ دليل، دريم حديث** : د حضرت انس بن مالک ﷺ څخه روايت دی چې : قَالَ عُمَرُبْنُ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فِي الرَّجُلِ يُطَلِّقُ امْرَأَتَهُ ثَلَاثًا قَبْلَ أَنْ يَدْخُلَ بِهَا قَالَ: "هِيَ ثَلَاثٌ لَا تَحِلُّ لَهُ حَتّٰى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ" وَكَانَ إِذَا أُتِيَ بِهِ أَوْجَعَهُ ( سنن الکبری ج ۷ص ۳۳۴).

حضرت عمر ﷺ د هغې سړي په باره کې چې د خپلې ښځې سره د همبستری څخه مخکې درې طلاقه ورکړي، فرمايل چې دا درې طلاقه دي او دا ښځه مخکني ميړه ته تر هغې پورې حلاله نه ده ترڅو يې چې د بل ميړه سره نکاح نه وي کړې. او حضرت عمر ﷺ ته به چې داسې سړی راوستلی شو ، نو سزا به يې ورکوله .

**فائده**: غير مدخول بها ښځې ته چې درې طلاقه ورکړل شي، نو که داسې يې ورته ويلي وي چې انت طالق ثلاثاً ، نو په دې صورت کې په دريو طلاقونو طلاقيږي او که داسې يې ورته ويلي وي چې

انت طالق ،انت طالق ،انت طالق، نو په دې صورت کښې په یو طلاق طلاق قیږي، ځکه چې داول انت طالق په وجه غیر مدخول بها ښځه باینه (جدا)شوه، نو ددوهم او دریم انت طالق لپاره محل پاتې نشو.

**۲۶ دلیل، خلورم حدیث:** عَنْ أَنَسٍ ﷺ، قَالَ: «كَانَ عُمَرُ ﷺ إِذَا أُتِيَ بِرَجُلٍ قَدْ طَلَّقَ امْرَأَتَهُ ثَلَاثًا فِي مَجْلِسٍ أَوْجَعَهُ ضَرْبًا وَفَرَّقَ بَيْنَهُمَا (مصنف ابن ابی شیبه ج ۴ صـ ۱۱ )باب من کره ان یطلق الرجل امرأته ثلاثا)

حضرت عمر رضی الله عنه ته به چې داسې سړی راوستل شو چې خپله ښځه به یې په دریو طلاقو طلاقه کړې وه، نو حضرت عمر رضی الله عنه به په وهلو سره دردولو او یو دبل څخه یې جدا کول.

**۲۷ دلیل پنځم حدیث:** عَنْ مُجَاهِدٍ ﷺ أَنَّ رَجُلًا قَالَ لِامْرَأَتِهِ زَمَنَ عُمَرَ ﷺ: حَبْلُكِ عَلَى غَارِبِكِ، حَبْلُكِ عَلَى غَارِبِكِ، حَبْلُكِ عَلَى غَارِبِكِ، فَاسْتَحْلَفَهُ عُمَرُ ﷺ بَيْنَ الرُّكْنِ وَالْمَقَامِ، فَقَالَ: «أَرَدْتُ الطَّلَاقَ ثَلَاثًا»، فَأَمْضَاهُ عَلَيْهِ (مصنف عبدالرزاق ج ٦ صـ ٣٦٩، باب المطلق ثلاثا)

دحضرت عمر رضی الله عنه په زمانه کښې یو سړي خپلې ښځې ته درې ځلې ویلي وو چې: ستا پړی ستا په غاړه دی، نو حضرت عمر دحجر اسود او مقام ابراهیم په مابین کښې قسم ورکړو نو هغه سړي وویل چې ما د دریو طلاقو اراده کړې وه، نو حضرت عمر رضی الله عنه وریاندې درې طلاقه نافذه کړل.

**۲۸ دلیل شپږم حدیث:** عن عبدالکریم بن أبی أمية أن رجلا من المسلمين جعل أمرء امرأته بيدها فى زمن عمر بن الخطاب فطلقت نفسها ثلاثا فقال الرجل والله ما جعلت أمرک بيدک الا فى واحدة فترافعا الى عمر فاستحلفه عمر بالله الذى لا اله الاهو ماجعلت أمرها بيدها الا فى واحدة، فحلف فردها عليه (مصنف عبدالرزاق ج ٦ صـ ٥٢١)

عبد الکریم بن أبی أمیه فرمایي: چې یو مسلمان سړي خپلې بي بي ته دطلاق اختیار ورکړی وو، نو هغې ښځې زان ته درې طلاقه ورکړل، ددې څخه وروسته هغه کس انکار وکړو وې ویل چې په الله تعالی مې دې قسم وي چې تاته ما دیو طلاق اختیار درکړی وو، نو دواړو خپله مسئله حضرت عمر رضی الله عنه ته پیش کړه حضرت عمر رضی الله عنه قسم ورکړو چې په هغه الله تعالی قسم وکړه چې دهغه څخه ماسوی بل معبود نه شته چې تا خپلې بي بي ته دیو طلاق اختیار ورکړی دی، هغه قسم وکړو، نو حضرت عمر رضی الله عنه یې ورته بي بي واپس کړه.

فائد: حضرت عمر رضی الله عنه د دریو طلاقو په باره کې قسم نه وو ورکړی، بلکې د نیت په باره کې يې قسم ورکړی وو چې تا د اختیار ورکولو په وخت کې د یو طلاق نیت کړی وو که د دریو؟ نو د دې څخه معلومه شوه چې که د دریو طلاقو اختیار يې ورکړی وي نو درې طلاقه به واقع شوي وو.

**۲۹ دلیل اووم حدیث:** عن عبدالملک بن قدامة بن ابراهیم الجحمی عن أبیه أن رجلا تدلیٰ یشتار عسلاً فجائته امرأته فوقفت علی الحبل لتقطعه او لتطلقن ثلاثا فذکرها الله والاسلام فأبت الا ذلک فطلقها ثلاثا، قال فرفع الی عمر رضی الله عنه فابانها منه (مسند الفاروق لابن کثیر ج ۱ صـ ٤١٦)

یو سړي په رسۍ باندې کوهي ته ځان زوړند کړی وو، شهد يې را اخستل، بي بي يې راغله د رسۍ سره ودریدله او خاوند ته يې وویل چې یا به مې په دریو طلاقو طلاقوي او یا دا رسۍ پرې کوم، خاوند يې ورته الله تعالی او اسلام واسطه کړو، لکن ښځې انکار وکړو، نو دا معامله حضرت عمر رضی الله عنه ته پیش کړی شوه، حضرت عمر رضی الله عنه دا ښځه د خاوند څخه جدا کړه.

**۳۰ دلیل، اتم حدیث:** عن عمر بن شراحیل المعافریّ قال: کانت امرأة مبغضة لزوجها فأرادته علی الطلاق فأبی فجاءت ذات لیلة فلما رأته نائما، قامت وأخذت سیفه فوضعته علی بطنه ثم حرکته برجلها، فقال ویلک مالک؟ قالت والله لتطلقنی والا أنفذتک به فطلقها ثلثاً فرفع ذلک الی عمر بن الخطاب رضی الله غنه فأرسل الیها فشتمها فقال ما حملک علی ما صنعت؟ قالت بغضی اياه فامضی طلاقها (سنن سعید بن منصور ج۱صـ ۳۱۳)

د یوې ښځې د خپل خاوند سره بغض وو طلاق يې ترینه وغوښتلو، لکن خاوند يې طلاق نه ورکولو، یوه ورځ راغله خاوند يې اوده وو د خاوند توره يې را واخستله او په ګیډه يې ورته کیښودله بیا يې په پښه وخوزولو راویښ يې کړو، خاوند ورته وویل چې څه در باندې شوي دي؟ ښځې ورته وویل چې په الله مې دې قسم وي چې یا به ماته طلاق راکوې او یا ذې په دې توره سوری کوم، نو خاوند يې درې طلاقه ورکړل بیا دا معامله حضرت عمر رضی الله عنه ته پیش شوه حضرت عمر رضی الله عنه را وغوښتله بد رد يې ورته وویلې او پوښتنه يې ترینه وکړه چې داسې دې ولې وکړل؟ هغې ورته وویل چې زما په زړه کې دده سره بغض دی، نو حضرت عمر رضی الله عنه دا درې طلاقه نافذ کړل.

## دحضرت عثمان رضى الله عنه فيصلې

**۳۱ دليل اول حديث:** عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ أَبِي يَحْيٰى رضي الله عنه قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلٰى عُثْمَانَ رضي الله عنه فَقَالَ: إِنِّي طَلَّقْتُ امْرَأَتِي مِائَةً قَالَ: «ثَلَاثٌ تُحَرِّمُهَا عَلَيْكَ، وَسَبْعَةٌ وَتِسْعُونَ عُدْوَانٌ (مصنف ابن ابى شيبه ج ٤صـ ١٣، باب ما جاء يطلق امرأته مأة او الف فى قول واحدٍ)

يو سړي خپله ښځه په سل طلاقو طلاقه کړې وه، نو حضرت عثمان رضی الله عنه وفرمايل چې په دريو حرامه شوه او باقي اوه نوي ګناه ده.

**۳۲ دليل دوهم حديث:** عَنِ السُّمَيْطِ بْنِ عُمَيْرٍ السَّدُوسِيِّ رحمه الله، قَالَ: خَطَبْتُ امْرَأَةً فَقَالُوا: لَا نُزَوِّجُكَ حَتّٰى تُطَلِّقَ امْرَأَتَكَ ثَلَاثًا، فَقُلْتُ: قَدْ طَلَّقْتُهَا ثَلَاثًا، قَالَ: فَزَوَّجُونِي ثُمَّ نَظَرُوا فَإِذَا امْرَأَتِي عِنْدِي، فَقَالُوا: أَلَيْسَ قَدْ طَلَّقْتَ امْرَأَتَكَ؟ قُلْتُ: بَلْ كَانَتْ تَحْتِي فُلَانَةُ بِنْتُ فُلَانٍ فَطَلَّقْتُهَا، وَأَمَّا هٰذِهِ فَلَمْ أُطَلِّقْهَا، فَأَتَيْتُ شَقِيقَ بْنَ ثَوْرٍ وَهُوَ يُرِيدُ الْخُرُوجَ إِلٰى عُثْمَانَ رضي الله عنه فَقُلْتُ: سَلْ أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ عَنْ هٰذِهِ فَسَأَلَهُ؟ فَقَالَ: «نِيَّتُهُ» (سنن سعيد بن منصور ج ١صـ ٢٨٨، مصنف ابن ابى شيبه ج ٤صـ ٣٢) سُميط السدوسى فرمايي چې ما يوې ښځې ته د نکاح د پيغام وليږلو د هغې متوليانو ماته وويلې چې په دې شرط يې درته په نکاح درکوو چې ته مخکنی ښځه طلاقه کړې، نو ما ورته وويلې چې بس ما په دريو طلاقو طلاقه کړه، هغوي ماته ښځه راکړه، بيا دوي زما سره زما ښځه وکتله، نوپوښتنه يې وکړه چې ايا تا دانه وه طلاقه کړې؟ ما ورته وويل چې زما په نکاح کې فلانکۍ د فلانکي لور وه هغه ما په دريو طلاقو طلاقه کړه، همدارنګه بله فلانکۍ د فلانکي لور مې هم طلاقه کړه او دا مې نده طلاقه کړې نو زه شقيق ته ورغلم هغه حضرت عثمان ته ورتللو نو ما ورته وويل چې د امير المؤمنين څخه ددې په باره کې پوښتنه وکړه هغه چې پوښتنه کړې وه، نو حضرت عثمان رضی الله عنه ورته ويلي وو چې حکم دده د نيت مطابق دی، يعنې کومه ښځه يې چې طلاقه کړې ده هغه طلاقه شوه او کومه يې چې نده طلاقه کړې هغه نه ده طلاقه.

**۳۳ دليل دريم حديث:** عن شريک بن ابى نمر قال جاء رجل الى على فقال انى طلقت امرأتى عدد العرفج قال تأخذ من العرفج ثلثا وتدع سائره قال ابراهيم واخبرنى ابو الحويرث عن عثمان بن عفان مثل ذلک (مصنف عبدالرزاق ج ٦صـ ٣٩٤)

یو سړي د عرفج د ونو په مقدار ښځې ته طلاق ورکړی وو حضرت علي رضی الله عنه ورته وفرمایل چې درې د عرفج ونې واخله او نورې پریږده ابراهیم فرمایي چې ابو الحویرث ماته وویلې چې د عثمان هم هم داسې فیصله وه.

## د حضرت علي رضی الله عنه فیصلې

**۳۴ دلیل اول حدیث:** حضرت عبد الرحمن بن ابی لیلی رحمه الله فرمائي چې: عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فِيمَنْ طَلَّقَ امْرَأَتَهُ ثَلَاثًا قَبْلَ أَنْ يَدْخُلَ بِهَا قَالَ: "لَا تَحِلُّ لَهُ حَتَّى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ (سنن الکبری ، ج۷ ص ۳۳٤ )

د حضرت علي ﷺ څخه د هغه چا په باره کې روایت دی چې: خپلې ښځې ته یې د همبستری څخه مخکې درې طلاقه ورکړي وي فرمائي چې: دا ښځه د دې سړي لپاره حلاله نده، ترڅو یې چې د بل میړه سره نکاح نه وي کړي .

دا هم په هغه صورت ورحمل دی چې په یوه کلمه درې طلاقه وي، ځکه چې که په متفرق طور درې طلاقه ورکړي، نو غیر مدخوبها ښځه په اول طلاق باینه کیږي او دوهم او دریم طلاق لپاره محل نه پاتې کیږي .

په یو بل روایت کې داسې راځي چې: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فَقَالَ: طَلَّقْتُ امْرَأَتِي أَلْفًا قَالَ: "ثَلَاثٌ تُحَرِّمُهَا عَلَيْكَ وَاقْسِمْ سَائِرَهَا بَيْنَ نِسَائِكَ. ( سنن الکبری ج ۷ص ۳۳۵ ).

یو سړې حضرت علي ﷺ ته راغلو او وی فرمایل چې ما خپلې ښځې ته زر طلاقه ورکړي دي ! حضرت علي ﷺ ورته وفرمایل چې: دریو طلاقونو په تا باندې ښځه حرامه کړه او پاتې طلاقونه دې په نورو ښځو تقسیم کړه .

معلومیږي چې حضرت علي ﷺ په یوه کلمه او په یو مجلس کې دریو طلاقونو ته درې طلاقه ویلي دي، لدې وجهې یې ورته وویل چې ستا درې طلاقه واقع کیږي او په زرو کې باقي نهه سوه او اوه نوي دې په نورو ښځو تقسیم کړه، د تقسیم مطلب دا دی چې حضرت علي ﷺ د ډیر خفګان اظهار وکړو.

**۳۵- دلیل دوهم حدیث:** عَنْ حَبِيبِ بْنِ أَبِي ثَابِتٍ ﷺ، عَنْ بَعْضِ أَصْحَابِهِ، قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، فَقَالَ: طَلَّقْتُ امْرَأَتِي أَلْفًا، قَالَ: "ثَلَاثٌ تُحَرِّمُهَا عَلَيْكَ (سنن بیهقی ج ۷ص ۳۳۵)

يو سړی حضرت علي رضی الله ته را غلو وېفرمايل چې ماخپله ښځه په زر طلاقو طلاقه کړې ده حضرت علي رضی الله عنه ورته وفرمايل چې درې طلاقه يې درباندې حراموي.

**٣٦- دليل دريم حديث:** عَنْ جَعْفَرٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَلِيٍّ رضي الله عنه قَالَ: «إِذَا طَلَّقَ الْبِكْرَ وَاحِدَةً فَقَدْ بَتَّهَا، وَإِذَا طَلَّقَهَا ثَلَاثًا لَمْ تَحِلَّ لَهُ حَتَّى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ» (مصنف ابن ابی شيبه ج ٤صـ ١٨ باب ١٨،)

کله چې يې باکرې ته يو طلاق ورکړو نو بائنه يې کړه او چې درې طلاقه يې ورکړل نو بيا تر هغې ورته نده جايزه تر څو چې د بل خاوند سره نکاح و کړي.

**٣٧- دليل څلورم حديث:** عَنِ الْحَكَمِ رحمه الله، أَنَّ عَلِيًّا، وَابْنَ مَسْعُودٍ، وَزَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ رضي الله عنهم قَالُوا: «إِذَا طَلَّقَ الْبِكْرَ ثَلَاثًا فَجَمَعَهَا، لَمْ تَحِلَّ لَهُ حَتَّى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ، فَإِنْ فَرَّقَهَا بَانَتْ بِالْأُولَى، وَلَمْ تَكُنِ الْأُخْرَيَيْنِ شَيْئًا (مصنف عبدالرزاق ج ٦صـ ٣٣٦)

حضرت علي حضرت ابن مسعود او حضرت زيد بن ثابت رضی الله عنهم فرمايلي دي چې کله يې چې غير مدخول بها باکره په دريو طلاقو طلاقه کړه نو دا بيا اول خاوند ته نده جايزه تر څو چې دبل خاوند سره نکاح وکړي او که طلاقونه يې جدا جدا ورکړل انت طالق انت طالق انت طالق يې ورته وويلې نو بيا په اول طلاق طلاقه شوه او وروستني دواړه لغوه شو.

**٣٨- دليل پنځم حديث:** عَنْ شَرِيكِ بْنِ أَبِي نَمِرٍ رضي الله عنه قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى عَلِيٍّ رضي الله عنه، فَقَالَ: إِنِّي طَلَّقْتُ امْرَأَتِي عَدَدَ الْعَرْفَجِ قَالَ: «تَأْخُذُ مِنَ الْعَرْفَجِ ثَلَاثًا، وَتَدَعُ سَائِرَهُ». قَالَ إِبْرَاهِيمُ رحمه الله: وَأَخْبَرَنِي أَبُو الْحُوَيْرِثِ رضي الله عنه، عَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ رضي الله عنه مِثْلَ ذَلِكَ (مصنف عبدالرزاق ج ٦صـ ٣٨٤،)

يو سړي د عرفج د ونو په مقدار ښځې ته طلاق ورکړی وو حضرت علي رضی الله عنه ورته وفرمايل چې درې د عرفج ونې واخله او نورې پرېږده ابراهيم فرمايي چې ابو الحويرث ماته وويلې چې د عثمان هم همداسې فيصله وه.

**شپږم حديث:** مخکې ذکر شو چې د حضرت علي رضي الله عنه او دده د ځوی حضرت حسن رضي الله عنه مرفوع روايت هم په دارقطنی کې راغلې دی، امام دارقطنی رحمه الله په خپل سند سره د حضرت سويد بن غفلة رضي الله عنه څخه روايت کوي چې کله حضرت علی رضي الله عنه شهيد شو او خلکو د حضرت حسن رضي الله عنه سره بيعت وکړو، نو د حضرت

حسن ﷺ بي بي عايشي خثعمی رضی الله تعالى عنها خپل خاوند ته وفرمایل چې: ای امیرالمومنینه! ستا خلافت دې مبارک وي! حضرت حسن ﷺ وفرمایل چې ایا ستا دا مبارکي د حضرت علی ﷺ په شهادت ده؟ ایا ته د حضرت علی ﷺ په شهادت باندې د خوشحالۍ اظهار کوې؟ ځه ته په دریو طلاقو باندې طلاقه یې کله یې چې عدت پوره شو، نو حضرت حسن ﷺ ورته باقي مَهر (چې تر اوسه یې لا نه وو ورکړی) هم ورکړو او لس زره روپۍ یې زیاتې هم ورکړې، کله چې ورته دومره روپۍ ورکړل شوې، نو ویې فرمایل چې د طلاق ورکونکي د جیب څخه دا روپۍ کمې دي، د دې څخه وروسته حضرت حسن ﷺ وفرمایل چې: لَوْلَا أَنِّي سَمِعْتُ جَدِّي أَوْحَدَّثَنِي أَبِي أَنَّهُ سَمِعَ جَدِّي يَقُولُ: "أَيُّمَا رَجُلٍ طَلَّقَ امْرَأَتَهُ ثَلَاثًا عِنْدَ الْأَقْرَاءِ أَوْثَلَاثًا مُبْهَمَةً لَمْ تَحِلَّ لَهُ حَتَّى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ" لَرَاجَعْتُهَا [دار قطنی جلد ۲ ص ۴۲۷ و سنن الکبری ج ۷ ص ۲۳۶].

که ما ته زما پلار حضرت علی ﷺ زما د نیکه محمد ﷺ څخه دا روایت نوی رارسولې، چې کوم سړی چې خپلې ښځې ته درې طلاقه په یو ځای ورکړي او یا درې طلاقه په دریو طهرونو کې ورکړي، نو دا ښځه دغه سړي ته ترهغې پورې حلاله نه ده ترڅو یې چې د بل میړه سره نکاح نه وي کړی، نو ما به خامخا دې ښځې ته رجوع کړی وی.

دا حدیث په دې خبره صراحةً دلالت کوي چې د دریو طلاقو نو څخه وروسته د رجوع حق نشته، برابره خبره ده چې دا درې طلاقه په یوه کلمه وي او که په متفرقه طریقه وي. غیر مقلدین د خپل مشر مولوی شمس الحق عظیم ابادي په تقلید کې د دې حدیث په سند باندې اعتراض کوي چې د دې حدیث په سند کې (عمروبن ابي قیس الرازی الارزق) دی او د ده په باره کې مُحدثین فرمائي چې: (صدوق له اوهام)، امام ابوداود رحمه الله فرمائي چې (لا باس به) دی، لکن په احادیثو کې ترینه خطائي کیدله، دوهم راوی پکې سلمه بن فضل دی، چې د ابن راهویه رحمه الله په قول ضعیف دی او امام بخاري رحمه الله فرمائي چې د ده په احادیثو کې بعضې مناکیر دي. او ابن معین رحمه الله فرمائي چې دا شیعه دی. او ابو حاتم رحمه الله فرمائي چې (لایحتج به). او ابوذرعه رحمه الله فرمائي چې د (رَي) د خلکو په نظر کې دی ښه نه راتلو، ځکه چې د ده رایه صحیح نه وه او په ده کې ظلم هم و. [تعلیق المغنی ج ۲ ص ۴۳۷]

**الجواب**: د اصول حدیث د فن د قواعدو په نظر کې د نیولو څخه وروسته د دې اعتراض هیڅ وزن نشته او دا حدیث د حسن د مرتبې څخه هیڅکله کم ندی، ځکه چې د عمروبن ابی قیس رحمه الله څخه

امام بخاری رحمه الله تعلیقات روایت کوي ،او امام ابوداود رحمه الله ، امام نسائی رحمه الله، امام ترمذی رحمه الله ،او امام ابن ماجه رحمه الله دده له احادیثو څخه استدلال کوي .

عبدالصمدبن عبدالعزیزالمقری رحمه الله فرمائي چې د (رَیَّ) یو څه خلک امام سفیان ثوری رحمه الله ته ورغلل اوهغه ته یې دحدیثو داوریدلو پیشنهاد وکړو، سفیان ثوری رحمه الله ورته وفرمایل چې ایاستاسو سره عمروبن ابی قیس رحمه الله نشته؟ امام ابوداود رحمه الله په یو ځای کې فرمائي چې دده څخه خطائي کیدله ،لکن په بل حدیث کې فرمائي چې: لاباس به، ابن حبان رحمه الله او ابن شاهین رحمه الله په ثقاتو کې شمیرلی دی. عثمان بن ابی شیبه رحمه الله فرمائي چې: لا بـاس بـه. امام ابوبکرالرازی رحمه الله فرمائي چې هغه مستقیم الحدیث دی. [محصله تهذیب التهذیب ،ج ۸ ص ۹۴]

په سلمه بن الفضل رحمه الله کې هم بعضې محدثینو کلام کړی دی ، لکن امام یحیی بن معین رحمه الله ورته په یو روایت کې ثقه اوپه بل روایت کې لاباس به ویلی دی ،علامه ابن سعد رحمه الله ورته ثقه او صدوق ویلی دی. محدث ابن عدی رحمه الله فرمائي چې دده په احادیثو کې غرایب وو، لکن منکر احادیث پکې نه وو، دده احادیث متقارب اودبرداشت قابل دي. ابن حبان رحمه الله په ثقاتو کې لیکلی دی اوفرمایلي یې دي چې (یخطي ویخالف) امام ابوداود رحمه الله ورته ثقه ویلی دی. امام احمد رحمه الله فرمائي چې: (لا اعلم الا خیراً) ماته دده په باره کې خیر معلوم دی [محصله تهذیب التهذیب ج ۴ص ۱۵۳ وص ۱۵۴]. بعضې محدثینو دده په باره کې لیس بالقوي لیکلی دی، لکن لیس بالقوي مبهمه جرحه ده (ابکار المنن ص ۷۴).

همدارنګه د ضعیف لفظ هم مجمل دی او امام ابوحاتم رحمه الله، او امام نسائی رحمه الله متشددین هم دي . (تذکرة ج ۲ص ۸ وخیرالکلام ص ۵۰)

**۳۹- دلیل، اووم حدیث:** عن جعفرٍ عن أبیه عن علي فی رجل طلق امرأته حمل بعیر قال لاتحل له حتی تنکح زوجاً غیره (مصنف ابن ابي شیبه ج ٤صـ ٦٠)

حضرت علي رضی الله عنه فرمایي چې چا چې خپلې ښځې ته د اوښ دبار په مقدار طلاقونه ورکړل نو دا ښځه ده ته نده حلاله ترڅو چې د بل خاوند سره نکاح ونکړي.

**۴۰- دلیل، اتم حدیث:** حضرت اعمش رحمه الله فرمایي چې په کوفه کې یو شیخ وو هغه به ویل چې ما د حضرت علي رضی الله عنه څخه اوریدلي دي چې په یو مجلس کې درې طلاقه به په یو حسابولی شي، خلک ورته قطار قطار راتلل او دا حدیث یې ترینه اوریدلو، زه هم ورغلم دروازه مې ورته وټکوله، شیخ بهر را ووتلو ما ورته وویلې چې تا د حضرت علي رضی الله عنه څخه څرنګه اوریدلي دي؟ هغه راته وویل چې ما د حضرت علي رضی الله عنه څخه اوریدلي دی چې چا چې په یو مجلس کې خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکړل هغه به په یو حسابولی شي، ما ورته وویلې چې تا په کوم ځای کې دا حدیث د حضرت علي رضی الله عنه څخه اوریدلی دی؟ هغه راته وویل چې زه درته کتاب راوړم، کله یې چې کتاب راوړو، نو په هغه کتاب کې داسې حدیث وو چې:

(بسم الله الرحمن الرحيم هذا ما سمعت من على بن ابى طالب يقول:اذا طلق الرجل امرأته ثلثاً فى مجلس واحد فقد بانت منه ولا تحل له حتى تنكح زوجا غيره،قلت ويحک هـذا غـير الذى تقـول، قال الصحيح هو هذا ولكن هؤلاء أرادونى على ذلک )

چا چې خپله ښځه په دریو طلاقونو طلاقه کړه، نو دا ترینه جدا شوه تر څو چې د بل خاوند سره نکاح ونکړي ما ورته وویل چې دا حدیث خو ستا دبیان څخه بدل دی، نو هغه راته وویل چې صحیح همدا دی، لکن خلک هغه بل قسم حدیث اوریدل خوښوي (سنن بیهقي ج ۷ ص ۳۳۹، تفسیر درمنثور ج ۲ ص ۶۶۹)

## دحضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما فیصلې

**۴۱- دلیل اول حدیث:** عن مالک بن الحارث عن ابن عباس رضى الله عنهما قال: أتانى رجل فقال ان عمي طلق امرأته ثلاثا فقال ان عمک عصى الله فاندمه الله واطاع الشيطان فلـم يجعـل له مخرجا قال افلا يحللها له رجل؟ فقال من يخادع الله يخدعه.

حضرت عبد الله بن عباس ﷺ ته یو سړي راغلو او ورته وي فرمایل چې زما تره خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکړي دي، نو اوس د دې څه صورت دی؟ حضرت عبد الله بن عباس ﷺ ورته و فرمایل چې ستا تره د الله ﷻ نافرماني کړې ده او اوس د دې هیڅ صورت نه جوړیږي، هغه سړي ورته وویل چې ایا د حلالې کوم صورت هم نشته؟ حضرت عبد الله بن عباس ﷺ ورته و فرمایل چې: کوم سړی چې د الله ﷻ

تعالى سره دوهکه وکړي، الله ﷻ ورته د هغې بدله ورکوي. (سنن الکبری، ج ۷ص ۳۳۷ و طحاوی ج ۲ص ۲۹) او د سزا او بدلې صورت دا دی چې دا به حلاله کوي.

**۴۲- دلیل دوهم حدیث:** د عبدالله بن عباس ﷺ څخه دوهم روایت داسې راغلې دی چې یو سړی د حضرت عبدالله بن عباس ﷺ په خدمت کې حاضرشو او پوښتنه يې وکړه چې ما خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکړي دي. حضرت ابن عباس ﷺ په دې باندې سکوت وکړو، نو زمونږ دا خیال راغلو چې کیدی شي چې ابن عباس ﷺ دا ښځه بیرته دغه سړي ته واپس کړي، مګر ابن عباس ﷺ وفرمایل چې:

ينطلق احدكم فيركب الحموقة ثم يقول يا ابن عباس يا ابن عباس وان الله جل ثناءه قال (ومن يتق الله يجعل له مخرجا) وانک لم تتق الله فلا أجد لک مخرجا عصيت ربک وبانت منک امرأتک. تاپخپله حماقت کړی دی.

او بیایې ورته وویل چې کوم سړی چې د الله ﷻ څخه ونه دارشي، نو د هغه لپاره هیڅ لاره نه پیدا کیږي، تا چې د الله ﷻ نافرماني وکړه، نو اوس ستالپاره هیڅ ګنجائش نشته، ستا ښځه ستا څخه بالکل جدا شوه .(سنن الکبری ج ۷ص ۳۳۱) حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چې ددې حدیث سند صحیح دی. [التعلیق المغنی ص ۴۳۰].

**۴۳- دلیل دریم حدیث:** او په یو روایت کې داسې راځي چې یو سړي خپلې ښځې ته سل طلاقه ورکړي وو، حضرت ابن عباس ﷺ ورته وویل چې ستا درې طلاقه واقع شول او په پاتې (۹۷) طلاقو نو باندې تا د الله ﷻ پورې مسخرې کړي دي (معاذالله) (موطا امام مالک ص ۱۹۹) (دارقطنی ج ۲ص ۴۳۰ و طحاوی ج ۲ص ۳۰) وسنن الکبری ج ۷ص ۳۳۳).

**۴۴- دلیل، څلورم حدیث:** او په یو روایت کې داسې راځي چې یو سړي خپلې ښځې ته زر طلاقه ورکړي وو نو ابن عباس ﷺ ورته وویل چې درې طلاقه واقع او پاتې (۹۹۷) نهه سوه اوه نوي طلاقونه ستا لپاره وبال دي. [سنن الکبری ج ۷ص ۳۳۳].

او په یو روایت کې راځي چې یو سړي خپلې غیر مدخول بها ښځې ته درې طلاقه ورکړي وو، نو حضرت ابن عباس ﷺ، حضرت ابن عمر ﷺ او حضرت ابو هریره ﷺ دا فیصله وکړه چې دا درې وا،

طلاقه واقع دي او دا ښځه ورته ترهغې پورې حلاله نده ترڅويې چې دبل خاوندسره نکاح نه وي کړې.
(سنن الکبری ج۷ ص ۱۵۴).

**۴۵۔ دلیل، پنځم حدیث:** عَنِ الْحَكَمِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَابْنِ مَسْعُودٍ رضي الله عنهم قَالَا: «فِي رَجُلٍ طَلَّقَ امْرَأَتَهُ ثَلَاثًا قَبْلَ أَنْ يَدْخُلَ بِهَا، لَا تَحِلُّ لَهُ حَتَّى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ (مصنف ابن ابی شیبه ج ٤ص۱۸)

عبدالله بن عباس او عبد الله بن مسعود رضی الله عنهم دهغه چاپه باره کې چې خپلې غیر مدخول بها ښځې ته يې درې طلاقه ورکړې وو فرمايلي دي چې ترهغې پورې ورته نده حلاله ترڅو چې دبل خاوند سره نکاح و کړي.

**۴۶۔ دلیل، شپږم حدیث:** عَنْ عَبِيدَةَ، وَعَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنهم قَالَا: «إِذَا طَلَّقَ ثَلَاثًا قَبْلَ أَنْ يَدْخُلَ بِهَا، فَلَا تَحِلُّ لَهُ حَتَّى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ (مصنف ابن ابی شیبه ج ٤صـ ۲۰، باب من کره أن یطلق الرجل امرأته ثلاثا)

سعید بن جبیر او عبد الله بن عباس رضی الله عنهما دهغه چا په باره کې چې غیر مدخول بها ښځې ته درې طلاقه ورکړې وو، وفرمايل چې ترهغې پورې ورته نده جایزه ترڅو چې دبل خاوند سره نکاح وکړي.

**۴۷۔ دلیل، اوم حدیث:** عَنْ عَطَاءٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنه قَالَ: «إِذَا طَلَّقَهَا ثَلَاثًا قَبْلَ أَنْ يَدْخُلَ بِهَا، لَمْ تَحِلَّ لَهُ حَتَّى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ، وَلَوْ قَالَهَا تَتْرَى بَانَتْ بِالْأُولَى (مصنف ابن ابی شیبه ج ٤صـ ۲۱)

عبدالله بن عباس رضی الله عنهما فرمايي چې که څوک غیر مدخول بها ښځې ته په يوه کلمه درې طلاقه ورکړي نو بيا ورته ښځه ترهغې نده حلاله ترڅو چې دبل خاوند سره نکاح وکړي او که جدا جدا درې طلاقه ورکړي نو په اول طلاق باينه شوه.

**۴۸۔ دلیل، اتم حدیث:** حضرت معاويه بن ابی عیاش انصاری ﷺ فرمائي چې زه د حضرت عبدالله بن زبیر ﷺ او د حضرت عاصم بن عمرو ﷺ په مجلس کې ناست ووم چې حضرت محمد بن ایاس ﷺ تشریف راوړو او پوښتنه يې وکړه چې يو اعرابی خپلې غیر مدخول بها ښځې ته درې طلاقه ورکړي دي، نود دې په باره کې اوس څه حکم دی ؟

حضرت عبد الله بن زبير ﷺ ورته وفرمايل: چې لاړشه! د حضرت عبد الله بن عباس ﷺ او د حضرت ابو هريره ﷺ څخه پوښتنه وکړه او بيا په واپسۍ کې په ما راشه او ما هم په مسئله پوه کړه.

پوښتنه کونکي چې کله حضرت ابن عباس ﷺ او ابو هريره ﷺ ته ورغلو او پوښتنه يې وکړه، نو حضرت ابن عباس ﷺ حضرت ابو هريرة ﷺ ته وفرمايل چې: د ښه سوچ او فکر څخه وروسته جواب ورکړه، ځکه چې مسئله ډيره باريکه ده. حضرت ابو هريره ﷺ ورته وفرمايل چې د داسې ښځې د جدا کيدلو لپاره يو طلاق کافي وو، خو اوس په دريو طلاقونو باندې دا ښځه پدې سړي حرامه شوه تر هغې چې دبل ميړه سره نکاح وکړي او حضرت ابن عباس ﷺ هم همدا فتوی ورکړه. (موطا امام مالک ص ۲۰۸ طحاوی ج ۲ ص ۲۹ وسنن الکبری ج ۷ ص ۳۳۵).

**۴۹ـ دليل، نهم حديث**: عن محمد بن ياس بن البكير قال: طلق رجل امرأته ثلاثا قبل أن يدخل بها ثم بداله أن ينكحها فجاء يستفتي فذهبت معه اسأل له فسأل ابا هريرة وعبد الله بن عباس عن ذلک فقالا: لا نری أن تنكحها حتی تنكح زوجاً غيرک قال: انما كان طلاق اياها واحدة، فقال ابن عباس انک ارسلت من يدک ما كان لک من فضل.

يو سړي خپلې غير مدخول بها ښځې ته درې طلاقه ورکړي وو، بيا يې فکر وکړ چې نوې نکاح ورسره وکړي، نو د حضرت ابو هريره ﷺ او حضرت ابن عباس ﷺ څخه يې فتوی وغوښتله. دوی دواړو ورته وفرمايل چې: ته ددې ښځې سره تر هغې پورې نکاح نشې کولی، ترڅو يې چې دبل خاوند سره نکاح نه وي کړي. هغه سړي وويل چې ما ورته يو طلاقه ورکړی دی (يعنې د دريو څخه مې يو مراد دی)، نو دوی ﷺ ورته وفرمايل چې: تا خپل هغه اختيار ختم کړی دی، کوم چې ستا په لاس کې وو. [مسند الامام الشافعی ص ۳۶، السنن الکبری للبيهقی ج ۷ ص ۳۳۵].

**۵۰ـ دليل، لسم حديث** : حضرت عطاء رحمه الله فرمائي چې يو سړی حضرت عبد الله بن عباس ﷺ ته راغی او ورته يې ويل چې ما خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکړي دي، نو اوس څه وکړم؟

هغه ﷺ ورته جواب ورکړو چې: تا د خپل رب نافرماني کړې ده او په تا باندې ستا ښځه تر هغې پورې حرامه ده ترڅو يې چې دبل ميړه سره نکاح نه وي کړي. [جامع المسانيد، ج ۲ ص ۱۴۸].

امام ابوداود په اتو سندونو سره د عبدالله بن عباس رضی الله عنهما فتوی رانقل کړې ده چې درې طلاقه درې دي هغه اته سنده دا سې دي:

۱- اسماعيل بن عبد الله بن كثير عن مجاهد عن ابن عباس.

۲- حميد اعرج وغيره عن مجاهد عن ابن عباس.

۳- شعبة عن عمرو بن مرة عن سعيد بن جبير عن ابن عباس.

٤- عن عكرمة بن خالد عن سعيد بن جبير عن ابن عباس.

۵- ابن جريج عن عكرمه بن خالد عن سعيد بن جبير عن ابن عباس.

٦- ابن جريج عن عبدالحميد بن رافع عن عطاء عن ابن عباس.

۷-اعمش عن مالک بن الحارث عن ابن عباس.

۸- ابن جريج عن عمرو بن دينار عن ابن عباس.

بيا يې په يو سند سره رانقل کړي دي چې درې طلاقه يو دي هغه سند دادی:

ايوب عن عكرمة عن ابن عباس،نو دا فتوی شاذه ده او همدارنګه مضطربه ده ځکه چې دا يوب دوه شاګردان دي حماد بن زيد او اسماعيل بن ابراهيم نو حماد ورته د ابن عباس رضی الله عنه فتوی وايي او اسماعيل ورته د عکرمه فتوی وايي يوه توجيه يې دا هم ده کما مر چې دا د غير مدخول بها په باره کې په دريو جدا جدا طلاقونو ورحمل ده، امام بيهقي رحمه الله د عبدالله بن عباس اوه فتوی رانقل کړې دي چې درې طلاقه درې دي (سنن بيهقي ج ۲ص ۵۵۲)

د حضرت عبدالله بن عباس ﷺ او د حضرت عبدالله بن مسعو ﷺ څخه نورهم بې شميره روايات دي چې په را وړلو يې قلم ستړی کيږي.

حافظ ابن قيم رحمه الله فرمائي چې: فقدصح بلاشک عن ابن مسعود ﷺ وعلي ﷺ وابن عباس ﷺ الالزام بالثلاث لمن اوقعها جملة وصح عن ابن عباس ﷺ انه جعلها واحدة ولم نقف على نقل صحيح عن غيرهم من الصحابة بذلک اهـ (اغاثة جلد ا ص ۳۲۹ و ص ۳۳۰)

بی شکه چې د حضرت ابن مسعو ﷺ ، د حضرت علی ﷺ او د ابن عباس ﷺ څخه ثابت دي چې: په یوه کلمه درې طلاقه واقع کیږي او د حضرت ابن عباس ﷺ څخه دا هم ثابت دي چې هغه درې طلاقه (د غیر مدخول بها په باره کې) په یوه طلاق حساب کړي دي، دده څخه بغیر دبل هیڅ صحابی ﷺ څخه په صحیح نقل دانده ثابته (چې دریو طلاقونو ته یې یو ویلي دي). ددې څخه معلومه شوه چې دریو طلاقونو ته هیڅ صحابی ﷺ هم یو طلاق ندي ویلي .

نو د حافظ ابن قیم رحمه الله په قول د ټولو صحابه وو رضی الله تعالی عنهم په اجماع سره درې طلاقه په دریو حسابیږي او د حافظ ابن قیم رحمه الله دا خبره چې د حضرت عبد الله بن عباس ﷺ څخه دا هم ثابته ده چې درې طلاقه په یو حسابیږي، نو دا د غیر مدخول بها په باره کې دی. او په دا سې صورت کې چې دی (انتِ طالقٌ . انتِ طالقٌ. انتِ طالقٌ) ورته ووایي، نو غیر مدخول بِها ښځه په اول (انتِ طالقٌ) سره جُدا شوه، نو د دوهم او دریم (انتِ طالقٌ) له پاره محل پاتې نه شو. چې تفصیل به یې لږ مخکې راشي ان شاءالله .

## دعبدالله بن مسعود رضی الله عنه فیصلې

**۵۱۔ دلیل، اول حدیث:** په یو روایت کې راغلي دي چې یو سړي د حضرت ابن مسعود ﷺ څخه پوښتنه وکړه چې ما خپلې ښځې ته دوه سوه طلا قه ورکړي دي ،اوس زما لپاره څه صورت شته ؟ خلک خوراته وائي چې اوس ستا څخه ښځه جدا شوه حضرت ابن مسعود ﷺ ورته وفرمایل چې خلک رشتیا وائي .موطاء امام مالک ص ۱۹۹ وطحاوی ج۲ ص ۳۰ په طحاوی شریف کې د غیر مدخول بها لفظ هم شته .

**۵۲- دلیل، دوهم حدیث:** عَنْ عَلْقَمَةَ رحمه الله، عَنْ عَبْدِاللّٰهِ ﷺ، أَنَّهُ سُئِلَ عَنْ رَجُلٍ طَلَّقَ امْرَأَتَهُ مِائَةَ تَطْلِيقَةٍ، قَالَ: «حَرَّمَتْهَا ثَلَاثٌ وَسَبْعَةٌ وَتِسْعُونَ عُدْوَانٌ» (مصنف ابن ابی شیبه ج ٤ صـ ۱۲)

**۵۳- دلیل، دریم حدیث:** عَنْ أَبِي وَائِلٍ ﷺ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ ﷺ فِي الَّتِي تُطَلَّقُ ثَلَاثًا قَبْلَ أَنْ يَدْخُلَ بِهَا؟ «لَا تَحِلُّ لَهُ حَتَّى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ» (مصنف عبدالرزاق ج٦ صـ ۳۳۱)

## د حضرت عمران ابن حصین او ابو موسی اشعري فیصله

**۵۴- دلیل**: حضرت عمران بن حصین ﷺ په مسجد کې ناست وو، چې یو سړی راغی او دا پوښتنه یې وکړه چې: یو سړي خپلې ښځې ته په یو مجلس کې درې طلاقه ورکړي دي، نو اوس هغه څه وکړي؟ حضرت عمران ﷺ ورته وفرمایل چې: دغه سړي د خپل رب نافرماني کړې ده او دده ښځه په ده حرامه ده.

پوښتنه کونکې دده ځای څخه لاړو او حضرت ابو موسی اشعری ﷺ ته په دې خیال ورغی چې کیدی شي چې دی راته د حضرت عمران ﷺ د فتوی په خلاف فتوی راکړي، لکن حضرت ابو موسی اشعری ﷺ د حضرت عمران بن حصین ﷺ تائید وکړو او ویې فرمایل چې: الله ﷻ دې په مونږ کې د ابو نجید په شان نور خلک هم پیدا کړي. [ سنن الکبری، ج ۷ ص ۳۳۲ و مستدرک ج ۳ ص ۴۲۷ ].

ابو نجید د حضرت عمران بن حصین ﷺ کنیت دی ( اکمال ص ۶۰۷ ).

## د حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص فیصله

**۵۵- دلیل** : یو سړې حضرت عبد الله بن عمرو بن العاص ﷺ ته راغی او پوښتنه یې ترینه وکړه چې که یو سړې د همبسترۍ څخه مخکې خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکړي څه به کوي ؟

حضرت عطاء بن یسار رحمه الله ورته وفرمایل چې د پیغلې طلاق یو وی، دده په اوریدو عمرو بن العاص ﷺ په غوصه شو او حضرت عطاء رحمه الله ته یې وفرمایل چې ته قصه خوان یې! په یو طلاق دا ښځه جدا کیږي او په دریو طلاقو حرامیږي. ترڅو چې د بل میړه سره نکاح وکړي [ مسند الامام الشافعی ص ۳٦ و طحاوی ج ۲ ص ۳۰ ].

## د حضرت مسلمه فیصله

**۵٦- دلیل** : حضرت مسلمه بن جعفر الاحمسی رحمه الله فرمائي چې ما د امام جعفر بن محمد رحمه الله څخه پوښتنه وکړه چې : بعضې خلک وائي چې درې طلاقه په یو طلاق حسابیږي او حواله په تاسو ورکوي نو هغه راته وویل چې معاذالله (ماهذا قولنا من طلق ثلاثا فهو کما قال) . [سنن الکبری ج ۷ ص ۳۴۰]. الله ﷻ ته پناه نیسم دا زمونږ خبره نده چا چې ښځه په دریو طلاقونو طلاقه کړه، نو هغه په دریو طلاقه شوه .

ددې څخه ثابته شوه چې څوک داوائي چې داهل بيتوپه نيزدرې طلاقه يو طلاق دى، نو دا قطعاً غلط وائي په (الروض النضير في شرح المجموع الفقهي الكبير)، ج ۴ ص ۱۳۷ کې يې ليکلي دي چې د اهل بيتو اود جمهورو علماو دا مذهب دى چې: درې طلاقه په دريو حسابيږي.

په دې مسئله کې دسعودى حکومت دخپل شاهي فرمان په ذريعه باندې دحرمينو دعلماو اودملک دنورو مخورو علماوو يو تحقيقاتي ټيم مقرر کړو چې: بيا دوي فيصله په ټولو محکمو کې نافذه شوه، چې خپله بادشاه هم ددې پابندوو، دغو علماوو دقران دايتونو اود احاديثو څخه ماسوى د اوه څلويښتو کتابونو دتفتيش او پوره بحث څخه وروسته بالاتفاق دا فيصله وکړه چې: په يو مجلس کې په يوه کلمه باندې درې طلاقه په دريو طلاقو حسابيږي. [احسن الفتاوى، ج ۵ ص ۲۲۵].

غير مقلدين په اختلافي مسايلو کې اهل حرمين په دليل کې پيش کوي، دا فيصله هم د اهل الحرمين ده، فلهذا د دوى په خلاف حجت ده، احاديث نور هم ډيرزيات دي، لکن د طوالت له ويرې به په دې رواياتو اکتفاء وکړو. همدا دلايل د منصفينو لپاره کافي دي، البته د نه منلو هيڅ علاج نه شته.

## دريم فصل

په دې فصل کې به دهغو دلايلو حال ولولى چې شيعه ګانو، قاديانيانو او غير مقلدينو ترينه د استدلال ناکام کوشش کړى دى.

**اول دليل: ۱- حضرت طاوس رحمه الله فرمائي** چې حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه فرمايلي دى چې: **كَانَ الطَّلَاقُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَبِي بَكْرٍ رضي الله عنه، وَسَنَتَيْنِ مِنْ خِلَافَةِ عُمَرَ رضي الله عنه، طَلَاقُ الثَّلَاثِ وَاحِدَةً، فَقَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رضي الله عنه: إِنَّ النَّاسَ قَدِ اسْتَعْجَلُوا فِي أَمْرٍ قَدْ كَانَتْ لَهُمْ فِيهِ أَنَاةٌ، فَلَوْ أَمْضَيْنَاهُ عَلَيْهِمْ، فَأَمْضَاهُ عَلَيْهِمْ.**

درسول الله ﷺ په زمانه کې، اود حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه په ټوله دوره د خلافت کې اود حضرت عمر رضي الله عنه د خلافت په اولو دوو کلونو کې درې طلاقه په يو حسابيدل. بيا حضرت عمر رضي الله عنه وفرمايل چې خلکو په خپله معامله کې د تيزى څخه کار اخستي دى، حالانکه دوي ته دسوچ کولو او دپوهې وخت وو، مونږ ولې ورباندې دانه نافذوو؟ نو ورباندې نافذيې کړل [مسنداحمد ج ۱ ص ۳۱۴ ومسلم ج ۱ ص ۴۷۷ ومستدرک ج ۲ ص ۱۹۶ وسنن الكبرى ج ۷ ص ۳۳۶].

۲-او په یو روایت کې راځي چې: عن طاوس أن ابا الصهباء قال لابن عباس اتعلم انما كانت الثلاث تجعل واحدة على عهد النبى صلى الله عليه وسلم وابى بكر وثلاثا من امارة عمر فقال ابن عباس نعم.

حضرت ابو الصهباء رحمه الله د حضرت ابن عباس ﷺ څخه پوښتنه وکړه چې ایا د رسول الله ﷺ او د حضرت ابوبکر ﷺ او د حضرت عمر ﷺ د خلافت په اولو دریو کلونو کې درې طلاقه په یو نه حسابیدل؟

حضرت ابن عباس ﷺ ورته وویل چې هو همداسې وه (مسلم ج ۱ ص ۴۷۸)

۳-او په یو روایت کې الفاظ داسې دي چې حضرت ابو الصهباء رحمه الله حضرت ابن عباس ﷺ ته وفرمایل چې: هات من هنا تک الم يكن الطلاق الثلاث على عهد رسول الله صلى الله عليه وسلم وابى بكر واحدة فقال قد كان ذلک فلما كان فى عهد عمر تتابع الناس فى الطلاق، فأجازه عليهم.

ته ماته په خپلو عجیبو او غریبو خبرو سره ووایه چې ایا د رسول الله ﷺ او د ابوبکر صدیق ﷺ په زمانه کې درې طلاقه په یو نه حسابیدل؟

حضرت ابن عباس ﷺ ورته وفرمایل هو همداسې وه، لکن چې کله د حضرت عمر ﷺ د خلافت زمانه راغله او خلکو پرله پسې طلاقونه ورکول شروع کړل، نو حضرت عمر ﷺ وربانديې نافذ کړل. (مسلم شریف ج ۱ ص ۴۷۸)

په یو روایت کې راځي چې: عن ابن ابى مليكة ان اباالجوزاء أتى ابن عباس فقال اتعلم أن الثلاث كن يرددن على عهد رسول الله صلى الله عليه وسلم الى واحدة قال نعم (مستدرک حاکم ج ۲ ص ۱۹۶)

فائده: په حقیقت کې دا یو حدیث دی چې راوي یې حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه دی او د ابن عباس رضی الله عنه څخه لاندې نقل کونکي درې کسان دي: طاوس، ابو الصهباء او ابو الجوزاء، حافظ ابن القیم رحمه الله فرمایي چې: وهذ الحديث قد رواه عن ابن عباس ثلاثة نفر طاوس، وهو أجل من روا عنه وابو الصهباء العدوى وابو الجوزاء (اعاثة اللهفان ج ۱ ص ۳۱۷) لکن دا خبره صحیح نده، ابو الصهباء او ابو الجوزاء راویان نه دي صرف پوښتنه کونکي دي، راوي یوائې طاوس دی.

حافظ ابن قیم رحمه الله د دې دلیل په تفصیل کې لیکي چې خلک په اجماع خوشحاله دي، نو اوله اجماع خو دا وه چې درې طلاقه په یو حسابیږي، چې په دې باندې د زرگونو صحابه وو عمل وو او بیا

ليکي چې د نفوسُ شماری پـه لحـاظ هـم مونږ غالـب يـو ، ځکـه چـې د رسـول الله ﷺ او د حضرت ابوبکرصـديق ﷺ پـه زمانـه کـې پـه زرګونو صـحابه رضـی الله تعـالی عـنهم ددې نظريـې قايل وو.[ زادالمعادج ۴ص ۵۸ وص ٦۲ ].

لا مذهبه نواب صديق حسن خان ددې روايت په باره کې فرمائي چې زمونږ سره داسې دليل موجود دی چې د نورو ټولو دلايلو ختمونکی دی . [ بدورالاهله ص ۱۷۸ ].

په دې روايت باندې حافظ ابن قيم ﷺ په اغاثة اللهفان، په زادالمعاد او په اعلام الموقعين کې ډيربحث کړی دی، همدارنګه وړاندې نواب صديق خان په دليل الطالب کې او مولوی شمس الحق عظيم ابادی وړاندې په عون المعبود او په تعليق المغني کې او مولوی ثناء الله په فتاوی ثنائيه کې ډير په تفصيل سره خبره کړې ده.

غير مقلدين چې ددې حديث کوم مطلب بيانوي چې د نبي کريم صلی الله عليه وسلم، ابوبکر صديق رضی الله عنه او د عمر رضی الله عنه د خلافت په اولو دوو کلنو کې درې طلاقه په يو حسابيدل ، بيا حضرت عمر رضی الله عنه مسئله بدله کړه او درې طلاقه يې په درېيو حساب کړل.

نو په هغې کې ډير زيات نقصانات دي، چې يو څو به يې دالله تعالی په توفيق سره دلته وليکو.

(۱) که ددې حديث هغه معنی شي کومه چې غير مقلدين بيانوي نو بيا به ددې حديث او دقرآني ايتونو په مابين کې تعارض راشي د کومو چې مونږه مخکې تفصيل وکړو.

(۲) همدارنګه به يې دهغې لسګونو احاديثو سره تعارض راشي کوم چې مخکې مونږ وليکل.

(۳) همدارنګه به ددې روايت تعارض د عبدالله بن عباس ﷺ د خپلو فتوو سره راشي کومې چې مخکې بيان شوي چې درې طلاقونه درې دي .

(۴) همدارنګه به د عبدالله بن عباس ﷺ په لمن دا داغ ولګيږي چې (معاذ الله) عبدالله بن عباس ﷺ په خپل دې روايت باندې عمل نه کولو ، بلکې ددې په خلاف يې فتوې ورکولې.

(۵) همدارنګه به د حضرت عمر ﷺ په لمن داغ ولګيږي چې د رسول الله صلی الله عليه وسلم او ابو بکر په زمانه کې درې په يو حسابيدل او حضرت عمر رضی الله عنه دا فيصله بدله کړه او درې

بې په دريو حساب کړل، همدارنګه به دهغو زرګونو صحابه وو په لمن باندې داغ ولګيږي چې هغوي ددې روايت په خلاف د حضرت عمر ﷜ د فيصلې سره ملګري شول.

(٦) همدارنګه به د حضرت عبدالله بن عباس ﷜ په لمن دا داغ هم ولګيږي چې دده په مخکې حضرت عمر ﷜ دا فيصله کوي چې درې طلاقونه درې دي او عبدالله بن عباس ﷜ ورته نه وايي چې دا فيصله غلطه ده زما سره روايت شته دی چې په هغې کې درې طلاقه په يو حساب شوي دی، لهٰذې وجې ددې روايت معنی هيڅکله هغه نه ده کومه چې غير مقلدين بيانوي بلکې داسې معنی به ورته بيانوو چې دا مذکور اعتراضات ورباندې وارد نه شي.

## اجمالي جوابونه او دحديث صحيح معنی

١- امام نووي رحمه الله فرمايي چې په دې حديث کې د مسئلې دتبديلۍ بيانول مقصود نه دي، بلکې مقصود د خلکو د عادت د بدليدلو بيان دی، د رسول الله صلی الله عليه وسلم او د ابوبکر رضی الله عنه او دعمر رضی الله عنه د خلافت په اولو دوو کلونو کې دخلکو عام عادت دا وو چې يو يو طلاق به يې ورکولو وروسته دخلکو عادت بدل شو خلک بې باکه شو، يو يو طلاق ورکول يې پريښودل او درې درې طلاقه ورکول يې مختار کړل، لکه (اَجَعَلَ الْاٰلِهَةَ اِلٰهًا وَّاحِدًا) ددې معنی دا نه ده چې د ډيرو خدايانو څخه يې يو خدای جوړ کړو، بلکې معنی يې داده چې ډير خدايان يې پريښودل او يو خدای يې مختار کړو.

همدارنګه نبي کريم صلی الله عليه وسلم فرمايي چې: (من جعل الهموم هما واحدا كفاه الله) ددې دامعنی نده چې چا چې د ډيرو غمونو څخه يو غم جوړ کړو، الله تعالی به يې کافي شي، بلکې معنی يې داده چا چې ددنيا ډير غمونه پريښودل او يو د اُخرت غم يې مختاره کړو، نو الله تعالی به يې کافي شي.

٢- امام نووي رحمه الله چې کوم جواب ته اُصح ويلي دي د هغې خلاصه داده چې دا حديث په هغه صورت ورحمل دی چې يو سړی خپلې ښځې ته درې ځلې ووايي چې: انت طالق، انت طالق، انت طالق (ته طلاقه يې، ته طلاقه يې، ته طلاقه يې) او پدې حديث کې د مسئلې د تبديلۍ بيان ندی، بلکې مقصود دخلکو د عادت د بدليدلو بيان دی، مخکې دخلکو عام عادت دا وو چې: په وروستنيو دواړو لفظونو کې به يې د تاکيد نيت کولو، وروسته دخلکو عادت بدل شو، خلکو جلتي او تلوار شروع کړو يعنې د استيناف نيت يې کولو، نو

مخکې غالب حال د تاکيد نيت کول وو، اوس غالب حال د استيناف نيت کول دي او قانون دادی چې مطلق شي په غالب حالت ورحملولی شي، لکه په معاملاتو کې چې دراهم مطلق ذکر شي، نو په رايجو دراهمو ورحملولی شي، نو چې دخلکو عادت د تاکيد وو په يو به حملولی شو، اوس چې دخلکو عادت د استيناف دی په دريو به حملولی شي دا جواب په هغه صورت ورحمل دی چې په جدا جدا الفاظو يې ورته انت طالق، انت طالق، انت طالق ويلي وي او که په يوه کلمه يې ورته انت طالق ثلاثا ويلي وي هغه به په هر صورت کې درې وو.

۳-دا حديث په هغه صورت ورحمل دی چې يو سړی خپلې ښځې ته په دريو کلمو انت طالق، انت طالق، انت طالق ووايي او پدې حديث کې د مسئلې د تبديلۍ بيان نه دی، بلکې مقصود د خلکو د حالت د بدليدلو بيان دی، مخکې ديانت او صداقت غالب وو که چا به قسماً وويلې چې ما په وروستنيو دوارو الفاظو کې د تاکيد نيت کړی دی نو منل کيدلو به وروسته د خلکو حالت بدل شو، ديانت او صداقت کم شو نو که چا به د استيناف نيت کړی وو يا به يې هم ويل چې ما د تاکيد نيت کړی دی، لهذا اوس به الفاظو ته اعتبار ورکووو د طلاق ورکونکي بيان ته به اعتبار نه ورکوو، که طلاق ورکونکي درې ځلې د طلاق لفظ ذکر کړی وو نو په هر صورت کې به يې درې شمار وو، نو ټولو صحابه وو د حضرت عمر رضی الله عنه ددې فيصلې سره اتفاق وکړو.

۴-مخکې درې طلاقو نه په يو حساييدل يا دا حکم منسوخ شو، لکن نسخه يې مشهوره نه وه د حضرت عمر رضی الله عنه په زمانه کې دا نسخه مشهوره شوه، نو دا حديث بعينه د متعې د حديث په شان دی د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روايت دی چې: استمتعنا على عهد رسول الله صلى الله وأبى بكر وعمر(وفى رواية) حتى نهى عنه عمر (صحيح المسلم ج ۱ص۴۵۱)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې: وفى الجملة فالذى وقع فى هذه المسئلة نظير ما وقع فى مسئلة المتعة سواء اعنى قول جابر انها كانت تفعل فى عهد النبى صلى الله عليه وسلم وابى بكر وصدر من خلافة عمر، قال ثم نهانا عمر فانتهينا ،فالراجع فى الموضعين تحريم المتعة وايقاع الثلاث (فتح الباری ج ۹ص ۴۵۷) غير مقلد شرف الدين ليکي چې د حضرت جابر رضی الله عنه ددې حديث څخه چې کوم جواب وي همغه جواب مونږ د عبدالله بن عباس رضی الله عنه د حديث لپاره کوو.

امام ابو داود د عبدالله بن عباس رضی الله عنهما د حديث د منسوخوالي لپاره دوه بابونه لګولي دي، اول باب فى نسخ المراجعة بعد التطليقات الثلاث (ج ۱ص۲۹۷) يا يې د عبدالله بن عباس رضی الله عنه قول ذکر کړی دی

چې: (ان الرجل كان اذا طلق امرأته فهو أحق برجعتها وان طلقها ثلاثا فنسخ ذلك، فقال الطلاق مرتان) د دوهم باب عنوان یې داسې دی چې باب بقية نسخ المراجعة بعد التطليقات الثلاث.

۵-دا حدیث د غیر مدخول بها په باره کې دی چې په درې کلمو ورته انت طالق، انت طالق، انت طالق روایي، نو غیر مدخول بها ښځه دا ول انت طالق په وجه باینه کیږي، نو وروستني دواړه لفظونه لغوه کیږي.

۶-دا حدیث سندا او متناً مضطرب دی.

۷-دا حدیث شاذ دی. غیر مقلد شرف الدین هم ورته شاذ ویلي دي، (فتاوی ثنائیه ج ۲ص۲۱۹)

۸-دا حدیث منکر دی علامه طحاوي رحمه الله فرمایي چې: هذان حديثان منكران قد خالفهما ما هو أولى منهما (مختصر اختلاف العلماء للطحاوي ج ۲ص ۲۹۵)

علامه ابو بکر جصاص الرازي فرمایي چې وقد قيل أن هذين الخبرين منكران (احکام القران ج ۲ص ۸۶) وذكر علماء الحديث أن هذين الحديثين منكران (احکام القران للکیا الهراسی ج ۱ص۱۳۱)

۹-دا حدیث مرفوع نه دی، ځکه چې په دې حدیث کې نه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم قول ذکر شوی دی، نه پکې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم فعل ذکر شوی دی، او نه پکې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم تقریر ذکر شوی دی (یعنې د صحابي په فعل د نبي علیه السلام سکوت هم پکې نه دی ذکر شوی) او دا قانون چې کله راوي ووایي چې د نبي علیه السلام په زمانه کې داسې کیدل مرفوع حکمي وي، نو دا په هغه وخت کې دی چې د نورو صحابه وو څخه د دې مخالفت نه وي ثابت او که د نبوت د زمانې په باره کې د صحابه وو نورې فتوې او اثار د دې په خلاف وي بیا دا مرفوع حکمي نه شي کیدلی، غیر مقلد عالم ابو سعید شرف الدین لیکي چې په مسلم کې دا ابن عباس رضی الله عنه حدیث مرفوع نه دی، (فتاوی ثنائیه ج ۲ص۲۱۹)

۱۰-خپله د ابن عباس رضی الله عنه فتوې د دې حدیث په خلاف دی، ځکه چې د ابن عباس رضی الله عنه په فتوی درې طلاقه درې دي.

۱۱-دا حدیث معلول دی ځکه چې مضمون یې د قرآن څخه مخالف دی، نو محدثینو دې حدیث ته شاذ منکر، معلول، محتمل او منسوخ ویلی دي، په کوم حدیث کې چې د دې پنځو امورو څخه یو راغلی وي هغه حجت نه وي او په دې روایت کې پنځه واړه راجمع شوي دي نو دا به څرنګه حجت شي؟

۱۲- پدې حدیث کې خو د یو مجلس او دریو مجلسونو ذکر نشته، نو پکار ده چې په دریو طهرونو کې درې طلاقه هم یو شي، حالانکې غیر مقلدین په دریو طهرونو کې دریو طلاقونو ته درې وایي.

۱۳- پدې حدیث کې راځي چې ابو الصهباء حضرت ابن عباس رضی الله عنه ته وفرمایل چې (هات من هناتک) د (هنات) معنی بد خصلتونه او خرابې خبرې دي، دلته ترینه بده او خرابه فتوی مراد ده، نو دا څرنګه ممکنه ده چې یو تابعي دې خپل استاذ ته چې صحابي او حبر الأمت دی و وایي چې د خپلو خرابو او بدو خبرو او د خپلو بدو فتوو څخه یوه بده او خرابه فتوی راوړه؟ دا ددې قرینه ده چې دا حدیث غلط دی، لدې وجې علامه ابن عبد البر رحمه الله فرمایي چې: و رواية طاوس وهمٌ وغلطٌ لم يعرّج عليها احد من فقهاء الأمصار الحجاز والعراق والمغرب والمشرق والشام (الاستذكار ج ٦ صـ٦)

حضرت طاوس رحمه الله چې د حضرت ابن عباس رضی الله عنه څخه کوم روایت رانقل کړی دی چې درې طلاقه یو دي نو دا وهم او غلط دی، په حجاز، عراق، شام، مشرق، مغرب او د ټول عالم اسلام په فقهاو کې هیچا دانه دی مختار کړی.

- علامه قرطبي رحمه الله هم لیکلي دي چې: ورواية طاوس وهمٌ وغلطٌ لم يعرّجْ عليها أحد من فقهاء الأمصار بالحجاز والعراق والمغرب والمشـرق والشام (المفهم لما أشكل من كتاب مسلم ج١٣صـ٧٩)

۱۴- خپله طاوس دې روایت ته دروغژن ویلی دی: عن ابن طاوس عن طاوس أنه قال من حدثك عن طاوس أنه كان يروي طلاقَ الثلاثَ واحدةً فكذبه (براهين الكتاب والسنة صـ ٨٣ بحواله آدب القضاء للكرابيسى )

حضرت طاوس رحمه الله فرمایي چا چې درته وویلې چې طاوس دریو طلاقو ته دیو ویلو والاحدیث روایت کړی دی نو دروغژن یې وګڼه یعنې دا حدیث ماندی روایت کړی.

۱۵- ددې حدیث د غیر صحیح والي لپاره یو دلیل دا هم دی چې که دا حدیث صحیح وی نو عبد الله بن عباس رضی الله عنه به ددې په خلاف دا فتوې نه ورکولې چې درې طلاقه درې دي، حالانکې مخکې مونږ د عبد الله بن عباس رضی الله عنه بې شماره فتوې رانقل کړې چې درې طلاقه درې دي.

١٦-دمسلم شریف سند داسې دی چې (معمر عن ابن طاوس عن أبيه عـن ابـن عبـاس) نو پدې سند سره چې کوم حدیث دی په هغې کې راغلل چې درې طلاقه یو وو ،لکن بعینه په همدې سند (معمـر عـن ابن طاوس عن أبيه عن ابن عباس) سره دعبد الله بن عباس رضی الله عنه فتوی رانقل شوی ده چې درې طلاقه درې دي (المفهم لما أشكل من تلخيص كتاب مسلم ج ١٣صـ٧٨الى صـ٨٢)

١٧-کومو محدثینو چې پدې حدیث اعتراضات کړي دي دهغوي يو څو عبارات دادي:

(١)طاوس: خپله طاوس رحمه الله فرمايي چې: مـن حـدثک عـن طـاوس أنـه كان يـروي طـلاق الثلاث واحدةً فكذِّبه (براهين الكتاب والسنة صـ ٨٣) چا چې درته وویلې چې طاوس داسې حدیث روایت کړی دی چې درې طلاقه يو دی نو دروغژن يې وګڼه.

(٢)ابن قدامة الحنبلي: فأما حديث ابن عباس فقد صحت الرواية عنـه بخلافـه وأفـتى بخلافـه (الشرح الكبير لابن قدامه ج ٨صـ ٢٦٠)

دعبد الله بن عباس رضی الله عنه د دريو طلاقو ديو کيدلو دحديث په خلاف دعبد الله بن عباس رضی الله عنه فتوی او روایت دی.

(٣)امام احمد رحمه الله فرمايي: قال الأثرم سألت ابن عبـاس بـأى شيء تدفعـه؟ فقـال أدفعـه برواية الناس عن ابن عباس من وجوه خلافه ثم ذكر عن ابن عباس رضى الله عنه من وجوه خلافه. أنها ثلاث (الشرح الكبير لابن قدامه ج ١صـ٢٦٠)

حضرت اثرم رحمه الله فرمايي چې ما امام احمد رحمه الله ته وویل چې تاسو د عبد الله بن عباس رضی الله عنه دحديث څه څه جواب ورکوئ؟ امام احمد رحمه الله وفرمايل چې ددې حديث په خلاف دامام احمد رحمه الله په فتوو جواب ورکوو د عبد الله بن عباس فتوې په متعددو سندونو روایت شوی دی، بیا امام احمد دابن عباس رضی الله عنه فتوې په متعددو سندونو سره ذکر کړی چې درې طلاقه درې دي.

۴-علامه بیهقي رحمه الله فرمايي چې: وهذا الحديث مما اختلف فيه البخـاري ومسـلم فأخرجـه مسلم وتركه البخاري وأظنه انما تركه لمخالفته سائر الروايات عن ابـن عبـاس (السـنن الكـبرى للبيهقي ج ٧صـ٣٣٦)

دا دهغو احاديثو څخه دی دکومو په صحت کې چې دامام بخاري او امام مسلم اختلاف دی، نو مسلم ذکر کړی دی او امام بخاري پرېښی دی، زما په ګمان امام بخاري ځکه پرېښی دی چې دا روایت دامام بخاري دنورو روایاتو څخه مخالف دی (شاذ یا منکر دی)

۵- علامه ابو عوانه رحمه الله فرمايي: باب الخبر المبين ان طلاق الثلاث كانت تردد على عهد رسول الله صلى الله عليه وسلم وابى بكر الى واحدة وبيان الأخبار المعارضة له الدالة على ابطال استعمال هذ الخبر وان المطلق ثلاثا لاتحل له حتى تنكح زوجا غيره (مستخرج ابى عوانه ج ۵صـ۲۳۱)

باب دی په بیان دهغه حدیث کې چې دا بیانوي چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم او ابو بکر صدیق رضی الله عنه په زمانه کې به درې طلاقه په یو شمیرلی کیدل، دوهم دهغو حدیثو نو په بیان کې کوم چې ددې حدیث سره متعارض دی او هغه احادیث دا بیانوي چې په دې حدیث عمل کول باطل دي او همدارنګه هغه احادیث دا بیانوي چې چا چې خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکړل نو دا ښځه وربانديې حرامه ده تر څو چې د بل خاوند سره نکاح ونکړي.

۶- علامه ابن عبد البر رحمه الله فرمايي چې: ورواية طاوس وهمٌ وغلطٌ لم يعرّج عليها أحد من فقهاء الأمصار بالحجاز والعراق والمغرب والمشرق والشام (الاستذكار ج ۶ صـ ۶))

درې طلاقوته د يو ويولو والاحديث وهم او غلط دی، دحجاز، شام، عراق، مشرق، مغرب او دټول عالم اسلام په فقهاوو کې هیچا نه دي مختاره کړي.

همدارنګه فرمايي چې: و روى عن ابن عباس جماعة من أصحابه خلاف ما روى طاوس فى طلاق الثلث أنه لازمة فى المدخول بها وغير المدخول بها أنها ثلاث لاتحل له حتى تنكح زوجا غيره وعلى هذا جماعة العلماء والفقهاء بالحجاز والعراق والشام والمشرق والمغرب من أهل الفقه والحديث وهم الجماعة والحجة (وانما يخالف فى ذلك أهل البدع الخشبيةُ وغيرهم من المعتزلة والخوارج عصمنا الله برحمته) (التمهيد لابن عبدالبر ج ۲۳، ۳۷۸)

دعبدالله بن عباس رضی الله عنه شاګردانو دطاوس په خلاف دعبد الله بن عباس رضی الله مذهب داسې رانقل کړی دی چې درې طلاقه درې دي، ښځه مدخول بها وي او که غیر مدخول بها وي دا ښځه تر هغه طلاق ورکونکي خاوند ته نه ده حلاله تر څو چې د بل خاوند سره نکاح وکړي د حجاز، عراق، شام، مشرق، او

مغرب د ټولو محدثینو او فقهاوو دغه مذهب دی او اجماعت او حجت دی (په حدیث کې د جماعت څخه وتونکي ته دوزخي ویلی شوی دی) په دې کې صرف خشبیه بدعتیان (روافض) اختلاف کوي او خوارج او معتزله پکې اختلاف کوي، الله تعالي دې مونږ په خپل رحمت سره د دې غلط مذهب څخه وساتي.

۷-علامه الکیا الهراسي رحمه الله فرمايي چې: وذکر علماء الحدیث أن هذین الخبرین منکران (احکام القران للکیاالهراسی ج ۱ صـ ۱۳۱)

۸-علامه ابو جصاص الرازي رحمه الله فرمايي چې: وقد قیل ان هذین الخبرین منکران (احکام القران ج ۲ صـ ۸٦) بعضو علماوو دې دواړو حدیثونو ته منکر ویلی دی.

همدارنګه فرمايي چې: وهذامما أخطأ فیه طاوس وکان کثیر الخطاء (احکام القران ج ۱ صـ ٤٧٩)

۹-الامام الجوزجاني رحمه الله فرمايي: هو حدیث شاذ وقد عنیت بهذا الحدیث فی قدیم الدهر فلم أجد له اصلاً (الاشفاق علی احکام الطلاق صـ ۵۷) دا حدیث شاذ دی ما د ډیر وخت څخه د دې حدیث تحقیق وکړو لکن هیڅ اصل (او متابع) مې ورته ونه موندلو.

۱۰-علامه طحاوي رحمه الله فرمايي چې: هذان حدیثان منکران قد خالفهما ما هو أولی منهما (مختصر اختلاف العلماء للطحاوي ج ۲ صـ ۹۵، شرح البخاري لابن بطال ج ۷ صـ ۳۹۱)

## تفصیلي جوابونه

**اول جواب**: دا روایت سنداً مضطرب دی او مضطرب حدیث ضعیف وي په یو سند کې معمر عن ابن طاوس عن ابیه عن ابن عباس (صحیح مسلم صـ ۴۷۷) په دې سند کې د طاوس او د ابن عباس رضی الله عنه په مابین کې د ابو الصهباء واسطه نه شته او په بل سند کې شته، ابن جریج قال أخبرنی ابن طاوس عن آبیه أن اباالصبهاء قال لابن عباس رضی الله عنه (صحیح مسلم ج ۱ صـ ٤٧٨)

دوهم اضطراب دا دی چې بعضې راویانو د ابو الصهباء نوم ذکر کړی دی (صحیح مسلم ج ۱ صـ ۴۷۸) او بعضو د ابو الجوزاء نوم ذکر کړی دی (سنن دار قطني ج ۵ صـ ۱۰۴)

**دوهم جواب**: دا حدیث متناهم مضطرب دی د صحیح مسلم په حدیثونو کې د مدخول بها او غیر مدخول بها فرق نه دی شوی حالانکې د ابو داود په روایت کې دا حکم صرف د غیر مدخول بها په باره

کې راغلي دي: أن رجلا يقال له ابو الصهباء كان كثير السؤال لابن عباس أما علمت أن الرجل كان اذا طلق امرأته ثلاثا قبل أن يدخل بها جعلوها واحدة؟ (سنن ابی داود ج۱صـ۲۹۹) په متن کې يې دوهم اضطراب دادی چې په بعضو روايتونو کې راځي چې: (وسنتين من خلافه عمـر) او د مسلم په يو روايت کې راځي چې (وثلاثا من امـارة عمـر) په متن کې يې دريم اضطراب دادی چې په سنن دارقطني (ج ۵صـ۸۰) کې راځي چې د(وهات من هناتک) قايل ابن عباس وو او مخاطب ابو الصهباء وو او د صحيح مسلم (ج ۱صـ۴۷۸) په روايت کې راځي چې د (هات من هناتـک) قايل ابو الصهباء وو مخاطب ابن عباس وو.

**دريم جواب:** دا حديث شاذ دی، علامه ابن رجب الحنبلي رحمه الله فرمايي چې: كان علماء مكة ينكرون على طاوس ماينفرد به من شواذ الا قاويل ( الاشفاق صـ ۵۸)

امام بيهقی رحمه الله فرمائي چې( وتركه البخاري واظنه انما تركه لمخالفته سائرالروايات عن ابن عباس) امام بخاری رحمه الله ددې روايت تخريج نه دی کړی، دا صرف ددې لپاره چې د حضرت ابن عباس ﷺ دحديث داجمله دصحيحو رواياتو څخه خلاف ده .[ محصله سنن الكبری ج ۷ ص ۳۳۷ باب من جعل الثلاث واحدةً].

بيا وروسته ليکي چې: حضرت سعيدبن جبير رحمه الله ،حضرت عطاء بن ابی رباح رحمه الله حضرت مجاهد رحمه الله ،حضرت عكرمه رحمه الله، حضرت عمروبن دينار رحمه الله ،حضرت مالک بن الحويرث ﷺ،حضرت محمدبن اياس بن بكير رحمه الله او حضرت معاويه بن ابی عياش الانصاری رحمه الله، داټول (ثقه او مشهورراويان ) دحضرت ابن عباس ﷺ څخه داسې روايت کوي چې درې طلاقه په دريو حسابيږي . [سنن الكبری ج ۷ص ۳۳۸ باب من جعل الثلاث واحدةً].

اوحافظ ابن رشد رحمه الله فرمائي چې: د حضرت عبدالله بن عباس ﷺ جليل القدر شاګردان لکه حضرت سعيدبن جبير رحمه الله ، حضرت عطاء رحمه الله ،حضرت عمروبن دينار رحمه الله اوددوي څخه علاوه نورده ﷺ د شاګردانو يو غټ جماعت دده څخه داسې روايت کوي چې: درې طلاقه په دريو حسابيږي، صرف حضرت طاوس رحمه الله له دغه پوره جماعت څخه مخالف روايت کوي.[

بداية المجتهد ج ٢ص ٦١ كتاب الطلاق الباب الاول ]. حافظ ابو عمربن عبدالبرالكندی المالکی رحمه الله فرمائي چې : (هذه الرواية وهم وغلط ) الجوهر النقی ج ٧ص ٣٣٧ ) .

د مسلم شريف دا روايت وهم او غلط دی. خپله قاضی شوکانی غیر مقلد د امام احمدبن حنبل رحمه الله څخه نقلوي چې: (كل اصحاب ابن عباس ﷺ رووا عنه خلاف ما قاله طاووس ) [ نيل الاوطار ج ٦ص ٢٤٧ باب ماجاء فی طلاق البتة ].

**څلورم جواب** : د حضرت طاوس رحمه الله په روایت کې (سره له دې چې دا جمله شاذه ده) د غيرمدخول بِها ښځې په باره کې ده ، لکه څرنګه چې علامه علی بن عثمان الماردینی رحمه الله المتوفی (٧٤٥هـ) فرمائي چې: (و ذكر ابن ابي شيبه بسند رجاله ثقات عن طاوس و عطاء و جابر بن زيد انهم قالوا اذا طلقها ثلاثاً قبل ان يدخل بها فهي واحدة ) [الجوهر النقی علی البهيقی ج ٧ص ٣٣١].

محدث ابن ابی شیبه رحمه الله په خپل سندسره د کوم چې ټول راویان ثقات دي د حضرت طاوس رحمه الله ،حضرت عطاء رحمه الله او حضرت جابربن زید رحمه الله څخه روایت کوي چې دوی فرمایلي دي چې: کوم سړی چې خپلې غیرمدخول بِها ښځې ته درې طلاقه ورکړي ، نو دا په یو طلاق حسابیږي .

له دې څخه معلومه شوه چې د حضرت طاوس رحمه الله په روایت کې هم مطلقاً د ریو طلاقو نو ته یو طلاق ندی ویلی شوی، بلکې د غیر مدخول بِها په باره کې ویلی شوی دی، چې درې طلاقه ورته جدا جدا ورکړل شي. مثلاً داسې ورته وویل شي چې: (انت طالق انت طالق انت طالق) ته طلاقه یې! ته طلاقه یې! ته طلاقه یې! کله چې داسې ښځې ته چې همبستري ورسره نه وي شوي، په اول ځل داسې وویل شي چې ته طلاقه یې! نو هغه په همدې لفظ بائنه (جُدا) شوه ، نو د دوهم او د دریم طلاق لپاره ځای پاتې نشو.

حضرت امام بیهقی رحمه الله په خپل سند باندې د حضرت ابو بکربن عبدالرحمن رحمه الله څخه روایت کوي چې یو سړي د همبستری څخه مخکې خپلې ښځې ته وواٸي چې ته طلاقه یې ! په دویم ځل بیا ورته وواٸي چې ته طلاقه یې! په دریم ځل بیا ورته وواٸي چې ته طلاقه یې ! نو دا ښځه په اول ځل ویلو سره جدا شوه ، نو د دوهم او د دریم ځل ویلو په وخت کې هغه بالکل اجنبی ده . [ محصله سنن الکبری ج ٧ص ٣٥٥ ].

او حضرت امام بیهقی رحمه الله ددې قول حواله په حضرت عمر ﷺ حضرت علی ﷺ، حضرت زید بن ثابت ﷺ حضرت ابراهیم نخعی رحمه الله، حضرت امام ابو حنیفه رحمه الله او حضرت امام ابو یوسف ورکړې ده. [سنن الکبری ج ۷ ص ۳۵۵]. او امام محمد رحمه الله فرمائي چې همدا زما او دامام ابو حنیفه قول دی. [جامع المسانید ج ۲ ص ۱۵۵]. او امام ابو یوسف رحمه الله په خپل سند باندې همدا قول د ابراهیم نخعی رحمه الله څخه نقل کړی دی [کتاب الآثار ص ۱۳۱].

او همداسې روایت امام بهیقی رحمه الله په خپل سند سره دابن عباس رضی الله تعالی عنهما څخه کړې فرمائي چې: عن عکرمة، وعطاء، و طاوس و جابربن زید کلهم یرویه عن ابن عباس رضی الله تعالی عنهما انه قال: هي واحدة باینة یعني في الرجل یطلق زوجته ثلاثاقبل ان یدخل بها [سنن الکبری ج ۷ ص ۳۵۵].

حضرت عکرمة رحمه الله حضرت طاوس رحمه الله، حضرت جابربن زید رحمه الله دوی ټول د حضرت ابن عباس رضی الله تعالی عنهما څخه روایت کوي چې کوم سړی چې خپلې ښځې نه د همبستری څخه مخکې درې طلاقه ورکړي، نو هغه ددې ښځې په حق کې یو باین طلاق دی.

حافظ ابن قیم رحمه الله همدا روایت د حضرت طاوس رحمه الله او حضرت جابربن زید رحمه الله څخه نقلوي چې د همبستری څخه مخکې درې طلاقه په یو طلاق حسابیږي. [اغاثة جلد ۱ ص ۳۲۴].

او بیا لیکي چې د حضرت ابن عباس ﷺ په نزد له همبستری څخه مخکې درې طلاقه په هغه وخت کې په یو طلاق حسابیږي چې درې طلاقه دفعةً نه وي، بلکې په متفرق طور سره وي. یعنې د (انت طالق انت طالق، انت طالق) په الفاظو سره وي. [اغاثة ج ۱ ص ۳۲۴].

امام بیهقي رحمه الله په خپل سند سره دامام شعبی رحمه الله څخه روایت کوي چې (عن ابي عباس ﷺ في رجل طلق امرته ثلاثاقبل ان یدخل بهاقال عقدة کانت بیده ارسلها جمیعاواذاکانت تتري فلیس بشئ قال سفیان تتري یعني انت طالق، انت طالق انت طالق فانهاتبین بالاولي والثنتان لیستابشئ. [سنن الکبری ج ۷ ص ۳۵۵].

د حضرت ابن عباس ﷺ څخه روایت دی چې کوم سړي چې د همبستری څخه مخکې خپلې ښځې نه درې طلاقه ورکړي، نو هغه اختیار چې دده په لاس کې وو هغه یې بالکلیه ضایع کړو او که یو دبل پسې ...

درې طلاقه ورکړل (امام سفیان ثوری یې تفسیر داسې کوي چې داسې ورته ووائي چې ته طلاقه یې! ته طلاقه یې! ته طلاقه یې!) نو دا ښځه په اول لفظ جدا شوه او دوهم او دریم لفظ لغوه شو.

حافظ ابن قیم رحمه الله د امام ابن المنذر رحمه الله په حواله نقلوي چې: حضرت ابو الشعثاء رحمه الله حضرت سعید بن جبیر رحمه الله، حضرت طاوس رحمه الله، حضرت عطاء رحمه الله او حضرت عمرو بن دینار رحمه الله فرمائي چې: چا چې د همبسترۍ څخه مخکې ښځې ته درې طلاقه ورکړل، نو هغه په یو حسابیږي. [ اغاثه ج ۱ ص ۲۹۰ ].

له دې څخه معلومه شوه چې د مسلم په روایت کې د (قبل ان یدخل بها) جمله پاتې شوې ده او دا لرې خبره نده. د دې ډیر مثالونه په صحیحینو او په احادیثو کې شته. مثلاً په مسلم شریف کې د لیلة الجن په باره کې د عبدالله بن مسعود ﷺ الفاظ داسې دي چې: (لیس معه احد) مسلم ج ۱ ص ۱۸۴ یعني د رسول الله ﷺ سره هیڅوک نه وو. حالانکې په ډیرو صحیحو روایاتو کې راغلي دي چې حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ ورسره په دغه شپه وو. په دوی کې یو امام ترمذی رحمه الله په ج ۱ ص ۱۰۹ کې هم رانقل کړی دی او حسنٌ صحیحٌ یې ورته ویلی دی. د دې تعارض د ختمولو لپاره محققین محدثین لکه: امام ابو محمد عبدالله بن مسلم ابن قتیبه رحمه الله المتوفی (۲۷۶ هـ) په خپل کتاب (مختلف الحدیث) ص ۱۱۹) کې لیکي چې: د مسلم په روایت کې د (غیری) لفظ پاتې شوی دی. په اصل کې روایت داسې دی چې (لیس معه احدٌ غیری)

همدا خبره علامه ماردینی رحمه الله د امام محمد الطلبوسی رحمه الله د کتاب (التنبیه علي الاسباب الموجبة للخلاف) څخه هم رانقل کړی ده. [ الجوهر النقی ج ۱ ص ۱۲ ]. او امام حاکم د حضرت ابن مسعو ﷺ په حدیث کې دا جمله هم رانقل کړې ده او د روایت الفاظ یې داسې راوړي دي چې: (فلم یحضر منهم احدٌ غیری). [ حاکم ج ۱ ص ۵۰۳ ].

امام حاکم رحمه الله په دې سکوت کړی دی او علامه ذهبی رحمه الله ورته صحیح ویلي دي. [ تلخیص المستدرک، ج ۲ ص ۵۰۴ ].

**الحاصل:** د مسلم روایت مطلق نه دی، بلکې یادراوي څخه په کې د (قبل ان یدخل بها جملة) پاتې شوی ده او یا د مسلم روایت مجمل دی او د ابو داود وغیره روایت ورته تفصیل دی، همدا وجه وه چې

حضرت عمر ﷺ په زمانه کې بغیر د هیڅ اختلاف او بغیر د چون او د چرا څخه د دې روایت د ظاهري معنی په خلاف اجماع منعقده شوه او ایمه اربعه، جمهور محدثین، او د اسلام غټ غټ علماء، حتی چې ابن حزم ظاهري رحمه الله هم د دې روایت په خلاف باندې قول کولو ته مجبور شول.

خپله د عبدالله بن عباس ﷺ فتوی د دې روایت د ظاهر څخه مخالفه وه، لکه د غیر مقلدینو یو سرګروه حافظ عبدالله روپړي چې لیکي: (د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما د مسلم شریف خدیث اګرچه په دې دلالت کوي چې په یو مجلس کې درې طلاقه په یو حسابیږي، لکن د ابن عباس ﷺ خپله فتوی د دې په خلاف وه، هغه ﷺ به درې طلاقه په دریو طلاقو حسابول، لکه څرنګه چې په ابوداود ج ۱ ص ۳۹۹) کې او په منتقی ص ۲۳۷ وغیره کې دی، نو د دې په خلاف د ابن عباس ﷺ فتوی د اقوي شبه راپیدا کوي چې د احدیث په ظاهر نه دی پاتې، کیدلی شي چې د دې څخه هغه ښځه مراده وي چې همبستري ورسره نوي شوي او متفرق طلاقونه ترینه مراد وي، لکه څرنګه چې امام نسائي د دې حدیث لپاره باب داسې لګولې دی چې (باب الطلاق الثلاث المتفرقة قبل الدخول بالزوجة) جلد ۲ ص ۸۳، باب دی په بیان د هغو دریو طلاقونو کې چې د همبستری څخه مخکې په داسې الفاظو ورکړل شي چې انت طالق، انت طالق، انت طالق) په ابوداود کې د مسلم شریف د احدیث په داسې الفاظو رانقل شوي دي چې (اما علمت ان الرجل کان اذا طلق امرته ثلاثا قبل ان یدخل بها جعلوها واحدة .( ج ۱ ص ۲۹۹).

ایا تاته نده معلومه چې په صحابه وو رضی الله عنهم کې به چې چا خپله ښځه د همبستری څخه مخکې په دریو طلاقو طلاقه کړه نو هغه به یې په یو حسابولو.

د ابوداود دا الفاظ د نسائی د باب تقویت راولي او په نیل الاوطار، ج ٦ ص ۲۴۸ کې د ابوداود د دې الفاظو د رانقلولو څخه وروسته لیکي چې علماء د دې وجه دا بیانوي چې کله یو سړی خپلې ښځې ته د همبستری څخه مخکې (انت طالق ثلاثا) و وایي، نو د انتِ طالقٌ په وجه ترینه ښځه جدا شوه، نو دا ښځه د ثلاثاً لپاره محل پاتې نشوه، لهذا د دریو قید لغوه شو. ( رساله ایک مجلس کے تین طلاقین، ضمیمه تنظیم اهلحدیث روپړ، ص۳) دابوداود شریف د راویانو حال وګورئ

**(۱) محمد بن عبد الملک بن مروان رحمه الله:** امام دارقطني رحمه الله او مسلمه بن قاسم رحمه الله فرمائي چې ثقه دی، امام ابو حاتم رحمه الله فرمائي چې رشتيني دي، امام ابن حبان رحمه الله ورته ثقه وائي. (تهذيب التهذيب ج ۹ص ۳۱۷)

علامه سمعاني رحمه الله ورته صاحب دعلم ،صدوق او ثقه ويلی دی (بذل المجهود ج ۲ص ۷۱)

**(۲) ابو النعمان محمد بن فضل السدوسي رحمه الله:** علامه ذهبی رحمه الله ورته الحافظ او الثبت ويلي دي (تذكرة ج ۱ص ۳۷۰)

محدث ابن حبان رحمه الله د مختلط والي په وجه پکې سخت کلام کړی دی، لکن علامه ذهبي رحمه الله ليکلي دی چې ابن حبان رحمه الله دده ديو داسې حديث په راوړلو هم قادر نه دی چې هغه منکر وي، حالانکې صحيح خبره هغه ده کومه چې امام دارقطني رحمه الله کړی ده چې دا ثقه دی او د اختلاط څخه وروسته هم دده څخه هيڅ منکر حديث نه دی ثابت .(ميزان ج ۳ص ۱۲۱ وتهذيب التهذيب ج ۹ص ۴۰۴)

**(۳) حمادبن زيد رحمه الله:** علامه ذهبي رحمه الله ورته امام، حافظ، مجود او شيخ الاسلام ويلي دي .تذكرة ج ۱ص ۲۲۱.

**(٤) ايوب السختياني رحمه الله:** علامه ذهبی رحمه الله ورته امام، حافظ او احد الاعلام ويلي دي .تذكرة ج ۱ص ۱۲۲)

**(۵) غيرواحد:** يعنې متعدد راويان ددې روايت کوي، غيرمقلد مولوی شمس الحق عظيم ابادی ليکلي دي چې د غير واحد مصداق نه دی معلوم، چې دا څوک دي؟ له دې وجهې دا سند د مجهولو رواتو څخه دی. له دې وجهې دا ضعيف دی، لکن ددوی بل غير مقلد حافظ عبدالله روپړي ورته جواب ورکوي چې دا د شمس الحق غلطي ده، ځکه چې صاحب دفتح الباری په ج ۲۶ص ۱۶۴ کې ددې حديث په باره کې ليکي چې ابوداود ددې روايت تخريج کړی دی، لکن دابراهيم ابن ميسره رحمه الله وغيره نومونه يې نه دي ذکر کړي، بلکې غيرواحد يې ويلي دي . (ضميمه ص ۳)

د عبدالله روپړي دا خبره بالکل صحيح ده، ځکه چې په مسلم ج ۱ص ۴۷۸ کې سند دا سې دی چې:
عن حماد بن زيد عن ايوب السختيانى عن ابراهيم ابن ميسرة عن طاوس الخ . او ابراهيم بن ميسرة ته امام سفيان الثورى رحمه الله ( اوثق الناس واصدقهم ) ويلي دي.

او علامه ابن سعد رحمه الله ورته کثيرالحديث ويلي دی، او امام احمد رحمه الله، امام يحيى بن معين رحمه الله او امام نسائي رحمه الله ورته ثقه ويلى دی. او امام ابوجاتم رحمه الله ورته صالح ويلى دی. او امام ابن حبان رحمه الله په ثقاتو کې شميرلي دي (تهذيب ج ۱ص ۷۲)

**(٦) طاوس رحمه الله جليل القدرتابعي دی** . امام ابن معين رحمه الله او امام ابوذرعه رحمه الله ورته ثقه ويلی دی (تهذيب ج ۵ ص ۹)

**(۷) حضرت عبدالله بن عباس رضی الله تعالى عنهما:** دا خو جليل القدرصحابی دی.

خلاصه دا چې د ابوداود ټول راويان ثقه دي .

حافظ ابن قيم فرمائي چې: (رواه ابوداود باسنادٍ صحيحٍ و فيه تصريحٌ قبل ان يدخل بها الخ.... (زادالمعاد ج٤ص ٥٥) دا حديث امام ابوداوډ په صحيح سند روايت کړی دی او په دې حديث کې دقبل ان يدخل بهاتصريح موجوده ده .

او په بل ځای کې ليکي چې (كان الرجل اذاطلق امرته ثلاثاقبل ان يدخل بهاجعلوهاواحدة على عهدرسول الله ﷺ وابي بكر و صدراً من خلافة عمر الى ان قال هذا لفظ الحديث هو باصح اسناد (زادالمعاد ج ٤ص ٦١)

کله به چې يو سړي د همبسترۍ څخه مخکې خپله ښځه طلاقه کړه ، نو د رسول الله ﷺ او د ابوبکر رضی الله عنه او په ابتدائي دوره د خلافت د حضرت عمر رضی الله عنه کې به دا په يو حسابيدلو ، بيا مخکې فرمائي چې دا د داسې حديث الفاظ دي چې په ډير صحيح سند سره ثابت دی .

**الحاصل** :د مسلم شريف روايت د غيرمدخول بها ښځې په باره کې دی او هغه هم په هغه صورت کې چې په متفرق طورسره ورته انتِ طالق، انت طالق، انت طالق ووائي

د ابوداود په يو روايت کې داسې هم راغلي دي چې (اذاقال انت طالق ثلاثا بفم واحدفهي واحدة) چې کله ورته په يوه کلمه ووائي چې ته په دريو طلاقو طلاقه يې نو دا په يو طلاق حسابيږي.

لکن خپله د غيرمقلدينو يو سرګروه حافظ روپړي دد ې حديث صحيح والي نه منې ،بلکې دی ته دعکرمه رحمه الله قول وائي .او دد ې څخه علاوه په کې داتوجيه کوي چې ثلاثادا انت طالق سره تعلق نلري بلکې دقال سره تعلق لري ( اي قال ثلاثاانت طالق ) اودبفم واحد ترجمه داده چې ددرې وارو طلاقونو په مينځ کې فاصله نوي بلکې پرله پسې انت طالق ،انت طالق ،انت طالق ووائي .نو د وطيې څخه مخکې دا په يو حسابيږي (ضميمه ص ٦)

قاضي شوکاني ليکي چې دابوداود حديث دغيرمدخول بهاپه باره کې دی او د مسلم شريف حديث د مدخول بهاپه باره کې دی، نو چې د غيرمدخول بهاپه باره کې درې طلاقه په يو حسابيږي، نو مدخول بها په باره کې به هم درې طلاقه په يو حسابيږي.

لکن غيرمقلد روپړي ورباندې ردکوي چې داجواب غلط دی، ځکه چې په دې صورت کې په ابوداودکې دغيرمدخول بهاقيد لغوه شو. همدارنګه يو حديث چې په مختلفو الفاظو روايت شي، نوهغه په يو حديث حسابيږي ټول الفاظ يو ځای کيږي اويو مطلب ترينه راايستل کيږي .(ضميمه ص ٥)

**پنځم جواب** : امام قرطبی رحمه الله فرمائي چې دا حديث مضطرب دی . (فتح الباری ج ٩ ص ٢٩٢)

امام ابن العربی المالکی رحمه الله شارح الترمذی فرمائي چې په دې روايت کې کلام دی، نو داسې روايت به څرنګه په اجماع باندې مقدم کيږي ؟ ( فتح الباری ج ٩ص ٢٩١). علامه ابوجعفربن النحاس رحمه الله په خپل کتاب الناسخ والمنسوخ کې ليکي چې حضرت طاوس رحمه الله اګرچې صالح سړی دی لکن د حضرت ابن عباس ﷺ څخه په ډيرو رواياتو کې متفرددی، علماء دده روايات نه قبلوي، په دې راوياتو کې يو روايت دا هم ذی چې درې طلاقه په يو حسابيږي، لکن صحيح روايت دابن عباس ﷺ او د حضرت علی ﷺ څخه دادی چې درې طلاقه په دريو حسابيږي ( اعلام مرفوعه ص ٢٢)

حافظ ابن قيم رحمه الله او شوکانی د اضطراب څخه د جواب کوشش کړی دي لکن د حلالو او د حرامو په مسئله کې په داسې وهمي توجيهاتو باندې اعتماد نشته.

په دې روايت کې دابو الصهباء رحمه الله ذکرهم راځي لکن دا راوي نه دی، دا روايت طاوس رحمه الله دابن عباس ﷺ څخه کړی دی د ابو الصهباء رحمه الله ذکر صرف دپوښتنې کونکي په طريقه کيږي . او حضرت ابو الصهباء رحمه الله مختلف فيه هم دی. بعضې محدثينو ورته ثقه ويلی دی، لکن امام ابن عبد البر رحمه الله ورته مجهول ويلی دی .(الجوهر النقی ج ۷ص ۳۳۷) .

او امام نسائي رحمه الله ورته ضعيف ويلي دي .ميزان ج ۱ص ۴٦۹ و تهذيب التهذيب ج ۴ص ۴۳۹ ) او دا خو يقيني ده چې صحابی نه دي او عجيبه خبره داده چې ده ته څرنګه دا معلومات وو چې د رسول الله ﷺ او د ابوبکر ﷺ په زمانه کې درې طلاقه په يو حسابيدل او صحابه کرامو ته نه وو معلوم؟

که صحابه وو ته ددې معلومات وای، نو د حضرت عمر ﷺ مخالفت به يې کړی وای. حضرات صحابه رضوان الله تعالی عليهم خو د رسول الله ﷺ په سنتو فدايان وو. څرنګه يې حضرت عمر ﷺ ته و نه ويل چې ستا اجماع د رسول الله ﷺ د حديثو په مقابل کې ده ؟

يوې بې بی ﷺ د مَهَـر په مسئله کې په حضرت عمر ﷺ د عين خطبې په دوران کې نيوکه وکړه. ( رفع الملام ص ٦۰ لحافظ ابن تيميه ) حالانکې په دې مسئله کې هيڅ صحابی يو جرف هم د حضرت عمر ﷺ په خلاف نه دی راايستلې چې محترمه ! دا څه کوې ؟ او بيا د خوند خبره داده چې حضرت ابو الصهباء رحمه الله هم درې طلاقه په يو حسابولو ته د عجيبې او د نوې خبرې لقب ورکړی دی ، که چيرته دا خبره د صحابه وو رضی الله تعالی عنهم په مينځ کې معموله وای، نو حضرت ابو الصهباء رحمه الله به ورته نوې او عجيبه نه ويله .

**شپږم جواب**: دا مسئله د غير مقلدينو په انتهائي مستند کتاب فتاوی ثنائيه کې ډير په زور سره ذکرشوې ده، لکن په همدې ځای کې ورباندې غير مقلد عالم مولوی ابوسعيد شرف الدين دهلوی يو ډير ښه علمي بحث کړی دی، چې دلته يې ټکي په ټکي ترجمه رانقلوو.

**شرفيه**: د مرحوم مجيب دا خبره چې په يو مجلس کې درې طلاقه په يو حسابيږي د حضرت ابن عباس ﷺ ددې حديث له وجهې چې: كَانَ الطَّلَاقُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَبِي بَكْرٍ ﷺ، وَسَنَتَيْنِ مِنْ خِلَافَةِ عُمَرَ ﷺ، طَلَاقُ الثَّلَاثِ وَاحِدَةً. مسلم.

د ځو وجهو ځخه غلطه ده: اول داچې په دې حديث کې د مجلس واحد ذکر نشته، د مسند احمد په روايت کې د مجلس واحد ذکر راغلی دی، لکن هغه حديث صحيح نه دی .

**دوهم** : داچې محدثينو په دې حديث کې اوږده خبره کړې ده، چې د هغې تفصيل په نووی، فتح الباری او خصوصاً زما په کتاب (کتاب الطلاق) کې کتلی شئ !

**دريم** : داچې په دې حديث کې او همدارنګې په بل هيڅ روايت کې دا تفصيل نشته چې دا د دريو طلاقونو مسئله د رسول الله ﷺ او ياد شيخينو مخې ته راغلې وه او هغوئ په کې دا فيصله کړې وه .

**ځلورم** : داچې بعينه د همدې حديث په شان په مسلم شريف کې يو بل روايت هم شته چې د حضرت جابر بن عبد الله ﷺ ځخه دی .

قَالَ عَطَاءٌ رحمه الله: قَدِمَ جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللهِ رضي الله عنهما مُعْتَمِرًا، فَجِئْنَاهُ فِي مَنْزِلِهِ، فَسَأَلَهُ الْقَوْمُ عَنْ أَشْيَاءَ، ثُمَّ ذَكَرُوا الْمُتْعَةَ، فَقَالَ: «نَعَمْ، اسْتَمْتَعْنَا عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَبِي بَكْرٍ، وَعُمَرَ» انتهى. وفى رواية اخرٰى بعده ثم نهانا عمر ﷺ فلم نعد لهما (اى لمتعة النسآء ومتعة الحج) [ صحيح مسلم مع شرح النووى ج ١/ص٤٥١/باب نكاح المتعة ].

نو کوم جواب چې د حضرت جابر ﷺ د دې حديث ځخه دی د متعة النساء په باره کې، نو همغه جواب د حضرت عبد الله ابن عباس ﷺ د حديث ځخه دی، که دا جايزوي چې درې طلاقه په يو حساب دی، نو متعة النساء به هم جايزه وي ولايقول به المحدثون .

**پنځم** : د دې ځخه ثابته شوه چې لکه ځرنګه چې متعة النساء بعضې خلکو په ناخبرۍ کې کوله، رسول الله ﷺ او شيخين رضی الله عنهما ترينه نه وو خبر، اخر چې حضرت عمر ﷺ پرې خبر شو، نو خلک يې ترينه منع کړل، نو همدارنګې د دريو طلاقو مسئله هم وه چې بعضو خلکو په ناخبرۍ کې دا په يو حسابول، چې نه ترينه رسول الله ﷺ خبر وو او نه شيخين رضی الله عنهما، اخرچې حضرت عمر ﷺ پرې خبر شو، نو دا خلک يې هم ترينه منع کړل .

**شپږم** : دا خبره کول چې د محدثينو په دې خبره کې اختلاف دی ډيره سخته مغالطه ده .

اصل خبره دا د چې د صحابه وو رضی الله علهم، د تابعينو رحمهم الله او د تبع تابعينو رحمهم الله د زمانې ځخه تر او سه کلونو پورې د هيچا ځخه دا نده ثابته چې د دريو طلاقونو ته يې يو ويلي وي. (و من ادعى فعليه

البيان و دونه خرط القتاد ). [ وګوره موطا امام مالک ، صحيح بخاری، سنن ابی داود داسنن النسائی، مجامع الترمذی ، سنن ابن ماجه ، و شرح مسلم للامام النووی، و فتح الباری، و تفسير ابن کثير ؤو تفسير ابن جرير، و کتاب الاعتبار للامام الحازمی في بيان الناسخ والمنسوخ من الاثار. په دې کتاب کې امام حازمی د ابن عباس ﷺ دې حديث ته منسوخ ويلی دي . او تفسير ابن کثير هم د (الطلاق مرتـان) د ديت آيت لاندې د ابن عباس ﷺ (چې د مسلم شريف د حديث راوی دی) بل حديث چې په ابوداود کې راغلی دی؛ راوړی دی، چې هغه په نسخ المراجعة بعد التطليقات باندې دلالت کوي.

(عن ابن عباس ﷺ ان الرجل كان اذا طلق امرته فهواحق برجعتهاوان طلق ثلاثافنسخ ذلك فقال الطلاق مرتان فامساک بمعروف اوتسريح باحسان ) (عون المعبودج ٢ص ٢٢٥ )

امام نسائی هم همدا رنګې باب منعقد کړی دی ج ٢ص ١٠١ او همدا حديث يې راوړی دی او دواړو امامانو ورباندې سکوت کړی دی ،او دواړو په نيز دا حديث حجت دی ځکه خو يې راوړي دی او باب يې ورته منعقد کړی دی .

ابن جرير رحمه الله هم همدا حديث ناسخ ګرځولي دی، نو دا حديث د ابن کثير رحمه الله او د ابن جرير رحمه الله په نيز صحيح دی، لکه څرنګه يې چې ورته په مستدرک حاکم کې صحيح الاسناد ويلی دی او همدا د امام فخرالدين الرازی رحمه الله تحقيق هم دی او امام ابوبکر محمد بن موسی بن عثمان الحازمی رحمه الله په کتاب الاعتبار کې د خپل سند سره ليکلي دي چې:

فَاسْتَقْبَلَ النَّاسُ الطَّلَاقَ جَدِيدًا يَوْمَئِذٍ مَنْ كَانَ مِنْهُمْ طَلَّقَ أَوْلَمْ يُطَلِّقْ... ،حَتّٰى وَقَعَ الْإِجْمَاعُ عَلٰى نَسْخِ الْحُكْمِ الْأَوَّلِ، وَدَلَّ ظَاهِرُ الْكِتَابِ عَلٰى نَقِيضِهِ، وَجَاءَتِ السُّنَّةُ مُفَسِّرَةً لِلْكِتَابِ مُبِينَةً رَفْعَ الْحُكْمِ الْأَوَّلِ الخ ص ١٨٢ )

او خپله علامه ابن القيم رحمه الله په زاد المعاد مصری ج ٢ص ٢٥۴ ) صفحه کې ليکلي دي چې (تفسير الصحابي حجة وقال الحاكم هوعندنامرفوع انتهي .

او چې کله د ابن عباس ﷺ د مسلم شريف جديث د اجماع څخه مخالف و ، نو خپله د ابن تيميه رحمه الله د فرمان څخه هم معلوميږي چې په دې حديث باندې عمل ندی پکار. د ابن تيميه رحمه الله په فتاوی جلد دويم ص ٣٥٩ کې ليکل شوي دی چې : وَالْخَبَرُ الْوَاحِدُ إِذَا خَالَفَ الْمَشْهُورَ الْمُسْتَفِيضَ كَانَ شَاذًّا وَقَدْ يَكُونُ مَنْسُوخًا) وهذا كذلك فافهم وتدبر.

او دسنن ابی داود دنسخ دحدیث په سند کې یوراوی علی بن الحسین دی او بل راوی حسین بن واقد رحمه الله دی، په دې دواړو باندې علامه ابن قیم د وَهَم اعتراض کړی دی، لکن دامام انسائی رحمه الله په شان متشدد او نورو محدثینو ورته ( لیس به باس ) ویلي دي اودوهم څخه څوک خالي دی؟ لهذا دا چندان جرحه نده، روای معتبردی.

او حسین بن واقد رحمه الله دمسلم شریف راوي دی، او یحیی بن معین رحمه الله ورته ثقه ویلی دی. لهذا احدیث حسن صحیح دی، د عمل اود استدلال قابل دی.

بعضې خلکو ویلي دي چې دا د ابن عباس ﷺ سهوه ده، لکن دا غلطه خبره ده، ځکه چې دابن عباس ﷺ څخه چې د ابوداود په روایت کې سهوه وشوه، نو دمسلم په روایت کې به هم ترینه سهوه شوي وي. فلا حُجّة فیه. دامام رازی رحمه الله دقول څخه هم نسخه مغلومیږي. [وګوره تفسیر کبیرج ۲ص ۲۴۸].

**اووم** : محدثینو د مسلم شریف حدیث ته شاذ هم ویلی دی.

**اتم** : د مسلم شریف په روایت کې اضطراب هم دی.

**نهم** : د ابن عباس ﷺ د مسلم شریف حدیث مرفوع ندی، دا د بعضو هغو صحابه وورضی الله تعالی عنهم فعل دی چې نسخ ورته نه وه معلومه. کما في الوجه الثالث والرابع.

**لسم** : چې د مسلم شریف دا حدیث د امام حازمی رحمه الله او د تفسیر ابن جریر رحمه الله اود ابن کثیر رحمه الله د تحقیق مطابق حجت نه دی، ځکه چې د قران د ظاهر، د سنت صحیحه، داجماع دصحابه وو اود اجماع د ایمه وو او د محدثینو د مذهب څخه مخالف دی.

اصل خبره داده چې مجیب مرحوم چې کومه خبره لیکلې ده چې: درې طلاقه په یو مجلس کې په یو حسابیږي.

نو دا خبره دصحابه وو، تابعینو، تبع تابعینو، د ایمهء مجتهدینو، اود متقدمینو محدثینو د مسلک څخه مخالفه ده، داخبره او سوه کاله بعد راپیدشوه چې درې طلاقه په یو حسابیږي او هغو خلکو راپیدا کړه چې دابن تیمیه رحمه الله د فتوی پابند او معتقدین وو، دا خبره د اتمې صدۍ په اوایلو کې ابن تیمیه رحمه الله وکړه چې د دې په وجه ورسره د وخت علماو وسخت مخالفت وکړو.

مرحوم نواب صديق حسن خان په اتحاف النبلاء کښ دابن تيميه رحمه الله تفردات رانقل کړي دي، چې په اول کښ يې دامسئله ده .

کله چې ابن تيميه رحمه الله دا فتوى ورکړه، نو ډيره غوغا جوړه شوه ، په ابن تيميه رحمه الله اودده په شاګرد ابن قيم رحمه الله باندې دديې په وجه ډير مصيبتونه راغلل، خلکو ابن قيم رحمه الله په اوښ سپور کړ اود وهلو وهلو سره يې په بازار کښ وګرځاوه. اوبيا يې بندي کړو، ځکه چې په هغه وخت کښ دامسئله د روافضو شعار و . [اتحاف النبلاء ص ۳۱۸ وسبل السلام شرح بلوغ المرام مطبع فاروقي ډهلي ج۲ ص ۹۸ والتاج المکلل مصنفه نواب صديق حسن خان ص ۲۸٦] .

نواب صديق حسن خان دلته ليکلي دي چې سره ددې چې امام شمس الدين ذهبى رحمه الله د ابن تيميه رحمه الله شاګرد او معتقد و ، لکن په دې مسئله کښ ورسره سخت مخالف دى . [التاج المکلل ص ۲۸۸ وص ۲۸۹ ]. البته ددې زمانې د اهلحديثو علماء چونکې د ابن تيميه رحمه الله اودده د شاګرد ابن قيم رحمه الله معتقدين دي، نو ځکه ورسره متفق دي اودوي دې ته د محدثينو مسلک وائي، اودا يې مشهوره کړې ده چې دا د محدثينو مسلک دى اوددې مسلک سره صرف احناف مخالف دي. له دې وجهې يې بعضې خلک سمدستي ومني اوددې په خلاف ردونه کوي. حالانکې دافتوا او يامذهب په اتمه صدى د هجرت کښ وجود ته راغلى دى اود ايمه وو تقليد په څلورمه صدى د هجرت شروع شوى دى .

ددې مثال داسې دى لکه بريلويانو چې د اهل سنت والجماعت په نوم غاصبانه قبضه کړې ده اونورخلک يې په دې مشهورکړي دي چې دوى د اهل سنت والجماعت څخه خارج دي، اويالکه څرنګه چې مودودي خپل جماعت په جماعت اسلامي مشهورکړى دى. سره ددينه چې ددوي اسلام يوخودساخته اسلام دى .

ولعل فيه کفاية لمن له دراية والله يهدى من يشاء الي صراط مستقيم يسئلونک احقُ هو قُل.اِى وَ رَبِّى اِنّهُ لحَقّ. ابوسعيد شرف الدين دهلوي (فتاوى ثنائيه جلد ۲ص ۴۳ تاص ۴٦ )مکتبه اشاعت ودينيات مومن پوره بمبى ۱۱)

غیر مقلدین دې په پوره فکر د خپل مشر په دې مفصله وینا کې سوچ وکړي او عوام دې د روافضو په سرک نه روانوي.

**اووم جواب:**

په دې حدیث کې دا راغله چې د رسول الله ﷺ او د ابوبکر ؓ او د عمر ؓ د خلافت په اولو دوه کلونو کې درې طلاقه په یو حسابیدل، لکن دا د دې تقاضا نه کوي چې دا د رسول الله ﷺ په امر او یا اجازت باندې و.

بعضې کارونه داسې وو چې د رسول الله ﷺ په زمانه کې کیدل لکن رسول الله ﷺ به ورباندې خبر هم نه وو. مثلاً حضرت عمار ؓ د رسول الله ﷺ په زمانه کې د جنابت څخه د تیمم په وخت کې ټول بدن په خاورو لړلی وو، لکن رسول الله ﷺ د ده تغلیط وکړو. (بخاري ج۱ ص ۵۰) او حضرت عمر ؓ به چې کله د جنابت په حالت کې او به پیدا نکړي نو لمونځ به یې نه کولو، بخاري ج ۱ ص ۴۸).

همدا رنګې په شلګونو داسې واقعات دی چې د رسول الله ﷺ په زمانه کې شوي دي لکن چې رسول الله ﷺ ورباندې خبر ندی نو څکه څوک ورته جایز نه وائي.

د حضرت ابن عباس ؓ حدیث هم نه د رسول الله ﷺ قول دی او نه فعل دی او نه تقریر دی نو لامذهبانو ته څرنګه حجت شو؟

لکه څرنګه چې د اهل ظواهرو مشهور محدث علامه ابن حزم رحمه الله لیکي چې: فَلَيْسَ شَيْءٌ مِنْهُ أَنَّهُ -عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ- هُوَ الَّذِي جَعَلَهَا وَاحِدَةً، أَوْرَدَّهَا إِلَى الْوَاحِدَةِ، وَلَا أَنَّهُ -عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ- عَلِمَ بِذَلِكَ فَأَقَرَّهُ، وَلَا حُجَّةَ إِلَّا فِيمَا صَحَّ أَنَّهُ -عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ- قَالَهُ أَوْ فَعَلَهُ أَوْ عَلِمَهُ فَلَمْ يُنْكِرْهُ. (محلی جلد۱۰ ص ۲۰۶).

په دې حدیث کې هیڅ داسې خبره نده راغلی چې رسول الله ﷺ دیته یو ویلي دي او یا یې یو ته راجع کړي دي او نه په کې داشته چې رسول الله ﷺ په دې باندې خبر وو او بیا یې هم ورته څه ندي ویلي، حالانکې حجت صرف د رسول الله ﷺ قول، فعل، او تقریر دی.

د ابن حزم رحمه الله د عبارت څخه واضحه شوه چې دا د سره د رسول الله ﷺ حدیث ندی څکه چې د مرفوع حدیث د غه درې اقسام دي، که چیرته دا د رسول الله ﷺ حدیث وی، نو بیا خو حضرت ابن عباس ؓ د حضرت عمر ؓ په دوره د خلافت کې ژوندی و، نو ولې یې د حضرت عمر ؓ مخالفت نکولو؟ ایا د غیر مقلدینو غیرت د ابن عباس ؓ څخه زیات دي؟

اوخونـدوره خبـره داده چـې خپلـه دابـن عبـاس ﷺ فتـوى داوه چـې دري طلاقـه پـه دريو طلاقو حسابيږي . ( ابوداود ج ا ص ۲۹۹ منتقی ص ۲۳۷ )

**اتم جواب** : امام بيهقي په خپل سند سره دالامام الشافعي څخه نقل کړي دي چې ممکنه ده چې دابن عباس ﷺ روايت منسوخ وي، که ابن عباس ﷺ ته يې نسخ نه وه معلومه، نو هيڅکله به يې ددې په خلاف فتوی نه وه ورکړی او هيڅکله به يې ددې په خلاف عمل نه وو کړی. ( سنن الکبری ج ۷ ص ۳۳۸ په ابوداود او په نسائي کې صحيح حديث دی حضرت عبد الله بن عباس ﷺ فرمائي چې په اول کې ددريو طلاقونو څخه وروسته رجوع جايزه وه چې بيا دا حکم منسوخ شو (نسائی ج ۲ ص ۱۰۳) وابوداود ج ا ص ۲۹۸ او علامه ابوبکر محمد بن موسی الحازمي الشافعي رحمه الله المتوفی (۵۸۴ھ ) فرمائي چې په اول کې ددريو طلاقونو څخه وروسته رجوع جايزه وه، لکن وروسته دا حکم بالاتفاق منسوخ شو، دقران ظاهر او احاديث په دې دلالت کوي (کتاب الاعتبار ص ۱۸۱)

علامه الوسی رحمه الله او حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چې: د صحابه وو اجماع بغير دعلم دنسخ څخه نه کيږي (روح المعاني ج ۲ ص ۱۱۸ فتح الباری ج ۱۳ ص ۲۶۷ )

دحضرت ابن عباس ﷺ ددې روايت په خلاف فتوی ورکول دنسخ دليل دی .

د غير مقلدينو سرګروه نواب صديق حسن خان ليکي چې:

( و مخالفت راوي از برای مروي دليل است برانکه علم ناسخ داردچه حمل ان برسلامت واجب است (دليل الطالب ص ٤٧٦)

شوکاني دابن عباس ﷺ دفتوی په باره کې ليکي چې: د ابن عباس ﷺ څخه خپل روايت هيرشوی وو. (نيل الاوطار جلد ۶ ص ۲۴۷ )

ليکن دا خبره بالکل مردوده ده، ځکه چې حضرت ابن عباس ﷺ دا فتوی په متعددو ځايونو کې دنورو صحابه وو او دتابعينو په موجودګی کې ورکوله، نو ايا په هيڅ ځای کې هم ورته خپل روايت نه و ياد؟ له دې وجهې مشهور غير مقلد عبد الله روپړي هم دشوکاني په دې خبره سخت رد کړی دی .

**نهم جواب** : د حضرت ابن عباس ﷺ د حديث معنی دانه ده چې د حضرت رسول الله ﷺ او د حضرت ابوبکر ﷺ په زمانه کې دري طلاقه په يو حسابيدل، بلکه معنی يې داده چې د رسول الله ﷺ او د ابوبکر صديق

ﷺ په زمانه کې عموما خلکو يو يو طلاق ورکولو، ددې ښځه وروسته به که خاوند مناسب ګڼله نو په دوهم او دریم طهر کې به يې نور دواړه طلاقونه هم ورکړل او که نه په همدې يو طلاق به يې اکتفاء کوله او دعدت دتیریدلو ښځه وروسته به ښځه جدا کیدله، اګرچې درې طلاقه به هم بعضې خلکو اچول، لکن هغه نسبتاکم رواو ددې معنی لپاره دابراهیم نخعی رحمه الله يو روايت قرينه ده چې: كَانُوا يَسْتَحِبُّونَ أَنْ يُطَلِّقَهَا وَاحِدَةً، ثُمَّ يَتْرُكَهَا حَتَّى تَحِيضَ ثَلَاثَ حِيَضٍ. (نصب الرايه ج ۳ص ۲۲۰ )ودراية ص ۲۲٦ )

حافظ ابن حجر رحمه الله دی حديث ته صحيح ويلی دي .درايه ص ۲۲٦ او محدث کبير امام عبيد الله بن عبد الكريم رحمه الله المتوفی (۲٦۸هـ د حضرت ابن عباس رضی الله عنه د حديث همدا مطلب بيان کړی دی (مَعْنَى هَذَا الْحَدِيثِ عِنْدِي أَنَّ مَا تُطَلِّقُونَ أَنْتُمْ ثَلَاثًا كَانُوا يُطَلِّقُونَ وَاحِدَةً فِي زَمَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبِي بَكْرٍ وَعُمَرَ رضی الله عنهما. (سنن الكبرى ج ۷ص ۳۳۸ )

ددې حديث معنی داده چې تاسو چې اوس درې طلاقه ورکوئ، صحابه وو رضی الله عنهم به د رسول الله ﷺ اوداابوبکر رضی الله عنه او دعمر رضی الله عنه په زمانو کې يو طلاق ورکولو، تاسو ديو طلاق ورکول پرېښودل او درې طلاقونه ورکول مو شروع کړل، لکه ﴿أَجَعَلَ الْآلِهَةَ إِلَٰهًا وَاحِدًا﴾ ددې معنی داده چې ايا ډير خدايان يې پرېښودل او يو خدای يې مختاره کړو؟

همدا معنی نووی رحمه الله، امام خطابی رحمه الله، اميريمانی رحمه الله او علامه زرقانی رحمهم الله هم ذکر کړې ده . [ نووی ج۱ص ۴۷۸ معالم السنن ج ۳ص ۱۲۷ سبل السلام ج ۳ص ۲۱۱ زرقانی شرح موطاج ۳ص ۱٦۷].

**لسم جواب** : که په طريقې دفرض المحال سره ومنو چې: د حضرت ابن عباس رضی الله عنه روايت په ظاهر حمل دی او صحيح دی، نو بيا دا وايو چې ددې روايت دابن عباس رضی الله عنه دهغو نورو رواياتو سره تعارض دی کوم چې جمهورو علماوو ذکر کړي دي، نو دتعارض په صورت کې به هم د جمهورو علماوو دلايلوته دڅووجوڅخه ترجيح ورکولی شي.

(۱) علامه حازمی شافعی رحمه الله يو قاعده بيان کړی ده چې کله داحاديثو په مابين کې تعارض راشي، نو هغه حديث ته به ترجيح ورکولی شي چې دقرآن د ظاهر سره موافق وي. [کتاب الاعتبار ص۱٦ ] او مخکې داخبره تفصيلا ذکر شوه چې دقرآن د ظاهر سره د جمهورو مذهب موافق دی.

(۲) کله چې د دوه احاديثو په مابين کې تعارض راشي، نو هغه حديث ته به ترجيح ورکولی شي چې په کوم حديث باندې د جمهور امت تعامل وي. [کتاب الاعتبار ص ۱۸] او د جمهورو تعامل په دې خبره و چې درې طلاقه درې دي.

(۳) د محرم او د مبيح په مابين کې چې تعارض راشي نو ترجيح به محرم ته ورکولې شي. ص (۲۱)

**يوولسم جواب:** امام نووي رحمه الله فرمايي چې: فَالْأَصَحُّ أَنَّ مَعْنَاهُ أَنَّهُ كَانَ فِي أَوَّلِ الْأَمْرِ إِذَا قَالَ لَهَا أَنْتِ طَالِقٌ أَنْتِ طَالِقٌ أَنْتِ طَالِقٌ وَلَمْ يَنْوِ تَأْكِيدًا وَلَا اسْتِئْنَافًا يُحْكَمُ بِوُقُوعِ طَلْقَةٍ لِقِلَّةِ إِرَادَتِهِمُ الْاِسْتِئْنَافَ بِذٰلِكَ فَحُمِلَ عَلَى الْغَالِبِ الَّذِي هُوَ إِرَادَةُ التَّأْكِيدِ فَلَمَّا كَانَ فِي زَمَنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وَكَثُرَ اسْتِعْمَالُ النَّاسِ بِهٰذِهِ الصِّيغَةِ وَغَلَبَ مِنْهُمْ إِرَادَةُ الْاِسْتِئْنَافِ بِهَا حُمِلَتْ عِنْدَ الْإِطْلَاقِ عَلَى الثَّلَاثِ عَمَلًا بِالْغَالِبِ السَّابِقِ إِلَى الْفَهْمِ مِنْهَا فِي ذٰلِكَ الْعَصْرِ (شرح مسلم ج ۲ ص ۴۷۸)

**دولسم جواب:** ددې حديث په سند کې يو راوي طاوس يمانی دی، امام سفيان ثوري، امام قتيبه او امام ذهبي ورته شيعه ويلي دي (سير اعلام النبلاء ج ٥ صـ ٢٧، المعارف لابن قتيبه صـ ٢٦٨)

بل راوي پکې ابن جريج دی چې شيعه او متعه باز وو (تذكرة الحفاظ ج ١ صـ ١٢٨. سير اعلام النبلاء ج ٥ صـ ٤٩٨، ميزان الاعتدال للذهبي ج ٢ صـ ٥٠٩)

او بدعتي روايت که د بدعاتو په تائيد کې وو خو نه به قبليږي (شرح نخبة الفكر مع شرح ملا علي القاري صـ ١٥٩)

**دوهم دليل:** حضرت رکانة ﷺ خپلې بی بی ته درې طلاقه ورکړي وو، بيا ورته رسول الله ﷺ وفرمايل چې ای رکانة ﷺ! ته بيرته خپلې ميرمنې ته رجوع وکړه! حضرت رکانه رضی الله تعالی عنه ورته وفرمايل چې يا رسول الله ﷺ! ما خو خپلې بی بی ته درې طلاقه ورکړي دي، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل چې زه پوهيږم، ته رجوع وکړه. [ابو داود ج ۱ ص ۲۹۸ وسنن الکبرج ۷ ص ۳۳۹].

**اجمالي جوابونه:** ۱- دا حديث مضطرب دی په بعضې رواياتو کې راځي چې رکانة درې طلاقه ورکړي وو په بعضو کې راځي چې رکانة د (البتة) لفظ ذکر کړی وو او په بعضو کې راځي چې رکانة يو طلاق ورکړی وو.

٢-كه د اضطراب له وجې دا حديث ضعيف نه شي بيا هم هغه روايت ته ترجيح ده چې په هغې کې د البتة لفظ دی، امام ابو داود رحمه الله فرمايي (لأنهم ولد الرجل وأهل بيته وهم أعلم به) حافظ ابن حجر دامام ابو داود ددې ترجيح په باره کې فرمايي چې: وهو تعليل قوى لجواز أن يكون بعض رواته حمل البتة على الثلاث فقال طلقها ثلاثا.

٣- دركانة رضى الله عنه د درې طلاقو روايت ابن عباس رضى الله عنه ته منسوب دی او د ابن عباس رضى الله عنه خپلې فتوې داسې وې چې درې طلاقه درې دي.

٤-د ركانة رضى الله عنه حديث دجمهورو لپاره دليل دی ځکه چې د رکانة په حديث کې راځي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم ورته قسم ورکړو چې: (والله ما أردت الا واحدة؟) نو كه درې طلاقه په يو حسابيدلی نو بيا دې قسم ورکولو ته څه ضرورت وو؟

**تفصيلي جوابونه:**

د جوابونو دتفصيل څخه مخکې د رکانة رضى الله عنه د دريو طلاقو دحديث درې سندونه ذکر کوو(١) ابن جريج عن بعض بني ابى رافع عن عكرمه عن ابن عباس (سنن أبى داود ج ١صـ٢٩٨)

(٢)ابن جريج عن محمد بن عبيد الله بن أبى رافع عن عكرمه عن ابن عباس (مستدرك حاكم ج ٢صـ ٤٩١)

٣-محمد بن اسحق عن داود بن الحصين عن عكرمة عن ابن عباس (سنن كبرى بيهقي ج ٧صـ٣٣٩)

**اول جواب** : ددې حديث په اول سند کې (بعض بني ابى رافع) دی او هغه مجهول دی، لکه څرنګه چې امام نووی رحمه الله فرمائي چې: (واما الرواية اللتى رواها المخالفون أن ركانة طلق ثلاثا فجعلها واحدة فرواية ضعيفة عن قوم مجهولين) مخالفين چې دركانة رضى الله عنه کوم روايت ذکر کوي چې رکانة رضى الله عنه خپله بي بي په دريو طلاقو طلاقه کړې وه، نو نبي كريم صلى الله عليه وسلم ترينه يو جوړ کړو نو دا روايت ضعيف دی، ځکه چې په دې کې مجهول راوي دی. (شرح مسلم ج ١ص ٤٧٨)

او مشهور ظاهري ابن حزم رحمه الله فرمائي چې (بعض ابى رافع) مجهول دی او د مجهول سند څخه استدلال ندی صحيح. [محلى جلد ١٠ص ١٦٨]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې: وشيخ ابن جريح الذى وصفه بأنه بعض بني أبي رافع لاعرف من هو؟ (الاصابة ج ٤ صـ ٣٨٥)

حافظ ابن حجر رحمه الله په تهذيب التهذيب كې يو احتمال ليكلى دى چې كيدلى شي چې ددې مصداق فضل بن عبيد الله بن أبى رافع دى، لكن دا بى دليله احتمال دى، همدارنګه ددې احتمال تعارض د مستدرک حاكم د سند سره راځي چې هلته د بعض بني ابى رافع په ځاى محمد بن عبيد الله بن أبى رافع ذكر شوى دى.

لهذا د حلالو اود حرامو په مسئله كې د داسې سند څخه استدلال نه دى صحيح . مولنا خليل احمد سهارنپورى فرمائي چې: په مستدرک كې د ( بعض بنى أبى رافع ) تعين هم راغلى دى، چې دا محمد بن عبيد الله بن ابى رافع دى [ بذل المجهود ج ٣ ص ٦٩ ] كما فى السند الثانى لكن دا نهايت ضعيف او كمزورى راوي دى.

علامه ذهبي رحمه الله فرمائي چې: امام بخارى رحمه الله ده ته منكر الحديث ويلى دي(الضعفاء الصغيرج ١ صـ١٠٨). او امام ابن معين رحمه الله ورته ليس بشئ ويلى دى (الكامل لابن عدى ج ٦ صـ ١١٣) او امام ابو حاتم رحمه الله ورته ضعيف الحديث او منكر الحديث جدا ويلي دي (ميزان الاعتدال ج ٣ صـ ٦٣٥) امام دارقطنى رحمه الله ورته متروک ويلى دى (تهذيب التهذيب ج ٩ صـ ٢٨٦) علامه ذهبي رحمه الله فرمايي چې: (ضعفوه) محدثينو ده ته ضعيف ويلى دى (ميزان الاعتدال ج ٣ صـ ٦٣٥) نو دا نهايت ضعيف او كمزورى راوي دى او علامه ابن عدى رحمه الله دا د كوفې په شيعه ګانو كې شميرلى دى وهو فى عداد شيعة الكوفة (الكامل ج ٦ صـ ١١٤) او د شيعه ګانو مذهب مخكې بيان شو چې هغوئ درې طلاقه په يو حسابوي. د وكتوريانو امام ابن القيم رحمه الله هم ورته ضعيف ويلى دى، فرمايي چې: معمر و ابوه ضعيفان (زاد المعاد ج ١ صـ ١٩٨) د وكتوريانو د جرح او د تعديل امام الباني ليكي چې: (قلت وهذا اسناد ضعيف جداً معمر بن محمد بن عبيدالله وابوه كلاهما منكر الحديث كما قال البخاري (سلسلة الاحاديث الضعيفة والموضوعة ج ٤ صـ ٣٣٩)

يو بل روايت هم شيعه ګانو ګډوډ كړى دى، لکه څرنګه چې امام دارقطنى رحمه الله فرمائي چې: كومو راويانو چې دا بيان كړى دى چې حضرت عبد الله بن عمر ﷺ د حيض په حالت كې خپلې ښځې ته درې

طلاقه ورکړي وو، هغه ټول راويان شيعه ګان دي. صحيح روايت دادی چې هغوی ﷺ صِرف يو طلاق ورکړی و (دارقطني ج ۲ص ۴۲۷). او امام بخاری رحمه الله فرمائي چې د کوم راوي په باره کې چې منکر الحديث ووېلی شي د هغه څخه روايت نه دی جايز. [ميزان الاعتدال ج ۱ص ۵ وطبقات سبکي ج ۲ص ۹ وتدريب الراوی ص ۲۳۵ ]. نو د امام بخاری رحمه الله د تحقيق مطابق دد ې روايت بيانول صحيح نه دي.

**دوهم جواب**: د حضرت رکانة ﷺ په صحيح حديث کې د دريو طلاقونو په ځای د (البتّة) لفظ دی، لکه څرنګه چې امام ابوداود رحمه الله فرمائي چې: وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ ابْنِ جُرَيْجٍ رحمه الله أَنَّ رُكَانَةَ طَلَّقَ امْرَأَتَهُ ثَلَاثًا، لِأَنَّهُمْ أَهْلُ بَيْتِهِ، وَهُمْ أَعْلَمُ بِهِ، ...الخ)

د حضرت رکانه ﷺ دغه روايت، په کوم کې چې د (البتّة) لفظ دی د ابن جريج د روايت څخه زيات صحيح دی په کوم چې راغلې دی چې رکانة ﷺ خپله ښځه په دريو طلاقونو طلاقه کړې وه، ځکه چې د (البتّة) والا حديث دده د کور د خلکو روايت دی او هغوئ د هرچا څخه په دې معامله ښه پوهيدل. [ابوداود ج ۱ص ۳۰۱ وسنن الکبری ج ۷ص ۳۳۹ ].

او قاضی شوکانی ليکي چې: مَا رُوِيَ فِي قِصَّةِ رُكَانَةَ رضي الله عنه أَنَّهُ طَلَّقَهَا أَلْبَتَّةَ لَا ثَلَاثًا...الخ. (نيل الاوطار ج ٦ص ۲۳٦).

د حضرت رکانة ﷺ په واقعه کې صحيح روايت دادی چې هغه خپله ښځه په (البتّة) طلاق طلاقه کړې وه، نه په دريو طلاقونو، د امام نووی رحمه الله د عبارت څخه معلوميږ چې بعض راويانو د غلط نهمی له وجهې د (البتّة) د لفظ څخه درې رافهمولي دي (جلد ۱ص ۴۷۸)

خلاصه دا چې: ددې روايت څخه (۱) د درې طلاقونو اثبات (۲) او بيا درې په يو حسابول (۳) بيا خاوند ته د رجوع د حق ثابتول د (ظلمات بعضها فوق بعض) مصداق دی او د حلالو او د حرامو په مسئله کې په داسې ضعيفو کمزورو او مجهولو روايتونو باندې اعتماد هيڅکله ندی جايز او هغه هم چې بيا د صحيحو صريحو رواياتو او د اجماع د امت په مقابله کې راشي.

**دريم دليل**: د حضرت ابن عباس ﷺ څخه روايت دی چې حضرت رکانة ﷺ خپلې بی بی ﷺ ته په يو مجلس کې درې طلاقه ورکړي وو، بيا وروسته ډير پښيمانه و، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل چې: تا څرنګه درې طلاقه ورکړي دي؟

هغه ورته وفرمايل چې ماپه يو مجلس کې درې طلاقه ورکړې دي ! رسول الله ﷺ ورته وفرمايل چې ته رجوع وکړه ...الخ . (مسند احمد ج ١ص ٢٦٥ وسنن الكبرى ج ٧ص ٣٣٩)

قاضی شوکانی ليکي چې ددې تخريج امام احمد رحمه الله او ابو يعلی رحمه الله کړی دی او امام ابويعلی رحمه الله ددې تصحيح کړی ده . (نيل الاوطار ج ٦ص ٢٤٦)

**اول جواب** : ددې حديث په سند کې محمدبن اسحق دی امام نسائی رحمه الله فرمائي چې هغه قوي ندی .[ضعفاء صغير للنسائي ص ٥٢]. امام ابو حاتم فرمائي چې هغه ضعيف دی . (كتاب العلل ج ١ص ٤٣٣).

امام دارقطنی رحمه الله فرمائي چې هغه قابل د احتجاج نه دی . محدث سليمان تيمی رحمه الله فرمائي چې هغه دروغژن دی . امام هشام ابن عروة رحمه الله فرمائي چې هغه دروغژن دی. امام يحيی بن سعيد القطان رحمه الله فرمائي چې زه داشاهدي ورکوم چې هغه دروغژن دی ( ميزان ج ٣ص ٢١ )

امام مالک رحمه الله فرمائي چې دجال من الدجالة [تهذيب ج ٩ ص ٤١ تاريخ ،بغداد ج ١ص ٢٢٣ ج ٢ص ١٩]همدارنګه امام مالک رحمه الله ورته کذاب هم ويلی دی . [تاريخ بغداد ج ١ ص ٢٢٣ فی البعض ج ٢ص ١٩]

علامه ذهبی رحمه الله فرمائي چې د حلالو او د حرامو په مسئله کې له ده څخه استدلال صحيح ندی. (تذکره ج ١ص ١٦٣، ج ١ص ١٣٠) همدا خبره حافظ ابن حجر رحمه الله هم کړی ده ( الدراية ص ١٩٣ )

دغير مقلدينو سرګروه نواب صديق حسن خان ديو سند په تحقيق کې ليکي چې: ( در سندش نيزهمان محمدبن اسحق است ومحمدبن اسحق حجت نيست ) [ دليل الطالب ص ٢٣٩ ].

حافظ ابن حجر فرمايي چې: رُمِيَ بالتشيع (تقريب التهذيب ص ٢٩٠) علامه خطيب البغدادي فرمايي چې: أنه كان يتشيّع (تاريخ بغداد ج ١ص ٢٢٤) علامه ابن عساكر فرمايي چې: محمد بن اسحاق وسلمة الفضل تشيعان (تاريخ ابن عساكر ج ٥٩ص ٢٠٥) علامه ذهبي فرمايي چې: وقد أمسک عن الاحتجاج بروايات ابن اسحاق غير واحد من العلماء لاشياء منها تشيعه ،(سير اعلام النبلاء ج ٧ص ٣٩) علامه ابن رجب الحنبلي فرمايي چې: ولا ريب أنه كان يتهم بأنواع من البدع من التشيّع والقدر وغيرهما (شرح علل الترمذی لابن رجب ج ١ص ٤١٩)

حافظ ابن رشد رحمه الله فرمائي چې د محمد بن اسحق دا روایت په وهم باندې بناء دی، ځکه چې ثقه راویانو روایت داسې کړی دی چې حضرت رکانة رضی الله تعالی عنه خپله بي بي په (البتّة) طلاقه کړې وه، نه په دریو طلاقونو. (بدایة المجتهد، ج ٢ ص ٦١)

**دوهم جواب**: ددې حدیث په سند کې یو اځې یو ضعیف راوی ندی بلکې ددې په سند کې داود بن حصین هم شته کوم چې د عکرمه رحمه الله څخه روایت کوي. امام ابوذرعه رحمه الله ورته ضعیف وائي. او امام سفیان بن عیینه رحمه الله فرمائي چې زه دده د احادیثو څخه تبنتم. (میزان ج ١ ص ٣١٧). همدارنګه امام ابوحاتم رحمه الله فرمائي چې هغه قوی نه وو. امام ساجي رحمه الله فرمائي چې هغه منکر الحدیث و، همدارنګه فرمایي چې د خوارجو څخه وو منکر الحدیث یتهم برأی الخوارج (تهذیب التهذیب ج ٣ ص ١٥٧) ابن عیینه فرمایي چې: کنا نتقی حدیث داود بن الحصین (الجرح والتعدیل ج ١ ص ٤٠) ابن حبان رحمه الله فرمایي چې: کان یذهب مذهب الشراة، الثقات لابن حبان ج ٦ ص ٢٨٤) رُمی برأی الخوارج شرح الزرقانی ج ١ ص ٢٧٧) مصعب فرمایي چې: کان یتّهم برأی الخوارج (التمهید ج ٢ ص ٣١٠) حافظ ابن عبد البر رحمه الله فرمایي چې: کانا (داود بن الحصین وثور بن یزید) ینسبان الی القدر والی مذهب الخوارج (التمهید ج٢ ص ٣١٠)

محدث جوزقانی رحمه الله فرمائي چې محدثین دده د احادیثو صفت نه کوي. (تهذیب التهذیب ج ٣ ص ١٨١) همدارنګه امام علی بن المدینی رحمه الله او امام ابوداود رحمه الله فرمائي چې د داود بن حصین روایت د عکرمه رحمه الله څخه منکر دی. (میزان ج ١ ص ٣١٧) او دا روایت هم د عکرمه رحمه الله څخه دی. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چې ثقة الا في عکرمه. (تقریب ص ١١٦)

له دې وجهې امام بهیقی رحمه الله فرمائي چې دده د احادیثو څخه استدلال نه دی جایز. (سنن الکبری ج ٧ ص ٣٣٩)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چې دا حدیث معلول دی. (تلخیص الحبیر ص ٣١٩)

علامه ذهبی رحمه الله دا روایت د داود بن حصین په مناکیرو کې شمارلی دی. (میزان ج ١ ص ٣١٧). همدارنګه مولوی شمس الحق عظیم ابادی لیکلي دي چې حافظ ابن القیم دې حدیث ته حسن [illegible] دی. (تعلیق المغنی ج ٢ ص ٤٤٦)

لکن غیرمقلد حافظ عبدالله روپړی لیکي چې: د حافظ ابن القیم دا خبره غلطه ده، ځکه چې دا خبره ظاهره ده چې د سند د حسنوالي څخه خدیث هلته حسن ګرځي چې په حدیث کې بل کوم عیب نه وي او دلته نورعیبونه موجود دي. لکه څرنګه چې حافظ ابن حجر رحمه الله ورته معلول ویلی دي، خاصکر د امام احمد رحمه الله فتوی هم ددې په خلاف ده (ضمیمه ص ١٦)

دا هغه روایات وو چې غیرمقلدینو ددې روایاتو په وجه د قران مقابله شروع کړې ده او ددې روایاتو په وجه یې د صحیحو احادیثو مقابله شروع کړې ده. او د قران او د حدیث او د جمهور امت په خلاف باندې قطعي حراموته حلال وایي او د مناظرو چیلنجونه ورکوي.

خلاصه دا چې: درې طلاقونو ته یو ویل نه درایةً صحیح دي او نه روایةً، بلکې دا د غلط فهمی نتیجه ده.

او په دې غلط فهمی کې مخکې هم بعضې خلک مبتلا وو، لکن هغه خلک د انصاف او د دیانت خاوندان وو، چې کله به په خپله غلطی باندې پوه شو او حق به ورته ښکاره شو. نو رجوع به یې وکړه.

لکن نن د سر څخه تیریدل اسان دي لکن د جهالت او د تعصب پرېښودل سخت دي. الاّ ماشاءالله.

## یوه واقعه

حضرت محمدبن سیرین رحمه الله فرمائي چې ماته ځینو هغو راویانو چې زما ورباندې اعتماد و؛ دا حدیث واورولو چې حضرت عبدالله بن عمر ﷺ خپلې ښځې ته د حیض په حالت کې درې طلاقه ورکړي وو؛ بیا هم ورته رسول الله ﷺ د رجوع حکم کړی و.

نو زه شل کاله په دې غلط فهمی کې مبتلا وم، د شلو کالو څخه وروسته یو ډیر قوي راوي ابوغلاب یونس بن جبیر رحمه الله راته حدیث واورولو چې حضرت عبدالله بن عمر ﷺ خپلې بي بي ته یو طلاق ورکړی و، درې طلاقه یې نه وو ورکړي او د دریو طلاقونو نسبت هغه ته غلط دی. (مسلم ج ١ ص ۴٧٧ و سُنن الکبری ص ٣٣۴)

نو غلط فهمي واقع کیږي، لکن د دلایلو د اوریدلو څخه وروسته هم ورباندې ټینګیدل خالص جهالت او تعصب دی.

**خلورم دلیل** : د لامذهبانو اخري حربه داده چې: ځینو احنافوپورې افتراء کوي چې ځینې احناف هم دریو طلاقونو ته یو وائي. اود مثال په طور د حضرت مولناعبدالحی المتوفی ۱۳۰۴ھ نوم پیش کوي چې مولناعبدالحی لکهنوي رحمه الله هم دا فتوي ورکړې ده چې درې طلاقه په یو حسابیږي. (فتاوی ثنائیه جلد ۲ص ۵۲ وغیره).

**الجواب** : د مولناعبدالحی رحمه الله فتوی په (مجموعة الفتاوی جلد ۱ص ۴۸۴ وص ۴۸۵) کې موجود ده اودا فتوی د (۱۲۹۰ھ) د جمادی الاولی د میاشتې ده چې ترجمه یې په لاندې ډول ده :

**استفتاء**: علماء ددین په دې مسئله کې څه فرمائي ؟ چې زید خپلې ښځې ته د غوصې په حالت کې وویل چې ته طلاقه یې! ته طلاقه یې! ته طلاقه یې! نوپه دې درې واړې ویلوسره طلاق واقع کیږي اوکه نه ؟ او که په حنفی مذهب کې واقع کیږي اوپه شافعی مذهب کې نه واقع کیږي نو ایا حنفی ته داجایزه ده چې پدغې خاصه مسئله کې په شافعي مذهب عمل وکړي ؟

**فتوی**: په دې مسئله کې د احنافوپه نزد درې طلاقه واقع کیږي، اوبغیر د تحلیل څخه دوباره نکاح نه کیږي.

لکن دضرورت په وخت کې کـه ددې ښځې جُدا کیدل ورتـه سخت و اود فسـاد احتمالات ډیرو و، نوکه دبل امام تقلید وکړي څه پروانلري ... لکن اولی داده چې داسې د کوم شافعي عـالم څخه فتـوی وغواړي اودهغه په قول عمل وکړي. والله اعلم. حرره محمد عبدالحی عفی عنه )

**(۱) الجواب** : دا خبره چې درې طلاقه درې دي، دقران، حدیث اود اجماع اود ایمهء اربعه وو په اتفاق قطعي ثابته ده، په دې مسئله کې نه دا امام مالک رحمه الله کوم اختلاف شته اونه دا امام شافعي رحمه الله کوم اختلاف شته. نو دا خبره چې داسې دې له کوم شافعي څخه فتوی وغواړي بالکل خیالي پلو دی. اودمولناعبدالحی رحمه الله د قلم د سرعت نتیجه ده چې ددلایلوپه مقابله کې هیڅ حیثیت نلري.

او دا هم ظاهره ده چې د حلالو اود حرامو مسئله په دلایلو باندې بناء وي اود دلایلوپه مقابله کې دکوم مفتی اویادکوم عالم دقلم خطائي ته هیڅ اعتبار نه وي.

**(۲) جواب** : دا فتوی خپله د مولنامرحوم نه ده، بلکې احتمال لري چې دا مُهمله فتوی دې الحاقي وي اوکه خپله دمولنافتوی شي، بیاهم دا فتوی ده د بلې فتـوی په وجـه مردوده اوباطلیږي. داوروستنې فتوی

د(۱۳۰۱هـ) د جمادی الاولی ده اوپه دې فتوی کې مستفتي یو نه دی، بلکې یو پوره جماعت دی. ددې استفتاء او جواب الفاظ په لاندې ډول دي:

**استفتاء:** د معسکر بنګلور د جماعت المسلمین ټول افراد، د جامع الکمالات، واقف الاحادیث والایات، علامة نبیل، محدث جلیل، امام المسلمین، مقدام المومنین، صاحب الدلیل القوی، سالک الطریق المستوی، قامع الاعتساف، محب الانصاف، مولی الاحناف حضرت ابو الحسنات الحاج المولوی، الحافظ، المفتي، الواعظ، الشیخ محمد عبد الحی اللکهنوی دام بالفیض الصوری والمعنوی په خدمت کې په ډیر عُجز او نیاز عرض کوو چې په لاندې مسئله کې مونږ ټولو ستاسو په فیصله باندې اتفاق کړی دی، هغه مسئله داسې ده چې: زید د غوصې په حالت کې خپلې ښځې ته په یو مجلس کې درې واري وویلې چې ته په ما باندې طلاقه یې! نو ایا په دې صورت کې درې طلاقه واقع کیږي او که نه؟ دلته دوه ډلې دي: یوه ډله وایي چې د احادیثو مطابق نه واقع کیږي. او بله ډله وایي چې د فقهاوو د تحقیق مطابق واقع .....!

**الجواب:** کوم سړی چې خپلې ښځې ته ووایي چې ته طلاقه یې! ته طلاقه یې! ته طلاقه یې! اود ورستنیو دوو الفاظو څخه یې د اول لفظ تاکید مراد نه وي، نو په دې صورت کې د جمهورو صحابه وو رضی الله تعالی عنهم، تابعینو او د ایمه اربعه وو او ټولو محدثینو رحمة الله تعالی علیهم په نزد درې طلاقه واقع کیږي او طلاق ورکونکی ګناهګار هم دی، ځکه چې داسې طلاق د شریعت څخه مخالف دی.

په موطاء امام مالک رحمه الله کې حدیث دی چې: أَنَّ رَجُلاً قَالَ لِعَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبَّاسٍ رضی الله عنهما: إِنِّي طَلَّقْتُ امْرَأَتِي بِمِائَةِ تَطْلِيقَةٍ، فَمَاذَا تَرَى عَلَيَّ؟ فَقَالَ لَهُ ابْنُ عَبَّاسٍ رضی الله عنهما: طَلُقَتْ مِنْكَ لِثَلاَثٍ وَسَبْعٌ وَتِسْعُونَ اتَّخَذْتَ آيَاتِ اللّٰهِ هُزُواً.

او په شرح د معاني الاثار کې حدیث دی چې: عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ رضی الله عنه، قَالَ فِي الرَّجُلِ يُطَلِّقُ الْبِكْرَ ثَلاَثاً: «إِنَّهَا لاَ تَحِلُّ لَهُ، حَتّٰى تَنْكِحَ زَوْجاً غَيْرَهُ».

او په موطا د امام مالک رحمه الله کې حدیث دی چې: طَلَّقَ رَجُلٌ امْرَأَتَهُ ثَلاَثاً، قَبْلَ أَنْ يَدْخُلَ بِهَا، ثُمَّ بَدَا لَهُ أَنْ يَنْكِحَهَا. فَجَاءَ يَسْتَفْتِي. فَذَهَبْتُ مَعَهُ أَسْأَلُ لَهُ. فَسَأَلَ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَبَّاسٍ وَأَبَا هُرَيْرَةَ رضی الله عنهما، عَنْ ذٰلِكَ. فَقَالاَ: لاَ نَرَى أَنْ تَنْكِحَهَا، حَتّٰى تَنْكِحَ زَوْجاً غَيْرَكَ. قَالَ: فَإِنَّمَا طَلاَقِي إِيَّاهَا وَاحِدَةٌ، فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ رضی الله عنهما: إِنَّكَ أَرْسَلْتَ مِنْ يَدِكَ مَا كَانَ لَكَ مِنْ فَضْلٍ.

او همدا سې حکم حضرت وکيع رحمه الله د حضرت عثمان ﷺ او د حضرت علی ﷺ څخه روايت کوي.

او حضرت عمر ﷺ په دې باندې ډېره سخته پابندي کوله، او د درې طلاقونو د وقوع حکم اکر که په يو مجلس کې وي. په صحيح مسلم کې او په نورو کتابونو د حديثو کې رانقل دي. او همدا قول د قران د ظاهر سره موافق دی

او پاتې شو د مسلم شريف هغه حديث چې داسې الفاظ پکې دي چې: كَانَ الطَّلَاقُ عَلَىٰ عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَبِي بَكْرٍ ﷺ، وَسَنَتَيْنِ مِنْ خِلَافَةِ عُمَرَ ﷺ، طَلَاقُ الثَّلَاثِ وَاحِدَةً، فَقَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ ﷺ: إِنَّ النَّاسَ قَدِ اسْتَعْجَلُوا فِي أَمْرٍ قَدْ كَانَتْ لَهُمْ فِيهِ أَنَاةٌ، فَلَوْ أَمْضَيْنَاهُ عَلَيْهِمْ، فَأَمْضَاهُ عَلَيْهِمْ.

نو ددې حديث تاويل د جمهورو محدثينو او فقهاوو رحمهم الله په نزد دادی چې په اول کې به درې ځله د انتِ طالقٌ لفظ ويل کيده، چې په دوهم او دريم انتِ طالقٌ به د اول انتِ طالقٌ تاکيد مراد کيدلو، له دې وجهې به هغه په يو حسابيده. (كذا ذكره النووی و ابن الهمام و غيرهما. والله اعلم. حرره الراجي عفو ربه القوي ابوالحسنات محمد عبدالحی تجاوزالله عن ذنبه الجلي والخفي. (مجموعة فتاوى جلد۱ص ۴۹۳ تاص ۴۹۵).

له دې څخه علاوه حضرت مولنا عبدالحی رحمه الله د خپل وفات څخه دوه کاله مخکې په (۱۳۲۰ھ) کې يعنې د خپلې مخکنۍ فتوی څخه دولس کاله وروسته په (عمدة الرعاية) کې داسې فرمايي چې: (القول الثالث: ان الثلاث يقع بايقاعه سواء كانت المرئة مدخولة بها او غير مدخولة وهوقول جمهورالصحابة والتابعين والايمة الاربعة وغيرهم من المجتهدين واتباعهم رضى الله تعالى عنهم. (عمدة الرعاية جلد۳ص ۶۳ حاشيه شرح وقايه).

له دې عبارت څخه معلومه شوه چې په دې مسئله کې د امام شافعی رحمه الله هيڅ اختلاف نشته او د مخکنۍ مردودې فتوې څخه معلوميده چې په دې مسئله کې د امام شافعي رحمه الله اختلاف شته، لهٰذا هغه د مولانا عبد الحی رحمه الله خپله فتوا نه ده، بلکې چا د الحاقيې په طريقه رانقل کړې ده.

## مُغالطات

د دريو طلاقونو د يو حسابولو لپاره چې کومو خلکو وهمي او خيالي دلايل پيش کړي دي، په هغوی کې له ټولو څخه مخکې حافظ ابن قيم رحمه الله دی

حافظ ابن قیم رحمه الله دد مسئلې دثابتولو لپاره د (اعــلام الـموقعين، زادالمعـاد اواغاثـة اللهفان) ډيرې صفحې توري کړي دي، د هغوی بعضې مغالطات د نن زمانې غیرمقلدین په خپلو رسالو کې رانقلوي. له دې وجهې یې رانقلول مناسب گنم.

**اوله مغالطه :** حافظ ابن قیم رحمه الله فرمائي چې: که خبره د نفوسو په کثرت ختمیږي، نوبیا هم مونږ غالب یو، ځکه چې : وَنَحْنُ نُكَاثِرُكُمْ بِكُلِّ صَحَابِيٍّ مَاتَ إِلَى صَدْرٍ مِنْ خِلَافَةِ عُمَرَ رضي الله عنه وَيَكْفِينَا مُقَدَّمُهُمْ، وَخَيْرُهُمْ وَأَفْضَلُهُمْ، وَمَنْ كَانَ مَعَهُ مِنَ الصَّحَابَةِ رضي الله عنهم عَلَى عَهْدِهِ. (زادالمعاد،جلد٤طبع مصرص ٦٢)

مونږ چې هرهغه صحابي وشمارو، کوم چې د حضرت عمر رضي الله عنه د خلافت ترابتدايي دورپورې وفات شوی دی، نو په تاسوباندې غالبیږو او زمونږ لپاره هغه دټولو څخه بهتر (ابوبکر رضي الله عنه) اودټولو څخه مخکنی اودهغه ملگري کافي دي.

**الجواب :** (۱) دا د حافظ ابن القیم رحمه الله ډیرعجیبه مغالطه ده، ځکه چې حافظ ابن قیم رحمه الله دې یو څو مثاله پیش کړي چې رسول الله ﷺ او یا حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه د کوم سړي درې طلاقونه په یو حساب کړي دي؟ که کوم مثال لري راوړاندې دې یې کړي.

او ددې په خلاف مونږ مخکې ډیرداسې مثالونه پیش کړل چې خپله رسول الله ﷺ درې طلاقونه په دریو حساب کړي وو.

(۲) دحضرت ابوبکر رضي الله عنه دخلافت ټوله دوره دوه کاله اوڅلور میاشتې وه (اکمال ص ۵۸۷ اوپه دې دوره کې هیڅ داسې واقعه نده راغلې چې کوم سړي دی خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکړي وي اوهغه دی حضرت ابوبکرصدیق رضي الله عنه اویادده رضي الله عنه په خلافت کې کوم بل چاپه یوحساب کړی وي که څوک یې پیش کولې شي رامیدان ته دی شي (دیده باید)

(۳) دحضرت ابوبکر رضي الله عنه په زمانه کې په مختلفو محاذونو کې جنگ روان وو، لکن دیمامې دجنگ څخه ماسوی په نوروټولو محاذونو کې ډیرکم صحابه رضي الله عنهم شهیدان شوي ووؤاوهمدارنگې دحضرت عمر رضي الله عنه د خلافت تراولودوو کلونوپورې ډیرلږ صحابه رضي الله عنهم شهیدان شوي وو، ددې څخه وروسته ترډیره پورې دصحابه وو اکثریت ژوندې وو.

خلاصه دا چې د حضرت عمر﷛ د خلافت ترا ولو دوو کلونو پورې ډير لږ صحابه﷛ شهيدان شوي اويا وفات شوي دي او دهغوى څخه پدې مسئله کې هيڅ ندي رانقل شوي، او ددې په خلاف د حضرت عمر﷛ په زمانه کې دټولو صحابه وو په دې خبره اجماع وشوه چې درې طلاقونه په دريو حسابيږي، او هيڅا هيڅ مخالفت ونکړو، نو د حافظ ابن القيم رحمه الله دا خبره سراسر غلطه ده چې (لايعرف في عهد الصديق احد رد ذلک ولاخالفه). (اغاثة جلد ا ص ۲۸۹)

د حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه په زمانه کې هيڅ داسې څوک نه دي معلوم چې په دې يې ردکړي وي او يايې ددې مخالفت کړی وي.

او دا خبره ځکه غلطه ده چې اول حافظ ابن قيم رحمه الله ته پکار وه چې دا يې ثابته کړې وای چې په نلان صحيح، صريح او مرفوع روايت کې دريو طلاقونوته يو طلاق ويلی شوی دی او يا ابوبکر صديق رضی الله عنه په فلان واقعه کې درې طلاقه په يو حساب کړي وو. بيا دې ووائي چې ددې په خلاف هيچا او از نه وو پورته کړی.

**دوهمه مغالطه:** حافظ ابن القيم رحمه الله ليکي چې د رسول الله ﷺ د وفات په وخت کې د يو لکو څخه د صحابه وو﷛ تعداد زيات وو، دوی﷛ رسول الله ﷺ ليدلو او د رسول الله ﷺ خبرې يې اوريدلې، نو ايا تاسو کولی شئ چې ددې ټولو رضی الله عنهم څخه او يا په دوي کې د لسو کسانو څخه او يا د دوی د عشر عشير څخه او يا په دوي کې د عشر عشير د رعشر عشير څخه دا ثابته کړئ چې درې طلاقه په دريو حسابيږي؟

که تاسو خپل ټول طاقت مصرف کړئ، نو صرف د شلو کسانو څخه هم دا خبره نه شی ثابتولی، حالانکې د دوي څخه هم مختلف اقوال دي.[۱]

**نَقَدْ صَحَّ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ ﷺ الْقَوْلَانِ، وَصَحَّ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ الْقَوْلُ بِاللُّزُومِ، وَصَحَّ عَنْهُ التَّوَقُّفُ**

(زاد المعاد ج۴ ص ۶۲)

**الجواب:** دا هم ډيره عجيبه مغالطه ده، ځکه چې مونږ مخکې د صحابه وو رضی الله عنهم اجماع ثابته کړې وه.

مونږ هم د حافظ ابن القيم رحمه الله څخه مطالبه کوو چې د شلو په ځای دې صرف د لسو څخه او د لسو په ځای دې صرف د پنځو صحابه وو رضی الله عنهم څخه ثابته کړي چې درې طلاقه په يو حسابيږي. همدارنګه دده دا خبره چې د ابن عباس﷛ دواړه قولونه صحيح دي؛ سخته مغالطه ده،

ځکه چې د ابن عباس ﷛ ځخه صرف یو صحیح قول رانقل شوی دی او هغه دا چې درې طلاقه په دریو حسابیږي او دوهم قول دده دا صحیح دی چې غیرمدخول بها ته په متفرق طور باندې ورکړل شوي درې طلاقـه پـه یو حسـابیږي . همدارنګـه د ابـن مسـعود ﷛ صـحیح قـول دادی چـې درې طلاقـه پـه دریو حسابیږي. دتوقف روایت ترینه په هیڅ صحیح سند باندې نه دی ثابت .

حافظ ابن القیم رحمه الله پخپله ددې ځخه مخکې فرمایلي دي چې: **فَقَدْ صَحَّ عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ ﷛ بِلَاشَكٍ الخ)** [اغاثة ج ۱ص ۳۲۹ ]. نوچې کله د ابن مسعود ﷛ ځخه بلاشکه صحیح روایت دا شو چې درې طلاقه په دریو حسابیږي، نو ددې په مقابل کې دتوقف هیڅ حیثیت پاتې نشو .

**دریمه مغالطه:** حافظ ابن القیم رحمه الله فرمائي چې حضرت امام مالک رحمه الله او جمهور علماء فرمائي چې: کـه د جُمراتـو ویشـتل پـه یو ځل پـه اوو تیږو بانـدې وشـي، نو هغـه پـه یو ځل ویشتلو باندې حسابیږي، نو همدارنګه به په یو ځل درې طلاقه په یو طلاق حسابیږي .(اغاثة اللهفان جلد ۱ص ۳۰۱)

**الجواب :** ددې ځخه هم استدلال صحیح ندی .

(۱) ځکـه چـې د جمراتو ویشتل او دهرې تیګې سره دالله اکبر ویـل عبـادت دی، نوپـه دې باندې د طلاقونو قیاسول چې یو مبغوض کار دی؛ قیاس مع الفارق دی .

(۲) پـه جُمراتو د تیږو د ویشتلو په باره کې د رسول الله ﷺ صریحې ارشاد داسې دی چې **(وَرَمْیُ الْجَمَارِتَوٌ)** مسلم ج ۱ص ۴۲۰ )

د جمراتـو ویشـتل جدا جدا دي په خلاف د طلاق چې طلاقونه پـه متفرق او مجتمع دواړو طریقو باندې معتبر دي، اګرچې مستحسن په دریو طهرونو کې متفرق طلاقونه دی

او همدارنګـه د رسـول الله ﷺ د صحابه وو ځخـه دا ثابتـه ده چـې درې طلاقـه پـه دریو حسـابیږي او دا خبره دیو صحابی ځخه هم نده ثابته چې او ه تیګې یې په یو ځای ویشتلي وي .

**خلورمه مغالطه:** حافظ ابن القیم رحمه الله فرمایي چې: په لعان کې که یو سړی د ځلورو شهادتونو په ځای یو ځل ووائي چې زه ځلور شهادته کوم، نوپه دی خبره اتفاق دی چې داپه یو حسابیږي ، نو همدارنګه درې طلاقه هم په یو طلاق حسابیږي. ( اغاثة جلد ۱ص ۳۰۱ )

**الجواب :** ددې ځخه هم استدلال نه دی صحيح، تفصيل يې دادی (۱) چې لعان دسړي په باره کې دحدقذف قايم مقام دی او دښځې په باره کې دحد زنا قايم مقام دی، ځکه چې که قذف پر دی ښځې ته شوی و او شاهدان نه وو، نو داسړی به اتيا دُورې وهلی شي، لکن د خپلې ښځې په قذف باندې ددې په ځای باندې لعان دی او په ښځه باندې د حد د زنا په عوض کې لعان دی.

او حد قذف او حد زنا دواړه حدود دی، نو لعان د حد قايم مقام شو او حد په معمولي شک باندې هم دفعه کيږي، حالانکې طلاق په مسخره باندې هم واقع کيږي، نو يو په بل قياسول؛ قياس مع الفارق دی

(۲) دا ځلور شهادتونه دځلورو شاهدانو قايم مقام دي او ځلور شاهدان جدا جدا پکار دي، نو ځکه به ځلور شهادتونه هم جدا جدا وي.

**پنځمه مغالطه:** حافظ ابن القيم رحمه الله فرمايي چې په حديث کې راځي چې که يو سړې دورځې سل کرتې سبحان الله وبحمده ووائي، نو دده ګناهونه به معاف شي. نو اوس که يو سړی داسې ووائي چې ( سبحان الله مئة مرة ) نو ددې ځخه به يو ځل سبحان الله مراديږي، نو همدارنګه ددرې طلاقونو ځخه به هم يو طلاق مراديږي. همدارنګه په حديث کې راځي چې دلمانځه ځخه وروسته ۳۳ ځلې ( سبحان الله ) ۳۳ ځلې ( الحمدلله ) او ۳۴ ځلې ( الله اکبر ) لوستل پکار دی، نو اوس که يو سړی داسې ووائي چې ( سبحان الله ثلاثا وثلاثين مرة ) نو ددې ځخه به صرف يو سبحان الله مراد وي، نو همدارنګه به د دريو طلاقونو ځخه يو طلاق مراد وي. (اغاثة جلد ۱ ص ۳۰۱ وزادالمعاد ج ۴ ص ۵۲)

**الجواب :** د حافظ ابن القيم رحمه الله دا خبره بالکل غلطه ده.

(۱) ځکه چې د الله ﷻ ذِکر عبادت دی او في نفسه مطلوب شی دی او طلاق يو مبغوض کار دی، نو مبغوض يې په مطلوب ور قياس کړی دی.

(۲) د ذِکر لپاره حدود نه دي مقرر، بلکې الله ﷻ فرمائي چې ( اذکروا الله کثيراً ) او د طلاق لپاره شرعي حدود مقرر دي. نو يو په بل قياسول؛ قياس مع الفارق دی.

(۳) رسول الله ﷺ داسې تسبيح هم ويلې ده چې: (سبحان الله عدد خلقه) (ترمذی ج ۳ ص ۱۹۴) او په يو روايت کې راځي چې أم المؤمنين حضرت صفيه رضی الله تعالی عنها په ځلورو زرو دانو باندې تسبيح ويله، رسول الله ﷺ ورته وويل چې: ر[illegible] تاسره ولاړيم، په دومره وخت کې سنا ځخه زيات به

تسبيح وايم، حضرت صفيې رضی الله تعالی عنها ورته وفرمايل چې: يارسول الله ﷺ ماته يې هم وښايه! رسول الله ﷺ ورته وفرمايل چې (قولي سبحان الله عدد ما خلق من شئ) (مستدرک جلد ۱ ص ۵۴۷).

او په يو روايت کې راځي چې رسول الله ﷺ ورته وفرمايل چې: قُولِي: سُبْحَانَ اللّٰهِ عَدَدَ مَا خَلَقَ فِي السَّمَاءِ، سُبْحَانَ اللّٰهِ عَدَدَ مَا خَلَقَ فِي الْأَرْضِ تُسَبِّحُ، (مستدرک ج ۱ ص ۵٤۸)

او په جامع المسانيد ص ۱۱٦ کې دي چې: سُبْحَانَ اللّٰهِ عَدَدَ مَا خَلَقَ سُبْحَانَ اللّٰهِ عَدَدَ مَا فِي السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ، سُبْحَانَ اللّٰهِ عَدَدَ مَا أَحْصٰى فِيْ كِتَابِهٖ، سُبْحَانَ اللّٰهِ عَدَدَ كُلِّ شَيْئٍ... الخ).

ددې صحيحو احاديثو څخه معلوميږي چې په يو ځل لوستلو باندې د الله ﷻ د مخلوق د شمير په اندازه باندې تسبيح اداکيږي.

همدارنګه په دې باندې هرسړي پوهيږي چې زر روپۍ په زرو حسابيږي، لس روپۍ په لسو حسابيږي. وَهَلُمَّ جراً. دا نه ده ضروري چې په زرو کې دې هره روپۍ جدا جدا ذکر کوي، نو همدارنګه به درې طلاقه په دريو حسابيږي.

**شپږمه مغالطه:** حافظ ابن القيم رحمه الله ليکي چې: لِأَنَّ قَوْلَهُ: لَوْ طَلَّقْتُهَا ثَلَاثًا بِمَنْزِلَةِ قَوْلِهٖ: لَوْ سَلَّمْتُ ثَلَاثًا، أَوْ أَقْرَرْتُ ثَلَاثًا، أَوْ نَحْوَهُ مِمَّا لَا يُعْقَلُ جَمْعُهُ (زادالمعاد ج ٤ ص ۵۹)

**الجواب:** (۱) - طلاق يو داسې شی دی چې حقيقت يې هم حقيقت دی او ټوقې يې هم حقيقت دی. رسول الله ﷺ فرمائي چې (ثَلَاثٌ جِدُّهُنَّ جِدٌّ وَهَزْلُهُنَّ جِدٌّ: اَلنِّكَاحُ وَالطَّلَاقُ وَالرَّجْعَةُ)

ابوداود ج ۱ ص ۲۹۸) ترمذی ص ۱٤۲ وابن ماجه ج ۱ ص ۱٤۸ ومستدرک ج ۲ ص ۱۹۸ ودارقطنی ج ۲ ص ٤۳۳ والجامع الصغير ج ۱ ص ۱۳۷ وقال حسنٌ. او په اقرار کې د سړي د رضا لپاره دخل دی.

(۲) همدارنګه د اقرار څخه رجوع کيږي او د طلاق څخه رجوع نه کيږي، دواقع کيدلو څخه وروسته د رجوع مسئله ځانته مسئله ده، لکن د اول څخه دا اختيار نشته چې ندی واقع کيږي.

(۳) - همدارنګه په عُرف کې دی ته اعتبار شته دی چې يو سړی ووايي چې زه سل ځلې اقرار کوم او يا زما له طرفه دې په زرګونو سلامونه وي، نو دا په عرف کې په ډيرو اقرارونو او سلامونو

حسابیږي. البته د زِنا اقرار د حدودو په ډله کې دی، دهغې مسئله جدا ده، د هغې لپاره جدا جدا اقرارونه پکاردي. [کمافي البخاری ج۲ص ۱۰٦)

**اوومه مغالطه** :حافظ ابن قیم رحمه الله دمسلم شریف دحضرت ابن عباس ﷺ د روایت په باره کې فرمائي چې ( وهذا الحدیث قد رواه عن ابن عباس ﷺ ثلاثةُ نفر: طاوس وهواجل من روي عنه وابوالصهباء العدوي وابوالجوزاء وحدیثه عندالحاکم ( اغاثة جلد۱ص ۲۸۵ )

**الجواب** :داخبره بالکل غلطه ده دابن عباس ﷺ څخه روایت کونکی صرف حضرت طاوس رحمه الله اوابن ابی ملیکه رحمه الله دی، چې علامه ذهبي رحمه الله ورته ضعیف ویلی دی (تلخیص المستدرک ج ۲ص ۱۹٦ ) ابوالصهباء اوابوالجوزاء ددې حدیث روایت کونکي ندي، بلکې دحدیث په متن کې صرف دسائلینو کردارادا کوي اودحضرت طاوس رحمه الله دحدیث تفصیل مخکې تیرشوی دی.

**اتمه مغالطه** :حافظ ابن القیم رحمه الله فرمائي چې: بَلْ لَوْ شِئْنَا لَقُلْنَا، وَلَصَدَقْنَا: إِنَّ هَذَا كَانَ إِجْمَاعًا قَدِيمًا لَمْ يَخْتَلِفْ فِيهِ عَلَى عَهْدِ الصِّدِّيقِ ﷺ اثْنَانِ، وَلَكِنْ لَا يَنْقَرِضُ عَصْرُ الْمُجْمِعِينَ حَتَّى حَدَثَ الِاخْتِلَافُ، فَلَمْ يَسْتَقِرَّ الْإِجْمَاعُ الْأَوَّلُ حَتَّى صَارَ الصَّحَابَةُ ﷺ عَلَى قَوْلَيْنِ، وَاسْتَمَرَّ الْخِلَافُ بَيْنَ الْأُمَّةِ فِي ذَلِكَ إِلَى الْيَوْمِ، ثُمَّ نَقُولُ: لَمْ يُخَالِفْ عمر ﷺ إِجْمَاعَ مَنْ تَقَدَّمَهُ، بَلْ رَأَى إِلْزَامَهُمْ بِالثَّلَاثِ عُقُوبَةً لَهُمْ لَمَّا عَلِمُوا أَنَّهُ حَرَامٌ الخ. (زادالمعادج ٤ص ٦٢).

که مونږ وغواړو داسې به وو وایو او مونږ به پدې کې رشتیني یو چې مخکې په دې خبره باندې اجماع وه چې درې طلاقه په یو طلاق حسابیږي.

اودحضرت ابوبکر صدیق ﷺ په زمانه کې په دې مسئله کې دوو کسانو هم اختلاف ندی کړی، لکن داجماع کونکو دورلانه وو ختم شوی چې په دې مسئله کې اختلاف پیداشو، نواوله اجماع په خپل ځای پاتې نشو تردې پورې چې صحابه ﷺ دوه ډلې شو اوترننه پورې همدا اختلاف روان دی، بیامونږ داسې وایو چې حضرت عمر ﷺ دمخکنې اجماع مخالفت ندی کړی، بلکې حضرت عمر ﷺ دسزاء په طریقه په خلکو باندې درې طلاقه لازم کړي دي، ځکه چې خلک په دې پوهیدل چې داسې طلاق حرام دی، لکن بیایې هم داسې طلاقونه اچول او په دې کې هیڅ شک نشته چې کله خلک په ځان باندې تنګي راولې اوالله ﷻ رخصت قبول نکړي، نوامامانو ته داجایزه ده چې داورباندې نافذ کړي (زادالمعادج ۴ص ٦۲)

**الجواب :** دحافظ ابن القيم رحمه الله ددې خبرو څخه معلوميږي چې دی په دې مسئله کې دمخصې حالت ته رسيدلې دی، ځکه چې يو طرفته دا دعوی کوي چې دابوبکرصديق ﷺ په زمانه کې په دې خبره اجماع وه چې درې طلاقه په يو طلاق حسابيږي او په دې کې ددوو کسانو اختلاف هم نه وو او بيا وروسته ليکي چې حضرت عمر ﷺ چې درې طلاقونه په دريو حساب کړل، نوپه دې کې يې دمخکينو خلکو داجماع څخه مخالفت ندې کړی، بلکې داکار حضرت عمردعقوبت اودسزاء په طريقه کړی دی.

نو مونږ وايو چې که حضرت عمر ﷺ داکاردعقوبت اودسزاء په طريقه کړی وي نو دمخکني اجماع څخه (معاذالله) په دوو طريقو مخالفت راځي، اول داچې: د دريو په يو حسابول يې ختم کړل اودرې يې په دريو حساب کړل. دوهم داچې دابن القيم په قول په دې خبره شرعي اجماع وشوه چې درې طلاقه په يو حسابيږي او حضرت عمر ﷺ داشرعي اجماع په عقوبت او په سزاء باندې بدله کړه.

(۲) حضرت ابوبکر ﷺ په صحابه وو ﷺ کې لوی عالم وو (بخاری ج ۱ص ۱۶ ه) نو داغيرممکنه ده چې دده په موجودګۍ دی داسې اجماع وشي چې لږوروسته په کې اختلاف پيداشي اوحتی تردې چې ددې په خلاف حضرت عمر ﷺ بله اجماع منعقده کړي.

(۳) چې کله دحضرت عمر ﷺ په زمانه کې په دې خبره اجماع منعقده شوه. نوپه ټولو صحابه وو ﷺ کې صرف يو صحابی هم ورته راپورته نشو چې ولې دمخکني اجماع مخالفت کوي؟ حالانکې حافظ ابن القيم رحمه الله فرمائي چې په دې مسئله کې دصحابه وو ﷺ دوه ډلې جوړې شوې، نو ايا د صحابه وو په دې ډله کې صرف يوصحابی هم دا جُرأت ونکړ چې د حضرت عمر ﷺ په خلاف يې اواز پورته کړی وی؟

(۴) دحافظ ابن القيم رحمه الله ددې بيان څخه دا واضحيږي چې وروستني خلک دمخکني مويدی بالعمل اجماع په خلاف بله اجماع کولې شي. که داخبره صحيح شي نو بيا دی داجماعي مسايلو حفاظت الله ﷻ وکړي.

(۵) دحافظ ابن القيم رحمه الله داخبره بالکل غلطه ده چې: کوم خلک د الله ﷻ رخصت قبول نکړي نو امام په داسې خلکو تنګي راوستلې شي.

(۶) حافظ ابن القيم رحمه الله ليکلي دي چې: (حتي صار الصحابة علي قولين) نو مونږ وايو چې حافظ ابن القيم رحمه الله او ياد ده اتباع دی وښايي چې په کوموکوم واثاروکې دکوموکوم صحابه

ورﷺ تول را نقل شوی دی چې درې طلاقه په يو حساببږي ؟ او کله يې چې نشي ثابتولي نو بيا په کوم جرات باندې وائي چې په دې کې د صحابه وو رضی الله تعالی عنهم دوه ډلې وی ؟

د حافظ ابن قیم رحمه الله شخصیت او په مجموعي طریقه باندې د ده علمي خدمات د احترام قابل دی، لکن بعضې بې ځایه خبرې هم کوي لکه دغه او د دې په شان نورې مغالطې.

## ایا د حضرت عمرؓ حکم تعزیري و؟

غیر مقلد مولوی ثناء الله امرتسری لیکلي دي چې د حضرت عمرؓ دا فیصله شرعي نه وه، بلکې سیاسي وه او دده په تقلید کې ټول غیر مقلدین همدا خبره کوي.

**الجواب** : دا خبره بالکل غلطه ده، خپله ددوي ډ ی غیر مقلد مولوی محمد ابراهیم سیالکوټي (المتوفی ۱۳۵۷ھ) ددې په جواب کې داسې لیکي چې (د حضرت عمرؓ په باره کې دا تصور کول چې دوي (معاذالله) د رسول الله ﷺ سنت بدل کړي دي، ډیرغټ جرات او ډیره غټه بې ادبې ده. قسم په الله ﷻ چې ددې عبارت د رانقلولو په وخت کې زما زړه لړزیده حیران یم چې یو سړی خپله د مسئلې په حقیقت نه پوهیږي او بیا د خلیفة الرسول ﷺ په باره کې دا ګمان کوي چې هغه سنت بدل کړي دي. استغفرالله استغفرالله استغفرالله.

دې حکم ته سیاسي ویل: ظُلُمَاتٌ بَعْضُهَا فَوْقَ بَعْضٍ دي او ددې ځخه وروسته دا ویل چې په دې کې اختلاف دی چې د حضرت عمرؓ ځخه وروسته دا حکم باقي پاتې دی او که نه دی پاتې ؟

سراسره غلطي ده او د انسانانو ایجاد دی. د مُحدثینو طرفته ددې خبرې نسبت کول بالکل غلط دی.

بیا مخکې لیکي چې کوم خلک چې په دې حکم کې د حضرت عمرؓ موافقت کوي هغوی هیڅکله دا نه مني چې دا حکم سیاسي وو، بلکې د هغوی په نیز دا حکم د قراٰن او حدیث ځخه را اخستل شوی دی، بیا مخکې لیکي چې څوک چې داسې لیکي چې: د محدثینو په نزد دا حکم سیاسي دی، نوکه ددوي مراد ټول محدثین وي، نو بیا زه ددوي ځخه پوښتنه کوم چې امام ابو حنیفه رحمه الله امام مالک رحمه الله امام شافعي رحمه الله او امام احمد رحمه الله وغیره محدثین وو او که نه وو؟ که چیرته محدثین وي، نو بیا خو دا خبره بالکل غلطه ده چې د ټولو محدثینو په نزد دا سیاسي حکم دی. او که د محدثینو ځخه مراد بعضې محدثین وي، نو بیا زه دوي ته درخواست کووم چې ددې محدثینو نومونه

سره دحوالو پیش کړي دابه موپه مونږ باندې احسان وي چې دداسې محدثینو مونه مونږته وښائي چې هغوئ په دین کې سیاسي مداخلت ته رواوائي اوکه د محدثینو څخه مود غیرمقلدینو ډلګۍ مراد وي، نو بیا دې بې ادبي معاف وي! دوی ته د محدثینو په ویلو کې د ډیر فکرضرورت دی. دصحاح سته وو په لیکوباندې د نظر په اچولو څوک محدث کیدلی نشي. الخ. [اخبار اهلحدیث ۱۵ نومبر ۱۹۲۹ء) بحواله ازهارمربوعه ص ۱۳۲]. د غیرمقلدینو بل سرګروه دخبرې داړولو او راړولو څخه وروسته دا منلې ده چې دحضرت عمرؓ داحکم شرعي و. (الجنة ص ٦٥).

د حافظ ابن القیم رحمه الله دخولې څخه هم په یوځای کې داخبره وتلې ده چې داشرعي حکم وو، حافظ ابن القیم رحمه الله لیکي چې: فَلَمَّا رَكِبَ النَّاسُ الْأُحْمُوقَةَ، وَتَرَكُوا تَقْوَى اللّٰهِ، وَلَبَسُوا عَلَىٰ أَنْفُسِهِمْ، وَطَلَّقُوا عَلَىٰ غَيْرِ مَا شَرَعَهُ اللّٰهُ لَهُمْ، أَجْرَى اللّٰهُ عَلَىٰ لِسَانِ الْخَلِيفَةِ الرَّاشِدِ وَالصَّحَابَةِ مَعَهُ شَرْعًا وَقَدَرًا إِلْزَامَهُمْ بِذٰلِكَ، وَإِنْفَاذَهُ عَلَيْهِمْ) [اعلام الموقعين ج۳ ص۴۷].

خلاصه دا چې د حضرت عمرؓ حکم نه دسزاء په طریقه باندې وو او نه سیاسي و، بلکې خالص شرعي حکم و، حضرت عمرؓ ذوهم خلیفه وو او دده حکمونه درسول الله ﷺ د فرمان مطابق د اُمت لپاره سنت طریقه ده. رسول الله ﷺ فرمائي چې (علیکم بسنتی وسنة الخلفاء الراشدین) له دې وجهې دا مسلک حق دی او په دې کې د دُنیا او د اخرت کامیابي ده.

## ایا حضرت عمرؓ د خپلې فیصلې څخه رجوع کړې ده؟!

غیر مقلد مولوی ثناء الله امرتسري لیکلي دي چې حضرت عمرؓ په اخر کې په خپل دې حکم باندې پښیمانه شوی و او دده لپاره دلیل دادی چې حافظ ابوبکر الاسماعیلی د ابویعلی څخه او دهغه د صالح بن مالک څخه او هغه د خالد بن یزید بن ابی مالک او هغه د خپل پلار څخه او هغه د حضرت عمرؓ څخه روایت کوي چې: (ماندمت علی شئ ندامتي علی ثلاث ان لا یکون حرمة الطلاق الخ. [اغاثة ج ۱ ص ۳۳٦].

زه په هیڅ شي دومره نه وم پښیمانه شوی، لکه څومره چې په دې دریو شیانو پښیمانه یم (یو دادی) چې ما طلاقونه حرام کړي نه وای.

**الجواب** : دا د یوسف خان او شیربانو قصه ده، ځکه چې د دې روایت په سند کې یو روای خالدبن یزید دې، اګرچې ځینو محدثینو دده توثیق کړی دی، لکن جمهور محدثین دده تضعیف کوي.

امام یحیی رحمه الله فرمايي چې لیس بشئ. امام نسائي رحمه الله فرمائي چې هغه ثقه نه دی. امام دارقطني رحمه الله فرمائي چې هغه ضعیف دی. امام ابوداود رحمه الله هم په یو روایت کې ورته ضعیف ویلي دي او په بل روایت کې یې ورته منکر الحدیث ویلي دی. (تهذیب التهذیب ج ۳ ص ۱۲۷ و ص ۱۲۸)

امام ابن حبان رحمه الله فرمائي چې دده هغه روایتونه چې د خپل پلار څخه یې کوي د احتجاج قابل نه دي. (بحواله مذکوره)

او امام یحیی بن معین رحمه الله فرمائي چې د دوو کتابونو ښخول پکار دي، یو په عراق کې د ابن الکلبي تفسیر دی، چې د ابوصالح عن ابن عباس روایتونه پکې دي. او دوهم په شام کې دی. بیا لیکي چې (واما الذی بالشام فکتاب الدیات لخالدبن یزیدبن ابي مالک لم یرض ان یکذب بأبیه حتی کذب علي اصحاب رسول الله ﷺ [تهذیب التهذیب ج ۲ص ۱۲۷].

په شام کې چې کوم کتاب دی هغه د خالدبن یزید کتاب دی، هغه صرف په دې باندې نه وو راضي چې په خپل پلار باندې دروغ وواېي، بلکې د رسول الله ﷺ د صحابه وو پورې یې هم دروغ وتړل او په دې مذکور روایت کې هم ده په حضرت عمر رضی الله عنه پورې دروغ تړلي دي.

په سلګونو افسوسونه دي د هغه چا په حال چې د داسې روایت څخه د حضرت عمر رضی الله عنه پښیمانتیا ثابتوي او بیا په دې دروغژن روایت کې د یو طلاق او د دوه طلاقونو او د دریو طلاقونو تفصیل هم نشته. الله ﷻ دې ټولو مسلمانانو ته په حق باندې د پاتې کیدلو توفیق ورکړي. امین ثم امین

څوک چې درې طلاقو ته یو وايي هغه بدعتي دی دهغه قول مردود او غلط دی، د محدثینو او فقهاؤ اقوال په لاندې فهرست کې وګورئ!:

| شماره | دمحدث او فقیه نوم | المتوفي | دریو طلاقو والا اقوالو حاصل | حواله |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | ابن شهاب الزهري(رح) | ۱۲۵هـ | دتعزیر لائق | مصنف عبدالرزاق ج ۶ص ۲۹۵ مصنف ابن ابی شیبه ج ۲ص ۱۱) احکام القران لقاضی ابی اسحاق ج اص ۲۳۷) |

| ۲ | ابوبکر رازی الحنفی | ۳۷۵ ھ | غیر معتبر | اخبار القضاۃ ج ا صـ ۳۱۴) |
|---|---|---|---|---|
| ۳ | ابن بطال مالکی رح | ۴۴۹ ھ | غیر معتبر شاذ اهل بدعة | شرح البخاري ج ۷ صـ ۳۹۹-۳۹۱) |
| ۴ | ابن عبد البر مالکی | ۴۶۳ ھ | غیر معتبرشاذ، بدعة معتزل خوارج روافض | الاستذکار ج ۴ صـ ۸، ایضا ج ۴ صـ ۳، ایضا ج ۴ صـ ۶، التمهید ج ۲۲، ۳۷۸) |
| ۵ | ابوالولید باجی المالکی | ۴۷۴ ھ | اهل بدع، مخالف اجماع | المنتقی شرح الموطا ج ۳ صـ ۲۲۸) |
| ۶ | فقیه ابو ابراهیم مالکی | | اهل بدعت غیر معتبر | المعیار المعرب ج ۴ صـ ۴۳۶-۴۳۷) |
| ۷ | علامه سرخسي حنفي | ۴۸۳ ھ | غیرمعتبر | المبسوط ج ا صـ ۱۰۶) |
| ۸ | ابن رشد المالكي | ۵۲۰ ھ | غیرمعتبر جاهل قلیل العلم ضعیف مخالف اجماع شاه اهل بعدت قابل تعذیر مردود | المقدمات الممهدان صـ ۵۰۱) |
| ۹ | ابن العربي مالكي | ۵۴۳ ھ | لائق ذبح، شاذ، گمراه، علمي یتیم رافض شیعه اهل بدعت | احکام القران لابن العربي ج ا صـ ۳۷۷، الناسخ والمنسوخ ج ۲ صـ ۸۷- ۹۰، اضواء البيان ج ا صـ ۱۲۰، تهذيب السنن لابن قيم ج ۳ صـ ۱۲۸) |
| ۱۰ | قاضی عیاض مالكي | ۵۴۴ ھ | غیر معتبر، خارجي رافضي | اكمال المعلم ج ۵ صـ ۸) |
| ۱۱ | ابو المظفر حنبلي | ۵۶۰ ھ | غیر معتبر | اختلاف الائمة العلماء ج ۲ صـ ۸) |
| ۱۲ | کاساني حنفي | ۵۸۷ ھ | شیعه | بدائع الصنائع ج ۷ صـ ۳۹) |
| ۱۳ | قرطبي مالكي | ۶۷۱ ھ | شاذ، گمراه، مفتری علی الله مفتری علی الرسول | قرطبي ج ۳ صـ ۱۳۹) |
| ۱۴ | ابن رجب حنبلي | ۷۹۵ ھ | شاذ | شرح سنن الترمذي ج ا صـ ۲۵۳، الاشفاق على احكام الطلاق صـ ۴۱-۶۳) |
| ۱۵ | ابن حجر | ۸۵۲ ھ | مخالف اجماع، غیرمعتبر | فتح الباري ج ۹ صـ ۴۵۷) |
| ۱۶ | حافظ عینی حنفي | ۸۵۵ ھ | شاذ، غیرمعتبر، مخالف سنت اهل بدعت | عمدة القاري ج ۲۰، ۲۳۳) |
| ۱۷ | علامه ابن همام حنفي | ۸۶۱ ھ | غیرمعتبر | فتح القدير ج ۷ صـ ۴۶۰، ۴۵۹) |
| ۱۸ | علامه کورانی | ۸۹۳ ھ | گمراه | الكوثر الجاري ج ۹ صـ ۱۱، ۱۲) |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۱۹ | احمد بن یحیی مالکی | ۹۱۴ھ | شاذ | المعیار المعرب ج ۴ص ۴۳۵، ۴۳۶) |
| ۲۰ | ابن نجیم حنفي | ۹۷۰ھ | غیر معتبر خلاف اجماع | البحر الرائق ج ۹ص ۱۱۴) |
| ۲۱ | ملا علی قاري حنفي | ۱۰۱۴ھ | غیر معتبر | مرقات المفاتیح ج ۱۰، ۲۴۲، ۲۴۱) |
| ۲۲ | منصور بن یوسن حنبلي | ۱۰۵۱ھ | ضعیف المأخذ، غیر معتبر | کشاف القناع عن متن الاقناع ج ۱۸، ۳۹۶) |
| ۲۳ | علامه رملي حنفی | ۱۰۸۱ھ | غیرمعتبر، گمراہ شعیہ غیرظاہر | الفتاوی الخیریه ج اص ۴۸، ۴۹) |
| ۲۴ | احمد حاوی مالکی | ۱۲۴۱ھ | اهل بدعت، ضال مضل | حاشیه الدسوقی ج ۹ص ۴۰، حاشیه الصاوی ج ۵ص ۲۸۴) |
| ۲۵ | محمد دسوقی مالکی | ۱۲۳۰ھ | اهل بدعت، ضال مضل | حاشیه الدسوقی ج ۹ص ۴۰) |
| ۲۶ | طحطاوي حنفي | ۱۲۳۱ھ | مخالف اجماع | حاشیه الطحاوي ج ۲ص ۱۰۵) |
| ۲۷ | ابو الحسن مالکي | ۱۲۳۱ھ | خلاف اجماع، شاذ | البهجة فی شرح التحفة ج اص ۵۴۷) |
| ۲۸ | الرجراجی المالکی | | اهل بدعت | مناهج التحصیل شرح المدونه ص ۱۶۰ ج ۴) |
| ۲۹ | عبدالحی الکهنوي حنفي | ۱۳۰۴ھ | غیر معتبر | عمدة الرعایه ج ۲ص ۷۱) |
| ۳۰ | جزیری حنبلي | ۱۳۶۰ھ | شاذ، غیرمعتبر | الفقه علی مذاهب الاربعة ج ۴ص ۱۵۳) |
| ۳۱ | شیخ بخیت حنفي | | شاذ، اهل بدعت | القول الجامع ص ۳۶، ۴۶) |
| ۳۲ | مفتی کفایت الله | | مخالف اهل السنة مبتدع مردو امامیه | کفایة المفتی ج ۶ص ۳۴۰، ۳۲۵) |
| ۳۳ | مفتی عبدالستار ومفتی انور | | شاذ ومردود | خیرالفتاوی ج ۵ص ۲۱۲، ۲۱۴) |
| ۳۴ | مفتی عاشق الهی | | قابل قبول ندی خلاف اجماع | فتاوی عثمانی ج ۲ص ۴۱۲، ۴۱۳، |

بسم الله الرحمن الرحيم

# مسئلة اللحية

الحمد لله وحده والصلوة والسلام على من لا نبى بعده

اما بعد!

دږیرې په مسئله کې مودودیان او لامذهبیان د افراط او دتفریط ښکار دي، مودودیان وايي چې یوه قبضه ږیره دنبی کریم ﷺ سنت شرعي نه دی بلکې سنت عادي دی او سنت شرعی ورته ویل بدعت دی. (ترجمان القرآن، مارچ، اپریل، مئی، جون، سنه ۱۹۴۹، ص۱۷۹، ص۱۷۸، ومجموعه رسایل قاضی مظهر حسین)

بل طرفته لامذهبه أهل حدیث وايي چې ږیره چې څومره اوږدیږي او څومره پلنیږي همغومره یې پریښودل فرض دي، ددې افراط او تفریط په مینځ کې أهل سنت والجماعت فرمايي چې:

۱-أقلا یوه قبضه ږیره پریښودل واجب دي.

۲-دیوې قبضې څخه دږیرې اوږدول نه فرض دي، نه واجب دي او نه سنت مؤکد دي.

۳-دیوې قبضې څخه دزاید و ویښتو کټ کول جایز دي.

۴-دقبضې څخه هغه زاید ویښتان چې شکل ورسره بد ښکاري دهغې کټ کول ضروري دي.

۵-دقبضې څخه هغه زاید ویښتان چې شکل ورسره بد نه ښکاري دهغې په کټ کولو او نه کټ کولو کې اختلاف دی.

(۱)بعضې علماء یې کټ کولو ته أولى وايي (۲)او بعضې علماء یې پریښودلو ته اولی وايي او کټ کولو ته یې مکروه تنزیهی وايي (۳)او بعضې علماء فرمايي چې په حج او په عمره کې یې کټ کول مکروه تنزیهي نه دی او په نورو وختونو کې مکروه تنزیهي دی، ددریم قول والا دحضرت جابر رضي الله عنه او دحضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه او دنورو صحابه رضی الله عنه په عمل باندې استدلال کوي چې هغوي به په حج او په عمر کې دقبضې څخه زاید ویښته کټ کول، ددوهم قول والا داعفاء اللحية دحکم ظاهر ته ګوري او د اول قول والا خپله دنبی کریم ﷺ او دهغو صحابه وو عمل ته ګوري، په هغې کې دحج او دعمرې تخصیص نه شته، لکن دا اختلاف د اولویت او دعدم اولیت دی.

# ږيره شرعي سنت ده

حضرت عايشه رضی الله عنها فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې لس شيان دفطرت څخه دي په هغوي کې يو (قص الشارب واعفاء اللحية) دبريتونو کټ کول او دږيرې پريښودل دي امام نووي رحمه الله ددې په تشريح کې فرمايي چې: ( معناه أنها من سنن الأنبياء) دفطرت معنى داده چې دا لس شيان دانبياؤ دسنتونو څخه دي، دحضرت طلق بن حبيب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په روايت کې تصريح ده چې (عشرة من السنة) لس شيان سنت دي (نسائي ج۲ ص- ۲۷۴)

همدارنګه امام نووي رحمه الله فرمايي چې: فَحَصَلَ خَمْسُ رِوَايَاتٍ أَعْفُوا وَأَوْفُوا وَأَرْخُوا وَأَرْجُوا وَوَفِّرُوا... (شرح مسلم للامام النووي رحمه الله ج ۱ ص ۱۲۹)

دږيرې په باره کې په رواياتو کې پنځه قسمه الفاظ راغلي دي او پنځه واړه قريب المعنى دي چې ږيره غټه کړه، دا پنځه واړه صيغې دأمر دي او أمر دوجوب لپاره دی، دايې دشرعي والي دليل دی، همدارنګه ږيرې ته من سنن الانبياء ويلې شوي دي، ددې څخه ددې شرعيوالی را معلوميږي بل طرفته هيڅ صحابي، تابعي، تبع تابعي او أهل حق علماوو دقبضې څخه ږيره نه ده کمه کړې او نه چا په کم والي باندې قول کړی دی، لهذا دمودوديانو ږيرې چې دقبضې څخه کمې دي او همدې ته تشهير ورکوي سخت بدعت او ضلالت دی.

صاحب دهدايې دروژې دمکروهاتو په مسايلو کې ليکلي دي چې: (ولا يفعل ذلک لتطويل اللحية اذا کانت بقدر المسنون وهو القبضة)

کله چې ږيره دمسنون مقدار مطابق وه چې قبضه ده، نو ددې څخه دزياتولو لپاره دې تيل نه لګوي، ددې په تشريح کې علامه ابن الهمام فرمايي چې (واما الأخذ منها وهی دون ذلک کما يفعله بعض المغاربة ومخنثه الرجال فلم يبحه أحدٌ) فتح القدير ج ۲ ص ۲۷۰)

دقبضې څخه کمول لکه اجراګان او بعضې غربيان يې چې کوي، نو ديته هيڅ چا هم جايز نه دي ويلي، مودوديان چې دقبضې څخه لنډې ږيرې ته شرعي حکم ورکوي او دقبضې په مقدار ږيرې ته بدعت وايي نو ددوي په عقيده او په علم کې ډير نقصانات راجمع کيږي مثلا:

۱-يو قبضه ږيره چې سنت ده هغې ته بدعت ويل.

۲- دقبضې څخه لنډه ږيره چې بدعت ده هغې ته سنت ويل.

۳- گناه ته نیکي ویل.

۴- متبع السنت ته بدعتي ویل او مبتدع ته متبع السنت ویل.

۵- د خاتمې د خرابېدلو خطر، ځکه چې انسان ته پکار دي چې ګناه ته ګناه ووايي او د توبې په فکر کې شي او چې ګناه ته ګناه نه وايي نو د توبې څه فکر به وکړي؟ د ږيرې خريل چې کله يې ګناه ګڼي صرف عملي ګمراه ده او مودودي لنډه ګيره د عقيدې او د عمل دواړو په اعتبار سره ګمراهي ده.

## د ږيرې پرېښودل او غځول کُلی مشکک دی

کله چې ويښتان لږلږ راښکاره شي او ونه خريلی شي نو دا د پرېښودلو اُولنی فرد دی او اُخری فرد يې دا دی چې د طول او د عرض په اعتبار چې تر کومه پورې ځي تر هغې پورې پرېښودلی شي او د دې ابتداء او انتهاء په منځ کې د کټ کولو او د پرېښودلو په اعتبار سره مختلف افراد دي، په احاديثو کې د مطلق پرېښودلو اُمر دی، نو مودوديان ترينه اُوله درجه مراد وي، لامذهبه اُهلحديث ترينه اُخره درجه مرادوي او اُهل سنت والجماعت فرمايي چې اُقلا د قبضې په مقدار يې پرېښودل واجب دي او د قبضې څخه زيات نه واجب دي او نه سنت دي البته بعضې علماء ورته اُولی وايي، نو د ږيرې د پرېښودلو په باره کې يو رأيه د مودوديانو شوه بله د لامذهبه جعلي اهلحديثو شوه او بله د اُهل سنت والجماعت د علماؤ شوه، د مودوديانو او د لامذهبيانو سره هيڅ نقلي دليل نشته، خصوصاً لامذهبيان چې د قبضې څخه زايدې ږيرې ته فرض وايي نو د قرآن او د سنت څخه هيڅ دليل نه لري، په لامذهبو کې عمومي نقصان دادی چې خپلې شخصي رائې ته د قرآن او د سنت نوم ورکوي او هريو يې ضمناً د خدايي او د پيغمبرۍ دعوه کوي، بل طرفته د اُهل سنت والجماعت سره ډير شرعي دلايل دي.

## د ږيرې وجوب او مسنون مقدار

**مرفوع احاديث:**

حديث نمبر -۱ وَبِهِ قَالَ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، قَالَ: حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ هَارُونَ رحمه الله، عَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ رضي الله عنه، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ رضي الله عنه، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَأْخُذُ مِنْ لِحْيَتِهِ مِنْ عَرْضِهَا وَطُولِهَا.

(ترمذی باب فی الاخذ من اللحية ج ۲ صـ ۱۰۵)

رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د خپلې ږيرې مبارکې د عرض او د طول څخه يو څه کټ کول.

**فايده:** ددې حديث څخه دا خبره ثابته شوه چې د قبضې څخه د زايد و ويښتانو کټ کول جايز دي حرام نه دي او دا هم ثابته شوه چې د اعفاء اللحية څخه مراد تر قبضې پورې اعفاء ده او قبضه ځکه يادوو چې د قبضې څخه کمول بالاجماع حرام دي او بالاجماع دا ثابته ده چې د نبی کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ږيره د قبضې څخه کمه نه وه.

امام ترمذی رحمه الله ددې حديث په سند باندې داسې تبصره کړې ده چې : هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. وَسَمِعْتُ مُحَمَّدَ بْنَ إِسْمَاعِيلَ رحمه الله، يَقُولُ: عُمَرُ بْنُ هَارُونَ مُقَارِبُ الحَدِيثِ لاَ أَعْرِفُ لَهُ حَدِيثًا لَيْسَ لَهُ أَصْلٌ، أَوْ قَالَ، يَنْفَرِدُ بِهِ، إِلاَّ هَذَا الحَدِيثَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْخُذُ مِنْ لِحْيَتِهِ مِنْ عَرْضِهَا وَطُولِهَا، لاَ نَعْرِفُهُ إِلاَّ مِنْ حَدِيثِ عُمَرَ بْنِ هَارُونَ، وَرَأَيْتُهُ حَسَنَ الرَّأْيِ فِي عُمَرَ.

وَسَمِعْتُ قُتَيْبَةَ رحمه الله، يَقُولُ: عُمَرُ بْنُ هَارُونَ كَانَ صَاحِبَ حَدِيثٍ، وَكَانَ يَقُولُ: الإِيمَانُ قَوْلٌ وَعَمَلٌ. سَمِعْتُ قُتَيْبَةَ، قَالَ: حَدَّثَنَا وَكِيعُ بْنُ الجَرَّاحِ، عَنْ رَجُلٍ، عَنْ ثَوْرِ بْنِ يَزِيدَ رحمه الله، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَصَبَ المَنْجَنِيقَ عَلَى أَهْلِ الطَّائِفِ قَالَ قُتَيْبَةُ: قُلْتُ لِوَكِيعٍ: مَنْ هَذَا؟ قَالَ: صَاحِبُكُمْ عُمَرُ بْنُ هَارُونَ رَحِمَهُ اللَّهُ.

خلاصه دا چې دا حديث غريب دی، يعنې دا حديث دا سامه څخه يوازې عمر بن هارون روايت کړی دی، خو په دې خبره ځان پوه کړئ چې هر غريب ضعيف نه وي، د صحيح البخاری اول حديث هم غريب دی او آخر حديث يې هم غريب دی او ضعيف نه دی، خپله امام ترمذی رحمه الله د ډيرو احاديثو په باره کې فرمايي چې صحيح غريب، مخکې امام ترمذی رحمه الله دا امام بخاری قول رانقلوي چې عمر بن هارون (مقبول الحديث) د هر حديث متابع يې شته مگر ددې حديث متابع يې نشته، پدې حديث کې عمر بن هارون متفرد دی، امام بخاری رحمه الله د عمر بن هارون په باره کې ښه رأيه لرله همدارنگه امام ترمذی رحمه الله فرمايي چې ما د خپل استاذ قتيبة رَحِمَهُ اللَّهُ څخه واوريدل چې فرمايل يې چې عمر بن هارون محدث وو او په ايمان کې د زيادت او د نقصان قايل وو، همدارنگه امام قتيبة فرمايي چې ماته وکيع د يو رجل څخه دا حديث بيان کړو چې: نبی کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د طايف د خلکو په خلاف منجنيق ولگولو) بيا ما د وکيع څخه ددې رجل په باره کې پوښتنه وکړه هغه وفرمايل چې دا ستاسو دوست عمر بن هارون دی.

فائده: امام ترمذی رحمه الله په خپله مختصره تبصره کې دخپلو دوو استاذانو څخه دعمر بن هارون توثيق رانقل کړو، امام بخاری يې صراحة توثيق کوي او جليل القدر محدث عمر بن هارون ترينه حديث رانقلوي چې دده دثقه والي دليل دی، دلامذهبو محدث عبدالرحمن مبارکپوری ليکي چې:

أَوْ وَجْهُ ذِكْرِهِ أَنْ يَتَبَيَّنَ أَنَّ وَكِيعًا رَحِمَهُ اللهُ مَعَ جَلَالَةِ قَدْرِهِ قَدْ رَوَى عَنْ عُمَرَ بْنِ هَارُونَ رَحِمَهُمَا اللهُ حَدِيثَ الْمَنْجَنِيقِ (تحفة الاحوذی ج ٤ صـ ١١)

امام ترمذی رحمه الله دلته دمنجنيق حديث ددې لپاره ذکر کړو چې دا واضحه کړي چې د وکيع په شان جليل القدر محدث دعمر بن هارون څخه روايت کوي ددې تبصرې مطابق دامام ترمذی رحمه الله دامام بخاری رحمه الله او دامام وکيع رحمه الله په نيز باندې عمر بن هارون ثقه دی او دده روايت حجت دی.

## دلامذهبو جهالت

غير مقلدين ليکي چې خپله امام ترمذی رحمه الله ددې حديث په باره کې فرمايي چې ددې حديث لپاره أصل نشته (شايع شده اشتهار از دارالحديث محمديه کالم نمبر ۲)

قلنا: "دليس له أصل" او د "لاأصل له" اصطلاحات دمحدثينو په نيز دوه معنی ګانې لري، اول: (ليس له اسناد) يعنی دا حديث سند نه لري، دوهم: متابع نه لري، الشيخ عبدالرحمن بن ابراهيم الخميس ددې دوهمې معنی دذکر کولو څخه وروسته فرمايي چې: وهذا المعنى هو الأكثر استعمالا وهذا مايقصده العقيلي وابن عدیّ فی کتابيهما وکذالک کلّ من ذکرهذا الاصطلاح فی کتاب يرويه فيه باسناده الى النبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کابن حبّان والحاکم والبيهقی (معجم علوم الحديث النبوی صـ ١٧٦)

يعنې دا دمتابع والا معنی ډيره استعماليږي، عقيلي رحمه الله او ابن عدي رحمه الله پخپلو کتابونو کې همدغه معنی مراد کړې ده، همدارنګه هر هغه محدث چې پخپل کتاب کې يې دحديث سره سند ذکر کړی وي او بيا يې ورسره دا اصطلاح ذکر کړې وي نو دهغه همدغه معنی مراده ده، نو په مانحن فيه کې خود حديث سند شته لهذا بالضرورة دوهمه معنی مراده ده، چې دعمر بن هارون دهر حديث متابع وي البته ددې حديث متابع يې نشته، دامام ترمذي رحمه الله په تبصره کې ډير داسې قرائن دي چې ددوهمې معنی تعين ترينه کيږي.

۱-دا حديث امام ترمذی دسند سره ذکر کړی دی، نو څرنګه به د "ليس له أصل" معنی داشي چې سند نه لري؟

۲-امام ترمذي رحمه الله دې حديث ته باطل و نه ويلو بلکې غريب يې ورته وويلو او دغرابت وجه يې دامام بخاری رحمه الله څخه رانقل کړه چې متابع نه لري.

۳-امام ترمذي رحمه الله دغرابت لپاره دليل پيش کوي او دامام بخاري رحمه الله قول رانقلوي لکن دامام بخاری په قول کې تردد کوي چې امام بخاری (ليس له أصل) ويلي دي او که (يتفرد به) يې ويلی دی، لکن ددواړو جملو مقصود به يو وي چې دغرابت ثابتول دي کنه دليل به ددعوې سره مطابق نه شي.

۴-دامام بخاري رحمه الله په نيز باندې عمر بن هارون ثقه دی نو څرنګه دثقه راوي روايت بې أصله کيږي لهذا ضرور د (ليس له أصل) معنی دا ده چې متابع نه لري.

## دلامذهبانو ړوند تقليد

حافظ ابن حجر رحمه الله دمذکور حديث په باره کې فرمايي چې:

وَهٰذَا أَخْرَجَهُ التِّرْمِذِيُّ رحمه الله وَنُقِلَ عَنِ الْبُخَارِيِّ رحمه الله أَنَّهُ قَالَ فِي رِوَايَةِ عُمَرَ بْنِ هَارُونَ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ لَا أَعْلَمُ لَهُ حَدِيثًا مُنْكَرًا إِلَّا هٰذَا (فتح الباری ج ۱۰ صـ ۴۲۹)

دا حديث ترمذي ذکر کړی دی او دامام بخاری رحمه الله قول يې رانقل کړی دی چې دعمر بن هارون صرف دا حديث منکر دی.

قلنا ۱-: امام ترمذي رحمه الله چې دامام بخاري رحمه الله کوم قول رانقل کړی دی په هغې کې دمنکر لفظ نشته.

۲-منکر حديث ديته وايي چې (ما رواه الضعيف مخالفا للثقة) او عمر بن هارون دامام ترمذي رحمه الله او مام بخاری رحمه الله دواړو په نيز ثقه دی، نو دده روايت څرنګه منکر شو؟ دمنکر په تعريف کې خو داروي ضعيف والی شرط وي.

۳-که دامام ترمذي رحمه الله او دامام بخاري رحمه الله او دامام وکيع رحمه الله په خلاف حافظ ابن حجر رحمه الله عمر بن هارون ته ضعيف وايي نو بيا هم دا حديث منکر کيدلی نه شي، ځکه چې

دمنکر حدیث لپاره بل شرط دادی چې دده روایت به دبل ثقه راوي د روایت څخه مخالف وي، نو اوس دبل کوم ثقه راوي په روایت کې راغلي دي چې دقبضې څخه زاید ویښتان مه کټ کوئ؟

او که یو څوک ووایي چې دا حدیث دأعفوا وغیره احادیثو څخه مخالف وي نو مونږ وایو چې دا احادیث دمعنی او دمفهوم په اعتبار سره محتمل دی، دا احتمال هم پکې شته چې تر قبضې پورې اعفاء دی مراده وي، کما یقوله الجمهور، لهذا دا حدیث داعفاء دحدیث څخه مخالف نشو او داعفاء په حدیث کې دا احتمال هم شته چې تر آخره پورې اعفاء دی مراده شي، نو بیا هم دا مذکور حدیث داعفاء داحادیثو څخه مخالف نه دی، بلکې د هغې چا د رائې څخه مخالف شو کومو چې په خپله رأیه باندې ددې احتمال تعین کړی دی.

۴-بالفرض والمحال که دا حدیث ضعیف شي نو بیا هم ډیر شواهد لري کما سیأتی ان شاء الله او دشواهدو له وجې ضعف ختمیږي، لهذا مونږ وایو چې دلته دحافظ ابن حجر رحمه الله څخه وهم شوی دي لکن غیر مقلدین بغیر دتحقیق څخه دابن حجر رحمه الله قول رانقلوي.

حدیث نمبر ۲- حَدَّثَنَا أَبُوحَنِيفَةَ رحمه الله، عَنِ الْهَيْثَمِ رَحِمَهُمَااللهُ، عَنْ أَبِي قُحَافَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّهُ أُتِيَ بِهِ النَّبِيّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلِحْيَتُهُ قَدِ انْتَشَرَتْ فَقَالَ: «لَوْأَخَذْتُمْ» وَأَشَارَبِيَدِهِ إِلَى نَوَاحِي لِحْيَتِهِ. (مسند الامام الاعظم ، کتاب اللباس والزینة صـ ۲۰۵)

ابو قحافه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته راغلو او دږیرې ویښتان یې خواره واره وو، نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې کاشکې چې تاسو دده دږیرې داطرافو ویښتان کټ کړي وي.

حدیث نمبر ۳- وَبِهِ قَالَ: حَدَّثَنَا يُوسُفُ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله، عَنِ الْهَيْثَمِ رَحِمَهُمَااللهُ، عَنْ أَبِي قُحَافَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّهُ أُتِيَ بِهِ النَّبِيّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلِحْيَتُهُ قَدِ انْتَشَرَتْ فَقَالَ: «لَوْأَخَذْتُمْ» وَأَشَارَبِيَدِهِ إِلَى نَوَاحِي لِحْيَتِهِ (کتاب الأثار لأبی یوسف صـ ۲۳٤)

ابو قحافه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته راوستلی شو په داسې حال کې چې دږیرې ویښتان یې خواره واره وو، نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې کاشکې چې تاسو دده دږیرې د اطرافو ویښتان کټ کړي وی.

حدیث نمبر ۴- دغیر مقلدینو شیخ الکل ابو البرکات احمد د(جامعه اسلامیه کوجرانواله شیخ الحدیث) لیکي چې ابن القیم رحمه الله پدې باره کې یو مرفوع روایت هم ذکر کړی دی چې یو چا دنبی

کریم صلی اللہ علیہ وسلم په مخکې داوږدې ږيرې شکايت وکړو ، نو رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم ديوې قبضې طرفته اشاره وکړه چې ددې څخه زياته کټ کوئ (فتاوی برکاتيه ۲۵۸)

حديث نمبر ۵- و عن مُجَاهِدًا رحمہ اللہ، يَقُولُ: رَأَى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا طَوِيلَ اللِّحْيَةِ فَقَالَ: «لِمَ يُشَوِّهُ أَحَدُكُمْ نَفْسَهُ؟» (مراسيل أبي داوٗد صـ ۱۸)

امام مجاهد رحمه الله فرمايي چې رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم يو (د قبضې څخه زيات) داوږدې ږيرې والا سړی وليدلو نو وې فرمايل چې ولې تاسو ځان بدرنګه کوئ؟ دا رو يت مرسل د تابعي دی او مرسل معتضده اتفاقا حجت دی.

حديث نمبر ۶- عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم فِي الْمَسْجِدِ فَدَخَلَ رَجُلٌ ثَائِرَ الرَّأْسِ وَاللِّحْيَةِ، فَأَشَارَ إِلَيْهِ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم، كَأَنَّهُ أمره إِصْلَاحَ شَعَرِ رَأْسِهِ وَلِحْيَتِهِ، فَفَعَلَ ثُمَّ رَجَعَ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم: هَذَا خَيْرًا مِنْ أَنْ يَأْتِيَ أَحَدُكُمْ ثَائِرَ الرَّأْسِ كَأَنَّهُ شَيْطَانٌ. (رواه مالک في موطأه صـ ۷۲۲)

رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم يو دپراګنده سر او ږيرې والا سړی وليدلو ، نو رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم ورته اشاره وکړه لکه د وېښتو دجوړلو أمر يې چې ورته کولو ، هغه سړي خپل وېښته جوړ کړل او بيرته راغلو ، نو رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم ورته وفرمايل چې آيا دا هيئت ددې څخه نه دی بهتر چې راشي يو ستاسو بربر سر لکه شيطان.

حديث نمبر ۷- عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ رضی اللہ عنہ، قَالَ: رَأَى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا مُجْفَلَ الرَّأْسِ وَاللِّحْيَةِ، فَقَالَ: "عَلَى مَا شَوَّهَ أَحَدُكُمْ أَمْسِ؟" قَالَ: وَأَشَارَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى لِحْيَتِهِ وَرَأْسِهِ يَقُولُ: "خُذْ مِنْ لِحْيَتِكَ وَرَأْسِكَ" (تاريخ اصبهان ج ۱ صـ ۳۲٤ شعب الايمان ج ۵ صـ ۲۲۱)

رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم يو سړی وليدلو چې دسر او دږيرې وېښته يې پراګنده وو نو رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم دده دسر او دږيرې طرفته اشاره وکړه چې ددې څخه يو څه وېښتان کټ کړه او دې فرمايل چې تاسو ولې ځان بد شکله کوئ.

حديث نمبر ۸- عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى رَجُلًا ثَائِرَ شَعْرِ الْوَجْهِ وَالرَّأْسِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا عَلَى هَذَا فَانْطَلَقَ الرَّجُلُ فَجَاءَ وَقَدْ أَخَذَ مِنْ شَعْرِ لِحْيَتِهِ وَرَأْسِهِ فَلَمَّا رَآهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَلَيْسَ هَذَا أَحْسَنُ؟ (ادب الاملاء والاستملاء للسمعانی ج ۱ صـ ۳۷)

رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يو سړي وليدلو چې دمخ او دسرويښتې يې پراګنده وو، نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې په ده څه شوي دي؟ هغه سړی لاړو او چې بيرته راتلو نو دږيرې او دسر ويښتان يې جوړ کړي وو کله چې نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وليدلو نو ورته وې فرمايل چې ايا دا شکل دمخکې څخه ښه نه دی؟

حديث نمبر ۹-...انّ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دعا الحجام فأخذ من شعره ولحيته قال فقلت يارسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هل لی هذا الشعر؟ قال خذه يا معاوية الخ (تاريخ دمشق ج ۵۹ صـ۲۲۸، ۲۲۹)

رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حجام راوغوښتلو او دږيرې او دسر يو څه ويښته يې کټ کړل حضرت معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې ما ورته وويل چې يارسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا ويښته ما ته راکړه، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې وايخله.

## دږيرې وجوب ومسنون مقدار دصحابه ؤ او دتابعينو داثارو په رڼا کې

۱- عن مُحَمَّدٌ رحمه الله قَالَ أَخْبَرَنَا أَبُوْ حَنِيْفَةَ رحمه الله عَنِ الْهَيْثَمِ رَحِمَهُمَا اللهُ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رضي الله عنهما أَنَّهُ كَانَ يَقْبِضُ عَلَى لِحْيَتِهِ ثُمَّ يَقُصُّ مَا تَحْتَ الْقَبْضَةِ، قَالَ مُحَمَّدٌ رحمه الله وَبِهِ نَأْخُذُ وَهُوَ قَوْلُ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رحمه الله. (کتاب الاثار للامام محمد صـ۲۰۳)

عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به ږيره په قبضه کې ونيوله او دقبضې څخه زياته به يې کټ کړه، امام محمد رحمه الله فرمايي چې همدا مونږ مختار وو او همدا دامام ابو حنيفه رحمه الله قول دی.

۲- قَالَ: حَدَّثَنَا يُوْسُفُ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ، عَنْ نَافِعٍ رَحِمَهُمُ اللهُ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا أَنَّهُ «كَانَ يَأْخُذُ مِنْ لِحْيَتِهِ (کتاب الاثار لأبی يوسف صـ۱۳٤)

عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به دخپلې ږيرې يو څه ويښتان کټ کول.

۳- قَالَ: حَدَّثَنَا يُوْسُفُ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ، عَنِ الْهَيْثَمِ رَحِمَهُمُ اللهُ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا أَنَّهُ «كَانَ يَقْبِضُ عَلَى لِحْيَتِهِ، فَيَأْخُذُ مِنْهَا مَا جَاوَزَ الْقَبْضَةَ» (حواله سابقه)

حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما به دقبضې څخه زايد ويښتان کټ کول.

٤- حَدَّثَنَا مَرْوَانُ يَعْنِي ابْنَ سَالِمٍ الْمُقَفَّعَ رحمه الله، قَالَ: «رَأَيْتُ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا يَقْبِضُ عَلَى لِحْيَتِهِ، فَيَقْطَعُ مَا زَادَ عَلَى الْكَفِّ» (سنن ابی داؤد ج ۱ صـ۳۲۱، باب قول عند الافطار)

حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما به دقبضې څخه زايد ويښتان کټ کول.

۵- عَنْ نَافِعٍ رحمه الله وَكَانَ ابْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا: «إِذَا حَجَّ أَوِ اعْتَمَرَ قَبَضَ عَلَى لِحْيَتِهِ، فَمَا فَضَلَ أَخَذَهُ»
(صحيح البخاری ج ۲ صـ ۸۷۵)

عبد الله بن عمر رضي الله عنهما به چې کله حج او يا عمره وکړه نو دقبضې څخه زايد ويښتان به يې کټ کول.

**فايده:** ۱- په صحيح البخاری او په صحيح المسلم کې چې په کومو احاديثو کې (اعفو اللحی) او (وفرو اللحی) راغلي دي دهغې احاديثو رواي عبد الله بن عمر رضی الله عنهما دی، حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما چې دقبضې څخه زايد ويښتان کټ کول نو دا ددې خبرې دليل دی چې د اعفاء څخه مراد تريوې قبضې پورې دږيرې غټول دي، کنه حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه به څرنګه دخپل حديث په خلاف عمل کولو؟

۲- په دې حديث کې دحج اودعمرې ذکر اتفاقي دي، ځکه چې مخکې تير شو چې عبد الله بن عمر رضی الله عنهما به دقبضې څخه زايد ويښتان کټ کول، هلته دحج او دعمرې تخصيص نشته.

**حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي:** قُلْتُ الَّذِي يظْهر أَن ابن عُمَرَ رضي الله عنه كَانَ لَا يَخُصُّ هَذَا التَّخْصِيصَ بِالنُّسُكِ بَلْ كَانَ يَحْمِلُ الْأَمْرَ بِالْإِعْفَاءِ عَلَى غَيْرِ الْحَالَةِ الَّتِي تَتَشَوَّهُ فِيهَا الصُّورَةُ بِإِفْرَاطِ طُولِ شَعْرِ اللِّحْيَةِ أَوْ عَرْضِه. (فتح الباری ج۱۰ صـ ۴۲۹)

ظاهره داده چې حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه خپل دا فعل ترحج او ترعمرې پورې خاص نه ګڼلو بل دعبد الله بن عمر رضي الله عنه په نيز باندې دږيرې دغټولو حکم په هغه صورت کې دی چې دطولا او عرضا ډير اوږدوالي په وجه باندې شکل بدنه ښکاري.

**حافظ ابن عبد البر المالکی رحمه الله فرمايي چې:**

کول جایز دي، که بغیر د حج او د عمرې څخه یې کښ کول ناجایز وی نو په حج او په عمره کې به هم ناجایز وي، ځکه چې محرمینو ته حکم شوی دی چې د حج او د عمرې د احرام په وجه چې د څه شي څخه منعه شوي يې هغه وکړئ، یعنې حلق او قصر، بیا عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغه حدیث راوي دی چې په هغې کې د ږیرې د غټولو أمر دی او د خپل روایت په معنی باندې د بل هر چا څخه زیات پوهیږي، نو د عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د جمهورو په نیز باندې معنی داده چې کوم ویښتان چې بد ښکاري د هغوي کښ کول جایز دي.

٦- عَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كُنَّا نُعْفِي السِّبَالَ إِلَّا فِي حَجٍّ أَوْ عُمْرَةٍ. (ابوداؤد ج ۲ ص ۲۲۱، باب فی أخذ الشارب)

سبال د سبلة جمع ده او سبلة د ږیرې مخکنی حصې او سینې ته د ږیرې مخامخ ویښتانو ته وایي (والسبلة عند العرب مقدم اللحية وما أسبل منها على الصدر، مجمع البحار ج ۳ ص ۲۸

حافظ ابن حجر رحمه الله یې ترجمه په اوږدو ویښتو باندې کوي (فتح الباری ج ۱۰ ص ۴۲۹)

حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې مونږ به د ږیرې مخکني زوړند ویښتان پرېښودل، مګر په حج او په عمره کې به مو کښ کول د دې حدیث څخه هم ثابتیږي چې د قبضې څخه د زاید و ویښتانو کښ کول جایز دي، بیا دا عمل یو اځې د حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه دی بلکې حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د جمعې صیغه استعمال کړې ده چې " مونږ داسې کول" د دې څخه معلومیږي دا د ډیرو صحابه وُ عمل وو.

٧- كَانَ عَلِيٌّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يَأْخُذُ مِنْ لِحْيَتِهِ مِمَّا يَلِي وَجْهَهُ. (مصنف ابن ابی شیبه ج ٦ ص ۱۰۸ باب ما قالوا فی الأخذ من اللحية)

حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به هغه ویښته کښ کول چې د مخ سره به متصل وو.

**فایده:** حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه ویښته کښ کول چې د قبضې څخه زاید وو ځکه چې د قبضې څخه د کمو ویښتانو کښ کول ناجایز او حرام دي.

٨- عَنْ أَبِي زُرْعَةَ رَحِمَهُ اللهُ، قَالَ: «كَانَ أَبُو هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يَقْبِضُ عَلَى لِحْيَتِهِ، ثُمَّ يَأْخُذُ مَا فَضَلَ عَنِ الْقُبْضَةِ» (ایضا)

حضرت ابو هریرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به ږیره په قبضه کې ونیوله او د قبضې څخه زاید ویښتان به یې کښ کول.

٩- عَنْ مَنْصُورٍ رَحِمَهُ اللهُ، قَالَ: سَمِعْتُ عَطَاءَ بْنَ أَبِي رَبَاحٍ رَحِمَهُ اللهُ، قَالَ: «كَانُوا يُحِبُّونَ أَنْ يُعْفُوا اللِّحْيَةَ إِلَّا فِي حَجٍّ أَوْ عُمْرَةٍ، وَكَانَ إِبْرَاهِيمُ رَحِمَهُ اللهُ يَأْخُذُ مِنْ عَارِضِ لِحْيَتِهِ (ایضا ج ٦ ص ۱۰۹)

عطاء بن أبي رباح رحمه الله فرمايي چې هغوي (صحابه كرامو) به خوښوله چې د حج او د عمرې څخه ماسوى په نورو وختونو کې ږيرې او ږدې کړي او ابراهيم نخعي رحمه الله به عرضا د ږيرې څخه ويښتان اخستل.

١٠-عَنِ ابْنِ طَاوُسٍ، عَنْ أَبِيهِ رَحِمَهُمَا اللَّهُ: «أَنَّهُ كَانَ يَأْخُذُ مِنْ لِحْيَتِهِ، وَلَا يُوجِبُهُ» (ايضا)

طاوس د ږيرې ويښتان کټ کول او واجب به يې ورته نه ويل.

١١-عَنِ الْحَسَنِ رحمه الله، قَالَ: «كَانُوا يُرَخِّصُونَ فِيمَا زَادَ عَلَى الْقُبْضَةِ مِنَ اللِّحْيَةِ أَنْ يُؤْخَذَ مِنْهَا» (ايضا)

صحابوؤ رضی الله عنهم د قبضې څخه د زياتو ويښتانو په کټ کولو کې اجازت ورکولو.

١٢-عَنْ أَفْلَحَ رحمه الله، قَالَ: «كَانَ الْقَاسِمُ رحمه الله إِذَا حَلَقَ رَأْسَهُ أَخَذَ مِنْ لِحْيَتِهِ وَشَارِبِهِ». (ايضا) قاسم بن محمد به چې کله د سر ويښتان خريل نو د ږيرې او بريتونو ويښتان به يې هم اخستل.

١٣ عَنْ أَبِي هِلَالٍ رحمه الله، قَالَ: سَأَلْتُ الْحَسَنَ، وَابْنَ سِيرِينَ رَحِمَهُمَا اللَّهُ فَقَالَا: «لَا بَأْسَ بِهِ أَنْ تَأْخُذَ مِنْ طُولِ لِحْيَتِكَ». (ايضا)

حسن بصري رحمه الله او ابن سيرن رحمه الله فرمايي چې پدې کې گناه نشته چې د ږيرې د اوږود څخه ويښتان واخلې، (کوم چې د قبضې څخه زيات وي).

١٤- عَنْ إِبْرَاهِيمَ رحمه الله، قَالَ: «كَانُوا يُطَيِّبُونَ لِحَاهُمْ، وَيَأْخُذُونَ مِنْ عَوَارِضِهَا». (ايضا)

ابراهيم نخعي رحمه الله فرمايي چې صحابه كرامو به په ږيرو باندې خوشبوئي لگولې او عرضا به يې ترينه ويښته کټ کول.

١٥- عَنْ نَافِعٍ رحمه الله، أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ رضي الله عنهما كَانَ إِذَا أَفْطَرَ مِنْ رَمَضَانَ، وَهُوَ يُرِيدُ الْحَجَّ، لَمْ يَأْخُذْ مِنْ رَأْسِهِ، وَلَا مِنْ لِحْيَتِهِ شَيْئًا، حَتَّى يَحُجَّ (موطاء امام مالک صـ ٤٢١)

کله به چې د شوال مياشت راغله او عبد الله بن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به د حج اراده کړې وه، نو د ږيرې او د سر ويښتان به يې تر هغې پورې نه کټ کول تر څو به يې چې حج نه وو کړی، د دريم، څلورم او پنځم نمبر احاديثو لاندې تير شو چې عبد الله بن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به د قبضې څخه زايد ويښتان کټ کول.

١٦-عن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أنه رأى رجلا قد ترک لحيته حتى كبرت فأخذ يجذبها ثم قال ائتونى بجلمتين ثم أمر رجلا فجز ما تحت يده ثم قال اذهب فأصلح شعرک او أفسده يترک أحدكم نفسه حتى كأنه سبعٌ من السباع (عمدة القارى صـ ٢٢، صـ ٧٢، شرح البخارى لابن بطال ج ٩ صـ ١٤٦)

حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يو داوږدې ږيرې والا سړی وليدلو، نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دده ږيره ونيوله او دځان طرفته يې راکاږله او بيا يې حکم وکړو چې ماته قينچي راوړئ، بيا يې يو سړي ته حکم وکړو نو دقبضې څخه لاندې ږيره يې ورته کټ کړه، بيا يې وفرمايل چې ورشه يا خپل ويښتان جوړ او يا خراب کړه، تاسو ځان داسې پرېږدئ لکه دځناورو څخه يو ځناور .

۱۷-الله تعالى فرمايي: ثُمَّ لْيَقْضُوا تَفَثَهُمْ (پاره ۱۷) .

چې کله احرام وسپړي نو بيا دې خامخا خپل خيري لرې کړي.

د(التفث) په تفسير کې مفسرين فرمايي چې ويښتان دې وخرئي او يا دې يې کم کړي دتخرګونو او دنوم څخه لاندې ويښتان دې صفا کړي ، والأخذ من العارضين (تفسير القـرطبي، ددواړو غومبرو ويښتان دې کټ کړي .

۱۸-محمد بن کعب القرظی فرمايي (رمى الجمار ... وأخذ من الشاربين واللحية ) ايضا.

۱۹-ابن جريج رحمه الله فرمايي: (الأخذ من اللحية (ايضا)

۲۰-امام مجاهد رحمه الله فرمايي : (حلق الرأس ... وقص اللحية (ايضا) وتفسير در منثور ج ٤صـ ٤٢٣، شرح العمدة لابن تيميه ج ۳صـ ۷)

قاعده داده: چې (الحـديث يفسـر بعضـه بعضـا) بعضې احاديث دبعضو نورو تفسير کوي په دې مذکورو شلو احاديثو کې بعضې مرفوع دي او بعضې نور دصحابه کرامو رضی الله عنهم او دتابعينو اثار دي، چې دا ټول د اعفاء داحاديثو لپاره دتفسير کار ورکوي، لهذا ددې شلو احاديثو په رڼا کې دأهل سنت والجماعة ټول علماء کرام فرمايي چې داحاديثو داعفاء څخه تريوې قبضې پورې وجوبا غټول مراد دي او دقبضې څخه زيات واجب نه دي ، بلکې دجمهورو په نيزيې بلا کراهته کټ کول جايز دي او بعضو ورته مکروه تنزيهي ويلي دي او که دقبضې څخه دغټوالي په صورت کې ورسره شکل بد ښکاريدلو او سخرې او داستهزاء لپاره سبب جوړيدلو نو بيا يې ترقبضې پورې کټ کول ضروري دي .

## دلامذهبو څخه پوښتنه!

مونږ دا عفاء لپاره په تفسير کې دامذکور احاديث پيش کړل چې ترقبضې پورې اعفاء واجبه ده لامذهبان وايي چې ترأخره پورې اعفاء واجبه ده، نو دوي دې مهرباني وکړي او دخپلې رأې لپاره دې صرف يو حديث يا أثر پيش کړي.

## خيرالقرون

رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي چې: خيرالقرون قرني ثم الذين يلونهم ثم الذين يلونهم.

دخيرالقرون زمانه درې طبقې وې، صحابه كرام رضی الله عنهم، تابعين، تبع تابعين، پدې أهل الخير كې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت على رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت ابو هريرة رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت عبدالله بن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت جابر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او نور صحابه كرام او قاسم بن محمد رحمه الله، حسن بصري رحمه الله، محمد بن سيرين رحمه الله، ابراهيم نخعي رحمه الله، عطاء بن ابى رباح رحمه الله، طاؤس بن كيسان رحمه الله، عامر شعبى رحمه الله وغيره ددې ټولو په نيز دږيرې مسنون مقدار يوه قبضه ده.

## دږيرې مسنون مقدار دڅلورو واړو مذهبونو په رڼا کې

دڅلورو واړو امامانو او ددوي دمتبعينو په نيز دږيرې مسنون مقدار يوه قبضه ده، ديوې قبضې څخه کمول حرام او ديوې قبضې څخه دزياتو ويښتانو کټ کول جايز دي.

**احناف:** مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللهُ قَالَ أَخْبَرَنَا أَبُو حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ عَنِ الْهَيْثَمِ رَحِمَهُ اللهُ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا أَنَّهُ كَانَ يَقْبِضُ عَلَى لِحْيَتِهِ ثُمَّ يَقُصُّ مَا تَحْتَ الْقَبْضَةِ قَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللهُ وَبِهِ نَأْخُذُ وَهُوَ قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ. (كتاب الاثار صـ ۲۰۳، باب حف الشعر من الوجه)

عبد الله بن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به دقبضې څخه لاندې ږيره کموله امام محمد رحمه الله فرمايي چې همدا زمونږ مسلک دی او همدا دامام ابو حنيفه رحمه الله قول دی په هدايه مع فتح القدير ج ۲ص ۲۶۹، (بـاب مـا يوجب القضاء والكفارة) په أخر کې راغلي دي چې (ولا يفعل لتطويل اللحية اذا كانـت بقـدر المسـنون وهو القبضة).

چې کله چې ږيره مسنون مقدار يعنې قبضې ته ورسيږي، نو بيا يې دنورو اږدولو لپاره دتيلو لګول نه دي پکار، دلته د ابن الهمام رحمه الله دتشريح خلاصه داده چې دقبضې څخه دزايدو ويښتانو کټ کول ثابت دي، لکه څرنګه چې په ترمذي کې دحضرت عبد الله بن عمرو بن العاص په حديث کې راغلي دي، پاتې شوه دا خبره چې په صحيح بخاری او په صحيح مسلم کې دحضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما مرفوع حديث دی چې بريتونه کټ کوئ او ږيرې اوږدوئ نو دا حديث خو دترمذي دحديث څخه مخالف دی، نو ددې جواب دادی چې په کتاب الاثار للامام محمد په سنن نسائي او په سنن أبی داؤد کتاب الصوم کې هم دعبد الله بن عمر رضی الله عنهما عمل ذکر شوی دی چې هغه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به دقبضې څخه زايده ږيره کټ کوله او همداسې ابو هريرة رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ چې دږيرې داوږدولو حديث يې روايت کړی

دی نو دابو هريرة رَضِوَاللّٰهُعَنْهُ څخه هم دقبضې څخه دزيادې ږيرې لنډول روايت شوي دي او قانون دادی چې راوي چې دخپل روايت په خلاف باندې عمل وکړي نو دده روايت يا منسوخ او يا مؤول وي ، نو دلته اګر چې دږيرې داوږدولو والا حديث منسوخ نه دی لکن معنی يې داده چې دږيرې دومره لنډول چې دقبضې څخه هم لنډه شي، لکه څرنګه چې عجميان ، مجوسيان،هندوان او انګريزان کوي نو دا ممنوع ده،نو ددواړه قسمه احاديثو په مابين کې موافقت پيدا شو.

دابن الهمام رحمه الله ددې تحقيق په شان تحقيق په البحر الرائق ج ۳صـ ۳۰۲،ردالمحتار ج ۳صـ ۴۵۶) کې هم راغلی دی.

علامه عينی رحمه الله فرمايي چې بعضې خلک ږيره دومره اوږدوي چې شکل ورسره بد ښکاري او وايي چې مونږ دحديث په ظاهر باندې عمل کوو، نو ددې په باره کې مونږ وايو چې دا صورت ددې حديث څخه مستثنی دی او په استثناء باندې حديث موجود دی ، لهذا دداسې ږيرې اصلاح کول واجب دي، چې دمسخرې او داستهزاء لپاره سبب جوړيږي ، لکن ترکومه پورې يې کټ کول پکار دي نو بعضې علماء فرمايي چې په طول کې دی، دقبضې څخه زايد ويښتان کټ کړل شي او په عرض کې دی پراګنده ويښتان کټ کړل شي او بعضې وايي چې دأهل شرع دعرف په مقدار دې کټ کړل شي (چې ديوې قبضې څخه دزايدو ويښتانو کټ کول دي) عمدة القاری ج ۲۲صـ ۷۲)

صاحب درد المحتار ليکي :

ولا بأس بنتف الشيب وأخذ اطراف اللحية والسنة فيها القبضة (رد المحتار كتاب الحظر والاباحة ج ۹صـ ۵۸۳، مكتبه امداديه)

دسپينو ويښتانو ايستل پروا نه لري، همدارنګه دږيرې دغاړو څخه دويښتو کټ کول هم پروا نه لري او سنت طريقه يوه قبضه ږيره ده.

ملا علی القاری رحمه الله دابو قحافه رَضِوَاللّٰهُعَنْهُ دلحې دحديث په تشريح کې فرمايي چې:

لو أخذتم نواحی لحيته طولا وعرضا وتركتم قدر المستحب وهو مقدار القبضة وهی الحد المتوسط بين الطرفين المذمومين من ارسالها مطلقا ومن حلقها وقصها علی وجه استيصالها وفی حديث الترمذی عن ابن عمرو أنه عليه الصلوة والسلام كان يأخذ من لحيته من عرضها وطولها (شرح مسند ابی حنيفه صـ ۴۲۳)

کاشکې چې تا دږيرې داوږدو او دپلنو څخه يو څه ويښتان کټ کړی وای او مستحب مقدار دې پريښی وي چې دقبضې مقدار دی او مستحب مقدار ددوو مذمومو طرفونو په مابين کې متوسط او معتدل مقدار دی هغه مذموم دوه طرفه يو مطلقا پريښودل دي او بل طرف خريل او يا دومره لنډول دي چې دختمولو په شان

# امام مالک رحمه الله او مالکی فقهاء

امام مالک رحمه الله دمطلق ارسال قایل نه دی، بلکې دهغه په نزد هم اوږده ږیره مکروه ده امام نووي رحمه الله فرمايي چې وکره مالک طولها جدا (نووي شرح مسلم ج ١ صـ١٢٩) ابو الولید باجی رحمه الله فرمايي چې (قیل لمالک فاذا طالت جدا قال اری أن یؤخذ منها وتقص، المنتقی ج ۷ صـ ۲٦٦) یو چا امام مالک رحمه الله ته وفرمایل چې که ږیره ډیره اوږده شي نو څه حکم یې دی؟ هغه ورته په جواب کې وفرمایل چې زما رأیه داده چې یو څه ویښتان دې یې کټ کړی شي.

قاضی عیاض لیکي چې:

**يُكْرَهُ حَلْقُهَا وَقَصُّهَا وَتَحْرِيقُهَا وَأَمَّا الْأَخْذُ مِنْ طُولِهَا وَعَرْضِهَا فَحَسَنٌ وَتُكْرَهُ الشُّهْرَةُ فِي تَعْظِيمِهَا كَمَا تُكْرَهُ فِي قَصِّهَا وَجَزِّهَا** (شرح مسلم للنووی ج ١ صـ ١٢٩) دږیرې خریل او لنډول او سوزول یې مکروه دي او دعرض او دطول څخه یې ویښته اخستل بهتر دي او لکه څرنګه چې دږیرې ډیر لنډول مکروه دي نو همدارنګه په اوږده ږیره کې شهرت هم مکروه دی.

مشهور مالکی قاضی ابو بکر بن عربی رحمه الله فرمايي چې: ان ترک لحیته فلا حرج علیه الا أن یقبح طولها فیستحب أن یأخذ منها (عارضة الاحوذی ج ١٠ صـ ٢١٩) که خپله ږیره یې پرېښودله نو هیڅ حرج پرې نشته مګر که بده ښکاریدله نو بیا یې کټ کول مستحب دی (علامه زرقانی رحمه الله فرمايي چې: **يُكْرَهُ حَلْقُهَا وَقَصُّهَا وَتَحْرِيقُهَا وَأَمَّا الْأَخْذُ مِنْ طُولِهَا وَعَرْضِهَا فَحَسَنٌ وَتُكْرَهُ الشُّهْرَةُ فِي تَعْظِيمِهَا كَمَا تُكْرَهُ فِي قَصِّهَا وَجَزِّهَا** (شرح الزرقانی ج ٤ صـ ٣٣٥)

چونکې اعتدال محبوب دی او ډیر اوږد والی کله شکل بدرنګه کوي او غیبت کونکو ته دزبان درازۍ موقع ورکوي، له دې وجې ددې کټ کول مستحب دی البته ډیر کټ کول یې او سر په سر کول یې مکروه دي.

مشهور مالکی فقیه تلمسانی المتوفی سنـــه ۷۸۱ هـ فرمايي چې:

وعن الحسن بن المثنی أنه قال اذا رأیت رجلا ذالحیة طویلة ولم یتخذ لحیته بن لحیتین کان فی عقله وقیل ماطالت لحیة انسان قط الا ونقص من عقله مقدار ماطال من لحیته ومنه قول الشاعر

اذا کبرت للفتی لحیته ... فطالت وصارت الی سرته

فنقصان عقل الفتی عندنا... بمقدار ماطال من لحیته

(شرح الشفا للملاعلی قاری ج ١ صـ ٣٦٤)

حسن بن مثنی فرمايي چې کوم سړي چې خپله ږیره دافراط او دتفریط په مابین کې نه وه پرېښې بلکې اوږده کړې یې وه، نو دده په عقل کې نقصان دی او داسې ویلی شوي دي چې څومره ږیره او چې ږدیږي همغومره

يې عقل کميږي، يو شاعر وايي چې: کله چې ديو څوان ږيره ترنو مه پورې غټه شي نو دده د عقل نقصان دږيرې او دوږد والي به مقدار دی.

ابو عبد الله محمد بن خليفه رحمه الله المتوفی سنـــه ۸۲۷ هـق دامام نووي رحمه الله پدې قول چې (المختار ترکها) شرح مسلم ج ۱ صـ ۱۲۹) باندې تنقيد کوي او ليکي چې:

فی الحديث ان الله تعالی زين بنی آدم باللحی واذاکانت زينة فالاحسن تحسينها بالأخذ منها طولا وعرضا وتحديد ذلک بما زاد علی القبضة کما کان ابن عمر يفعل وهذا فی من تزيد لحيته وأما من لاتزيد لحيته فيأخذ من طولها وعرضها بما فيه تحسين فان الله جميل يحب الجمال (اکمال اکمال المعلم ج ۲ صـ ۳۹)

په حديث کې خو داسې راغلي دي چې الله تعالی سړي په ږيرو باندې ښکلي کړي دي او کله چې ږيره زينت شوه نو ښکلي کول يې بهتر دی چې طولاً او عرضاً يې کټ کول دي، او دکټ کولو مقدار ديوې قبضې څخه زايد وينښتان دي، لکه څرنګه چې عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کول، دقبضې څخه دزيادت قيد دهغه چا لپاره دی چې دهغه ږيره ډيره غټيږي او دچا ږيره چې ډيره نه غټيږي هغه دې هم طولاً او عرضًا دومره وينښتان کټ کړي چې دهغې په وجه يې ږيره ښکلې شي ځکه چې الله تعالی جميل دی او جمال خوښوي.

مشهور مالکی حافظ ابن عبد البر المالکی رحمه الله فرمايي چې:

فی أخذ بن عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا مِنْ آخِرِ لِحْيَتِهِ فِي الْحَجِّ دَلِيلٌ عَلَى جَوَازِ الْأَخْذِ مِنَ اللِّحْيَةِ فِي غَيْرِ الْحَجِّ لِأَنَّهُ لَوْ كَانَ غَيْرَ جَائِزٍ مَا جَازَ فِي الْحَجِّ لِأَنَّهُمْ أُمِرُوا أَنْ يَحْلِقُوا أَوْ يُقَصِّرُوا إِذَا حَلُّوا مَحَلَّ حَجِّهِمْ مَا نهوا عنه فی حجهم، وابن عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أعفوا اللحا وَهُوَ أَعْلَمُ بِمَعْنَى مَا رَوَى فَكَانَ الْمَعْنَى عِنْدَهُ وَعِنْدَ جُمْهُورِ الْعُلَمَاءِ الْأَخْذُ مِنَ اللِّحْيَةِ مَا تَطَايَرَ وَاللّٰهُ أَعْلَمُ (الاستذکار ج ۴ صـ ۳۱۷، بيروت)

عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې په حج او په عمره کې دقبضې څخه زايد وينښتان کټ کول نو دده رضی الله عنه دا فعل ددې خبرې دليل دی چې په غير دحج او دعمرې کې هم دقبضې څخه دزايدو وينښتانو کټ کول جايز دي، که بغير دحج او دعمرې څخه يې کټ کول ناجايز وی نو په حج او په عمره کې به هم ناجايز وي، ځکه چې محرمينو ته حکم شوی دی چې دحج او دعمرې داحرام په وجه چې دڅه شي څخه منعه شوي يې هغه وکړئ، يعنې حلق او قصر، بيا عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دهغه حديث راوي دی چې په هغې کې دږيرې دغټولو أمر دی او دخپل روايت په معنی باندې دبل هر چا څخه زيات پوهيږي، نو دعبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او دجمهورو په نيز باندې معنی داده چې کوم وينښتان چې بد ښکاري دهغوي کټ کول جايز دي.

## امام شافعي او شافعي فقهاء

امام شافعي رحمه الله هم د مطلق ارسال قايل نه دی، د امام شافعي رحمه الله په نيز باندې د حج او د عمرې د احرام څخه د وتلو لپاره د ږيرې او د بريتونو څخه ديو څه ويښتانو کټ کول مستحب دي حالانکې د ږيرې د ويښتو کټ کول د نُسکو څخه نه دي.

امام شافعي رحمه الله فرمايي چې:

وَأَحَبُّ إِلَيَّ لَوْ أَخَذَ مِنْ لِحْيَتِهِ وَشَارِبَيْهِ حَتَّى يَضَعَ مِنْ شَعْرِهِ شَيْئًا لِلَّهِ، وَإِنْ لَمْ يَفْعَلْ فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ؛ لِأَنَّ النُّسُكَ إِنَّمَا هُوَ فِي الرَّأْسِ لَا فِي اللِّحْيَةِ (الام ج ۲ صـ ۱۱)

زما په نيز بهتره دا ده چې د الله تعالى لپاره د ږيرې او د بريتونو څخه هم يو څه ويښتان کټ کړی شی او که کټ يې نه کړل نو هم پروا نلري ځکه چې د حج او د عمرې د افعالو تعلق د سر د ويښتو سره دی د ږيرې د ويښتو سره نه دی.

مشهور شافعي محقق حافظ ابو عبد الله حسين بن حسن الحليمي المتوفى سنـه ۴۰۳ هـق)

د ږيرې په مسئله کې د جمهورو سره دی، له دې وجې يې: د (احفوا الشوارب واعفو اللحى) د حديث د رانقولو څخه وروسته د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، ابو هريرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د ابراهيم نخعي رحمه الله عمل او د حسن بصری او د طاؤس قول رانقل کړی دی (المنهاج فی شعب الايمان ج ۳ صـ ۸۷، امام غزالی رحمه الله فرمايي چې:

والأمر فی هذا قريب ان لم ينته الى تقصيص اللحية وتدويرها من الجوانب فان الطول المفرط قد يشوه الخلقة ويطلق السنة المغتابين بالنبذ اليه فلا بأس بالاحتراز عنه على هذه النية قال النخعی رحمه الله عجبت لرجل عاقل طويل اللحية كيف لا يأخذ من لحيته ويجعلها بين لحيتين فان التوسط فی كل شیء حسن ولذالک قيل كلما طالت اللحية تشمر العقل (احياء علوم الدين ج ۱ صـ ۱۴۳)

د ږيرې د ويښتو کټ کول جايز دي په دې شرط چې ډيره لنډه او مدوره نه شي، زياته اوږده ږيره يو طرفته فطري حسن ختموي او بل طرفته د غيبت کونکو د کنځلو ژبې خلاصوي، نو په دې نيت باندې د دومره اوږدې ږيرې څخه په ځان ساتلو کې باک نشته، ابراهيم نخعي رحمه الله فرمايلي دي چې زه هغه هوښيار سړي ته حيران يم چې اوږده ږيره لري، ولې د ږيرې ويښته نه کټ کوي چې د افراط او د تفريط په منځ کې شي؟ اعتدال په هر شي کې ښه دی له دې وجې ويل کيږي.

چې څومره ږيره اوږديږي هغومره عقل رخصتيږي، حافظ ابن حجر عسقلانی رحمه الله د عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حديث (اعفو اللحى) او د ده د عمل په مابين کې تعارض دفع کوي او فرمايي چې:

ويمكن الجمع بحمل النهى على الاستيصال او ماقاربه بخلاف الأخذ المذكور ولاسيما أن الذى فعل ذلک هو الذى رواه (درايه برحاشيه هدايه ج ۱صـ ۲۲۲)

دعبدالله بن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دحديث او دده دعمل په مابين کې په داسې طريقه باندې تطبيق ممکن دی چې دږيرې دغټولو حديث دږيرې په ختمولو اويا ختمولو ته په ورنږدې کولو باندې ورحمل شي، په خلاف دعبد الله بن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دعمل څخه چې په هغې کې دمعمولي ويښتو اخستل ذکر شوي دي او دا توجيه ځکه ضروري ده چې ددې عمل کونکی صحابي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دحديث روايت کونکی دی.

همدارنګه حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې:

الذى يظهر أن ابن عمر كان لا يخص هذا التخصيص بالنسک بل كان يحمل الأمر بالاعفاء على غير الحالة التى تشوه منها الصورة بافراط طول شعر اللحية او عرضه (فتح البارى ج ۱۰صـ ٤۲۹، باب تقليم الاظفار)

عبد الله بن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ چې دقبضې څخه زايد ويښتان کټ کول نو دايې يوازې دحج او دعمرې څخه وروسته نه کټ کول بلکې عبد الله بن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ اعفاء په هغه صورت ورحملوله چې شکل ورسره بد نما نشي په داسې طريقه چې ږيره طولا او عرضا ډيره اوږده شي.

طبري رحمه الله ليکي چې:

أن الرجل لو ترک لحيته لا يتعرض لها حتى أفحش طولها وعرضها لعرض نفسه لمن يسخر به (بحواله فتح البارى ج ۱۰صـ ٤۲۹)

يو سړی چې ږيره ډيره اوږده کړي نو د ځان څخه به ريشخند جوړ کړي.

علامه حسين بن عبد الله محمد طيبى الشافعى رحمه الله دعبدالله بن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په عمل باندې تبصره کوي او فرمايي چې:

وهذا لا ينافى قوله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : اعفوا اللحى ، لان المنهى هو قصها كفعل الاعاجم او جعلها كذنب الحمام والمراد بالاعفاء هو التوفير منها كما فى الرواية الاخرى والأخذ من الاطراف قليلا لا يكون من القص فى شىء (بحواله مرقاة المفاتيح لملا على القارى ج ۸صـ ۲۲۳، بيان الترجل الفصل الثانى )

دعبدالله بن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عمل: د رسول الله رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ددې ارشاد سره چې (اعفو اللحى) دی منافى نه دی، ځکه چې ممنوع کټ کول هغه دي چې دعجمو په شان کټ کړی شي او يا دکوترې دلکۍ په شان کټ کړی شي او داعفاء څخه مراد دادی چې ږيره په پوره مقدار پريښودلی شي او داطرافو څخه لږ لږ کټ کول په قص کې نه دي داخل.

محدث عبدالرؤف المناوي الشافعي رحمه الله المتوفی سنـه ۱۰۳ ه ق په شرح د جامع الصغير کې فرمايي چې:

محل الاعفاء فی غير ما طال من اطرافها حتی تشعث وخرج عن السمت أمّا هو فلا يکره قصّه (فيض القدير ج ۱ صـ ۱۹۸)

د ږيرې د اوږدولو حکم دهغه صورت څخه ماسوی دی چې د ږيرې اطراف ډير اوږده او پراګنده شي او د وقار د حد څخه ووزي د پراګنده ويښتو کټ کول مکروه نه دي.

السيد سابق د سنن الفطرة لاندې ليکي چې:

اعفاء اللحية وترکها متی تکثر بحيث تکون مظهـرا مـن مظـاهر الوقـار فلاتقصر تقصيرا يکون قريبا من الحلق ولاتترک حتی تفحش بل يحسن التوسط فانه فی کل شیء حسنٌ (فقه السنة ج ۱ صـ ۳۸)

د ږيرې پرېښودل تر دومره مقداره پورې دي چې وقار ورسره ظاهر وي، دومره دې نه کميږي چې خريلو ته نږدې شي او ډيره دې اوږدوي هم نه بلکې توسط بهتر دی ځکه چې توسط په هر شي کې ښه دی.

## امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ ٱللَّهُ او حنبلی فقهاء رَحِمَهُمُ ٱللَّهُ

د امام احمد رحمه الله خاص شاګرد اسحاق بن ابراهيم بن هاني رحمه الله چې د نهه کلنۍ څخه د امام احمد د وفاته پورې ورسره پاتې شوی دی هغه فرمايي:

سَأَلْتُ أَحْمَدَ رَحِمَهُ اللهُ عَنِ الرَّجُلِ يَأْخُذُ مِنْ عَارِضَيْهِ؟ قَالَ: يَأْخُذُ مِنَ اللِّحْيَـةِ مَـا فَضُـلَ عَنِ الْقَبْضَةِ.قُلْتُ: فَحَدِيثِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:((أَحِفُوا الشَّوَارِبَ وَأَعْفُـوا اللِّـحٰی)) ؟قَـالَ: يَأْخُذُ مِنْ طُولِهَا وَمِنْ تَحْتِ حَلْقِهِ. وَرَأَيْتُ أَبَا عَبْدِ اللَّهِ رَحِمَهُ اللهُ يَأْخُذُ مِنْ طُولِهَا وَمِنْ تَحْتِ حَلْقِهِ (مسائل الامام احمد بن حنبل ج۳صـ ۱۵۱، ۱۵۲)

ما د امام احمد رحمه الله څخه د هغه سړي په باره کې پوښتنه وکړه چې د غومبرو ويښته کټ کوي؟ نو امام احمد رحمه الله وفرمايل چې د قبضې څخه زيات ږيره دې کټ کوي، نو ما ورته وويل چې بيا د اعفوا اللحی څه معنی شوه ؟ نو امام احمد رحمه الله وفرمايل چې د طول او د حلق څخه لاندې دې يې کټ کوي او ما امام احمد رحمه الله وليدلو چې د غومبورو او د حلق څخه لاندې ويښتان به يې کټ کول.

الشيخ منصور بن يوسف ليکي چې:

ويعفی لحيته ويحرم حلقها ذکره الشيخ تقی الدين ولا يکره أخذ مازاد علی القبضـة منهـا وماتحت حلقه (الروض المربع شرح زاد المستقنع ج ۱ صـ ۱۹)

ږیره به او ږدوئ، د ږیرې خریل حرام دي او د قبضې څخه دزایدې ږیرې خریل مکروه نه دي، همدارنګه دحلق څخه دلاندې ږیرې خریل مکروه نه دي، دفقهې حنبلي په لاندې ټولو کتابونو کې راغلي دي چې : ولا یکره أخذ مازاد علی القبضة (کشف القناع ج ۱صـ ۷۵، الانصاف فی معرفة الراجح من الخلاف ج ۱صـ۲۱، الاقناع، غذاء الالباب، دلیل الطالب، منار السبیل وغیره)

## دلامذهبه جعلی أهلحدیثو په فتاوو کې هم دا مضمون شته

نذیر حسین دهلوي لیکي چې: *داڑی کا دراز رکہنا بقدر ایک مشت کی واجب ہی (فتاوی نذیریہ ج ۳ص-۳۵۹)* همدارنګه وګوره فتاوی ثنائیه ج۲صـ۱۲۳، فتاوی برکاتیه صـ۲۵۸) فتاوی أهل حدیث ج ۱صـ۱۱۱)

## دلامذهبو څخه یو څو سوالونه

په جواب کې دخپل دعوې مطابق صرف ایت او یا حدیث ولیکئ:

۱- دږیرې حد څومره دی؟کوم ویښتان په ږیره کې داخل دي او کوم خارج دي؟

۲-دږیرې پرېښودل فرض دي؟ او که واجب دی؟او که سنت؟

او دفرض، واجبو، او سنتو تعریف څه دی؟

۳- د وریزو د ویښتو کټ کول څه حکم لري؟

۴- دحلق (مرۍ) دویښتو دکټ کولو څه حکم دی؟

۵-دږیرخریلي سړي دامامت څه حکم دی؟

۶- دږیر خریلي د اذان څه حکم دی؟

۷- دږیر خریلي دجنازې څه حکم دی؟

۸-یو چا د یو سړي ږیره وخریله لکن بیرته راشنه شوه نو ددې حکم څه دی؟ قصاص دی او که دیت؟

۹-که یو چا دیو قبضې څخه زاید ویښتان کټ کړل نو دا سړی فاسق دی او که نه؟ حد او یا تعزیر پرې شته او که نه؟

۱۰- په قینچې باندې دږیرې کټ کول، په پاکی باندې یې صفا کول، او په بال صفا باندې یې ختمول، یو حکم لري او که فرق پکې شته؟

وصلی الله تعالی علی خیر خلقه وآله واصحابه وأهل بیته اجمعین یارب العالمین

يٰبَنِىٓ اٰدَمَ خُذُوْا زِيْنَتَكُمْ عِنْدَ كُلِّ مَسْجِدٍ-الاية

## په مانځه کې دسرپټول

## دېګړې اودخولې په سرکول



بسم الله الرحمن الرحیم

الحمد لله وحده والصلوة والسلام علی من لانبی بعده

امابعد !

په مانځه کې دسر پټول مستحب دی او دلوڅ سر لمونځ لپاره ډیر صورتونه دي

۱-دعذر او دمجبورۍ په حالت کې لوڅ سر لمونځ کول بغیر دکراهته جایز دی.

۲- دسستۍ وجې له کله کله لوڅ سر لمونځ کول مکروه تنزیهیي دي ځکه چې دمستحبو په پرېښودلو باندې په ثواب کې کمی راځي.

۳-لوڅ سر لمونځ کول خپل عادت جوړول او سنت ورته نه ویل مکروه تحریمي دی.

۴-لوڅ سر لمونځ ته سنت ویل او بیا لوڅ سر لمونځ کول بدعت دی.

۵-لوڅ سر لمونځ کول داستخفاف الصلوة یعنې دمونځ دمعمولي عمل ګڼلو له وجې کفر دی.

۶-دعاجزۍ او دخشوع په طریقه باندې به لوڅ سر لمونځ کولو کې اختلاف دی، حقه خبره داده چې دا طریقه غیر مستحسنه ده ځکه چې دخشوع او دعاجزۍ تعلق دزړه سره دی، البته که په یو سړي باندې قلبي کیفیت دومره غالب شو چې مغلوب الحال شو او لوڅ سر لمونځ یې وکړو نو داسې سړی مجبور دی.

قال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ اللّٰهُ: (وَصَلَاتُهُ حَاسِرًا) أَيْ كَاشِفًا (رَأْسَهُ لِلتَّكَاسُلِ) وَلَا بَأْسَ بِهِ لِلتَّذَلُّلِ، وَأَمَّا لِلْإِهَانَةِ بِهَا فَكُفْرٌ وَلَوْ سَقَطَتْ قَلَنْسُوَتُهُ فَإِعَادَتُهَا أَفْضَلُ (الدر المختار ،مکروهات الصلوة)

الحاصل؛ په مانځه کې خولۍ او یا پګړۍ په سر کول مستحب او دمانځه د أدابو څخه دی چې دکتاب، دسنت، داجماع الامت، داثارو دصحابه وو او دتابعینو، دعربو او دعجمو دعلماؤ دفتوی وو او دامت دصلحاوو دتعامل او دعملي تواتر څخه ثابت دي، البته داحرام حالت مستثنی دی.

## په مانځه کې دسر پټول دقرآن په رڼا کې

الله تعالی فرمايي چې: ﴿ يٰبَنِيْٓ اٰدَمَ خُذُوْا زِيْنَتَكُمْ عِنْدَ كُلِّ مَسْجِدٍ ﴾
دهر مانځه په وخت کې ښکلی لباس واغوندئ، پګړۍ او خولۍ هم په زینت کې شامل دي او ددې حکم لاندې داخل دي.

## په مانځه کې دسر پټول داحاديثو په رڼا کې

اول حديث: عَنْ بَهْزِ بْنِ حَكِيمٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ رضي الله عنه لَمَّا قَالَ: قُلت يَا رَسُولَ اللّٰهِ! فَإِذَا كَانَ أَحَدُنَا خَالِيًا. قَالَ ﷺ: فَاَللّٰهُ أَحَقُّ أَنْ يُسْتَحْيَا مِنْهُ مِنَ النَّاسِ} " فَإِذَا كَانَ هٰذَا خَارِجَ الصَّلَاةِ فَهُوَ فِي الصَّلَاةِ أَحَقُّ أَنْ يُسْتَحْيَا مِنْهُ فَتُؤْخَذُ الزِّينَةُ لِمُنَاجَاتِهِ سُبْحَانَهُ. وَلِهٰذَا قَالَ ابْنُ عُمَرَ رضي الله عنه لِغُلَامِهِ نَافِعٍ رحمه الله لَمَّا رَآهُ يُصَلِّي حَاسِرًا: أَرَأَيْت لَوْ خَرَجْت إلَى النَّاسِ كُنْت تَخْرُجُ هٰكَذَا؟ قَالَ: لَا. قَالَ: فَاَللّٰهُ أَحَقُّ مَنْ يُتَجَمَّلُ لَهُ.: (مجموعه فتاوی ابن تيميه ج ۲۲ص ۱۱۷)

دبهز بن حکيم عن أبيه عن جده څخه روايت دی چې ما د رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څخه پوښتنه وکړه چې يا رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ! کله چې مونږ يوائې يو نو په هغې وخت کې به هم مونږ سر پټوو ؟ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمايل چې دخلکو په نسبت الله تعالی ډير حقدار دی چې حيا ترېنه وکړی شي.

ابن تيميه رحمه الله فرمايي چې کله چې دمانځه څخه بهر دا حکم دی نو په مانځه کې ډيره مناسبه ده چې دالله تعالی څخه حياء وکړی شي، نو دالله تعالی دمناجات په وخت کې زينت (دښه صورت والالباس) واغوندئ لدې وجې کله چې دابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ غلام (حضرت نافع رحمه الله) لوڅ سر لمونځ کولو نو ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ورته وفرمايل چې کله چې ته دخلکو په طرف بهر ته ځې نو ايا لوڅ سر تلی شي؟ هغه ورته وفرمايل چې نه، نو ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ورته وفرمايل چې الله تعالی ډير حق دار دی چې ښکلی لباس ورته واغوندي ددې څخه معلوميږي چې خولۍ او پګړۍ په سر ول هم په زينت کې داخل دي، دابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ او حضرت نافع رحمه الله واقعه الشيخ صالح بن عثيمين هم په شرح -الشرح الممتع ج ۲ص ۱۵۰ کې ليکلي ده.

**دوهم حديث:** وقد ثبت عن النبی صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أنه کان يصلي فی العمامة (الشرح الممتع ج ۲ص۱۶۶)

ترجمه: په تحقیق سره ثابت دی دنبی کریم ﷺ څخه بیشکه وو رسول الله ﷺ چې لمونځ به یې کولو په پګړۍ سره.

روی البخاری فی باب المسح علی الخفین عن جعفر بن عمرو عن أبیه قال رأیت النبیّ ﷺ مسح علی عمامةٍ ،وما مسح علیها فی الوضوء الا یصلی بها، وروی مسلم عن عمرو أنه رأی النبی ﷺ یخطب علی المنبر وعلیه عمامةٌ سوداء، وروی عبدالرزاق وابن ابی شیبةَ موصولا وروی البخاری تعلیقا عن الحسن أنّ أصحاب رسول الله ﷺ کانوا یسجدون علی عمائمهم.

روایت کړی امام بخاری رحمه الله په باب دمسح علی الخفین کې دجعفر بن عمرو څخه هغه دخپل پلار څخه چې: ولیدلو رسول الله ﷺ چې مسحه یې وکړه په پګړۍ باندې او نه یې ده سح کړې په پګړۍ په اودس کې مګر ددې لپاره چې مونځ پرې وکړي ، او روایت کړی دی امام مسلم رحمه الله دحضرت عمرو رضي الله عنه څخه چې بیشکه لیدلی شوی نبی ﷺ چې خطبه یې کوله په ممبر او په سر یې توره پګړۍ وه او همدارنګه روایت کړی دی عبدالرزاق او ابن ابی شیبه موصولا او روایت کړی امام بخاری تعلیقا دحضرت حسن نه چې بیشکه وو دنبي کریم ﷺ صحابه چې سجدې به یې کولې په پګړیو باندې.

**فایده:** معلومه شوه چې رسول الله ﷺ او صحابه کرامو به دپګړۍ سره لمونځ کولو، همدارنګه‌دا خبره هم واضحه شوه چې نبي ﷺ چې دخطبی په وخت کې پګړۍ په سر کوله نو په مونځ کې چې ده‌یر خشوع او دتعظیم مقام دی به یې په طریقه اولی په سر کوله.

**دریم حدیث:** عن علیّ عن النبی ﷺ قال ائتوا المساجد حسّراً ومعصبین فانّ العمائم تیجان المسلمین.

ترجمه: حضرت علی رضي الله عنه روایت کوي دنبي کریم ﷺ څخه چې وفرمایل رسول الله ﷺ چې راشئ مسجدونو ته لوڅ سر او په داسې حال کې چې پګړۍ مو په سر کړې وي ځکه چې پګړۍ دمسلمانانو دتاجونو څخه.

علامه مناوي په فیض القدیر شرح الجامع الصغیر کې ددې حدیث کریمه پوره وضاحت کړی دی هغه فرمایي:

یعنی ائتو المساجد کیف أمکن بنحو قلنسوة فقط او بتعمم وتقنّع ولاتتخلّفوا عن الجمعة التی هی فرض عین ولا الجماعة التی هی فرض کفایة، والتعمم عندالامکان أفضل فان العمائم جمع عمامة (بکسر العین) سمّی به لانّها تعُمُّ جمیع الرأس بالتغطیة تیجان المسلمین، وفی روایة من سیماء المسلمین ای علامتهم کما أن التاج سیماء الملوک وما اقتضاه الحدیث من کون فقد العمامة غیر عذرٍ فی ترک الجمعة والجماعة محلّه فیمن یلیق به ذالک أما لوکان خروجه الی المسجد بدون العمامة لایلیق به فلا یؤمر بالاتیان حاسراً عند فقدها (فیض القدیر ج ۱ص ـ ۸۹، التیسیر بشرح الجامع الصغیر ج ۱ص ـ ۱۳)

ترجمه: یعني په پټ سر سره راشئ مسجدونو ته څنګه چې ممکنه وي، خولۍ مو په سر وي او که پګړۍ مو په سر وي، او شاته مه پاتې کیږي دهغې جمعې څخه چې هغه فرض عین ده او همدارنګه شاته مه پاتې کیږئ دهغه جماعت څخه چې هغه فرض کفایي ده او دامکان په صورت کې پګړۍ بهتره ده، ځکه عمائم جمع د) عِمامَةٌ) ده (په کسرې دعین) او عمامه په عمامې سره ځکه نومولې شوې ده چې شاملیږي ټول سرته په پټوالي کې، په یو روایت کې تیجان المسلین او په بل روایت کې سیماء المسلمین راغلی دی یعني علامې دمسلم، لکه تاج چې علامه د پادشاهانو ده، او هغه چې مقتضی دحدیث ده چې نشتوالی دپګړۍ عذر نه دی په ترک دجمعې یا دجماعت کې چې نو دهغې محمل دادې چې دا دهغه لودګانو په باره کې دی چې دا عدم دپګړۍ ورسره مناسب وي او که بې پګړۍ وتل ورسره مناسب نه وو، نو بیا به ورته دپګړۍ دشتون په صورت کې دلوڅ سر راتللو أمر نشي کولی.

## نتائج

دحدیث او دفیض القدیر دتشریح څخه دا لاندې خبرې رامعلومیږي :

۱-دجمعې دلمانځه او دجماعت تاکید، حتی که خولۍ او یا پګړۍ وه نو سرپټ که او لاړ شه ورته او که نه وه نو لوڅ سر لاړ شه.

۲-دلوڅ سر تللو حکم دهغو لودګانو او دعوامو لپاره دی دکومو چې لوڅ سر ګرځیدل څوک عیب نه ګڼي دشریفو خلکو لپاره دا حکم نه دی.

۳- کله چې خولۍ او پګړۍ وي، نو په دې وخت کې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سر د پټولو حکم کوي اګر چې دا حکم وجوبي نه دی، بلکې استحبابي دی، او قاعده داده چې (الأمر بالشی یستلزم النهی عن ضده) لکه أمر په کیناستلو د او دریدلو څخه نهی ده نو چې أمر د استحباب لپاره وو نو نهی د لوڅ سر څخه به د کراهیت او خلاف الاولی والي لپاره وي.

۴- دسر د پټولو دوه طریقې دي، اول: خولۍ پسرول. دوهم: پګړۍ پسرول، پدې دواړو کې پګړۍ په سرول بهتر دي.

## ضروري تنبیه: دپګړۍ په سرول دسننو عادیه وو څخه دي

دسنن شرعیه وو څخه نه دي او دسننو عادیه وو په ترک سره په اصل ثواب کې کمی نه راځي او نه یې تارک قابل دملامتیا وي، البته إتیان په سننو عادیه و باعث دفضیلت ګرځي نو کوم امام چې خولۍ په سر کړي وي او مونځ کوي نو دا قابل دملامتیا نه دی او نه یې په اصل ثواب کې کمي راځي بل طرفته دمسلمان توهین او مسلمان ته ضرر رسول غټه ګناه ده، په رد المحتار ج اصـ ۲۳) کې لیکي چې: (والسنة نوعان سنة الهدای وتارکها یستوجب اسائة وکراهـة والزوائـد (ای السـنن العادیـه) وتارکها لایستوجب اسائة و کراهة کسیر النبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فی قیامه وقعوده ولباسه.

البته که یو سړی د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره د محبت په نیت باندې سنن عادیه اختیاره وي نو ضرور به ورته ثواب میلاویږي، په حاشیه النظامي کې فرمایي چې د سنن الهدای حکم دادی چې (یطالـب المرء باقامتها والزوائد غیر مطالب باقامتها) نو معلومیږي چې د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په لباس کې کومې طریقې وې د هغې حکم مقتضی دشریعت نه دی، بلکې مقتضی د طبعیت دی او په لباس کې پګړۍ هم داخله ده په نور الانوار (صـ۱۶۷) کې یې په دې تصریح کړې ده چې پګړۍ دسننو عادیه وو څخه ده نو معلومیږي چې د پګړۍ فضیلت دسنت شرعیه والي له وجې نه دی، بلکې له دې وجې څخه دی چې په پګړۍ باندې په نظر سره خولۍ ته سر زیات پټیږي.

# دعمامې په باره کې داحادیثو خلاصه

**دعمامې په باره کې درې قسمه احادیث دي:**

۱-هغه احادیث چې په هغوي کې راغلي دي چې نبي کریم ﷺ یا صحابه کرامو رضی الله عنهم پګړی په سر کړې ده دا قسم احادیث ډیر زیات دي او ډیر په کې سندا صحیح هم دي یعنې عملي احادیث ثابت دي.

۲-هغه احادیث چې په هغوي کې دعمامې ددونیوي فایدې ذکر دی، لکه: علیکم بالعمائم فانها سیماء الملایکة، العمایم تیجان العرب، اعتموا تزدادو حلما، دا قسم احادیث ضعیف دي داول حدیث په سند کې حکیم بن الاحوص ضعیف راوي دی، ددوهم حدیث په سند کې یوسف بن ابراهیم المروزي ضعیف دی، ددریم: حدیث په سند کې عبدالله بن ابی حمید ضعیف دی، وګوره میزان الاعتدال ج ۴ ص ۴، ج ۳ ص ۵) که دا احادیث صحیح هم شي بیا هم ترینه سنت شرعي والی نه ثابتیږي، ځکه چې په دې احادیثو کې دپګړی دونیوي فوائد ذکر شوي دي او داسې احادیث سنت شرعي والی نه راولي، لکه په یو حدیث کې راځي (علیکم بالإثمد) او (علیکم بهذه الحبة السوداء) حبة السوداء دمرګ څخه ماسوای دهر مرض علاج دی، او همدارنګه په بل حدیث کې راځي چې تلبینه (لیتی) زړه ته قوت ورکوي، په شهدو کې شفاء ده وغیره، نو دلته هو هیڅا هم څوک ددې شیانو په نه خوړلو باندې ملامته نکړو او هیڅا هم دې ته سنت شرعي و نه ویلې.

۳-دریم قسم هغه احادیث دي چې په هغې کې دعمامې اخروي فایدې یعنې اجر او ثواب ذکر شوی دی لکه په یو حدیث کې راځي چې دپګړی سره یو مونځ په نظر سره هغه لمونځ ته چې بې پګړی اداشي اویا درجې فضیلت لري، په بل حدیث کې راځي چې دپګړی سره لمونځ لس زره نیکۍ لري، دا قسم احادیث سخت ضعیف، بلکې موضوعي دي، محدثینو دموضوعي والي یوه علامه دا هم ذکر کړې ده چې په لږ عمل پکې د ډیر ثواب وعده شوي وي، دعمامې حیثیت دجماعت څخه کم دی او دجماعت فضیلت (۲۷) درجې ذکر شوی دی، نو دعمامې څرنګه (۷۰) درجې شو؟ ددې څخه ماسوی محدثینو ددې دریم قسم احادیثو په هر هر حدیث باندې ځانته ځانته کلام کړی دی، نو عمامه دسننو عادیه وو څخه ده، په سر کول یې کې دخیر او دبرکت څخه خالي نه دی، ځکه چې د رسول الله ﷺ سره دمحبت

علامه ده، لکن مرتبه یې دمستحباتو څخه کمه ده، دفقې په کتابونو کې دسرپټول راغلي دي او دپګړې په سرکول هیڅ کتاب کې هم دمانځه په مستحباتو او یا په سننو کې نه دي ذکر شوي، او همدارنګه دپګړې نه په سر کول هیڅ کتاب هم په مکروهاتو حتی په خلاف ادب کې هم نه دي ذکر کړي.

## صحت الحدیث

علامه مناوي دمذکور حدیث سند ذکر کړی دی په دې باندې دواردشوي اعتراض څخه یې جواب کړی دی، علامه مناوي فرمایي چې: میسرة ابن عبید عن الحکم بن عیینه عن ابن ابی لیلا عن علیؓ امیر المؤمنین قال: جدنا الأعلی من قبل الأم (الزین العراقی) فی شرح الترمذی ومیسرة ابن العبید متروک لکن یشهد له مار واه ابن العساکر بلفظ إئتوا المساجد حسرًا ومقنعین فان ذلک من سیماء المسلمین،فیض القدیر ج ۱صـ ۸۹)

میسره په خپل سند باندې دحضرت علی رضی الله عنه څخه روایت کړی، علامه مناوی فرمایي چې زمونږ دمور له طرفه نیکه زین العراقی دترمذي په شرح کې فرمایلي دي چې میسره متروک دی، لکن دابن عساکر روایت ورته شاهد چې په هغه کې داسې راغلي دي چې مسجد ته (که خولی نه وه) لوڅ سر راشئ (او که خولی او یا پګړی وه) نو بیا پټ سر راشئ، ځکه چې سرپټول دمسلمانانو نښه ده، لهذا ددې شاهد له وجې ددې حدیث ضعف ختم شو.

**څلورم حدیث :** عن علی عن رسول الله ﷺ قال ائتوا المساجد حسّرا ومقنعین فان العمائم تِیجان المسلمین (الکامل لابن عدی ج ٦صـ ٤١٩)

ترجمه: حضرت علی رضی الله عنه د رسول الله رضی الله عنه څخه روایت کوي هغه فرمایي چې راشئ مسجدونو ته لوڅ سر او پټ سر ځکه پګړې تاج دمسلمان دی.

**پنځم حدیث:** عَن علی عن رسول الله ﷺ قال ائتوا المساجد حسّرا ومقنعین فان ذلک من سیماء المسلمین.(الکامل لابن عدی ج ٦صـ ٤١٩، تاریخ دمشق ج ٣٦صـ ٢٦٥)

لمانځه ته لوڅ سر او پټ سر راشئ ځکه چې دا دعلامو دمسلمانانو څخه ده.

**اوله فایده:** دا پنځه حدیثونه اګر چې هر یو فردا فردا ضعیف دی لکن د محدثینو د قانون مطابق یو د بل د تائید په وجه یې ضعف کمیږي ، همدارنګه د فرض لمونځ په باره کې د لوڅ سره لمونځ والا یو حدیث هم نشته، د دې احادیثو په مقابل د لامذهبو سره صرف خپله رأیه ده، مونږ وایو چې ضعیف حدیث د فقهاؤ په رأیه باندې مقدم دی، د دې سفهاؤ رأیې ته څه اعتبار دی؟

**دوهمه فائده:** کیدی شي چې د دې احادیثو له وجې او یا د کوم بل حدیث له وجې امام شعرانی لیکلي دي چې:

وکان صلی الله علیه وسلم یأمر بستر الرأس فی الصلوة بالعمامة او القلنسوة وینهی عن کشف الرأس فی الصلوة ویقول اذا أتیتم المساجد فأتوها معصبین والعصابة هی العمامة (کشف الغمة عن جمیع الأمة ج ۱ص ۱۲۲)

رسول الله صلی الله علیه وسلم به په پګړۍ او یا په خولۍ باندې د سر پټولو امر کولو او د سر د لوڅولو څخه یې نهی کوله او فرمایل به یې چې د پګړۍ سره مساجدو ته راځئ.

امام شعرانی نهی هم ذکر کړه نو کیدی شي چې د نهی کوم حدیث ورته معلوم وي او دا هم ممکنه ده چې د نهی ذکر یې د هغه قانون مطابق کړی وي چې الأمر بالشی نهی عن ضده ، نو أمر خو په حدیث کې شته فلهذا نهی اقتضاءً راغله.

**شپږم حدیث:** عن ابن عبّاس رضی الله عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم العمائم تیجان العرب فاذا وضعوا العمائم وضعوا عزّهم (کنزالعمال ج۵ص ۳۰۵)

ترجمه: حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمایي چې فرمایلي دي رسول الله صلی الله علیه وسلم: پګړۍ تاجونه د عربو دي نو کله چې پګړۍ کیږدي نو خپل عزت به هم کیږدي.

**اووم حدیث:** عن عمران بن حصین قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم العمائم وقار للمؤمن وعزّ للعرب فاذا وضعت العرب عمائمها وضعت عزّها (کنزالعمال ج ۱۵ص ۳۰۸)

ترجمه: حضرت عمران بن حصین رضی الله عنه فرمایي چې فرمایلي دي رسول الله رضی الله عنه پګړۍ عزت دی لپاره د مؤمن او عزت دی لپاره د عرب نو کله چې پریږدي پګړۍ خپلې نو عزت به یې هم ختم شي.

تنبیه: په هغه وختک کې پګړۍ د خلکو یو طبعي ذوق وو لدې وجې رسول الله صلی الله علیه وسلم پګړۍ ذکر وکړو کنه اصل مقصود د سر پټول دي او د سر پټول وقار او عزت دی، لوڅ سر ګرزیدل ذلت

دی، دالله تعالی په دربار کې لوڅ سر او دريدل د ذلت دپاسه ذلت دی، په حديث کې راځي چې: (عليکم السکينة والوقار) مسلم ج ۱ ص ۲۲۰) يعني مانځه ته په ارام او وقار سره راځئ او د مذکور حديث مطابق لوڅ سر بې وقاري ده.

**اتم حديث:** عَنْ ابْنِ مَسْعُودٍ رضي الله عنه، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «كَانَ عَلَى مُوسَى عليه السلام يَوْمَ كَلَّمَهُ رَبُّهُ، وَكُمَّةُ صُوف. وَالكُمَّةُ: القَلَنْسُوَةُ الصَّغِيرَةُ (جامع الترمذي ج ۱ ص ۳۰٤)

ترجمه: حضرت ابن مسعود رضي الله عنه د نبي کريم صلی الله علیه وسلم څخه روايت کوي هغه مبارک فرمايي چې په موسی عليه السلام په هغه ورځ چې خبرې يې کولې رب خپل سره خولې د وړيو او دکمه معنی ده وړوکې خولې.

معلوميږي دا چې په دربار الٰهی کې دحاضرۍ د ادابو څخه يو أدب دسر پټول دي او دا هم معلومه شوه چې دا مقصد دپګړې په ځای دخولۍ څخه هم حاصليږي.

**نهم حديث:** عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه قَالَ: «رَأَيْتُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَلَنْسُوَةً خُمَاسِيَّةً طَوِيلَةً (مسند ابی حنيفه رحمه الله ص ۲۹۹)

ترجمه: حضرت ابی حنيفة رحمه الله د حضرت عطاء رحمه الله څخه هغه د حضرت أبی هريرة رضي الله عنه څخه روايت کوي هغه فرمايي چې ما وليدله په سر د رسول الله صلی الله علیه وسلم باندې پنځه کونجه اوږده خولی.

**لسم حديث:** عن أنس بن مالک قال کان رسول الله صلی الله علیه وسلم يکثر القناع (شمائل ترمذي ص ۸)

ترجمه: حضرت انس بن مالک رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم به زيات سر پټولو.

دا څرنګه کيدلی شي چې په اکثرو وختونو کې دی رسول الله صلی الله علیه وسلم سر مبارک پټ کړی وي او چې کله د الله تعالی حضور ته دريږي نو بيا دې يې لوڅ کړی وي؟

**يوولسم حديث:** عَنْ جَرِيرِ بْنِ عُثْمَانَ رحمه الله، قَالَ: لَقِيتُ عَبْدَ اللهِ بْنَ بُسْرٍ رضي الله عنه، فَقُلْتُ: أَخْبِرْنِي، قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَهُ قَلَنْسُوَةٌ طَوِيلَةٌ، لَهَا أُذُنَانِ، وَقَلَنْسُوَةٌ لَاطِيَةٌ (اخلاق النبی لابی الشيخ الاصفهانی ج ١صـ ٣٢٨)

ترجمه: حضرت جرير فرمايي چې ما ملاقات وکړو دعبدالله بن بسر سره، نو ما ورته وويل چې ما خبر کړه، هغه وويل چې ما وليدلو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې اوچته خولۍ يې وه چې دوه کونجه يې لرل او داسې خولۍ وه چې دسر پورې نښتې وه.

**دولسم حديث:** عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه، قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَلَيْهِ قَلَنْسُوَةٌ بَيْضَآءُ شَامِيَّةٌ (اخلاق النبی لابی الشيخ الاصفهانی ج ١صـ ٣٢٩)

ترجمه: حضرت ابی هريرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې: ما وليدلو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې په سر يې وه سپينه خولۍ چې دشام وه.

**ديارلسم حديث:** عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَلْبَسُ مِنَ الْقَلَانِسِ فِي السَّفَرِ ذَوَاتِ الْآذَانِ، وَفِي الْحَضَرِ الْمُشَمَّرَةَ، يَعْنِي الشَّامِيَّةَ (الانوار فی شمايل النبی المختار ج ١صـ ٢٨٥ للبغوی)

ترجمـه: حضـرت عائشـة رضـی الله عنهـا فرمـايي چې رسـول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بـه پـه سـفر کې دغوږونو والا خولۍ په سر کوله او په کور کې به يې بی غوږونو خولۍ اغوستله يعنی شامی خولۍ به وه.

ابو الحسن بلاذری رحمه الله په خپل تاريخ کې دعبدالله بن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه روايت کوي چې درسول الله سره دڅرمنی سوری خولۍ وه.

حضرت عبدالله بن بسر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې ما رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وليدلو چې يوه مصری خولۍ ورسره وه او يوه دغوږونو والا خولۍ وه او يوه داسې خولۍ وه چې ډيره اوچته نه وه (سبل الهدی والرشاد ج ٧صـ ٢٨٤)

همدازنګه جعفر بن محمد دخپل پلار په واسطه باندې دخپل نيکه څخه روايت کوي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به کله سپينه خولۍ او کله برګه خولۍ او کله دغوږونو والا خولۍ په سر کوله. (سبل الهدی والرشاد ج ٧صـ ٢٨٥)

دعبدالله بن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ څخه روایت دی چې رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به سپینه خولۍ په سر کوله.

**فايده:** محدثینو چې دخولۍ او دپګړۍ په باره کې کوم احادیث ذکر کړي دي او دهغې لپاره یې چې کوم عنوانات لګولي دي هغه دحدیثو په کتابونو کې دابواب الوضوء، ابواب السجود، ابواب الجهاد او ابواب اللباس لاندې وګورئ، په مصنف ابی شیبه، نسائی، ترمذي، ابوداؤد او په نسائي کې (۱۴۶) مرفوع او موقوف احادیث دي چې په هغوي کې دنبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او یا دصحابه وو دپګړۍ او یا دخولۍ په سر کولو ذکر دی.

۱-کله چې رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په جنګ کې پګړۍ په سر کړې ده نو دا څرنګه ممکنه چې په مانځه کې دی یې نه وي په سر کړي؟.

۲-په مصنف ابن ابی شیبه کې باب دی په نوم دباب من کان یسجد علی کور العمامة ولایری به بأساً، پدې باب کې یې اته احادیث ذکر کړي دي، همدارنګه یې بل باب لګولی دی په نوم دباب من کره السجود علی کور العمامة، پدې باب کې یې دولس احادیث ذکر کړي دي، نو صرف پدې دووبابونو کې شل احادیث شو، ددې څخه معلومیږي چې سنت طریقه دسر پټول دي، همدارنګه محدثینو دپګړۍ او خولۍ په نکاتو باندې بحث کړی دی دپګړۍ رنګ، دپګړۍ مقدار، دشملو بیان، دخولۍ أقسام، نو که په شریعت مطهره کې دسرپټول کوم اهم شی نه وی نو دومره بابونه او دومره بحث ته وربانډې څه ضرورت وو؟د رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په احادیثو کې درسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دسپینو ویښتانو ذکر هم شوی دی، چې دنبی کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ګیره مبارکه کې دومره سپین ویښتان وو لکن دلوڅ سر دګرزیدلو او یا دلوڅ سر دعادت یو حدیث هم نه شته.

**څوارلسم حدیث:** عَنْ عَطَاءٍ رَحِمَهُ اللَّهُ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّأَ فَرَفَعَ الْعِمَامَةَ فَمَسَحَ مُقَدَّمَ رَأْسِهِ.

(مصنف ابن ابی شیبه ج ۱ صـ ۲۳)

حضرت عطاء رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې بیشکه رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اودس کولو نو پورته یې کړه پګړۍ نو مسح یې کړو رومبی حصه دسر (مصنف ابن شیبه ج ۱ صـ ۲۳)

**فایده:** د اودس په وخت کې پګړې په سر کول په اصل کې د مانځه لپاره وه ځکه چې دا څرګنده کېدلی شي چې نبی کریم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ دې د اودس په وخت کې پګړې په سر کړې وي او د مانځه په وخت کې دې لرې کړې وي.

**پنځلسم حدیث:** عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ يَلْبَسُ الْعِمَامَةَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ (سبل الهدیٰ والرشاد ج ۸صـ ۲۰۷)

ترجمه: حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې وو رسول الله صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ چې اغوستله به یې پګړۍ په ورځ د جمعې کې.

**شپاړسم حدیث:** عَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ لِلنَّبِيِّ صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ عِمَامَةٌ سَوْدَآءُ يَلْبَسُهَا فِي الْعِيْدَيْنِ وَيُرخيها خلفه (سبل الهدیٰ والرشاد ج ۸صـ ۳۱۳)

ترجمه: حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې وه د نبی کریم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ لپاره توره پګړۍ چې اغوستله به یې د اخترونو په ورځ کې او شمله به یې پرېښودله وروسته طرف ته.

**اوولسم حدیث:** عن ابی هریرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عن بعض أصحاب رسول الله صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ أنه قال ما خرج الینا رسول الله صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ یوم الجمعة الا وهو معتمم وان لم تکن عمامة وصل الخرقه بعضها علی بعض واعتمّ بها (سبل الهدی والرشاد ج ۷صـ ۲۷۱) ابن عساکر ج ۱صـ ۱۹۱) وهذا الاسناد اشبه)

ترجمه: حضرت ابی هریرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د بعضو ملګرو د نبی کریم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ نه روایت کوي چې رسول الله صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ به د جمعې په روځ همیشه پګړۍ تړله او که پګړۍ به نه وه نو ټوټې به یې سره ونښلولې او د هغې ځخه به یې پګړۍ وتړله د (وهذا الاسناد اشبه) معنی دا ده چې د دې سند صحت راجح دی، امام ترمذي په جامع الترمذی ج ۱صـ ۱۱ کې په (بابٌ فی الاستنجاء بالحجرین) کې د اشبه لفظ په همدې معنی کې استعمال کړی دی، امام ترمذی فرمايي: ( وسألت محمدا عن هذا فلم یقض فیه بشئ وکانّه رای حدیث زهیر عن ابی اسحاق عن عبدالرحمن بن الاسود عن أبیه عن عبدالله اشبه ووضعه فی کتابه ا ...

نو دمذکور سند مرتبه دصحیح البخاری ددې سند مرتبه ده، اکثر محدثین د اشبه ترجمه داسې کوي چې ددې صحت راجح دی (مقدمة فتح الباری صـ ۳۴۷) فتح المغیث لشمس الدین بخاری ج ۳ صـ ۸۱)

ددې حدیث څخه معلومیږي چې رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سر د پټولو دومره اهتمام کولو چې دپګړی دنشتوالي په صورت کې به یې توتې سره یو ځای کولې او سر به یې وریاندې پټولو.

**اتلسم حدیث:** عن ابن عمر أنّه كان اذا مسح رأسه رفع القلنسوة ومسح مقدم رأسه (سنن الكبرى للبيهقي ج ۱صـ ۶۱)

ترجمه: دحضرت ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ څخه روایت دی چې بیشکه وو رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې کله به یې مسح کوله نو پورته به یې کړه خولۍ او مسحه به یې وکړه په رومبی حصه دسر باندې.

او دا ظاهره ده چې دخولۍ په سر کول دمانځه لپاره وي ځکه چې دا ډیره بعیده خبره ده چې په اودس کې دې خولۍ په سر کړې وي او په مسح کې دې لرې پورته کړې وي او په مانځه کې دې لرې کړې وي.

**نوولسم حدیث:** عن العلاء قال رأيت الحسن بن علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يصلي وهو مقنع رأسه (رواه سعيد بن منصور وابن ابى شيبه وابن سعيد) سبل الهدىٰ والرشاد ج ۷صـ ۲۹۱)

ترجمه: حضرت علاء رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمایلي دي چې ما حسن بن علی رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ولیدلو چې لمونځ یې کولو او سر یې پټ وو.

**شلم حدیث:** وضع ابو اسحاق قلنسوته فى الصلوة ورفعها (بخارى ج ۱صـ ۱۵۹)

ترجمه: ښکته کړه ابو اسحاق خولۍ خپله په لمونځ کې او پورته یې کړه.

**یوشتم حدیث:** قال معتمر سمعت أبي قال رأيت على أنس برنسا اصفر من خزّ (رواه البخارى ج ۲صـ ۸۶۳)

ترجمه: فرمایلي دي معتمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ چې اوریدلي دي ما دخپل پلار څخه چې هغه ویل چې ما ولیدله په انس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ باندې زیړه خولۍ د وریښمو نه

دې څخه معلومیږي چې صحابهٔ به په عامو حالاتو کې سرپټولو نو په مانځه کې به یې په طریقه اولی سره پټولو.

**دوه ویشتم حدیث:** وقال الحسن كان القوم يسجدون على العمائم والقلنسوة. (رواه البخاری ج۱صـ۵۶)

ترجمه: حسن بصری رحمه الله فرمايي چې قوم (صحابه او تابعينو) به په پګړۍ او په خولۍ باندې سجده کوله او د ګرمۍ د شدة له وجې به يې د پګړۍ په ول او يا د خولۍ په څنډه باندې سجده کوله، ددې څخه د سرپټول ثابتيږي.

**درويشتم حديث:** حضرت عايشه رضی الله عنها فرمايي چې رسول الله ﷺ د زوال په وخت کې زمونږ کورته راغلو يو چا ابو بکر صديق رضي الله عنه ته خبر ورکړو چې (هذا رسول الله ﷺ متقنعا في ساعة لم يكن يأتينا فيها) رواه البخاري ج ١ص ٥٥٣) باب الهجرة. يعنې دا رسول ﷺ دی چې سر يې پټ دی او په داسې حالت کې يې تشريف راوړو چې په هغه کې رسول الله ﷺ د راتللو عادت نه وو.

**خلورويشتم حديث:** په اخرنۍ خطبه کې د نبی کريم ﷺ دسر پټول:

درسول الله ﷺ اخري خطبه په صحيح البخاری کې درې ځايه دعبدالله بن عباس رضي الله عنه څخه مروي ده ص ١٢٧) باب من قال فی الخطبة بعد الثناء امابعد، ص ٥١٣) باب علامات النبوة فی الاسلام ص ٥٣٦) باب ويؤثرون على انفسهم ولو كان بهم خصاصة او دوه ځايه دحضرت أنس رضي الله عنه څخه مروي ده.

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: صَعِدَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمِنْبَرَ، وَكَانَ آخِرَ مَجْلِسٍ جَلَسَهُ مُتَعَطِّفًا مِلْحَفَةً عَلَى مَنْكِبَيْهِ، قَدْ عَصَبَ رَأْسَهُ بِعِصَابَةٍ دَسِمَةٍ، فَحَمِدَ اللَّهَ وَأَثْنَى عَلَيْهِ، ثُمَّ قَالَ: «أَيُّهَا النَّاسُ إِلَيَّ» فَثَابُوا إِلَيْهِ، ثُمَّ قَالَ: «أَمَّا بَعْدُ، فَإِنَّ هَذَا الحَيَّ مِنَ الأَنْصَارِ، يَقِلُّونَ وَيَكْثُرُ النَّاسُ، فَمَنْ وَلِيَ شَيْئًا مِنْ أُمَّةِ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَاسْتَطَاعَ أَنْ يَضُرَّ فِيهِ أَحَدًا أَوْ يَنْفَعَ فِيهِ أَحَدًا، فَلْيَقْبَلْ مِنْ مُحْسِنِهِمْ وَيَتَجَاوَزْ عَنْ مُسِيِّهِمْ

ترجمه: حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمايلي دي چې رسول الله ﷺ منبر ته او ختلو او دا دنبی کريم ﷺ اخيري ناسته وه او کيناستلو په داسې حال کې چې څادر يې راتاو کړی وه په اوږو باندې په تحقيق سره تړلی يې وو سر په توري پګړۍ سره نو حمد يې ووايه او ثنا يې وويله، بيا يې وفرمايل چې ای خلکو ماته نزدې شئ نو خلک ورته نژدې شول، بيا يې وفرمايل امابعد دا قبيله دانصارو کميږي او نور خلک زياتيږي نو څوک چې متصرف شو ديو شي د امة محمد ﷺ او

طاقت يې وو چې ضرر ورسوي يو کس ته او يا نفعه ورسوي يو کس ته نو ښه معامله کونکي څخه يې ښيګڼه قبوله کړي او درګزر د کوي د بد معامله کونکي د دوي څخه.

عَنْ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ ﷺ، يَقُولُ: مَرَّ أَبُو بَكْرٍ، وَالعَبَّاسُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، بِمَجْلِسٍ مِنْ مَجَالِسِ الأَنْصَارِ وَهُمْ يَبْكُونَ، فَقَالَ: مَا يُبْكِيكُمْ؟ قَالُوا: ذَكَرْنَا مَجْلِسَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَّا، فَدَخَلَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرَهُ بِذَلِكَ، قَالَ: فَخَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَدْ عَصَبَ عَلَى رَأْسِهِ حَاشِيَةَ بُرْدٍ، قَالَ: فَصَعِدَ المِنْبَرَ، وَلَمْ يَصْعَدْهُ بَعْدَ ذَلِكَ اليَوْمِ، فَحَمِدَ اللَّهَ وَأَثْنَى عَلَيْهِ، ثُمَّ قَالَ: «أُوصِيكُمْ بِالأَنْصَارِ، فَإِنَّهُمْ كَرِشِي وَعَيْبَتِي، وَقَدْ قَضَوُا الَّذِي عَلَيْهِمْ، وَبَقِيَ الَّذِي لَهُمْ، فَاقْبَلُوا مِنْ مُحْسِنِهِمْ، وَتَجَاوَزُوا عَنْ مُسِيئِهِمْ»

ترجمه: حضرت أنس بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي تير شو ابو بکر او عباس رضی الله عنهما په يو مجلس د مجالسو د انصارو په داسې حال کې چې دوي ژړل نو ورته وې ويل چې څه شی مو ژړه وي؟ دوي وفرمايل مونږ ياد کړو مجلس د نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زمونږ سرخ نو نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته يې خبر وکړو نو ووتلو نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او د څادر پيڅکه يې د سر څخه د پګړی په شان تړلې وه نو چې پورته شو ممبر ته او له دې ورځې څخه وروسته بيا ممبر ته پورته نشو نو حمد يې وويلو او ثنا يې وويله بيا يې وفرمايل چې زه تاسو ته د انصارو په باره کې وصيت کوم، انصار زما لپاره داسې دي لکه د انسان لپاره معده او د جامو لپاره صندوق دوي هغه حق اداء کړو کوم چې د دوي په ذمه وه او د دوي حق چې زمونږ په ذمه دی لا تر اوسه پورې باقي دی نو قبول کړئ ښيګڼې د دوي او درګزر کوئ د بدی د دوي څخه.

په دې دواړو حديثونو کې تصريح ده چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خپله أخري خطبه کې سر پټ کړی وو.

**په أخري مونځ کې سرپټول:** رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دوشنبې په ورځ د څاښت په وخت کې وفات شو (سيرت ابن هشام ج ۲ ص ۶۵۴) سيرت ابن کثير ج ۴ ص ۴۶۵)

**پنځه ويشتم حديث:** لما كان يوم الاثنين خرج رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عاصبا رأسه الى الصبح وابوبكر ... الخ.

ترجمه: رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دوشنبې په ورځ بهر ته تشريف راوړو او په سر باندې يې پګړی تړلې وه ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خلکو ته امامتي ورکوله (سيرت ابن هشام ج ۲ ص ۶۵۲)

**شپږ ویشتم حدیث:** امام بخاري رحمه الله باب لګولی دی په نوم د باب التقنع پدې کې د رسول الله ﷺ په اخري خطبه کې د رسول الله ﷺ د سر د پټولو اجمالي واقعه ذکر کوي او فرمايي:

قال ابن عباس خرج النبی ﷺ وعليه عصابة دسماء وقال أنس عصّب النبی ﷺ علی رأسه حاشية برد.

ترجمه: حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمايي چې ووتلو نبي کريم ﷺ او په سر يې وه د پګړۍ په شان توره ټوټه او وفرمايل أنس رضي الله عنه چې نبي کريم ﷺ په سر باندې د څادر پيڅکه تړلې وه.

## مذاهب اربعه

**په مانځه کې د سرپټول دحنفي فقې په رڼاکې:**

۱- سَقَطَتْ قَلَنْسُوَتُهُ أَوْ عِمَامَتُهُ فِي الصَّلَاةِ فَرَفْعُ الْقَلَنْسُوَةِ بِيَدٍ وَاحِدَةٍ أَفْضَلُ مِنَ الصَّلَاةِ بِكَشْفِ الرَّأْسِ. وَأَمَّا الْعِمَامَةُ فَإِنْ أَمْكَنَهُ رَفْعُهَا وَوَضْعُهَا عَلَى الرَّأْسِ بِيَدٍ وَاحِدَةٍ مَعْقُودَةٍ كَمَا كَانَتْ فَسَتْرُ الرَّأْسِ أَوْلَى، (درر الاحکام شرح غرر الاحکام ج ۱ صـ ۴۹۶)

وغورزېده خولۍ او يا پګړۍ د لمونځ ګذاز په لمانځه کې بيا يې په لاس باندې په سر کړه دا بهتر دی د هغه لمانځه څخه چې هغه په لوڅ سر سره وي او هر چې پګړۍ ده نو چې پخپل حالت باندې تړلې شوې وي نو ښکته کول او پورته کول يې په يو لاس دي نو د سر پټول بهتر دي.

۲- وتکره وهو مشکوف الرأس تکاسلا لترک الوقار (مراقی الفلاح ج ۱ صـ ۱۵۴)

مکروه ده په داسې حال کې چې د سستۍ له وجې يې په لمانځه کې سر لوڅ وي نه څکه چې په دې کې ترک د قار راځي. (مراقی الفلاح)

۳- والمستحب ان يصلی فی ثلاثة ثياب من أحسن ثيابه قميص وازار وعمامة.

ترجمه: او مستحب دی چې لمونځ وکړی شي په درې جامو کې چې پاکې وي، قميص، پرتوګ، او پګړۍ.

۴- الافضل ان يصلی فی ثوبين حتی يحصل الستر التام وبعض الفقهاء قالوا المستحب أن يصلی فی ثلاثة اثواب قميص وازار وعمامة (مجمع الانهر ج ۱ صـ ۲۱۵)

ترجمه: بهتر دادی چې لمونځ وکړی شي په دوه جامو کې تر څو چې حاصل شي پوره پټوالی او بعضې فقهاء کرام فرمایي مستحب دادی چې لمونځ وکړی شي په درې جامو کې قمیص، پرتوګ او پګړی.

۵- وتکره الصلوة حاسرا رأسه اذا کان یجد العمامة وقد فعل ذلک تکاسلا او تهاونا بالصلوة (عالمګیري ج ۱ص۱۵٦)

ترجمه: مکروه دی لمونځ کول په داسې حالت کې چې سر لوڅ وي په هغه وخت کې چې موندل کیږي پګړی او دا کار شوی وي په سستۍ سره او یا له وجې د معمولي ګڼلو څخه.

٦-وتکره الصلوة حاسرا رأسه تکاسلا (المحیط البرهانی ج ۱ص ۵٦)

ترجمه: مکروه دی لمونځ کول په داسې حال کې چې لوڅ وي سر د سستۍ له وجې څخه (المحیط البرهانی)

۷-وتکره الصلوة ایضا مع تشمیر الکم عن الساعد ومکشوف الرأس (فتح القدیر ج ۱ص ۴۱۸)

ترجمه: همدارنګه مکروه دی لمونځ ذ رابډو هلو دلستوڼي سره د مټ څخه او په لوڅ سر

۸-لَا تُقْبَلُ شَهَادَةُ مُرْتَکِبِ الْأَفْعَالِ الْمُخِلَّةِ بِالْمُرُوءَةِ بِاتِّفَاقِ الْأَئِمَّةِ وَلَوْ کَانَتْ تِلْکَ الْأَفْعَالُ غَیْرَ مُحَرَّمَةٍ کَالْبَوْلِ فِي الطُّرُقِ وَمَجَامِعِ النَّاسِ بِالْقَمِیصِ فَقَطْ وَمَدِّ الرِّجْلَیْنِ عِنْدَ النَّاسِ وَکَشْفِ الرَّأْسِ فِی الْمَوَاضِعِ الَّتِی یُعَدُّ کَشْفُ الرَّأْسِ فِیهَا مُخَالِفًا لِلْعَادَةِ وَإِسَاءَةَ الْأَدَبِ. (درر الاحکام ج ۴ص ۳۱۷)

ترجمه: نه قبلیږي ګواهي د مرتکب د هغه کارونو چې هغه مخالف وي د مروت (سړی توب) سره په اتفاق د أیمه ؤ سره اګر که دغه کارونه غیر حرام وي لکه تلل په لارو کې او ناسته د خلکو سره چې صرف قمیص یې اغوستی وي او غزول د پښو د خلکو په منځ کې او لوڅ کول د سر په هغه ځایونو کې چې شمار ل کیږي لوڅول د سر مخالف د عادت څخه او بی ادبي وي.

۹- الصلوة متعمما افضل من الصلوة مکشوف الرأس لمان أن ذلک أبلغ فی الاحترام. (بدائع الصنائع ج ۱ص ۴۷۰)

ترجمه: لمونځ کول په پګړی سره دا بهتر دی د هغه لمونځ څخه چې په لوڅ سر وي ځکه چې په پګړی سره لمونځ کول دا مبالغه په احترام کې ده یعنې زیات احترام دی.

۱۰-ان صلی فی ازار واحد يجوز ويكره وكذا فی السراويل فقط بغير عذر وكذا مكشوف الرأس للتهاون والتكاسل. (البحرالرائق ج ٤ صـ ١٣٤)

ترجمه: کچیرته څوک لمونځ وکړي په یو لنګ کې جایز دی خو مکروه دی او همدارنګه صرف په پرتوګ کې هم مکروه دی بغیر دعذر څخه او همدارنګه لوڅول دسر دسستۍ او دناراستۍ له وجې څخه هم مکروه دی.

۱۱-والمستحب أن يصلی فی ثلاثة اثواب قميص وازار وعمامة (عالمگيري ج ١صـ ٥٩،البحرالرائق ج ٣صـ ٥٨، المحيط البرهاني ج ٢صـ ٥٧، بدايع الصنايع ج ٢صـ ٣٥٩، درر الاحكام ج ١صـ ٣٦٨، فقه العبادات ج ١صـ ٧٦، الاختيار لتعليل المختار ج ١صـ ١٤٩)

ترجمه: مستحب دی چې لمونځ وشي په درې جامو قمیص، پرتوګ او پګړۍ کې.

۱۲-والمستحب ثلاثة اثواب قميص ، وازار ورداء وعمامة هكذا حكاه ابو جعفر الهندوانی عن اصحابنا وعن محمد رحمه الله المستحب ثوبان ازار ورداء (حاشيه تبيين الحقائق ج ١صـ ٢٨٧)

ترجمه: مستحب دی لمونځ کول په درې جامو کې قمیص، لنګ او څادر ، او پګړۍ همدارنګه حکایت کړی دی ابو جعفر هندوانی زمونږ داصحابو څخه او دحضرت محمد رحمه الله څخه روایت چې مستحب دوه جامې دي، لنګ او څادر.

۱۳-ولا بأس اذا فعله ای اذا كشف الرأس تذللا وخشوعا لان ذلك هو المقصودالاصلی فی الصلوة وفی قوله لا بأس اشارة الی أن الاولی أن لا يفعله وان يتذلل ويخشع بقلبه فانهما من أفعال القلب (غنية المستملی ج ١صـ ٣٣٧)

ترجمه: او باک نشته چې کله سر لوڅ کړي په لمونځ کې دعاجزۍ له وجې څخه ځکه چې عاجزي مقصوداصلي ده په لمانځه کې او په قول دده کې چې لابأس دی اشاره ده دې ته چې بهتر دادی چې سر لوڅ نکړي بلکه عاجزي او خشوع دی په زړه کې وکړي ځکه چې عاجزي او خشوع دافعانو دزړه څخه دي.

۱۴- وَيُكْرَهُ الِاعْتِجَارُ وَهُوَلَفُّ الْعِمَامَةِ حَوْلَ رَأْسِهِ وَإِبْدَاءُ الْهَامَةِ كَمَا يَفْعَلُهُ الشُّطَّارُ. اهـ. وَفِي الْمُحِيطِ وَيُكْرَهُ الِاعْتِجَارُ لِأَنَّهُ -عَلَيْهِ السَّلَامُ- نَهَى عَنْهُ وَهُوَ أَنْ يُكَوِّرَ عِمَامَتَهُ وَيَتْرُكَ وَسَطَ رَأْسِهِ مَكْشُوفًا كَهَيْئَةِ الْأَشْرَارِ. (البحر الرائق ج ۱ صـ ۱۲۸)

ترجمه: مکروه ده اعتجار یعنې تړل دپګړۍ چاپیره دسر څخه او ښکاره کول دپاسني حصې دسر لکه څرنګه چې د شریرو خلکو عادت دی په محیط کې فرمایي او مکروه دی اعتجار ځکه چې نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منعه کړې ده هغه داسې چې ګرده وتړي پګړۍ او لوڅ پرېږدي وسط دسر لکه عادت دشریرو خلکو.

۱۵- (قَوْلُهُ لِلتَّكَاسُلِ) أَيْ لِأَجْلِ الْكَسَلِ، بِأَنْ اسْتَثْقَلَ تَغْطِيَتَهُ وَلَمْ يَرَهَا أَمْرًا مُهِمًّا فِي الصَّلَاةِ فَتَرَكَهَا لِذَلِكَ، وَهَذَا مَعْنَى قَوْلِهِمْ تَهَاوُنًا بِالصَّلَاةِ (رد المختار ج ۵ صـ ۱۳)

ترجمه: دا قول دمصنف چې دسستی له وجې نه وي یعنې سستي داده چې دسر پټول بوج او ثقیل ګڼي او نه یې ویني مهم کار په لمانځه کې نو ددې وجې څخه یې پرېږدي او دا معنی ددې قول ددوي ده چې (تهاونا بالصلوة)

۱۶- وَيُكْرَهُ أَنْ يُصَلِّيَ حَاسِرًا أَيْ حَالَ كَوْنِهِ كَاشِفًا رَأْسَهُ تَكَاسُلًا لِأَجْلِ الْكَسَلِ وَسَبَبُهُ، بِأَنْ اسْتَثْقَلَ تَغْطِيَتَهُ وَلَمْ يَرَهَا أَمْرًا مُهِمًّا فِي الصَّلَاةِ فَتَرَكَهَا لِذَلِكَ، وَهَذَا مَعْنَى قَوْلِهِمْ تَهَاوُنًا بِالصَّلَاةِ (رد المحتار ج ۵ صـ ۱۳)

ترجمه: مکروه دی چې لمونځ وکړی شي په لوڅ سر په داسې حال چې لوڅ وي سر یې د وجې دسستی څخه او سبب دسستی دادی چې دسر پټول بوج او ثقیل ګڼي او نه یې ویني مهم کار په لمانځه کې نو ددې وجې څخه یې پرېږدي او دا معنی ددې قول ددوي ده چې (تهاونا بالصلوة).

۱۷- اَلْحَنَفِيَّةُ عَدُّوا الْمَكْرُوهَاتِ مِنْهَا الصَّلٰوةُ وَهُوَ مَكْشُوفُ الرَّأْسِ تَكَاسُلًا (الفقه علی المذهب الاربعة ج ۱ صـ ۲۸۱)

ترجمه: احنافو شمارلي دي مکروهات چې یو په هغوي کې لمونځ کول دي په داسې حال کې چې سر یې لوڅ وي د سستی له وجې.

## په مانځه کې دسر پټول دشافعي فقهې په رڼا کې

١-قال اصحابنا يستحب أن يصلى الرجل فى أحسن ثيابه المتيسرة له ويتقمّص ويتعمم (الفقه على المذاب الاربعة ج ١صـ ٢١٨)

ترجمه: فرمايلي دي اصحابو زمونږ چې مستحب دی چې لمونځ وکړي سړی په ښو جامو کې هغه چې اسانه وي او قميص واغوندي او پګړۍ وتړي.

٢-وَيُسْتَحَبُّ لِلرَّجُلِ (أَنْ يَلْبَسَ لِلصَّلَاةِ أَحْسَنَ ثِيَابِهِ وَيَتَقَمَّصَ وَيَتَعَمَّمَ) وَيَتَطَيْلَسَ (وَيَرْتَدِيَ وَيَتَّزِرَ أَوْ يَتَسَرْوَلَ)، لِأَنَّهُ يُرِيدُ التَّمَثُّلَ بَيْنَ يَدَيْ اللَّهِ فَيَتَجَمَّلُ بِذٰلِكَ وَالْأَخِيرَانِ مِنْ زِيَادَتِهِ. (اسنى المطالب شرح روضى المطالب ج ٣صـ ٦٢)

ترجمه: مستحب دی لپاره دسړي چې واغوندي لپاره دلمونځ ښې جامې او قميص واغوندي او پګړۍ او څادر واغوندي او پرتوګ واغوندي ځکه دده اراده دريدل دي په حضور دالله تعالى کې نو په دې باندې به ځان ښکلی کوي، او دا اخيري دواړه يعنې پګړۍ او څادر په جمال کې اضافه والی دی.

٣-ويسن لِلرَّجُلِ (أَنْ يَلْبَسَ لِلصَّلَاةِ أَحْسَنَ ثِيَابِهِ وَيَتَقَمَّصَ وَيَتَعَمَّمَ) وَيَتَطَيْلَسَ (وَيَرْتَدِيَ وَيَتَّزِرَ أَوْ يَتَسَرْوَلَ)(تحفة المحتاج فى شرح المنهاج ج ٦صـ ١٦٥)

ترجمه: سنت دی لپاره دسړي چې واغوندي لپاره دمانځه ښې او پاکې جامې او قميص واغوندي او پګړۍ وتړي او لنګ اويا پرتوګ واغوندي.

٤-أَحْسَنَ ثِيَابِهِ وَيَتَقَمَّصَ وَيَتَعَمَّمَ) وَيَتَطَيْلَسَ (وَيَرْتَدِيَ وَيَتَّزِرَ أَوْ يَتَسَرْوَلَ)، فكل واحدة سنة مستقلة (حاشيه الجيرمى على الخطيب ج ٤صـ ٨٧)

ترجمه: دا قول دمصنف چې ښې جامې به اغوندي هغه دادي چې قميص واغوندي و پګړۍ وتړي او څادر واغوندي او لنګ او يا پرتوګ واغوندي دا هريو مستقل سنت دی.

٥-يستحب أن يصلى الرجل فى أحسن مايجده من ثيابه يتعمم ويتقمص ويرتدى (الشرح الكبير للرافعى ج ٤صـ ١٠٤)

ترجمه: مستحب دی چې لمونځ وکړي سړی په هغه ښکلو جامو کې چې دی يې مومي، پګړۍ دې وتړي قميص دې واغوندي او څادر دې واغوندي.

۶- اَلَّذِي صَرَّحَ بِهِ الْأَصْحَابُ أَنَّهُ يُسَنُّ لِلْمُصَلِّي أَنْ يُصَلِّيَ فِي ثَوْبَيْنِ، لِقَوْلِهِ- صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- «إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ فَلْيَلْبَسْ ثَوْبَيْهِ فَإِنَّ اللّٰهَ أَحَقُّ أَنْ يُتَزَيَّنَ لَهُ فَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ ثَوْبَانِ فَلْيَتَّزِرْ إِذَا صَلَّى، وَلَا يَشْتَمِلْ اشْتِمَالَ الصَّمَّاءِ» وَأَنْ يَتَقَمَّصَ وَيَتَعَمَّمَ.

ترجمه: هغه چې تصريح کړې ده اصحابو، بيشکه سنت دی لپاره د مونځ کونکي چې لمونځ وکړي په دوه جامو کې له وجې د دې قول د نبی کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څخه چې کله چې لمونځ کوي يو دستاسو نو وادې غوندي دوه جامې ځکه الله تعالى ډير حق دار دی چې زينت ورته وشي او که نه وي ور لره دوه جامې نو بيا دې پرتوګ واغوندي کله چې لمونځ کوي او څادر دې داسې نه اغوندي چې جسم پکې بند شي او قميص دې واغوندي او پګړۍ دې وتړي.

۷- وَالسُّنَّةُ فِي حَقِّ الرَّجُلِ أَنْ يَسْتُرَ جَمِيعَ بَدَنِهِ عَلَى الْوَجْهِ الْمَشْرُوعِ فِيهِ فَهُوَ مَطْلُوبٌ بِذٰلِكَ. لِأَجْلِ الِامْتِثَالِ ثُمَّ الْعِمَامَةُ عَلَى صِفَتِهَا فِي السُّنَّةِ وَالرِّدَاءُ فِي الصَّلَاةِ مَطْلُوبٌ شَرْعًا وَهُوَ أَنْ يَجْعَلَهُ عَلَى كَتِفَيْهِ دُونَ أَنْ يُغَطِّيَ بِهِ رَأْسَهُ. (الفتاوى الفقهية الكبرى ج ۱ صـ ۲۶۹)

ترجمه: سنة په حق د سړيو کې داده چې پټ کړي ټول بدن په روا طريقه سره او د سړي څخه د دې مطالبه شوې ده له وجې د أمر منلو څخه بيا پګړۍ ده په همدې صفت په سنت کې او بيا څادر په لمونځ کې مطلوب دی شرعا او هغه داسې چې وايې چوي په اوږو باندې چې په څادر به سر نه پټوي بلکې په پګړۍ باندې به يې پټوي.

۸- فالأكل فى سوق لغير سوقي ولغير من لم يغلبه جوع والمشي فى السوق مكشوف الرأس او البدن ممن لا يليق به .... يسقطها اى المروءة (السراج الوهاج ج ۱ صـ ۶۰۴)

ترجمه: خوراک کول په بازار کې د غير بازاري سړي لپاره او د هغه چا چې نه وي غالبه شوې پرې لوږه او تلل په بازار کې لوڅ سر او يا لوڅ بدن دا هغه صفات دي چې لايق نه دي دا غورزوي انسانيت (سړی توب).

۹- لا تقبل شهادة من لا مروءة له كالقوّال والرّقاص ومن يأكل فى الاسواق ويمشي كشوف الرأس فى موضع لا عادة له فى كشف الرأس فيه لان المروءة هى الانسانية وهى مشتقة من المراء ومن ترك الانسانية لم يؤمن أن يشهد به الزور ولأنّ من لا يستحيي من الناس فى المروءة لم يبال بما يصنع (المجموع شرح المهذب ج ۲ صـ ۲۲۷)

ترجمه: نه قبليږي ګواهي دهغه چا چې سرې توب نه لري لکه سندرې ويونکي او ګډيدونکي او هغه څوک چې خوراک کوي په بازار کې او روان وي لوڅ سر په داسې ځای کې چې عادت نه وي ده لره په لوڅ سر کې ځکه چې مروءت (سړی توب) دا انسانيت دی او دا (مرووت) مشتق دی د (مراء) څخه او چا چې پريښودلو انسانيت هغه به په امن نه وي د ګواهي ددغو څخه او له دې وجې څخه چې څوک چې حياء نه کوي د خلکو څخه په پريښودلو د مرووت کې نو په خپلو کارونو کې بې پروا وي.

١٠-المروءة تخلّق بخلق امثاله فى زمانه ومكانه فالأكل فى سوق والمشى مشكوف الرأس يسقطها (المنهاج للنووي ج ١صـ ٤٩٧)

ترجمه: مروت ديته وايي چې په هره زمانه کې او په هر ځای کې چې کوم اعلی صفات دي په هغې باندې متصف کيدل، نو خوراک په بازار کې او تلل لوڅ سر غورزوي مرووت.

١١-الشَّرْطُ الْخَامِسُ الْمُرُوءَةُ وَهِيَ تَوَقِّي الْأَدْنَاسِ... (فَتَرْكُهَا يُسْقِطُ الشَّهَادَةَ) مِثْلُ (الْمَشْيِ فِي السُّوقِ مَكْشُوفَ الرَّأْسِ وَالْبَدَنِ) أَوْ أَحَدِهِمَا وَلَوْ مَعَ سَتْرِ الْعَوْرَةِ (مِمَّنْ لَا يَلِيقُ بِهِ (اسنى المطالب ج ٢٢صـ ٤٢٩، الاقناع فى حل الفاظ ابى الشجاع ج ٢صـ ٢٨١)

ترجمه: پنځم شرط مرووت دی مروت د ګنده ګی څخه ځان ساتل دي په بازار کې لوڅ سر او لوڅ بدن او يا يو دد دواړو څخه اګر که پټ وي عورت دا هغه شيان دي چې لايق نه دي دده سره.

١٢-وكان يلبس القلانس تحت العمائم وبغير عمامة وربما لم تكن العمامة فيشد العصابة على رأسه وعلى جبهته وكانت له عمامة تسمى السحاب فوهبها من عليّ فربما طلع عليّ فيها فيقول صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أتاكم عليّ فى السحاب (زادالمعاد بيان أخلاقه وأدابه فى اللباس ج ١صـ ١٣٥) فصل فى ملابسه.

ترجمه: او وه چې اغوستله به يې خولۍ کله د پګړۍ لاندې او کله بغير د پګړۍ څخه او کله به چې پګړۍ نه وه نو بيا به يې ترلې توټې په سر باندې او په تندي باندې او وه نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لره پګړۍ چې نامولي به يې سحاب نو دا يې هبه کې ورکړه حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نو کله به چې هغه راتلو په دغه سحاب کې نو نبی کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به ويل راغی تاسو حضرت علی رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په سحاب کې.

## دسر پټول دفقهې حنبلی په رڼا کښې

۱-وَيُسْتَحَبُّ لَهُ اَيْضًا تَخْمِيْرُ الرَّأْسِ بِالْعِمَامَةِ وَنَحْوِهَا لِأَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّى كَذٰلِكَ وَهُوَ مِنْ تَمَامِ الزِّيْنَةِ وَاللّٰهُ تَعَالٰى أَحَقُّ مَنْ تَزَيَّنَ لَهُ قَدْ رُوِىَ عَنْ رُكَانَةَ رضي الله عنه قَالَ: سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ: إِنَّ فَرْقَ مَا بَيْنَنَا وَبَيْنَ الْمُشْرِكِيْنَ الْعَمَائِمُ عَلَى الْقَلَانِسِ. ،رواه ابوداؤد والترمذی وقال غریب ولیس اسناده بالقائم.

ترجمه: همدارنګه مستحب دی دلمونځ کونکي لپاره پټول دسر په پګړی سره او یا په مثل دپګړی سره ځکه چې نبی کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به همداسې لمونځ کولو او دا پګړی متممه دزینت ده او الله تعالی ډیر حق دار دی چې زینت ورته وشي، روایت کړی دی حضرت رکانه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ هغه فرمایي چې اوریدلي دي ما د رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څخه چې فرمایل به یې فرق په منځ دمونږ او دمشرکینو کې دغه پګړی ده په خولیو باندې.

وعن ا بن المليح قال قال رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اعتموا تـزدادوا حلمـا رواه هشـام بن عمار وهو مرسل ..... والاستحباب كذلک فی حـق الامـام او كـد نـص عليـه لانّ صـلوة المامومين مرتبطة بصلوته وهو أخذ المصلين ومتقدمهم وهم ينظرون اليه ويعتدون بـه ولهـذا كان استحباب التزين فی الجماعات العامة مثل الجمعة والعيد ونحو ذلک اوكـد (شرح العمـدة لابن تيميه ج ۱صـ ۳۱۳، صـ ۳۱٤، صـ ۳۱۵)

ترجمه: د حضرت ابن ملیح رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ څخه روایت دی هغه فرمایي چې فرمایلي دي رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پګړی وتړئ زیاتیږي مو حلم.

او په مستحب بانـ ې عمل کول دامام په حق ډیر مؤکد دي په دې کې نص وارد دی، ځکه چې دمقتدیانو مونځ دامام د مونځ پورې مربوط دي او امام هم یو دمونځ کونکو څخه دی او همدارنګه امام ددوی څخه مخکې وي او مقتدیان ورته انتظار کوي او له دې وجې څخه استحباب دښایست ډیر مؤکد دی په عامو جماعتونو کې لکه دجمعې لمونځ او یا داخترونو لمونځ او په مثل ددوي.

۲-ويسنّ لرجل والامام أبلغ أن يصلی فی ثوبين مع ستر رأسه ولا يكره فی ثوب واحـد ستر مايجب ستره (الاقناع ج ۱صـ ۸۸)

ترجمه: او سنت دی د سړي لپاره او د امام دپاره دا حکم ډېر مؤکد دی چې لمونځ وکړي په دريو جامو کې سره له پټولو د سر څخه او مکروه نه دی په يوه جامه کې چې پټ کړي هغو مړه بدن چې واجب دی پټول يې.

۳-قوله ويستحب للرجل أن يصلى فى ثوبين بلا نزاع بل ذكره بعضهم اجماعا لكن قال جماعة من الاصحاب مع ستر رأسه والامام أبلغ (الفروج ج ١ صـ ٤٨٢)

ترجمه: دا قول د مصنف چې مستحب دی لپاره د سړي چې لمونځ وکړي په دوه جامو قميص او پرتوګ کې بغير د نزاع څخه بلکه ذکر کړی دی بعضو علماوو اجماع په دې خبره لکن ويلي دي يو جماعت صحابو چې ددې دوو جامو سره د سر پټول هم مستحب دي او دا حکم د امام په باره کې ډېر مؤکد دی.

۴-قوله وتستحب صلاته فى ثوبين اى ينبغى للانسان أن يصلى فى ثوبين لأنهما استر ومن الثوبين الازار والرداء والثوب الواحد مجزءٌ سواء كان سابغا يلتحق به جميع بدنه ام كان ازاراً لكنّ الافضل أن يصلى فى ثوبين لأنه أبلغ فى الستر واحوط وظاهر كلام المؤلف أنّ ستر الرأس ليس بسنة ولكن اذا طبّقنا هذه المسألة على قوله تعالى (يا بنى آدم خذوازينتكم عند كل مسجد) تبيّن لنا أن ستر الرأس أفضل فى قوم يعتبر ستر الرأس عندهم من أخذ الزينة اما اذا كنّا فى قوم لايعتبر ذلک من أخذ الزينة فانّا لانقول أن ستره أفضل ولا أنّ كشفه أفضل وقد ثبت عن النبى ﷺ أنه كان يصلىّ فى العمامة والعمامة ساترة للرأس. (التهذيب المقنع فى اختصار الشرح الممتع ج ١ صـ ١٧٤)

ترجمه: دا قول د مصنف چې مستحب دی لمونځ په دوه جامو کې يعني مناسب دی لپاره د انسان چې لمونځ وکړي په دوه جامو کې ځکه دا ډېر پټوالی راولي او دوه جلمي هغه پرتوګ او څادر دی او يوه جامه هم جائز دی برابره خبره ده چې که هغه غټه وی چې پټيږي په دې سره ټول بدن او که پرتوګ وي لکن بهتر دا دی چې لمونځ وشي په دوه جامو کې ځکه دا ډېر مؤکد دی په ستر کې او محتاط هم دی او ظاهر کلام د مؤلف دا دی چې پټول د سر سنت نه دي، لکن که مونږ مطابق کړه دغه مسئله په دې قول د الله تعالی چې: (يَٰبَنِيٓ ءَادَمَ خُذُواْ زِينَتَكُمۡ عِندَ كُلِّ مَسۡجِدٖ) نو ښکاره شو، مونږ ته چې دا د سر پټول بهتر دی په هغه قوم کې چې د سر پټول د هغوي په نيز د زينت څخه وي او که مونږ په داسې قوم کې وو چې هلته د سر پټول په زينت کې نه شي شميرلی کيدلی نو هلته مونږ دا نه وايو

چې پټول د سر بهتر دی او دا هم نه وایو چې لوڅول د سر بهتر دی البته خلکو ته د نبي کریم ﷺ د طریقې تعلیم ورکوو او د نبي کریم ﷺ طریقه دا وه چې سر به یې په پګړۍ باندې پټولو.

٥-قوله ويستحب صلاته فى ثوبين ظاهر كلام المؤلف أن ستر الرأس ليس بسنة لانـه قال صلاته فى ثوبين ازار ورداء قميص ورداء وما اشبه ذلك فظاهره أنه لايشرع ستر الـرأس وقد سبق فى اثر ابن عمر أنه قال لمولاه نافع أتخرج الى الناس حاسر الرأس قال لا قـال فـالله عزوجل أحق لن يستحى منه وهو يدل على أن الافضل سـتر الـرأس ولكـن اذا طبقنـا هـذه المسألة على قوله تعالى يا بنى آدم خذوا زينتكم عند كل مسجد) تبين لنا فى قوم لايعتبر ذلك من أخذ الزينـة فانـا لانقـول ان سـتره أفضـل ولا أن كشـفه افضـل وقـد ثبـت عـن النـبى ﷺ أنـه كان يصـلى فى العمامـة والعمامـة سـاترة للرأس.(الشرح الممتع على زاد المستنقع ج ٢صـ ١٦٦)

ترجمه: مستحب دی لمونځ په دوه جامو کې، ظاهر د کلام د مؤلف دا دی چې پټول د سر دا سنت نه دی، ځکه چې مؤلف فرمایلي دي چې لمونځ د سړي په دوه جامو کې دی (پرتوګ او څادر) یا (قمیص او څادر) دی او هغه چې د دوي سره مشابه دي نو ظاهر د دې دا دی چې نه دی مشروع پټول د سر او دا ثابت دی په اثر د ابن عمر رضي الله عنه کې هغه وویل خپل غلام نافع ته ایا ته اوزې خلکو ته لوڅ سر غلام وویل، نه ابن عمر وویل نو الله تعالی ډیر حق دار دی چې حیا ترې وشي د خلکو نه، نو دا دلالت کوي په دې باندې چې بهتر پټول د سر دي، خو که چیرته مونږ مطابق کړو دغه مسئله د دې قول د الله تعالی سره چې (يٰبَنِيْٓ اٰدَمَ خُذُوْا زِيْنَتَكُمْ عِنْدَ كُلِّ مَسْجِدٍ) نو معلومه به شي مونږ ته چې دا خبره په هغه قوم کې ده چې اعتبار نه ورکوي د سر پټولو ته نو هلته مونږ نه وایو چې پټول بهتر دي او دا هم نه وایو چې لوڅول بهتر دي او دا ثابت دی د نبي کریم ﷺ څخه چې هغه مبارک لمونځ کولو په پګړۍ کې او پګړۍ پټونکې ده لپاره د سر.

٦-وتسن صلواته فى ثوبين وذكره بعضهم قـال جماعـة مـع سـتر رأسـه والامـام أبلـغ (الفروع ج ١صـ ٤٨٢)

ترجمه: او سنت دی لمونځ د سړي په دوه جامو کې، او ذکر کړي دي بعضو فقهاؤ چې د دې دوو جامو سره سره د دې سر هم پټ کړی شي او امام په دې حکم کې ډیر مؤکد دی.

۷- (وَيُسْتَحَبُّ لِلرَّجُلِ) حُرًّا كَانَ أَوْعَبْدًا (أَنْ يُصَلِّيَ فِي ثَـوْبَيْنِ) ذَكَـرَهُ بَعْضُـهُمْ إِجْمَاعًـا، قَـالَ ابْـنُ تَمِيمٍ وَغَيْرُهُ: مَعَ سَتْرِ رَأْسِهِ بِعِمَامَةٍ لِمَا رَوَى أَبُو هُرَيْرَةَ رضي الله عنه: «أَنَّ سَائِلًا سَأَلَ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنِ الصَّلَاةِ فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ، فَقَالَ: أَوَلِكُلِّكُمْ ثَوْبَانِ؟» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ، زَادَ الْبُخَارِيُّ رحمه الله: ثُمَّ سَأَلَ رَجُلٌ عُمَرَ رضي الله عنه فَقَالَ: إِذَا وَسَّعَ اللهُ عَلَيْكُمْ فَأَوْسِعُوا (المبدع شرح المقنع ج ۱صـ ۳۱۲)

ترجمه: مستحب دی لپاره دسړي هغه که اصیل وي او که غلام وي چې لمونځ وکړي په دوه جامو کې، بعضې علماوو په دې باندې اجماع رانقل کړې ده ابن تمیم رحمه الله وغیره ویلي دي چې سر دې پټولو دسر په پګړۍ باندې له وجې د روایت دابو هریره رضي الله عنه څخه چې یو سائل سوال وکړو دنبي کریم صلی الله علیه وسلم څخه په باره دلمونځ په یوه جامه کې نو حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل: چې ایا تاسو ټولو لپاره دوه جامې دي؟ او امام بخاري زیات کړي دي چې بیا یو سړي سوال وکړو نو حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې کله الله تعالی په تاسو فراخي راوستله نو تاسو هم فراخي کوئ.

۸- الْفَصْلُ الثَّانِي: فِي الْفَضِيلَةِ، وَهُوَ أَنْ يُصَلِّيَ فِي ثَوْبَيْنِ أَوْ أَكْثَرَ. فَإِنَّهُ إِذًا أَبْلَغُ فِي السَّتْرِ. لِمَا رُوِيَ عَنْ عُمَرَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - أَنَّهُ قَالَ: إِذَا أَوْسَعَ اللهُ فَأَوْسِعُوا.... وَرَوَى أَبُو دَاوُدَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَوْ قَالَ: قَالَ عُمَرُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: «إِذَا كَانَ لِأَحَدِكُمْ ثَوْبَانِ فَلْيُصَلِّ فِيهِمَا، فَإِنْ لَمْ يَكُنْ إِلَّا ثَوْبٌ وَاحِدٌ فَلْيَتَّزِرْ بِهِ، وَلَا يَشْتَمِلُ اشْتِمَالَ الْيَهُودِ». قَالَ التَّمِيمِيُّ رحمه الله: الثَّوْبُ الْوَاحِدُ يُجْزِءُ، وَالثَّوْبَانِ أَحْسَنُ، وَالْأَرْبَعُ أَكْمَلُ، قَمِيصٌ وَسَرَاوِيلُ وَعِمَامَةٌ وَإِزَارٌ (المغنی ج ۳صـ ۱۸).

ترجمه: دوهم فصل په فضیلت کې دی، هغه دا دی چې لمونځ وشي په دوه جامو کې او یا زیات له دوه جامو څخه ځکه دا زیات مؤکد دی په ستر کې، له وجې د روایت د عمر رضي الله عنه، بیشکه هغه فرمایلي دي کله چې الله تعالی په تاسو وسعت (فراخي) وکړو نو تاسو هم فراخي وکړې او روایت کړی دی ابو داؤد د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي او یا داسی دی چې ویلي دي حضرت عمر رضي الله عنه کله چې وي یو دتاسو لره دوه جامې نو لمونځ دې په کې وکړي او که نه وې دوه جامې بلکې یوه جامه وه نو بیا دې هغه ازار کړې او حضرت تمیمي رحمه الله فرمایي یوه جامه جایز ده او دوه جامې احسنې دي او څلور جامې کمال یعنې پوره والی دی، چې هغه قمیص پرتوګ، پګړۍ، او څادر دی.

۹- کوم غلط حرکات چې دمروت څخه مخالف دی ابن عقیل دهغه لپاره مثالونه ذکر کړي دي او فرمایلي دي:

قال ابن عقیل فی الفنون مثل الأكل على الطريق ومد الرجلين بين الجلساء وكشف الرأس بين الملاء (حاشيه المحرر فى الفقه ج ۲صـ ۲٦۸)

ترجمه ابن عقیل رحمه الله په الفنون کې لیکلي دي چې دمروت خلاف کارونه لکه خوراک کول په لاره کې او غزول دپښو په مجلس کې چې خلک ناست وي او لوڅول دسر په خلکو کې.

۱۰- كشف الرأس مباح لكن اتيانه على غير الوجه المعروف مسقط للمروءة وموجب لردّ شهادة الانسان ( شرح زاد المستقنع ج ۱۷صـ ۳۹۲)

ترجمه: لوڅول دسر مباح دي مګر دا ګار کول په غیر دنیکې وجې څخه ساقطونکي دمرووت دی او موجب د رد دشهادت دي لپاره دانسان.

## دسرپټول دفقهې مالکي په رڼا کې

۱- وَالسُّنَّةُ فِي حَقِّ الرَّجُلِ أَنْ يَسْتُرَ جَمِيعَ جَسَدِهِ عَلَى الْوَجْهِ الْمَشْرُوعِ فِيهِ فَهُوَ مَطْلُوبٌ بِذَلِكَ لِأَجْلِ الِامْتِثَالِ، ثُمَّ الْعِمَامَةُ عَلَى صِفَتِهَا فِي السُّنَّةِ كَمَا تَقَدَّمَ ذِكْرُهُ وَالرِّدَاءُ فِي الصَّلَاةِ مَطْلُوبٌ شَرْعًا، وَكَذَلِكَ هُوَ مَطْلُوبٌ فِي الشَّرْعِ بِالْخُرُوجِ إلَى الْجُمَعِ وَالْأَعْيَادِ بِثِيَابٍ غَيْرِ ثِيَابِ مِهْنَتِهِ، فَأَيْنَ الْمُبَاحُ الْمُطْلَقُ، وَهَذَا الَّذِي ذَكَرَهُ كُلُّهُ مَطْلُوبٌ فِي الشَّرْعِ الشَّرِيفِ. (المدخل لإبن الحاج: فصل فى اللباس: ج:۱ص: ۱۴۲).

ترجمه: سنت په حق دسړي کې دادی چې پټ کړي ټول بدن په روا وجه سره او دا مطلوب هم دی له وجې دامتثال نه بیا پګړی په سنتو کې دبیان شده طریقې مطابق لکه څنګه چې مخکې ذکر شو او څادر اغوستل په لمونځ کې دا مطلوب شرعا دي او همدارنګه شرعا مطلوب دي چې ووځي دجمعې لمونځونو ته او داخترونو لمونځونو ته په داسې جامو کې چې هغه جامې دکار وبار نه وي نو چیرته دا شرعي طریقه او چیرته ازاد نه لباس او دا شیان چې ذکر شو دا ټول مطلوب دي په شرع کې.

۲- عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ وَرَبِيعَةَ بْنِ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ ﷺ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ قَالَ: مَا عَلَى أَحَدِكُمْ أَنْ يَتَّخِذَ ثَوْبَيْنِ لِجُمُعَتِهِ سِوَى ثَوْبَيْ مِهْنَتِهِ وَفِي هَذَا الْحَدِيثِ النَّدْبُ لِكُلِّ مَنْ وَجَدَ سَعَةً أَنْ يَتَّخِذَ الثِّيَابَ الْحِسَانَ لِلْأَعْيَادِ وَالْجُمُعَاتِ وَيَتَجَمَّلَ بِهَا، وَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ يَفْعَلُ ذَلِكَ وَيَعْتَمُّ وَيَتَطَيَّبُ وَيَلْبَسُ أَحْسَنَ مَا يَجِدُ فِي الْجُمُعَةِ وَالْعِيدِ وَفِيهِ الْأُسْوَةُ الْحَسَنَةُ (الاستذكار ج ۲صـ ۴۸)

ترجمه:دحضرت یحی بن سعید او ربیعه بن ابی عبدالرحمن څخه روایت دی چې رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایلي دي چې په هیڅا باندې هیڅ باک نشته چې دکار او بار دجامو څخه بغیر دجمعې لپاره دوه جامې جوړې کړي، نو له دې حدیث څخه استحباب ثابتیږي دهغه چالپاره چې هغه ته الله تعالی فراخي ورکړې وي چې جوړې کړي ښې جامې لپاره داخترونو او دجمعو او ځان پرې ښایسته کړي او وو رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې داسې به یې کول او پګړی به یې په سر کوله او خوشبویي به یې وهله او اغوستلې به یې ښې جامې چې ورته میلا وېدي به په جمعو کې او په اخترونو کې او په دې کې نیکه اقتداء ده.

۳-قَالَ صَاحِبُ الْجُلَّابِ: الِاخْتِيَارُ لِمَنْ صَلَّى فِي جَمَاعَةٍ أَنْ يَلْبَسَ أَكْمَلَ اللِّبَاسِ وَالْإِمَامُ أَوْلَى بِذٰلِكَ وَيَرْتَدِي وَلَا يُعَرِّي مَنْكِبَيْهِ وَلَا بَأْسَ بِالْمِئْزَرِ وَالْعِمَامَةِ وَيُكْرَهُ السِّرْوَالُ وَالْعِمَامَةُ فَإِنْ كَانَ عَلَيْهِ سَيْفٌ أَوْ قَوْسٌ جَعَلَ عَلَيْهِ شَيْئًا مِنَ اللِّبَاسِ وَالْأَصْلُ فِي ذٰلِكَ قَوْلُهُ تَعَالَى {خُذُوا زينتكم عِنْدَ كُلِّ مَسْجِدٍ} وَالْعَبْدُ يُنَاجِي رَبَّهُ فَيُسْتَحَبُّ أَنْ يَتَجَمَّلَ لَهُ وَلَمَّا كَانَ الْإِمَامُ يَنْبَغِي أَنْ يَكُونَ أَفْضَلَ الْقَوْمِ دِينًا فَيَنْبَغِي أَنْ يَكُونَ أَفْضَلَهُمْ زِيًّا. (الزخیرة ج ۲ص۔ ۱۱۳)

ترجمه: صاحب الجلاب فرمایلي دي چې دلمونځ کونکي لپاره بهتره خبره داده چې واغوندي پوره لباس او امام اولی دی په دې پوره والي کې او څادر دې واغوندي او لوڅ دې پرنږدي اوږې خپلې او باک نشته په کمربند باندې او مکروه دی پرتوګ او پګړی او کچیرته وه توره او یا لیندې نو یو لباس دې پرې واچوي او دلیل په ددې لپاره دا قول دالله تعالی دی (يٰبَنِيٓ اٰدَمَ خُذُوْا زِيْنَتَكُمْ عِنْدَ كُلِّ مَسْجِدٍ) او بنده مناجات کوي د رب خپل سر ته نو مستحب دی چې ځان ورته ښایسته کړي، هرکله چې امام ته دا مناسب وه دی باید بهتر وي په قوم کې له جهته ددیانته نو مناسب دی چې امام بهتر وي په لباس کې هم.

۴- وینبغی ان یتجمل باحسن الثیاب فی الصلوة وتستحب للامام اکمل ذلک وافضله واحسنه زینة کالرداء وشبهه (الکافی ج ۱ص۔ ۲۳۹ مواهب الجلیل ج ۲ص۔ ۱۹۱)

ترجمه: مناسب دی چې ځان ښایسته کړي په ښو جامو سره په مانځه کې او مستحب دی لپاره دامام اکمل زینت او احسن زینت لکه په څادر وغیره باندې.

## په مانځه کې دسر پټول دعربي علماؤ دفتوو په رڼاکې

۱-الباني ليکي چې: والذى اراه فى هذه المسئلة أن الصلوة حاسر الرأس مكروهة وذلك أنه من المسلم به استحباب دخول المسلم فى الصلوة فى اكمل هيئة اسلامية للحديث المتقدمة فى الكتاب ج ۱صـ ۱۲۸)

عن ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فان الله احق ان يتزين له وليس من الهيئة الحسنة فى عرف السلف اعتيادحسر الرأس والسير كذلك فى الطرقات والدخول كذلك فى اماكن العبادات بل هذه عادة اجنبية تسربت الى كثير من البلاد الاسلامية حين ما دخلها الكفار وجلبوا اليها عاداتهم الفاسدة فقلدهم المسلمون نيها فاضاعوا بها وبامثالها من التقاليد شخصيتهم الاسلامية فهذا العرف الطارى لايصلح أن يكون مسوغا لمخالفة العرف الاسلامية فى السابق ولا اتخاذه حجة لجواز الدخول فى الصلوة حاسر الرأس. (تمام المنه فى التعليق على فقه السنةللالبانى ج ۱صـ ۱٦٤)

ترجمه: پدې مسئله کې زماتحقيق دادی چې لمونځ کول په لوچ سر مکروه دی ځکه چې دا پو ښلی شوی حقيقت دی چې دمسلمان لپاره مستحبه داده چې په کامل هيئت اسلامي باندې په مانځه کې داخل شي، له دې وجې دهغه حديث څخه چې مخکې په ج ۱صـ ۱۲۸، کې تير شو.

دحضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه روايت دی چې الله تعالی ډير حقدار دی چې زينت ورته وشي او دسلفو په عادت کې لوڅ سر لمونځ کول او لوڅ سر گرزيدل عادت حسنه نه دی همدارنګه دعبادت ځايونو ته لوڅ سر داخليدل هم دې بلکې لوچ سر يو پردې عادت دی چې داخل شوی دی اکثر اسلامي ملکونو ته، چې کفار هلته داخل شول او خپل فاسد عادتونه يې ور داخل کړل او مسلمانانو يې هم پيروي وکړه نو ضائع شو په دغو عادتونو او په مثل ددې عاتونو دمسلمانانو اسلامي شخصيت نو دغه عرف صلاحيت نه لري چې مجوز شي لپاره دمخالفت دعرف اسلامي سابقه او نه شي گرزيدلی دليل لپاره دجواز ددخول په مانځه کې په لوڅ سر سره

۲- يجوز للمصلى أن يصلى وهو مشكوف الرأس ولكن تغطية الرأس من تجميل الهيئة المستحبة فى الصلوة لقوله تعالى (يابنى آدم خذوا زينتكم عند كل مسجد) فالتجميل للصلوة امر

مطلوب وهو تزيّنُ بالثياب وأقل حدٍّ فى ذلک هو ستر العورت وهذا لابد منه وما زاد على ذلک فانه مستحب ومكمّل للهيئة ومن ذلک تغطية الرأس. (المنتقى من فتاوى الفوزان ج ٤٩صـ١٣)

ترجمه: جايز دی لپاره د مونځ کونکي لپاره چې لوڅ سر لمونځ وکړي سر مګر په مانځه کې پټول سر د هيئت جميله مستحبه دی له وجې ددې قول دالله تعالى څخه چې (خذوا زينتكم الخ) نو ښايست لپاره دلمانځه دا يو مطلوب كار دی او زينت په جامو سره كيږي او كمه اندازه يې پټول دعورت دي اوله دې څخه لابدي ده او دعورت څخه زيات پټول مستحب كار دی او تكميل دهيئت حسنه دی نو ددې وجې پټول دسر هم دهيئت حسنه څخه شو.

٣- الرأس ليس بعورة لا فى الصلوة ولا فى غيرها سواء كانوا بالغين او غير بالغين لكن ستره لما يناسبه مما جرته به العادت ولا مخالفة فيه للشرع يعتبر من باب الزينة فيستحسن ستره فى الصلوة عملا بقوله تعالى (يا بنى آدم خذوا الخ) ويتأكد بالنسبة للامام (فتاوى اسلاميه للشيخ ابن باز والشيخ ابن عثيمين والشيخ ابن جبرين ج ١صـ٦١٥)

ترجمه: سر عورت نه دی، نه په لمونځ كې او نه په غير دلمانځه كې. برابره خبره ده كه بالغ وي او كه غير بالغ مګر پټول يې مناسب دي، له وجې دعادت حسنه څخه او په دې كې مخالفت دشريعت نشته، نو دا به شميرل كيږي دباب دزينت څخه، نو ښه ګڼل كيږي پټول دسر په لمانځه كې له جهته دعمل نه په دې قول دالله تعالى ﴿يَٰبَنِيٓ ءَادَمَ خُذُواْ زِينَتَكُمۡ عِندَ كُلِّ مَسۡجِدٖ﴾ او دپټول دسر ډير مؤكد دي په نسبت امام ته.

٤- نعم يجوز أن يصلى مكشوف الرأس الا أن الاحسن ان يغطيه لأنه أكمل فى المروءة (مفتى ا لشيخ عبدالله بن حميد ج ١صـ٦٤٥٤)

ترجمه: هو كې جايز دی لمونځ كول په لوڅ سر مګر ښه خبره داده چې سر پټ كړی شي ځكه چې دا په مرووت كې درجه دتكميل ده.

٥- لَاخِلَافَ بَيْنَ الْفُقَهَآءِ فِى اسْتِحْبَابِ سَتْرِ الرَّأْسِ فِى الصَّلَاةِ لِلرَّجُلِ، بِعِمَامَةٍ وَمَا فِى مَعْنَاهَا، لِاَنَّهٗ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ كَذٰلِكَ يُصَلِّي. (الموسوعة الفقهية الكويتيه ج ٢٢صـ٥)

ترجمه: دسړي لپاره په مانځه كې دسر دپټولو په مستحبوالي كې اختلاف نشته په پګړی سره او يا په هغه شي سره كوم چې په حكم دپګړی كې وي ځكه چې رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ همدا سې لمونځ كړی دی.

٦-لو صلى الانسان مکشوف الرأس فانّ صلاته صحيحة لکن الافضل أن يغطيه اذا کان في أناس يغطون رؤسهم وعادتهم أن غطوا رؤسهم في لباسهم لعموم قوله تعالى (يابني آدم خذوا زينتکم عند کل مسجد) فاذا کان من قوم لايلبسون هذه الاشياء مثل الغترة اوالشماغ او الشال فان الأفضل أن يلبسها حال صلواته لأنها من الزينة التي امر الله بأخذها (مجموعه فتاوى ورسايل ابن عثيمين ج۱۲ صـ۲۳۱)

ترجمه: کچیرته مونځ وکړي يو انسان په لوڅ سر نو دا لمونځ صحيح دی، مګر بهتر دادی چې سر پټ کړي، په هغه وخت کې چې او سيږي په داسې خلکو کې چې هغوي سر ونه خپل پټوي او دايې عادت هم وي چې پټوي سرونه خپل په لباس خپل کې، له وجې دعموم ددې قول دالله تعالى (يابنى آدم خذوا الخ) او کچیرته په داسې قوم کې اوسيدلو چې نه اغوندي دا شيان لکه سپين دسمال، ګلدرا دسمال او نرى شال نو بهتر دادى چې واېې غوندي په حال دلمانځه کې، ځکه دا دزينت څخه دى هغه زينت چې امر کړی دی الله تعالى په کولو سره يې.

۷- صلوة الرجل وهو حاسر رأسه اى کاشف رأسه لا بأس بها لانّ ستر الرأس ليس بواجب لکن اذا کان الانسان في بلد من عادتهم أن يستروا رؤسهم وهو يرون أنّ ذلك من کمال الزينة فان الأفضل للانسان أن يستر رأسه باللباس الذى يعتاده الناس لعموم قوله تعالى (يابنى آدم خذوا زينتکم عند کل مسجد) فنحن هنا في بلادنا في السلکة العربية السعودية نعتاد ستر الرأس بالطاقية والغترة وعليه فيکون ستر رؤسنا بذلك أفضل من کشفها لأن هذ من تمام الزينة التي امر الله تعالى بأخذها في قوله تعالى (يابنى آدم خذوا الخ). فتاوى النور على الدرب لابن عثيمين ج۹ صـ۱۲۸)

ترجمه: لمونځ دسړي په داسې حال کې چې لوڅ وي سر يې باک نشته په دې کې، ځکه چې پټول دسر واجب نه دي، مګر که يو انسان په داسې يو ښار کې وي چې هلته عادت دا وي چې پټوي سرونه خپل او دا خيال يې وي چې دسر پټول پوره زينت دی، نو هلته دانسان لپاره بهتره داده چې پټ کړي سر خپل په داسې لباس چې دخلکو په وړاندې عادت وي له وجې دعموم ددې قوله دالله تعالى څخه چې: (يابنى آدم خذوا زينتکم عند کل مسجد) نو مونږ دلته په سعودی عربستان کې عادت يو په پټولو دسر په خولۍ سره او په سپين څادر سره نو شو پټول دسرونو زمونږ په خولۍ او په څادر سره بهتر دلڅولو په نسبت ځکه چې پټول دسر پوره زينت دی هغه زينت چې په کولو يې الله تعالى امر کړی دی په دې ايت کريمه کې (يابنى آدم خذوا زينتکم عند کل مسجد).

۸- وستر الرأس بما جرت به العادت ولا مخالفة فيه للشرع من باب الزينة فيحسن ستره عملا بقوله تعالى (يا بني آدم خذوا زينتكم عند كل مسجد) ويتأكد ذلك في حق أهل الفضل كالعلماء والائمة ونحوهم وقد صلى النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ولا ريب وهو كاشف الرأس حال احرامه واما في غير الاحرام فلا نعلم خيرا يفيد ذلك. (فتاوى الشبكة الاسلاميه باشراف عبد الله الفقيه ج۲ صـ۱۲۰۳)

ترجمه: پټول دسر کوم چې عادت پرې جاري دی حال دا چې په دې کې د شريعت مخالفت هم نشته دباب دزينت څخه دی، نو ښه ګڼل کيږي پټول يې لپاره دعمل کولو په دې ايت کريمه چې: (يا بني آدم خذوا الخ) او تاکيد راغلی دی په حق دخاوندانو دفضيلت کې لکه علماء، أئمه يا نورا وهمداسې لمونځ کړی دی نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او شک نشته چې لوڅ سر وي په حالت داحرام کې اما په حالت دغير احرام کې نو په يو خبرهم نه يو خبر چې ددې خبرې افاده يې کړې وي.

۹- الصلوة بغير عمامة لا حرج فيها لأن الرأس ليس بعورة ولا يجب ستره في الصلوة سواء كان المصلي اماما او منفردا او ماموما ولكن اذا لبس العمامة المعتادة كان أفضل لاسيما اذا صلى مع الناس لقوله تعالى عزوجل: (يا بني آدم خذوا زينتكم عند كل مسجد) وهي من الزينة (مجموعة الفتاوى ابن باز ج۱۰ صـ۴۰۶)

ترجمه: لمونځ کول بغير دپګړی څخه په دې کې هيڅ حرج نشته، ځکه چې سر عورت نه دی، نو واجب نشو پټول يې په لمانځه کې برابره خبره ده که لمونځ کونکي امام وي او که منفرد وي او که مقتدي وي او که يې واغوستله هغه پګړی چې دخلکو عادت دی نو دا بهتر دی خاصةً چې کله لمونځ کوي دخلکو سره په دليل ددې ايت کريمه چې ﴿يَٰبَنِيٓ ءَادَمَ خُذُواْ زِينَتَكُمۡ عِندَ كُلِّ مَسۡجِدٖ﴾ او دا دزينت څخه دی.

۱۰- اما بالنسبة لستر الرأس فان الله تعالى أحق ان يتزين له كما جاء في الحديث الله أحق ان يتزين له فاذا كان الانسان في بلد يتزين أهله بتغطية رؤسهم كهذا البلد فانه يتأكد في حقه تغطية الرأس لأن عرف الناس في البلد تغطية رؤسهم ليس هذا واجبا ولا يأثم بكشف الرأس لكن يجرى على فهم أهل بلده أنه من الزينة وما تعارفوا عليه في هذه القضية لأن قوله خذوا زينتكم يشمل ايضا الزينة العرفية التي تعارف عليها الناس ولكن عادة المسلمين من القديم تغطية الرأس وكانوا يضعون العمائم. (سلسلة الاداب الاسلاميه ج ۱۰ صـ ۲)

ترجمه: او په نسبت سره پټولو دسر ته نو الله تعالی ډير حقدار دی چې ورته زينت وکړی شي لکه څنګه چې حديث شريف راغلي دي چې الله تعالی ډير حق دار دی چې زينت ورته وشي، نو کله چې

يو انسان په يو ښار کې اوسيږي چې دهغه ښار خلک زينت کوي په پټولو د سر سره لکه دغه ښار پس نو تاکيد دی په حق ددې انسان کې په پټولو دسر سره ځکه چې عرف (رواج) دخلکو په دغه ښار کې هغه دسر پټول دي او دا واجب نه دی او نه ګنهګاريږي په لوچولو سره لکن چې کله هلته دخلکو عرف دسر پټول زينت وي نو په مانځه کې به دسر دپټولو په قضيه کې په همدې عرف اوفهم باندې چليږي ځکه الله تعالی فرمايي: (يابني ادم خذوا الخ) دا شامل دی هغه عرفي زينت ته چې پيژندل کيږي پرې خلک مګر عادت دمسلمانانو دقديم څخه پټول دسر دی اودوي کيږدي پګړۍ خپلې.

۱۱-ان الذی يصلی ورأسه مکشوفٌ أنّ صلاته جائزة فالذی يصلی وعلی رأسه قلنسـوة اولی واحری (الدرر السنية للکتب النجدية الشيخ عبدالله بن الشيخ محمد ج ۵صـ ۲۲۵)

ترجمه: هغه کسان چې لمونځ کوي او سريې لوڅ وي دا لمونځ يې جايز دی او هغه کس چې لمونځ کوي او په سريې خولۍ وي نو دا ډير بهتر او افضل دی.

## دسر پټول دلامذهبو دفتوو په رڼا کې

**لامذهبه نذير حسين فتوی:**

په دې کې شک نشته چې دعمامې سره لمونځ افضل دی په حديث کې دي چې: (عليکم بالعمائم فانها سيماء الملائکة) لازم دی په تاسو پګړۍ تړل ځکه چې دا دملائکو لباس دی.

اودحضرت رکانه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په حديث کې راځي چې: (فرق ما بيننا وبين المشرکين العمائم فوق القلانس)

ترجمه: فرق په مابين زمونږ کې او په مابين دمشرکينو کې هغه پګړۍ تړل دي په خولۍ باندې.

**دلامذهبه عبدالستار فتوی:**

په خولۍ او يا په پګړۍ کې لمونځ کول بهتر دی ځکه چې خولۍ او پګړۍ دزينت سبب دی (فتاوی ستاريه ج ۳صـ۵۹)

**دلامذهبه سيد داود غزنوي او لامذهبه عبدالجبار غزنوي فتوی:**

سر په عورت کې ندی داخل لکن بيا يې هم پټول دمانځه دا ادابو څخه دی لکه او ږې چې دستر څخه نه دي لکن بيا يې هم پټول دمانځه د ادابو څخه دی.

الله تعالی فرمايي چې: ﴿ يَٰبَنِيٓ ءَادَمَ خُذُواْ زِينَتَكُمۡ عِندَ كُلِّ مَسۡجِدٖ ﴾ دهر مانځه په و خت کې د زينت جامې واغوندې ، شيخ الاسلام ابن تيميه حنبلي رحمه الله په اختيارات ص ۴۴) کې فرمايي چې په مانځه کې دستر عورت څخه علاوه يو زايد حکم هم شوی دې چې هغه دښه لباس اغوستل دي الله تعالی فرمايي: ﴿ يَٰبَنِيٓ ءَادَمَ خُذُواْ زِينَتَكُمۡ عِندَ كُلِّ مَسۡجِدٖ ﴾ زما دنظر څخه هيڅ داسې روايت نه دی تير شوی چې په هغې کې راغلي وي چې نبي کريم صَلَّىٰ ٱللَّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ او يا کوم صحابي دی په مسجد کې او بيا په جماعت کې لوڅ سر لمونځ کړي وي پاتې خو لا داچې معمول يې جوړ کړي (فتاوی علماء حديث ج ۴ص ۲۹۰)

## دلامذهبه ثناء الله امر تسری فتوی:

صحيح او مسنون مونځ هغه وي کوم چې دنبي کريم صَلَّىٰ ٱللَّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ څخه بالدوام ثابت وي يعنې بدن په جامو او سر په پګړۍ باندې پټول (فتاوی ثنائيه ج ۱ص ۵۳)

## دلامذهبو څخه يو څو سوالونه:

۱-ايا په مانځه کې دسر پټول دمانځه لپاره شرط دی او که نه ؟ اودشرط تعريف وکړئ؟ په جواب کې دخپلو اصولو مطابق يا ايت او يا مرفوع حديث وليکی.

۲-دسړي ستر دکوم ځای څخه تر کوم ځای پورې دی ؟ په جواب کې ايت يا مرفوع حديث وليکی؟

۳-د وينځې دبدن کوم کوم ځای ستر دی؟

۴-دخنثی دبدن کوم کوم ځای ستر دی ؟ په جواب کې يا ايت يا مرفوع حديث وليکی.

۵- يو سړی لمونځ کوي او دګريوان صدفونه يې کلاو وي او خپل عورت ورته دګريوان څخه ښکاري مونځ يې کيږي او که نه؟

۶-که يو سړی په تياره کوټه کې بربنډ لمونځ کوي لمونځ يې کيږي او که نه ؟

۷- دسړي څو مره اندامونه عورت دی ؟ کوم اندامونه چې عورت دي ، او دذوي هريو څخه په مانځه کې لږلږ ښکاره شي نو مونځ ورسره کيږي او که نه ؟

۸- ديو سړي قابل دستر عضوې څلورمه حصه ښکاره شوه بيا يې سمدستي بيرته پټه کړه نو ددې څه حکم دی؟

۹-یو سړي لمونځ کولو په جیب کې یې هګۍ وه د مانځه څخه وروسته هګۍ ماته شوه او وینه او یا مرېچې ترینه راووتلو نو دا مونځ وشو او که نه ؟په جواب کې صرف صریح ایت او یا صریح مرفوع حدیث ولیکۍ؟

۱۰-په څو مره جامو کې مونځ مستحب دی؟

۱۱- وابیان لوڅ سر لمونځ ته دترغیب لپاره دثوب واحد حدیث پیش کوي او ثوب واحد خو یوائې خولی هم ده، نو که یو سړی یوائې خولی په سر کړې وي او نور لوڅ لغړ وي لمونځ یې کیږي او که نه؟

## لامذهبو ددې خپلو مسایلو لپاره دلایل پیش کړئ:

۱-هرکه چیز از عورتش در نماز نمایان شد یا درجامه ناپاک نماگزار دنمازش صحیح است (عرف الجادی ص_ ۲۲) نواب نور الحسن

۲- پس مصلی بانجاست بدن اثم است ونمازش باطل نیست همچنین ادله صحیحة دال بر وجوب ستر عورت در نماز و درجز آن است نه بر شرطیت (بدور الاهله نواب صدیق حسن خان)

۳-واما آنکه نماز زن چه تنها یا بازنان یا باشوهر یا دیگر محارم باشدبی ستر تمام عورت صحیح نیست پس غیر مسلم است (بدور الاهله ص ۳۸)

ښځه یوائې لمونځ کوي او که دنورو ښځو سره یې کوي پایې دمیړه سره کوي یایې د نور محارمو سره کوي او بربنډه وي نو څوک چې دي لمونځ ته غیر صحیح وایي دا خبره یې دمنلو وړ نه ده.

۴-و طهارت محمول ملبوس را شرط صحت نماز گردانیدن کما ینبغی نیست (بدور الاهله ص ۳۸)

وصلی الله تعالی علی خیر خلقه محمد وآله واصحابه وأهل بیته اجمعین یارب العالمین.

***

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا نُودِيَ لِلصَّلَاةِ مِن يَوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ

پلچرخي زندان دريم بلاک نېټه: ۱٤۳۳/۸/۲۳هـق

# تحقيق الجمعة في القرى ومايتعلق بها

## په کليو کې دجمعې دلمانځه تحقيق

ليکوال : الشيخ ابو ابراهيم رحيم الله الحقاني الننجرهارى

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمدلله وحده والصلوة والسلام علي من لا نبي بعده.

أمابعد اد جمعې دلمانځه لپاره بعضې داسې شرايط دي چې دعامو لمونځونو لپاره نشته، په دې شرايطو کې داحنافو په نيزيو شرط دادی چې د جمعې لمونځ په داسې ځای کې اداکيږي چې هغه حقيقةً او يا حکماً ښار وي، په عامو وړو، وړو کلو کې د جمعې لمونځ نه کيږي.

## اول فصل

## داحنافو دلايل

**اول دليل:** الله ﷻ فرمائی: يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا اِذَا نُوْدِیَ لِلصَّلٰوةِ مِنْ يَّوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا اِلٰى ذِكْرِ اللّٰهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ ذٰلِكُمْ خَيْرٌلَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ.

الله ﷻ هغو مومنانو ته د جمعې دلمانځه حکم کوي دکوموچې عام کاروبار بيع يعنې تجارت وي او اصل کاروبار د تجارت دښار د خلکو وي، ددې ايت څخه صفا معلوميږي چې د جمعې دلمانځه خطاب دښار خلکو ته دی .

**دوهم دليل:** په قران کريم باندې دټولو خلکو څخه زيات پوهيدونکې رسول الله ﷺ او صحابه کرام رضی الله عنهم دي . رسول الله ﷺ په مکه مکرمه کې وو (د جمعې لمونځ فرض وو) رسول الله ﷺ اهل مدينه وو ته د جمعې دلمانځه حکم وليږلو . (رواه الدارقطنى التلخيص الجبير ج ۱ص ۱۳۳) .

خپله رسول الله ﷺ په مکه مکرمه کې د جمعې لمونځ نه کولو ، ځکه چې هلته اذن عام نه وو ، بيا رسول الله ﷺ د مکې مکرمې څخه هجرت وکړو مدينې منورې ته ، په لاره کې د قبا په نوم ځای کې پنځلس ورځې پاتې شو . په دې دوران کې دوه جمعې راغلې مګر رسول الله ﷺ نه پخپله د جمعې لمونځ وکړو ، او نه يې د قباء خلکو ته د جمعې دلمانځه حکم ورکړو ، که چيرته د کليو په خلکو باندې د جمعې لمونځ فرض وی نو رسول الله ﷺ به خپله هم هلته د جمعې لمونځ کړی وو او اهل قباء ته به يې هم د جمعې

دلمانځه حکم کړی وو، نورسول الله ﷺ په خپل قول او فعل سره ثابته کړه چې دښار څخه دباندې دجمعې لمونځ نه شته.

**دریم دلیل:** صحیح بخاری جلداول (ص ۱۱) باب زیادة الایمان ونقصانه کې راغلي دي چې د(الیوم اکملت لکم دینکم )الایة. دحجة الوداع په موقع د عرفې په ورځ نازل شوی دی، دادجمعې ورځ وه

او په صحیح مسلم جلداول (ص)۳۹۷ )باب حجة النبی ﷺ کې راغلي دي چې : ثم اذن ثم اقام فصلي الظهرثم اقام فصلي العصرولم یصل بینهماشیئا)

ظاهره ده چې رسول الله ﷺ دجمعې په ورځ دماسپښین لمونځ وکړو، د جمعې لمونځ یې ونه کړو، درسول الله ﷺ سره په حج کې اهل مکه اودخوا او شا خلک هم وو چې مسافرین نه وو رسول الله ﷺ هغوی ته هم دجمعې دلمانځه حکم ونه کړو، که په ایت کریمه کې په هرځای کې دجمعې دلمانځه حکم وی نورسول الله ﷺ به هیڅکله ددې الهي حکم مخالفت نه وی کړی. او دیولک څخه زیاتوصحابه وو ته هم داشبهه پیدا نه شوه چې دجمعې دفرضیت ایت کریمه دهرځای لپاره عام دی، نونن ولې دلته دجمعې لمونځ ونشو؟ معلومیږي چې دایت کریمه څخه په هرځای کې د جمعې لمونځ نه درسول الله ﷺ په تصورکې راغلي وو او نه دصحابه کرامو په خیال کې راغلي وو.

**څلورم دلیل:** حضرت ابوهریرة ﷺ درسول الله ﷺ څخه روایت کوي: خَمْسَةٌ لَا جُمُعَةَ عَلَيْهِمُ الْمَرْأَة، وَالْمُسَافِرَ، وَالْعَبْدَ، وَالصَّبِيَّ وَأَهْلَ الْبَادِيَةِ. (رواه الطبراني في الاوسط مجموعة الرسایل ،ج ۱ص ۳۷۵).

**ترجمه :** په پنځه قسمه خلکوباندې دجمعې لمونځ نشته، په ښځه، په مسافر، په غلام ،په ماشوم اودباندو په خلکو.

**پنځم دلیل :** عَنْ عَلِيٍّ ﷺ قَالَ لَا جُمُعَةَ وَلَا تَشْرِيْقَ اِلَّا فِيْ مِصْرٍ جَامِعٍ. (اخرجه ابو عبید باسنادصحیح فتح الباری ، ج ۲ص ۳۸۰ ) واخرجه عبد الرزاق واسناده صحیح ( الدرایة ص۱۳۱) واخرجه استاذالبخاري ابن ابي شیبه واسناده صحیح، عمدة القاري شرح بخاري ، ج ۳ص ۱۸۸) وفي بعضها ص ۲٦٤]. وذکرالامام خواهرزاده في مبسوطه ان ابایوسف ذکره في الاملاء مسندامرفوعاالي النبي ﷺ وابویوسف امام الحدیث حجة البنایة شرح هدایه ،ج ۱ص ۹۸۳).

**ترجمه:** د حضرت علی ﷺ څخه روايت دی چې نه شته دی د جمعې لمونځ او نه شته دی تشريق مګر په جامع ښار کې. فتح الباری شرح د بخاری، عبد الرزاق، او عمدة القاری شرح د بخاری دې حديث ته صحيح ويلي دي.

او امام ابو يوسف رحمة الله مرفوعا الى النبی ﷺ هم روايت کړی دی، خپله د غير مقلدينو په معتمد کتاب فتاوی علماء حديث کې دې حديث ته بيا بيا صحيح ويلی شوی دی. (وګوره فتاوی علماء حديث، ج ۴ ص ۱۴۱ ص ۱۴۲ ص ۱۴۳)

په دی صفحو کې يې د دې حديث ديو، يو راوی ثقه والی او د خپل استاذ څخه اوريدل په تفصيلي ډول ذکر کړی دی امام ابو يوسف رحمه الله ثقه دی، له دی وجهې هغه چې دی حديث ته مرفوع وائي نو دا زيادت د ثقه دی او امام ابو يوسف مجتهد هم دی او مجتهد چې د کوم حديث څخه استدلال وکړي نو دا هغه حديث د صحت دليل وي (مقدمه اعلاء السنن الفصل الثاني ص ۳۹ الباعث الحثيث ص ۸۱ النوع الثالث والعشرون معرفة من تقبل روايته الخ) نو دا حديث په يوه طريقه مرفوع حقيقی دی او په دوه طريقو مرفوع حکمي دي، اول دا چې دا د خليفة الراشد قول دی او رسول الله ﷺ فرمائي (عليكم بسنتى وسنة الخلفاء الراشدين المهدين) الحديث. (ترمذی).

او دوهم دا چې د عام صحابي داسې قول چې اجتهاد لره پکې دخل نه وي د محدثينو په اتفاق سره د مرفوع په حکم کې وي، نو دا حديث هم مرفوع حقيقي او مرفوع حکمي دی، د دې صحيح صريح حديث څخه غير مقلدين ډير په تکليف دي، نو د دې حديث څخه د انکار لپاره لاندې حيلې او بهانې جوړوي.

(۱) کله د دې حديث په باره کې د امام نووي رحمه الله قول رانقلوي چې هغه دې حديث ته ضعيف ويلي دي حالانکه د دې حديث درې سندونه دي.

اول د زبيد ايامي سند، دوهم د طلحه سند، دريم د حجاج بن ارطاة سند، د نووی رحمه الله قول صرف د دريم سند په باره کې دی او هغه هم بلا دليله قول دی ځکه چې دا راوي مختلف فيه دی او د مختلف فيه راوي حديث د حسن په مرتبه کې وي او اول دواړه سندونه بالکل صحيح دي، لکه څرنګه چې غير مقلدينو يې هم صحت منلی دی. فتاوی علماء حديث ج ۴ ص ۱۴۱ و ص ۱۴۲ و ص ۱۴۳].

(۲) دوهمه بهانه داکوي چې دا دحضرت علی ﷺ خپل اجتهاد دی، چې دقطعی نص او دصحیحو احادیثو څخه خلاف دی.

غیرمقلدینو په خپلو ټولو کتابونو کې لیکلي دي چې دقطعي نصوصو په خلاف قیاس او اجتهاد کول یادکفارو او مشرکانو طریقه ده او یادا حبارو او درهبانو طیره ده.

**نــو ای غیرمقلــدینو!** ستاسو ددې ټولو خبرو څخه وروسته حضرت علی ﷺ ته څرنګه خلیفة الراشد ویلي شي؟

(۳) غیرمقلدین چې کله دهرطرف څخه ناامیده شول نو خپل خارجیت یې رابرسیره کړاووې یکل چې: دحضرت علی ﷺ دخلافت اخروخت دفسادونو او دجنګونو وخت وو، نوممکنه ده چې حضرت علی ﷺ اطرافو ته دا حکم ددې لپاره لیږلي وي چې هغوی دمفسدو اجتماعاتو څخه بچ شي.

په فتاوی علماء حدیث کې یې لیکلي دي چې ددې لپاره چې اموي مبلغین داطرافو خلک راونه پاروي حضرت علی ﷺ په دې حالاتو کې د (لاجمعة ولاتشریق الافي مصرجامع) حکم وکړو، دوخت د مصلحتونو په بنا باندې (فتاوی علماء حدیث ج ۴ص ۳۵).

**اول :** غیرمقلدینو دجمعې لمونځونو ته دمفسدانه اجتماعاتو نوم ورکړو.

**دوهــم :** دوي په حضرت علی ﷺ باندې داتهمت ولګولو چې ده دخپل خلافت دبچ کولو لپاره په یو فرض عین لمونځ باندې پابندي ولګوله.

**دریــم :** غیرمقلدین دعقل له لوري دومره کمزوري دي چې په دی هم نه پوهیږي چې داطرافي اجتماعاتو څخه چې کله خطره وه نو دښارونو د اجتماعاتو څخه څرنګه نه وه؟ حالانکه دحکومتونو انقلابونه د ښارونو داجتماعاتو څخه راځي نه داطرافي اجتماعاتو څخه.

**محترمو!** په حضرت علی ﷺ باندې دومره غټ تهمت شاید چې خوارجو هم نه وو لګولی.

(۴) غیرمقلدین بله بهانه داکوي چې په دې حدیث کې دلاجمعة څخه نفی دکمال مراده ده، نو اول خو نفی دکمال معنی مجازي ده او معنی مجازي قرینه غواړي او قرینه دلته نه ده موجوده. کوم ایت ته چې غیرمقلدین قرینه وائي نو دهغه څخه قرینه نشي جوړیدلی، مثلا احناف دلاندې حدیث:

(لاصلوة لمن لم یقرا بفاتحة الکتاب فصاعدا) څخه نفی دکمال مراد وي او قرینه ورته بل حدیث دی چې په هغې کې د( خداجٌ غیرتمـامٍ) الفاظ دي احناف دنفی دکمال څخه دانتیجه رااوباسي چې که یواځې لمونځ کوونکي به له دفاتحې څخه لمونځ وکړونو په هغه واجب دي چې لمونځ راوګرځوي اوفاتحة پکې ولولي ځکه نفی دکمال ترک دواجبودی، نوغیرمقلدین به هم دنفی دکمال څخه دانتیجه رااوباسي چې که یوچاپه اطرافوکې دجمعې لمونځ وکړو نو په هغه واجب دي چې په ښارکې به دالمونځ بیرته راګرځوي، ځکه چې په اطرافوکې دجمعې دلمانځه په وجه نفی دکمال راغله اونفی کمال ترک دواجبودی، حالانکه دا قول په دین کې بدعت دی او داجماع دامت څخه مخالفت دی.

**شپږم دلیل :** عن عایشة قالت کان الناس یتناوبون الجمعة من منازلهم والعوالي. (بخاری ج ۱ ص ۱۲۳). وفي روایة یتناوبون. [فتح الباری، ج ۲ص ۳۲۱].

حضـرت عایشـة رضـی الله عنهافرمـائی چې خلـک بـه پـه نمبرنمبـر د جمعـې دلمانځـه لپـاره دباندوڅخه راتلل عوالي جمعه دعالیة ده ددې څخه مزاد هغه کورونه دي چې دمدینې منورې دمشرق طرفته ددوو میلوڅخه تردا تو میلوپه فاصله باندې اباددو. ۱۲ نمبرحاشیه بخاری ج ۱ ص ۱۲۳ یتناوبون په نمبرنمبرراتللوته وائي. [عینی حاشیه بخاری ص ۱۲۳ نمبر ۱۱].

یعنې یوه جمعه به یوراتلواوبله جمعه به بل راتلو، څوک به چې په باندوکې پاتې ووهغوی به هلته دجمعې لمونځ نه کولو، ځکه چې دمسجدنبوي څخه وروسته اول دجمعې لمونځ په جواثیٰ کې اداءشوی دی. ( بخاری ج۱ ص ۱۲۲ باب الجمعة فی القری والمدن).

نودباندوپه خلکونه په باندوکې دجمعې دلمونځ فرض دي اونه ورباندې ښارته راتلل اوهلته دجمعې لمونځ کول فرض دی، البته که څوک ښارته راغلواوپه ښارکې یې دجمعې لمونځ وکړونوذمه یې فارغیږي، وګورئ دباندواوسیدونکوصحابه وواوتابعینودایت دجمعې څخه دانه ده فهمولې چې په باندوکې هم دجمعې لمونځ فرض دی حضرت عایشې رضی الله عنهاهم دباندوخلکوته داندي ویلي چې تاسودایت دجمعې څخه مخالفت کوی ځکه چې په باندو کې دجمعې لمونځ نه کوئ، حاصل دا چې په هغه دورکې هیچا هم ددې ایت دجمعې څخه دااستدلال نه دی کړی چې دباندو په خلکو دجمعې لمونځ فرض دی.

**اووم دليل:** دحضرت ابوبكرالصديق رضي الله عنه دخلافت په دوره كې ديوې باندې نوم هم په كوم مسْتند كتاب كې نه شته چې هلته دجمعې لمونځ شوى وي اويا حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه دكومې باندې والوته دجمعې لمانځه حكم كړى وي.

**اتم دليل:** په هيڅ كوم مستند كتاب كې نه دي راغلي چې دحضرت عمر فاروق رضي الله عنه دخلافت په دوره كې په كومه بانډه كې دجمعې لمونځ شوى دى اويا حضرت عمر رضي الله عنه دكومې باندې والاته دجمعې دلمانځه حكم كړى وى.

**نهم دليل:** عَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: كُنْتُ أَنَا وَجَارٌ لِي مِنَ الأَنْصَارِ فِي بَنِي أُمَيَّةَ بْنِ زَيْدٍ وَهِيَ مِنْ عَوَالِي الْمَدِينَةِ وَكُنَّا نَتَنَاوَبُ النُّزُولَ عَلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَنْزِلُ يَوْمًا وَأَنْزِلُ يَوْمًا، فَإِذَا نَزَلْتُ جِئْتُهُ بِخَبَرِ ذَلِكَ الْيَوْمِ مِنَ الْوَحْيِ وَغَيْرِهِ، وَإِذَا نَزَلَ فَعَلَ مِثْلَ ذَلِكَ [بخارى ج ١ص ١٩ باب التناوب فى العلم].

حضرت عمر رضي الله عنه فرمائي چې زه اويو بل انصاري صحابي په بني اميه بن زيد كې اوسيدلو، بني اميه بن زيد دمدينې منورې څخه وتلې بانډه وه، نو مونږ به په نمبر رسول الله ﷺ ته راتلو، يوه ورځ به هغه راتلو اويوه ورځ به زه راتلم، كله به چې زه راغلم نو ددې ورځې خبربه مې خپل ملګري ته وروړلو اوپه كومه ورځ به چې هغه راغلو نو دهغې ورځې خبربه هغه ماته راوړلو، داحديث عام دى، دهفتې ټولو ورځوته شامل دى، چې دجمعې ورځ هم په كې راځي، يعنې يوه جمعه به حضرت عمر رضي الله عنه راتللو اوبله جمعه به هغه انصاري صحابي رضي الله عنه راتللو.

په كومه جمعه چې به حضرت عمر رضي الله عنه نه راتلونو هلته په بانډه كې به يې هم دجمعې لمونځ نه كولو ځكه چې دمسجد نبوى ﷺ څخه وروسته اول دجمعې لمونځ په جواثي كې شوى دى په بل ځاى كې نه دى شوى. (بخارى ج ١ص ١٢٢ باب الجمعة فى القرى والمدن)..

**لسم دليل:** دحضرت عثمان رضي الله عنه دخلافت په ټول دوركې په هيڅ بانډه كې دجمعې لمونځ نه دى ترسره شوى.

**يوولسم دليل:** حضرت ابو عبيدة رضي الله عنه فرمائي چې دحضرت عثمان دخلافت په دوره كې يولوى اختر دجمعې په ورځ باندې راغلو، نو حضرت عثمان دجمعې دلمانځه څخه وروسته اعلان وكړو چې. «يَاأَيُّهَا

النَّاسُ! إِنَّ هٰذَا يَوْمٌ قَدِ اجْتَمَعَ لَكُمْ فِيهِ عِيدَانِ، فَمَنْ أَحَبَّ أَنْ يَنْتَظِرَ الْجُمُعَةَ مِنْ أَهْلِ الْعَوَالِي فَلْيَنْتَظِرْ، وَمَنْ أَحَبَّ أَنْ يَرْجِعَ فَقَدْ أَذِنْتُ لَهُ».. [ بخاری ج ۲ص ۸۳۵].

**ترجمه** :په نن ورځ کې دوه اختره راجمع شوي دي، نودباندوپه خلکو کې چې دچاخوښه وي دجمعې لمانځه ته دې انتظاروکړي او چې د چاخوښه وي چې لاړشي نوزما ورته اجازه ده.

ظاهره ده چې دعواليو خلکو په خپلو ځايونو کې د جمعې لمونځ نه کولو، نو که دعواليو په خلکو دجمعې لمونځ فرض وی نو حضرت عثمان ﷺ به هيڅکله اجازه نه وی ورکړې.

دا اعلان حضرت عثمان ﷺ دصحابه وو په موجودګې کې دا خترپه غنډه اجتماع کې کړی دی او هيڅ يو صحابي ﷺ نه دی راپاڅيدلې او دايې ندي ورته ويلي چې محترمه ! ته خو دقران کريم راجمع کوونکي تولې دنياته دې قرانونه ليګلي دي نو دجمعې په باره کې نازل شوی ايت درته څرنګه نه دی معلوم؟ همدارنګه چې کله حضرت علی ﷺ اعلان وکړو چې لاجمعة ولاتشريق الافي مصرجامع نو هيڅ صحابی دا اعتراض ونه کړو چې محترمه !تاسو خو باب مدينة العلم يې ستاسو دا اعلان د فلاني ايت او يا فلاني حديث څخه مخالف دی.

خوارج د حضرت علی ﷺ سخت دشمنان دي، هغوي هم دا اعتراض ونه کړو چې د حضرت علی ﷺ دا اعلان دقران ياد حديث څخه مخالف دی . ددې حقايقو په موجودګی کې هرسړی په دې پوهيږي چې په ټوله نبوي دوره او دخلفاء الراشدينو په دوره کې په هيڅ بانده کې دجمعې لمونځ نه دی شوی.

**دولسم دليل** : عَنْ حُذَيْفَةَ ﷺ، قَالَ: «لَيْسَ عَلَى أَهْلِ الْقُرَى جُمُعَةٌ، إِنَّمَا الْجُمَعُ عَلَى أَهْلِ الْأَمْصَارِ، مِثْلِ الْمَدَائِنِ.

(اثارالسنن ج ۲ص ۸۷ بحواله) . ابن ابی شيبه باب عدم وجوب الجمعة علي من كان خارج المصر).

حضرت حذيفه ﷺ فرمائی چې دباندوپه خلکو دجمعې لمونځ نه شته، دجمعې لمونځونه دښارپه خلکودي، د حضرت حذيفة ﷺ دا فرمان دمرفوع حديث په حکم کې دی، ځکه چې په دی خبره کې اجتهادلره دخل نه شته اوداهم نه ده ثابته چې چادې د حضرت حذيفه ﷺ په خلاف دجمعې ايت پيش کړی وی.

**ديارلسم دليل**: امام بخاری يو بې سنده حديث ذکر کړی دی، چې حضرت انس ﷺ په زاويه کې اوسيدلو کله به يې دجمعې لمونځ کولو او کله به يې نه کولو. [بخاری ج ١ص ١٢٣].

که حضرت انس ﷺ په زاويه کې د جمعې لمانځه ته شرط ويلی نو بيانې فرض ځرنګه پرېښودلو؟
ايا داسې کوم روايت هم راغلی دی چې حضرت انس د سهار لمونځ کله کولو او کله يې پرېښودلو؟

**سوال:** حضرت انس ﷺ چې په زاويه نومې بانډه کې کله د جمعې لمونځ کولو نو معلومېږي چې په بانډه کې د جمعې لمونځ کېږي او ښار د جمعې دلمانځه لپاره شرط نه دی؟

**جواب:** په بخاری شريف کې دا حديث اجمالا ذکرشوی دی دامام بخاری استاذ ابن ابی شيبه مفصلا ذکرکړی دی چې: عن انس ﷺ انه كان يشهد الجمعة من الزاوية وهي على فرسخين من البصرة ). ( فتح الباری ج ۱ص ۳۲۰ ) .

نو اصل خبره داده چې حضرت انس ﷺ دزاويې په نوم بانډه کې اوسيدلو او په زاويه کې يې نه خپله د جمعې لمونځ کولو او نه يې نورو خلکو ته د جمعې دلمانځه امر کولو ، کله به چې هغه د جمعې په ورځ په زاويه کې وو نو د جمعې لمونځ به يې نه کولو او کله به چې د جمعې په ورځ بصرې ته راغلو نو د جمعې لمونځ به يې په بصره کې وکړو . .سره له دې چې حضرت انس ﷺ د قران عالم وو لکن د جمعې دايت ځخه يې هيڅکله هم عموم نه دی رافهمولی .

**څوارلسم دليل :** عن الحسن ومحمد(بن سيرين ) انهما قالا الجمعة في اهل الامصار. (رواه ابن ابی شيبه واسناده صحيح (اثارالسنن ج۲ ص۷۹) باب لاجمعة الا فى مصر جامع).

د حسن بصری رحمه الله او محمد بن سيرين رحمه الله ځخه روايت دی چې د جمعې لمونځ په ښارکې کيږي حسن بصری رحمه الله او محمد بن سيرين رحمه الله د تابعينو په دور کې د بصرې مفتيان وو ، هغوي ته دا فتوی ورکوله چې د جمعې لمونځ په ښارکې کيږي .
ايت د جمعې معلوم وو او د حديثو حافظان وو ، بيا يې هم د صحابه او د تابعينو په موجودګی کې

**پنځلسم دليل:** د تابعينو په دورکې د مکې مکرمې لوی مفتی حضرت عطاء رحمه الله فتوی داده چې د جمعې لمونځ په داسې ځای کې واجب دی چې هلته امير ،او ځو محلې (کلي) وي . (مجموعة الرسايل ،ج ۱ص ۳۸۴ بحواله عبدالرزاق).

**شپاړسم دليل :** دتابعينو په دورکې دکوفې لوی مفتي حضرت امام ابراهيم نخعی رحمه الله هم همداسې فتوی ورکوله. (کتاب الاثارامام محمد، مجموعة الرسايل ج ۱ ص ۳۸۴ ).

## دوهم فصل

## دغيرمقلدينو دلايل

(۱) دحضرت ابن عباس ﷺ حديث :عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا: أَنَّهُ قَالَ: «إِنَّ أَوَّلَ جُمُعَةٍ جُمِّعَتْ بَعْدَ جُمُعَةٍ فِي مَسْجِدِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فِي مَسْجِدِ عَبْدِ الْقَيْسِ بِجُوَاثَى مِنَ الْبَحْرَيْنِ» (بخاری ج ۱ص ۱۲۲ باب الجمعة فى القرى والمدن) .

حضرت عبدالله بن عباس ﷺ وايي چې دمسجدنبوي څخه وروسته اول دجمعې لمونځ دجواثی په مقام کې دعبدالقيس په مسجدکې وشواوعثمان بن ابى شيبه فرمائي چې. ( قرية من قرىَ بحرين (ابوداود) يعنې جواثي دبحرين يوه قريه وه .

**اول جواب:** مرفوع حديث په درې قسمه دی. قولي،فعلي، اوتقريري اودا په دی درې واړو کې په يوقسم کې هم نه دی داخل، ځکه په دې کې نه درسول الله ﷺ حکم ذکرشوی دی چې قولي شي اونه په کې داذکرشوي دي چې رسول الله ﷺ پخپله په جواثي کې دجمعې لمونځ کړی دی چې فعلي شي اونه په کې داذکرشوي دي چې د دوي دلمانځه څخه رسول الله ﷺ خبرشوی دی اوسکوت يې کړی دی چې تقريري شي نودامرفوع حديث يوقسم هم نه دی، نه قولي دی، نه فعلي دی اونه تقريري اونه مرفوع حکمي دی، ځکه چې دامدرک بالقياس کيدی شي په داسې طريقه چې دې خلکو دجمعې لمونځ په نورولمونځونو قياس کړی وي.

**دوهم جواب:** جواثي بانډه (کلي) نه وه، بلکې ښاروو، درسول الله ﷺ دزمانې څخه مخکې دادغلې منډيې وه لکه څرنگه چې د دې منډيي ذکرامرالقيس هم کړی دی. په دې قول کې :

ورحنها كانا بجواثي عشية نعالي النعاج بين عدلٍ ومحقب

اوامرالقيس درسول الله ﷺ دزمانې څخه مخکې تيرشوی دی. (اثارالسنن ،ج ۲ص ۸۰ ) باب اقامة الجمعة في القرى]

درسول الله ﷺ صحابه رضى الله عنهم دصديق اكبر په خلافت کې دجواثي په يوه قلعه کې محصنوروو. (اثارالسنن ج ۲ص ۸۰ بحواله معجم البلدان/باب اقامة الجمعة في القرى/ابن اثيرجواثي ته ښارويلی دی. (جوهري) زمخشري اوابن اثيروائي چې جواثي قلعه ده. (حاشيه بخاری ،ج۱ص ۱۲۲ نمبر۸ (فتاوی علماء حديث، ج ۴ص ۱۲۳ وص ۱۳۹).

نوجواثي ښاروو. علامه عيني فرمايي چې (كان يسكن فيها اربعة الاف نفس والقرية لاتكون كذلك) يعنې په جواثی کې څلور زره کسان وسيدل او قريه داسې نه وي، په فتاوی علماء حديث کې دادروغ ليکل شوي دي چې په حديث کې راغلي دي چې جواثي بانډه وه، سره له دې چې نه رسول الله ﷺ جواثي ته بانډه ويلې ده اونه ابن عباس ﷺ اونه بل کوم صحابي ،تابعي، ياتبع تابعي ورته بانډه ويلې ده. يواځې عثمان بن ابی شيبه ورته قريه ويلې ده، نو اول خو عثمان بن ابی شيبه سخت ضعيف دی او دوهم داچې دقريې اطلاق يواځې په بانډو باندې نه کيږي، بلکې په قران کريم کې دمکی مکرمی، دطايف، دمدينې منورې اودمصر په شان ښارونوته هم قريه ويلې شوی ده، الله ﷻ فرمايي (وَقَالُوْا لَوْلَا نُزِّلَ هٰذَا الْقُرْاٰنُ عَلٰى رَجُلٍ مِّنَ الْقَرْيَتَيْنِ عَظِيْمٍ) په دی ايت کې دقريتين څخه مکه اوطايف مراددی.

په بل ځای کې ايت دی: رَبَّنَآ اَخْرِجْنَا مِنْ هٰذِهِ الْقَرْيَةِ الظَّالِمِ اَهْلُهَا. په دې ايت کې دقريې څخه مکه مراده ده. په بل ايت کې راځي: وَاسْئَلِ الْقَرْيَةَ الَّتِيْ كُنَّا فِيْهَا وَالْعِيْرَ الَّتِيْٓ اَقْبَلْنَا فِيْهَا ۭ وَاِنَّا لَصٰدِقُوْنَ.

په بل ايت کې راځي : وَاِذْ قُلْنَا ادْخُلُوْا هٰذِهِ الْقَرْيَةَ. په دې اياتونو کې دقريې څخه مصر مراددی دقريې اطلاق په هره ابادۍ باندې کيږي، مفتاح اللغات. ص ۶۵۸).

**دريم جواب :** که لږ فکروکړی شي نودابه ظاهره شي چې داحديث داحنافو لپاره دليل دی. دعبدالقيس وفد درسول الله ﷺ په خدمت کې کله حاضر شوي وو؟ په بيهقي کې حديث دی چې رسول الله ﷺ دعبدالقيس وفدته دلمانځه، روژې ،اوزکوة، څخه علاوه دبيت الله شريف دحج حکم هم ورکړی وو.

لکه څرنګه چې په فتح الباری باب الحج کې داتفصيل شته، نودا وفد د۶ هـ هجري سنې څخه وروسته راغلی دی ، مؤرخ واقدي ليکلي دي چې داوفدپه ۸ سنه هـ کې راغلی دی او محمد بن اسحق فرمائي چې په ۹ سنه هـ کې راغلی دی (ابن هشام ج۲ص۳۶۶).

رسول الله ﷺ اول د جمعې لمونځ په مدينه منوره کې کړی دی، ددې ځخه وروسته ترسنه ۸ هـ یاترسنه ۹ هـ پورې اسلام دعربو ډیرو علاقو ته رسیدلی وو او ددې ټولو علاقو خلکو قرءان کریم هم لوستلو، لکن په هیڅ ځای کې د جمعې لمونځ نه کیدلو او هیڅا د جمعې دایت ځخه دا استدلال نه کولو چې په بانډه وکې هم د جمعې لمونځ فرض دی او د هیڅ بانډې خلکو ته رسول الله ﷺ د جمعې دلمانځه حکم نه دی کړی اخرپه ۸ یا ۹ هـ سنې کې په جواثي کې د جمعې لمونځ وشو، نو جواثی ښارو و، ځکه که دا بانډه وي نو بیادې بانډې په نورو بانډو باندې څه فضیلت دی چې په نورو بانډو کې د جمعې لمونځ نه کیدلو او په جواثی کې کیدلو ؟

(۲) قال البهيقي في المعرفة وحكي الليث بن سعدان اهل الاسكندرية ومداين مصر ومداين سواحلها كانوا يجمعون الجمعة علي عهدعمربن الخطاب وعثمان بن عفان بامرهما وفيها رجال من الصحابة . ( التعليق ج ۲ص ۸٤ / باب اقامة الجمعة في القرى )

**اول جواب:** په دې کې امام بهيقی د ليث بن سعد پورې سند نه دی بيان کړی او نه ليث بن سعد د حضرت عمر ﷺ او حضرت عثمان ﷺ زمانه موندلې ده . ځکه چې ليث بن سعد تبع تابعي دی.

**دوهم جواب:** په دې کې هم ذکر د مداين راغلی دی او مداين په معنی د ښارونو سره دی، یعنې په ښارونو کې د دوي په حکم د جمعې لمونځ شروع شوی وو.

(۳) ویل کیږي چې امام بهیقي په معرفة الاثار والسنن کې روايت رانقل کړی دی چې حضرت ابوهريره ﷺ د بحرين ځخه حضرت عمر ﷺ ته خط راوليږلو او د جمعې دلمانځه په باره کې يې ورځخه پوښتنه کړی وه نو حضرت عمر ﷺ ورته په جواب کې ليکلي وو چې (جمعوا حيث ما كنتم).

**جواب:** حضرت ابو هريرة ﷺ د علاء بن الخضرمی ﷺ ځخه وروسته د بحرين والي وو. (تعليق اثارالسنن ج ۲ص ۸۳ بحواله معجم البلدان ) باب اقامة الجمعة في القرى].

اووالي په ولايت کې اوسيږي او ولايت ښاروي نه بانډه او په هر ښار کې د جمعې لمونځ نه کيږي، بلکې په جامع ښار کې کيږي، نو ځکه ابو هريرة ﷺ شکمن شو، نو حضرت عمر ﷺ ورته وفرمايل : (جمعوا حيث ما كنتم ) يريدان المصر باقامة مثلكم من الولاة يكون جامعاً والمصرالجامع هو محل الجمعة . (تعليق اثار السنن باب اقامة الجمعة في القرى).

**دوهـم جـواب:** دادی چې حضرت ابو هريرة ﷺ پـه قران کريم پوه وو او داحاديثو حافظ وو، نو هغه په بحرين کې د جمعې په لمانځه کې څرنګه متردد وو چې د حضرت عمر ﷺ څخه يې پوښتنه کوله؟ يا حضرت عمر ﷺ هم ورته داونه ويل چې په قران کې ايت شته دی نو زما څخه د پوښتنې کولو څه ضرورت دی ؟

معلومېږي چې نه حضرت ابو هريرة ﷺ په هر ځای کې د جواز قايل وو او نه حضرت عمر ﷺ ،بلکې حضرت ابو هريره ﷺ په خپله قيامګاه کې د جمعې د لمانځه په باره کې متردد وو ، حضرت عمر ﷺ ورته جواب ورکړو چې تاسو چې په کوم ځای کې حاکم يې هلته د جمعې لمونځ وکړئ .

(۵) امام بخاری يو روايت ذکر کړی دی چې حضرت انس ﷺ په زوايه کې او سيدلو کله به يې د جمعې لمونځ کولو او کله به يې نه کولو.

**اول ځواب:** دا روايت امام بخاری بلا سنده ذکر کړي دي او د غير مقلدينو په ډير شور او زور سره وائي چې بې سنده حديث ته په دين کې هيڅ اعتبار نشته دلته ولې اعتبار ور کوي ؟

**دوهم ځواب:** غير مقلدين تحقيق نه کوي، د تحقيق څخه وروسته دا د احنافو دليل دی، ځکه چې په بخاري کې دا حديث مجمل دی او د امام بخاري استاذ ابن ابی شيبه ﷺ دا حديث مفصل ذکر کړی دی چې: عن انس انه کان يشهد الجمعة من الزاوية وهي علي فرسخين من البصـرة .(فتح الباری ،ج۲ص ۳۲۰). يعنې حضرت انس ﷺ به د زاويې څخه بصرې ته د جمعې د لمانځه لپاره راتلو، نو کله يې چې د جمعې لمونځ کې کړی دی نو د بصری ښار ته راغلی دی او چې کله يې نه دي کړی نو په زاويه کې پاتې شوی دی.

(٦) **يوه بله عجيبـه بهانـه:** غير مقلدين ليکي چې د احنافو په مينځ کې د ښار په تعريف کې اختلاف دی له دې وجې مونږ دا شرط نه منو، دا اعتراض چې زمونږ د زمانې غير مقلد امين الله پشاوری پوزوراو باسي او ورته ناست ناپوه کسان ګومان کوي چې دا ډير لوی تحقيق دی .

**اول ځـــواب :** لامذهبـه غير مقلـدينو دا اعتـراض د خپلو مشـرانو ورونو يهـودو، قاديانيـانو، چکړالويانو. معتزله وو او پرويزيانو څخه زده کړی دی، يهود وايي چې د قران په قرائتونو کې اختلاف دی له دې وجې مونږ قران نه منو.

قادیانیان وائي چې دعیسی (علیه السلام) په باره کې اختلاف دی چې هغه که په اسمان کې وي نو ویښ دی او که اوده دی او که مړ دی؟ له دې وجې دا فیصله پکار ده کنه مونږ دعیسی علیه السلام ژوند نه منو، شیعه ګان وائي چې دصحابه وو په باره کې اختلاف دی له دې وجې مونږ صحابه رضی الله عنهم نه منو، معتزله وائي چې دالله ﷻ په صفاتو کې اختلاف دی له دې وجې مونږ دالله ﷻ صفات نه منو.

پرویزان وائي چې داحادیثو په باره کې اختلاف دی له دې وجې مونږ احادیث نه منو.

**نوای غیرمقلدینو!** دقران په قراءتونو کې اختلاف دی نو ایا دا هم نه منئ؟ هسې شف شف کوې نو ریې لکه چې شفتالو کړئ، په احادیثو کې اختلاف دی نو ایا دا هم نه منئ؟ دعیسی ﷺ دحیات په کیفیت کې اختلاف دی نو ایا دا هم نه منئ؟ درسول الله ﷺ په معراج کې اختلاف دی چې روحاني وو او که جسماني نو ایا دا هم نه منئ؟ دصحیح حدیث په تعریف کې اختلاف دی پنځلس قوله په کې دی نو ایا دا هم نه منئ؟

که داختلاف سره ، سره داټولې خبرې منې نو بیا دښار په تعریف کې داختلاف په وجه ولې ددې دشرط والي څخه منکریږې؟ الله ﷻ دې مسلمانان دداسې جهالتونو څخه محفوظ وساتي.

**دوهم جواب :** دغیرمقلدینو دعوه ده چې داختلاف په صورت کې مونږ دقران او دحدیث څخه فیصله رااخلو، نو دخپلې دعوی مطابق دمصر جامع او مانع تعریف صراحةً په قران او یا په کوم صحیح حدیث کې وښایي، لکن دغیر مقلدینو دعوې په دلیل بناء نه ده.

غیرمقلدین دهغه مشروټ امی په شان دی چې عالم په ممبریو ه مسئله بیان کړې نو داو رباندې اعتراض وکړي چې دامسئله غلطه ده لکن چې بیا دده څخه پوښتنه وشي چې بیانو ته صحیح مسئله بیان کړه نو ده ته بیا په دې هر کله هیڅ معلومات نه وي.

**دریم جواب:** مونږ وایو چې کله په قرا ن او په حدیث کې دمصر جامع او مانع تعریف نشته نو ددې بنا په عرف باندې ده په عرف کې داختلاف دمکان او داختلاف دزمان له وجې په تعریف کې اختلاف راځي.

اصل خبره دا ده چې مصر هغه دی چې په عرف کې ورته مصر ویلی شي، نو اوس دهرې زمانې او هرې علاقې. خلکو خپل عرف بیان کړی دی، چې دادعنوان اختلاف دی په معنون کې اختلاف نه شته.

**دجهالت دپاسه جهالت :** غیرمقلدین لیکي چې دقران ایت : اِذَا نُوۡدِیَ لِلصَّلٰوۃِ مِنۡ یَّوۡمِ الۡجُمُعَۃِ فَاسۡعَوۡا اِلٰی ذِکۡرِ اللّٰہِ وَذَرُوا الۡبَیۡعَ ذٰلِکُمۡ خَیۡرٌ لَّکُمۡ اِنۡ کُنۡتُمۡ تَعۡلَمُوۡنَ) [الایة]. عام دی

او داحنافو اصول دادي چې عام ايت قطعي وي د خبر واحد په وجه يې تخصيص نه دی جايز، نو دوي ته دامعلومات هم نشته چې دا ايت عام نه دی، لکه څرنګه چې برهان شرح مواهب الرحمن کې يې ليکلي دي چې: ان قوله تعالى: فَاسْعَوْا اِلٰى ذِكْرِ اللّٰهِ) ليس علي اطلاقه اتفاقا بين الايمـة اذ لا يجـوز اقامتها في البوادي اجماعا. نو دا ايت په اجماع سره عام نه دی.

**غيرمقلدينو!** تاسو د جمعې دلمانځه ايت ته عام هم وائي او بيا دابو داود شريف د حديث له وجې ترينه غلام، ښځه، مريض او ماشوم مستثنى کوئ نو ايا دا تخصيص تاسو د خبر واحد له وجې کړی دی او که د خبر متواتر له وجې؟

**يو بله ناپوهي:** کله چې د غير مقلدينو لمن د دلايلو څخه خالي شوه، نو ډيرې عجيبې او غريبې خبرې يې د خولې او د قلم څخه را ووتلې، يوه خبره يې د ابن حزم په ړوند تقليد باندې دا کړې ده، چې مدينه منوره ښار نه وو بلکې يوه بانډه وه نو بس په بانډه کې د جمعې لمونځ ثابت شو.

حالانکه هر سړی پوهيږي چې د مدينې معنې ښار دی، مدينه بمعنى شهر. (جواهر اللغات ص ۳٦٢ مفتاح اللغات ص ۷۵۴). الله ﷻ ورتـه مدينـه يعنې ښار ويلی دي، رسـول الله ﷺ ورتـه مدينه يعنې ښار ويلی دی، ټولو صحابه رضى الله عنهم، تـابعينو، تبع تـابعينو او ټـول امت مسـلمه ورتـه مدينة الرسول يعنې د رسول الله ﷺ ښار ويلی دی، او وائي يې رسول الله ﷺ اهل مدينه و وتـه امر وکړو چې په خپلو، خپلو کلو کې مسجدونه جوړ کړي نو اهل مدينه و و نوي، نوي مسجدونه جوړ کړل، چې په دې مساجدو کې مسجد بني عمر، مسجد بنى نجار مسجد بنى ساعده، مسجد بنى عبيد، مسجد بنى سلمه، مسجد بنى زريق، مسجد بنى غفار، مسجد جهينه وغيره وو، نو په کوم ځای کې چې دو مره محلې او مساجد وي نو چې دی ته ښار و نه ويلی شي نو کوم ځای ته به ښار و ويلی شي؟

علامه نيموى رحمه الله فرمايي چې په بانډو کې د جمعې دلمانځه لپاره يو څو نور اثار هم شته لکن هغه ټول ضعيف دي، هيڅ يو هم په کې قابل د حجت نه دی. (اثار السنن وتعليقه ص ۲۳۷ باب اقامة الجمعة في القرى) او هغه اثار يې په تعليق کې را نقل کړي او د هغوى ضعيف والى يې ښه مدلل ذکر کړی دی.

۱۴۳۳/۸/۲٦ھ ق ۱۴۳۳/۴/۲٦ھ ش ۲۰۱۲/۷/۱۵م

# په محبسونو کې دجمعې په ورځ د ماسپښین لمونځ په جماعت باندې اداکول مکروه تحریمي دي

دپلچرخي په صليبي محبس کې ځينې غيرمقلدينو دجمعې په ورځ دماسپښين لمونځ په جماعت باندې کولو په فقه باندې به يې اعتراض کولواوپه دې کې يې هم مسلمانان دشر څخه محفوظ نه وو.

صاحب دهدايې فرمايي : ويكره ان يصلي المعذورون الظهر بجماعة يوم الجمعة في المصر وكذا اهل السجن) دبنديانو لپاره په داسې ځای کې چې هلته دجمعې لمونځ کيږي دماسپښين لمونځ په جماعت باندې مکروه دی. (هداية ج۱ ص ۱۸۰ باب صلوة الجمعة).

الامام الكاساني رحمه الله فرمايي : تكره صلوة الظهر يوم الجمعة بجماعة في سجن اوغير سجن. (بدايع الصنايع ج۱ ص ۶۰۵ مايستحب يوم الجمعة) يعنې دجمعې په ورځ دماسپښين لمونځ په جماعت باندې مکروه دی بنديانو اوغير بنديانو دواړو ته اوبيا فرمايي چې .

(۱) هكذا روي عن علي ﷺ : يعنې دحضرت علي ﷺ څخه همداسې روايت دی چې بنديانو اوغير بنديانو ته دجمعې په ورځ دماسپښين لمونځ په جماعت باندې مکروه دی .

(۲) حدثناعبدالسلام بن حرب عن القاسم بن الوليد قال : قال علي ﷺ لاجماعة يوم الجمعة الامع الامام. رواه ابوبكربن ابي شيبه في مصنفه .اعلاء السنن حديث نمبر،۲۰۶۱)

(۳) عن علي ﷺ قال : لايجمع القوم الظهريوم الجمعة في موضع يجب عليهم فيه شهود الجمعة صاحب دكنزالعمال فرمايي چې : وقد تايد بمرسل القاسم فحصل للمجموع قوة. [كنزالعمال ،ج ۴ص ۲۸۴ واعلاء السنن ،ج ۵ص ۴۱۲۳ / حديث نمبر۲۰۶۲/ بدايع الصنايع ج۱ص ۶۰۵].

علامه کاسانی فرمايي چې:

(۴) وهكذا جري التوارث باغلاق ابواب المساجدفي وقت الظهر يوم الجمعة .(بدايع الصنايع ج۱ ۶۰۵) يعنې دصحابه وو ، تابعينو ، اوتبع تابعينو څخه شروع تر ننه پورې به دجمعې په ورځ دورو مساجدو دروازې بنديدلې ، دماسپښين په وخت کې په ټول دور صديقي کې ديو صحابي نوم هم په کوم مستند کتاب کې نه شته چې هغه دې دجمعې په ورځ په محبس ياغير محبس کې دماسپښين لمونځ په

جماعت باندې کړې وي، په ټول دور عمري ﷺ کې د هیڅ صحابي یاتابعي نوم په کوم مستند کتاب کې نه شته چې هغه دې د جمعې په ورځ د ماسپښین لمونځ په جماعت باندې کړې وي.

په هيڅ کوم مستند کتاب کې نه دي راغلي چې په ټول دور عثماني او دور علوي کې دې کوم بندي یاغیر بندي د جمعې په ورځ د ماسپښین لمونځ په جماعت باندې کړې وي بلکې د حضرت علي ﷺ څخه روایت دی چې د بندیانو لپاره په محبس کې د جمعې په ورځ د ماسپښین لمونځ په جماعت باندې مکروه دي. (بدايع الصنايع ج۱ ص ۶۰۵ باب مايستحب يوم الجمعة)

(۳) ولان ساكن المصر مامور في هذالوقت بشيئين بترك الجماعات وحضور الجمعة. (بدايع الصنايع ج۱ ص ۶۰۵) يعنې د ښار اوسيدونکې (بنديان وي اوکه غير بنديان وي) په دغه ورځ ورته دوه امره دي.

**اول**: داچې نور جماعاتونه پريږدي.

**دوهم**: داچې (فاسعوا الي ذكرالله) د جمعې لمانځه ته حاضر شي او بنديان او نور معذورين که دوهم کار نه شي کولی اول خو کولی شي، له دې وجې په دوي واجبه ده چې د جمعې په ورځ د ماسپښين لمونځ ځان ځان ته وکړي. (بدايع الصنايع ج۱ ص ۶۰۵).

(۴) وَلِأَنَّا لَوْ أَطْلَقْنَا لِلْمَعْذُورِ إِقَامَةَ الظُّهْرِ بِالْجَمَاعَةِ فِي الْمِصْرِ فَرُبَّمَا يَقْتَدِي بِهِ غَيْرُ الْمَعْذُورِ فَيُؤَدِّي إِلَى تَقْلِيلِ جَمْعِ الْجُمُعَةِ، وَهٰذَا لَا يَجُوزُ. (بدايع الصنايع ج۱ ص ۶۰۵).

## په فقه کې د جمعې د مانځه لپاره بعضې نور شروط دلاندې احاديثو څخه را اخيستل شوي دي

**شرط الامام**: ۱- عَنْ مَوْلًى لِآلِ سَعِيدِ بْنِ الْعَاصِ، أَنَّهُ سَأَلَ ابْنَ عُمَرَ رضي الله عنهما عَنِ الْقُرَى الَّتِي بَيْنَ مَكَّةَ، وَالْمَدِينَةِ مَا تَرَى فِي الْجُمُعَةِ؟ قَالَ: نَعَمْ. إِذَاكَانَ عَلَيْهِمْ أَمِيرٌ فَلْيُجَمِّعْ. [معرفة السنن والآثار للبيهقى ج٤ ص۳۲۲].

د سعيد بن العاص رضي الله عنه د آل د يو مولی څخه روايت دی چې ده د حضرت ابن عمر ﷺ څخه پوښتنه وکړه د هغه قريو په باره کې چې د مکې او د مدينې په مينځ کې دي نو هغه ورته وفرمايل چې: کله امير لري نو د جمعې مونځ دې کوي.

٢- وَعَنْ جَعْفَرِ بْنِ بُرْقَانَ رحمة الله عليه قَالَ: كَتَبَ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ رحمة الله عليه إِلَى عَدِيِّ بْنِ عَدِيٍّ الْكِنْدِيِّ رحمة الله عليه: انْظُرْ كُلَّ قَرْيَةٍ أَهْلَ قَرَارٍ، لَيْسُوا هُمْ بِأَهْلِ عَمُودٍ يَتَنَقَّلُونَ فَأَمِّرْ عَلَيْهِمْ أَمِيرًا، ثُمَّ مُرْهُ فَلْيُجَمِّعْ بِهِمْ. [ابن ابی شیبة ج٢/ ص١٠٢، معرفة السنن والآثار ج٤/ ص٣٢٢].

د جعفر بن برقان رحمة الله عليه څخه روايت دی چې عمر بن عبد العزيز رحمة الله عليه عدی بن عدی رحمة الله عليه ته وليکل چې د داسې قريو (ښارونو) والا چې د ستنو والا نه وي چې د يو ځای څخه بل ځای ته ځي، نو يو امير ورباندې مقرر کړئ چې د جمعې مونځ ورته ورکوي.

٣- عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رضي الله عنه قَالَ: خَطَبَنَا النَّبِيُّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ذَاتَ يَوْمٍ فَقَالَ: "«إِنَّ اللهَ كَتَبَ عَلَيْكُمُ الْجُمُعَةَ فِي مَقَامِي هٰذَا فِي سَاعَتِي هٰذِهِ فِي شَهْرِي هٰذَا فِي عَامِي هٰذَا إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ، مَنْ تَرَكَهَا مِنْ غَيْرِ عُذْرٍ مَعَ إِمَامٍ عَادِلٍ أَوْ إِمَامٍ جَائِرٍ فَلَا جَمَعَ اللهُ لَهُ شَمْلَهُ وَلَا بُورِكَ لَهُ فِي أَمْرِهِ، أَلَا وَلَا صَلَاةَ لَهُ، أَلَا وَلَا حَجَّ لَهُ، أَلَا وَلَا بِرَّ لَهُ، أَلَا وَلَا صَدَقَةَ لَهُ». [مجمع الزوايد ج٢/ ص١٤٩].

ابو سعيد خدری رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله ﷺ مونږ ته خطبه ولوستله او وې فرمايل چې الله جل جلاله په تاسو باندې د جمعې مونځ فرض کړی دی، زما ددې دريدلو په ځای کې، زما پدې ساعت کې، زما پدې مياشت کې، زما په دې کال کې، ترقيامته پورې، چا چې بې عذره پرېښوده د ظالم امام سره (يا د عادل امام سره) نو الله جل جلاله دې ورته جمعه او استحکام نه په نصيب کوي او الله ج دې دده په کارو بار کې برکت نه اچوي خبردار چې دداسې سړي مونځ نه قبليږي دداسې سړي نيکي نه قبليږي خبردار چې دداسې سړي حج نه قبليږي د داسې سړي صدقه نه قبليږي.

٤- عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ الْوَلِيدِ رحمة الله عليه، قَالَ: قَالَ عَلِيٌّ رضي الله عنه: «لَا جَمَاعَةَ يَوْمَ جُمُعَةٍ إِلَّا مَعَ الْإِمَامِ». [مصنف ابن ابی شیبة ج٢/ ص١٣٥].

حضرت علی رضي الله عنه فرمايي چې: د جمعې په ورځ د جمعې مونځ نه دی جايز مگر د امام سره.

٥- عَنِ الْحَسَنِ رحمة الله عليه، قَالَ: "أَرْبَعَةٌ إِلَى السُّلْطَانِ: الزَّكَاةُ وَالصَّلَاةُ (الجمعة) وَالْحُدُودُ وَالْقَضَاءُ". [مصنف ابن ابی شیبة ج٩/ صص٥٥٤]. حسن بصری رحمة الله عليه فرمايي چې: څلور شيان د بادشاه په ذمه دی: (وصولی د) زکات، مونځ (يعنې د جمعې)، (اقامت د) حدود او قضاء.

٦- عن ابن محيرير قال: الجمعة والحدود والزكات والفئ الى السلطان. (أيضا) ابن محيريز فرمايي چې: د جمعې مونځ، د حدودو اقامت، د زكات وصولي او فئ بادشاه ته حواله دي.

٧- عن عطاء الخراساني قال: الى السلطان: الزكات، والجمعة والحدود (أيضا) حضرت عطاء الخراساني رحمه الله فرمايي چې: د باشاه په ذمه دي د زكات وصولی، د جمعې مونځ او د حدودو اقامت.

٨- قَالَ أَبُوبَكْرِبنِ المنذر المتوفى رحمه الله ٣١٨هـ: مَضَتِ السُّنَّةُ بِأَنَّ الَّذِي يُقِيمُ الْجُمُعَةَ السُّلْطَانُ، أَوْمَنْ قَامَ بِهَا بِأَمْرِ السُّلْطَانِ... وَكَانَ سُلَيْمَانُ بْنُ يَسَارٍ رحمه الله يَقُولُ: لَايُقِيمُ الْجُمُعَةَ إِلَّامَنْ أَقَامَ الْحُدُودَ، وَقَالَ الْحَسَنُ الْبَصْرِيُّ رحمه الله: أَرْبَعٌ إِلَى السُّلْطَانِ: الْحُدُودُ، وَالْجُمُعَةُ، وَالزَّكَاةُ، وَنَسِيَ الرَّاوِيُّ الْحَدِيثَ الرَّابِعَ، وَقَالَ حَبِيبُ بْنُ أَبِي ثَابِتٍ رحمه الله: لَاتَكُونُ الْجُمُعَةُ إِلَّابِأَمِيرٍوَخُطْبَةٍ [الاوسط فى السنن والاجماع والاختلاف لابن المنذر ج٤/ ص١١٣].

حضرت ابوبکر بن منذر المتوفی ۳۱۸هـ فرمايي چې: طريقه داسې روانه ده چې د جمعې مونځ بادشاه او يا دده نايب دده په حکم کوي... حضرت سليمان بن يسار رحمه الله فرمايي چې: د جمعې مونځ به صرف هغه کس قائموي څوک چې حدود قائموی. حضرت حسن بصری رحمه الله فرمايي چې: څلور شيان د بادشاه په ذمه دی د حدودو اقامت، د جمعې مونځ، د زکات وصولي او څلورم د راوي څخه هيرشوی دی. حضرت حبيب بن ثابت رحمه الله فرمايي چې: د جمعې مونځ نه دی جايز مګر د امير او د خطبې سره ددې احاديو او اثارو څخه معلومه شوه چې د جمعې د مانځه لپاره امير او يا دده نايب شرط دی او د کومو قريو لپاره چې اميروي هغه د عامو قريو په شان نه وي بلکې د ښار په حکم کې وي.

**شرط الجماعة دله:** ١- عَنْ طَارِقِ بْنِ شِهَابٍ رحمه الله، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "الْجُمُعَةُ حَقٌّ وَاجِبٌ عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ فِي جَمَاعَةٍ. [ابوداؤد ج١/ ص١٥٣]. رسول الله ﷺ فرمايي چې: جمعه حق ده، واجب ده، په هر مسلمان باندې په جماعت کې.

٢- عَنْ أُمِّ عَبْدِ اللّٰهِ الدَّوْسِيَّةِ رضي الله عنها، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «الْجُمُعَةُ وَاجِبَةٌ عَلَى كُلِّ قَرْيَةٍ، وَإِنْ لَمْ يَكُنْ فِيهَا إِلَّا أَرْبَعَةٌ». يَعْنِي بِالْقُرَى: الْمَدَائِنَ.. [دار قطنی ج٢/ ص٧].

ام عبدالله الدوسية رضي الله عنها فرمايي چې: رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې د هرې قريې په خلکو د جمعې مونځ واجب دی اګر چې څلور کسان پکې وي او د قريې څخه ښار مراد دی.

ددې څخه معلومه شوه چې د جمعې د مانځه لپاره د امام څخه ماسوی درې کسان ضروری دي.
همدارنګه د جماعت شرط ددې آیت څخه هم مستنبطیږي چې: ﴿فَإِذَا قُضِيَتِ الصَّلٰوةُ فَانْتَشِرُوْا فِي الْأَرْضِ﴾ او ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا إِذَا نُوْدِيَ لِلصَّلٰوةِ مِنْ يَّوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا إِلٰى ذِكْرِ اللّٰهِ﴾ دلته د ذکر الله یعني د خطبې طرفته دسعی أمر په صیغې د جمعې راغلی دی او اقل افراد د جمع درې وي نو ساعین به کم از کم درې وي او چونکې سعی د خطبې طرفته ده نو خطبه لوستونکې څلورم شو.

۳ـ علامه عینی رحمه الله علیه فرمایي چې: قلت: الأصل أن الجماعة من شرائط الجمعة لأنها مشتقة منها. وأجمعت الأمة على أن الجمعة لا تصح من المنفرد إلا ما ذكر ابن حزم في (المحلى) عن بعض الناس: أن الفذ يصلي الجمعة كالظهر. [عمدة القاری شرح صحیح البخاری ج۳/ ص۲۳۳].

زه وایم چې جماعت د جمعې د شرایطو څخه دی ځکه چې جمعه د جماعت څخه مشتقه ده او امت پدې اجماع کړې ده چې د منفرد لپاره د جمعې مونځ نه دی صحیح، ما سوا ددې څخه چې ابن حزم رحمه الله علیه په محلی کې د بعضې خلکو څخه رانقل کړی دی چې منفرد به د ماسپښین په شان د جمعې مونځ کوي، په هیڅ حدیث او اثر کې نه شته چې د څلورو څخه کمو صحابه وو دی د جمعې مونځ کړی وي.

**شرط الخطبة:** ۱ـ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ رضي الله عنه، قَالَ: «مَنْ أَدْرَكَ الْخُطْبَةَ فَالْجُمُعَةُ رَكْعَتَانِ، وَمَنْ لَمْ يُدْرِكْهَا فَلْيُصَلِّ أَرْبَعًا، وَمَنْ لَمْ يُدْرِكِ الرَّكْعَةَ فَلَا يَعْتَمِدُ بِالسَّجْدَةِ حَتّٰى يُدْرِكَ الرَّكْعَةَ». [معجم طبرانی کبیر ج۹/ ص۳۰۹].

حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمایي چې: چا چې خطبه ونیوله نو بیا د جمعې د مونځ دوه رکعته دی او چا چې (حقیقة او حکما) ونه نیوله (پداسې طریقه چې د جمعې مونځ ترینه شوی وو) نو هغه دې څلور رکعته وکړي او چا چې رکوع نه وي نیولې نو سجدې ته (د جمعې د جماعت په پوره فضلیت کې) اعتبار نه شته ترڅو یې چې رکوع نه وي نیولې.

۲ـ عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رضي الله عنه، أَنَّهُ قَالَ: «إِنَّمَا جُعِلَتِ الْخُطْبَةُ مَكَانَ الرَّكْعَتَيْنِ، فَإِنْ لَمْ يُدْرِكِ الْخُطْبَةَ، فَلْيُصَلِّ أَرْبَعًا. [مصنف ابن ابی شیبة ج۲/ ص۱۲۸] مصنف عبدالرزاق ج۳/ ص۲۳۷]. حضرت عمر رضي الله عنه فرمایي چې: (د جمعې) خطبه د دوو رکعتونو قایم مقام ده چا چې خطبه (حقیقة او حکما) ونه نیوله نو هغه دې څلور رکعته وکړي.

٣- عَنْ ابْنِ شِهَابٍ رحمه الله قَالَ: بَلَغَنِي أَنَّهُ لَا جُمُعَةَ إِلَّا بِخُطْبَةٍ فَمَنْ لَمْ يَخْطُبْ صَلَّى الظُّهْرَ أَرْبَعًا. [المدونة الكبرى ج١/ ص١٥٨].

ابن شهاب الزهری رحمه الله فرمايي چې: ماته دا خبره رسيدلې ده چې د جمعې مونځ بغير د خطبې څخه نه کيږي لهذا چا چې خطبه (حقيقة وحكماً) ونه نيوله نو هغه دې د ماسپښين څلور رکعته وکړي.

٤- عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ رضي الله عنه قَالَ: كَانَتِ الْجُمُعَةُ أَرْبَعًا فَحُطَّتْ رَكْعَتَانِ لِلْخُطْبَةِ. [المدونة الكبرى ج١/ ص١٥٨].

سعيد بن جبير رحمه الله فرمايي چې: د جمعې مونځ څلور رکعته وو نو دوه رکعته د خطبې له وجې کم شو.

٥- محمد بن عبدالرحمن الشافعی رحمه الله فرمايي چې: واتفقوا على ان الخطبتين شرط فى انعقاد الجمعة فلايصح الجمعة حتى يتقدمها خطبتان. [رحمة الامة ص٦٠]. دټولو په دې اتفاق دی چې د انعقاد د جمعې لپاره دوه خطبې شرط دی نو د جمعې مونځ ترهغې پورې نه صحيح کيږي، ترڅو چې ترينه مخکې دوه خطبې ونه لوستلی شي.

۶- په هيڅ حديث او اثر کې نه شته چې رسول الله ﷺ يا خلفاء راشدينو بغير د خطبې څخه د جمعې مونځ کړی دی، چې دا هم د خطبې د شرط والی دليل دی، لکن د دې ټولو احاديثو او اثارو او د اجماع د امت په خلاف لامذهبان وايي چې: د جمعې مونځ د عامو مونځونو په شان دی. [الدر البهية مع شرح الروضة الندية ج١/ ص١٣۴].

نه ورته امام شرط دی، نه ورته ښار شرط دي او نه ورته جماعت (څلور کسان) شرط دی او نه ورته خطبه شرط ده. [الروضة الندية ج١/ ص١٣۴] فتاوی ستاريه ج١/ ص۵٧].

## وقت الجمعة هو وقت الظهر (د جمعې د مانځه وقت ماسپښين دی)

١- عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّي الْجُمُعَةَ حِينَ تَمِيلُ الشَّمْسُ». [بخاری ج١/ ص١٢٣]. رسول الله ﷺ به د جمعې مونځ د زوال څخه وروسته کولو.

٢- عَنْ إِيَاسِ بْنِ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ، عَنْ أَبِيهِ رضي الله عنه، قَالَ: «كُنَّا نُجَمِّعُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ، ثُمَّ نَرْجِعُ نَتَتَبَّعُ الْفَيْءَ». [مسلم ج١/ ص٢٨٣]. حضرت سلمة بن الاكوع رضي الله عنه فرمايي چې: مونږ به د جمعې مونځ د زوال څخه وروسته کولو.

عَنْ جَابِرٍ ﷺ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ إِذَازَالَتِ الشَّمْسُ صَلَّى الْجُمُعَةَ. [معجم طبرانى الاوسط بحواله التلخيص الحبير ج/١ ص٥٩]. رسول الله ﷺ به د جمعې مونځ په هغه وخت کې کولو کله به چې زوال وشو.

٤- عن مالك بن ابى عامر ﷺ أنه قال: «كُنْتُ أَرَى طِنْفَسَةً لِعَقِيلِ بْنِ أَبِي طَالِبٍ ﷺ يَوْمَ الْجُمُعَةِ تُطْرَحُ إِلَى جِدَارِ الْمَسْجِدِ الْغَرْبِيِّ، فَإِذَا غَشِيَ الطِّنْفَسَةَ كُلَّهَا ظِلُّ الْجِدَارِ خَرَجَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ ﷺ إِلَى الصَّلَاةِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ، ثُمَّ نَرْجِعُ، فَنَقِيلُ قَائِلَةَ الضَّحَاءِ». [مؤطأ امام مالک ص٦].

حضرت مالک بن أبی عامر فرمايي چې: د حضرت عقيل بن ابى طالب ټادر به مغربى ديوال ته پروت وو نو ما به ليدل چې کله به دا ټادر د ديوال په سورى کې پټ شو نو حضرت عمر ﷺ به راووتلو او د جمعې مونځ به يې وکړو، بيا به مونږ د جمعې د مانځه څخه وروسته واپس کيدلو او د غرمې قيلوله به مو کوله.

٥- عَنْ أَبِي الْقَيْسِ عَمْرِو بْنِ مَرْوَانَ، عَنْ أَبِيهِ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ، قَالَ: «كُنَّا نُجَمِّعُ مَعَ عَلِيٍّ ﷺ، إِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ». [مصنف ابن ابى شيبة ج/٢ ص١٠٨]. مروان فرمايي چې: مونږ به د على ﷺ سره د جمعې مونځ د زوال په وخت کې کولو.

٦- سِمَاكٍ رحمة الله عليه، قَالَ: «كَانَ النُّعْمَانُ بْنُ بَشِيرٍ ﷺ يُصَلِّي الْجُمُعَةَ بَعْدَ مَا تَزُولُ الشَّمْسُ»

. [مصنف ابن ابى شيبة ج/٢ ص١٠٨]. نعمان بن بشير ﷺ به د جمعې مونځ د زوال څخه وروسته کولو.

٧- عَنِ الْوَلِيدِ بْنِ الْعَيْزَارِ رحمة الله عليه، قَالَ: «مَا رَأَيْتُ إِمَامًا كَانَ أَحْسَنَ صَلَاةً لِلْجُمُعَةِ مِنْ عَمْرِو بْنِ حُرَيْثٍ ﷺ، كَانَ يُصَلِّيهَا إِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ».. [مصنف ابن ابى شيبة ج/٢ ص١٠٩].

وليد بن عيزار رحمة الله عليه فرمايي چې ما هيڅ امام ندى ليدلى چې ښايسته مونځ يې کړى وى د عمرو بن حريث ﷺ څخه، ده ﷺ، به د جمعې مونځ د زوال په وخت کې کولو.

٨- عَنِ الْحَسَنِ رحمة الله عليه، قَالَ: «وَقْتُ الْجُمُعَةِ عِنْدَ زَوَالِ الشَّمْسِ». [مصنف ابن ابى شيبة ج/٢ ص١٠٨]. حضرت حسن بصرى رحمه الله فرمايي چې: د جمعې د مانځه وقت د لمر د زايليدو وخت دى.

٩- عَنْ إِبْرَاهِيمَ رحمة الله عليه، قَالَ: «وَقْتُ الْجُمُعَةِ وَقْتُ الظُّهْرِ». [مصنف ابن ابى شيبة ج/٢ ص١٠٩]. ابراهيم نخعي رحمة الله عليه فرمايي چې د جمعې د مانځه وخت د ماسپښين وخت دى.

۱۰- امام بخاری رحمه الله د جمعې د وخت لپاره داسې باب لګولی دی چې: باب وقت الجمعة اذا زالت الشمس وكذلك عن عمرو رضي الله عنه وعلي رضي الله عنه والنعمان بن بشير رضي الله عنه وعمرو بن حريث رضي الله عنه. [بخاری ج۱/ ص۱۲۳].

ددې احاديثو او اثارو څخه معلومه شوه چې د زوال څخه مخکې د جمعې مونځ نه کيږي، لکن ددې ټولو احاديثو او اثارو په خلاف غير مقلدين ددين دښمنان ليکی چې د جمعې مونځ د زوال څخه مخکې هم صحيح دی. الروضة الندية ج۱/ ص۱۳۷] ونزل الابرار ج۱/ ص۱۵۲].

## د جمعې د لمانځه لپاره دوه اذانه سنت دی:

۱- عن السَّائِبَ بْنَ يَزِيدَ رضي الله عنه، يَقُولُ: «إِنَّ الأَذَانَ يَوْمَ الجُمُعَةِ كَانَ أَوَّلُهُ حِينَ يَجْلِسُ الإِمَامُ، يَوْمَ الجُمُعَةِ عَلَى المِنْبَرِ فِي عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَبِي بَكْرٍ، وَعُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، فَلَمَّا كَانَ فِي خِلاَفَةِ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، وَكَثُرُوا، أَمَرَ عُثْمَانُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يَوْمَ الجُمُعَةِ بِالأَذَانِ الثَّالِثِ، فَأُذِّنَ بِهِ عَلَى الزَّوْرَاءِ، فَثَبَتَ الأَمْرُ عَلَى ذَلِكَ». [بخاری ج۱/ ص۱۲۵، وابوداؤد ج۱/ ص۱۵۵، ونسائی ج۱/ ص۱۵٦]. حضرت سايب بن يزيد رضي الله عنه فرمايي چې: د رسول الله صلى الله عليه وسلم د ابوبکر رضي الله عنه او د عمر رضي الله عنه په زمانه کې به اذان په هغه وخت کې کيدلو کله به چې امام په ممبر باندې کيناستلو، بيا د حضرت عثمان رضي الله عنه د خلافت زمانه راغله او خلک زيات شول، نو حضرت عثمان ددريم اذان (د جمعې اول اذان) حکم وکړو نو په زوراء مقام کې دا اذان وشو او بيا دا يو مستقل سنت شول.

ددې اذان مخالفت هيڅ صحابی، هيڅ تابعی، هيڅ تبع تابعی او هيڅ مجتهد نه دی کړی، بلکې د انګريزانو د دورې څخه مخکې هيڅ مسلمان نه دی کړی او د رسول الله صلى الله عليه وسلم ددې حکم په موجودګۍ کې به يې څرنګه مخالفت کوي چې عليكم بسنتی وسنة الخلفاء الراشدين المهديين؟ ددې حديث مطابق دا اذان سنت دی، دا اذان په زوراء کې کيدلو، بيا په مسجد کې شروع شو، د عهد عثمان څخه تر ننه پورې په مکه او په مدينه کې د مسجد په داخل کې کيږي او ترننه پورې ددې غير مقلدينو د نجسې ډلې څخه بغير هيچا پرې اعتراض نه دی کړی.

لامذهبان ددئ صحابه وو دئ سنت ته بدعت وايي لامذهبه محمد جو ناگهړ وغيره لامذهبان ليکي چې: پس هماری زمانی مين مسجد مين جو دو اذانين هوتی هين وه صريح بدعت هين او کيسی طريح جايز نهين. [فتاوى ستاريه ج۳/ ص۸۵ فتاوى علماء حديث ج۲/ ص۱۷۹].

بعضې غير مقلدين جوابونه کوي چې ددې اذان دپاره علت دا وو چې خلک ډير شول او يو آذان ورته نه کافي کيږي، اوس خو لاسپيکر شته نو دې اذان ته ضرورت نشته.

قلنا: چې که داسې علل تاسو راوباسئ نو بيا به يو کمونست پنځه وخته اذان ته هم چوتې ورکړي، ځکه چې دلته به هم علت راوباسي چې پنځه وخته اذان ددې دپاره کيدلو چې خلکو ته د مانځه وختونه معلوم شي اوس خو ساعتونه د هر چا سره شته او هر چا ته د مانځه وخت معلوميږي، لهذا اوس پنځه وخته اذان ته ضرورت نشته، او يا يو کمونست وايې چې روژه د اقتصادي کمزورۍ له وجې نيول کېده نو اوس اقتصادی کمزوري له مينځه تللې نو روژې ته هم ضرورت نشته،آيا دا استدلال به يې صحيح وي؟.

## د جمعې د مانځه څخه مخکې د دواړو خطبو لوستل په عربۍ ژبه ضرور دي په بله ژبه يې لوستل مکروه تحريمي دي.

مولانا عبدالحی رحمه الله عليه فرمايي چې: ولايشترط كونها بالعربية فلو خطب بالفارسية او بغيرها جاز كذا قالوا، والمراد بالجواز هو الجواز فى حق الصلوة بمعنى انه يكفى لاداء الشرطية وتصح الصلوة، لاالجواز بمعنى الاباحة المطلقة فانه لاشک فى أن الخطبة بغير العربية خلاف السنة المتوارثة من النبى ﷺ والصحابة فيكون مكروهاً تحريماً. [عمدة الرعاية حاشية شرح وقاية ج۱/ ص۲۰۰]. د خطبې لوستل په عربۍ باندې شرط نه دي، فلهذا که په فارسۍ او يا په بله ژبه باندې يې خطبه ولوستله نو جايزه ده همدارنګه فقهاو فرمايلي دي، او مراد د جواز څخه د مانځه په حق کې جواز دی، په دې معنی سره چې د جمعې د مانځه لپاره چې د خطبې کوم شرط دی هغه پوره شو او د جمعې مونځ اداء شو. د جواز دا معنی نه ده چې د عربۍ څخه بغير په بله ژبه باندې د خطبې لوستل مطلقاً مباح دي، ځکه چې په دې کې هيڅ شک نه شته چې د عربۍ څخه ما سوا په بله ژبه باندې د خطبې لوستل د هغې طريقې څخه مخالف دی کومه طريقه چې د رسول الله ﷺ او د صحابه کرامو رضي الله عنهم د زمانې څخه متواتره او مسلسل را روانه ده، لهذا د عربۍ څخه بغير

په ژبه باندې د خطبې لوستل مکروه تحريمي دي. او د شوافعو په نزد په عربۍ باندې د خطبې لوستل شرط دي نو ځا چې د عربۍ څخه بغير په بله ژبه باندې خطبه ولوستله د جمعې مونځ يې ونه وشو، امام نووی رحمه‌الله فرمايي چې: ويشترط كونها بالعربية. [كتاب الاذكار ص۱۰٤].

۱- د خطبې اصل حقيقت د الله جل‌جلاله ذکر دی صرف وعظ نه دی، الله جل‌جلاله فرمايي چې: اذا نودی للصلوة من يوم الجمعة فاسعوا الى ذكر الله، تمام مفسرين فرمايي چې: دلته د ذکر الله څخه مراد خطبه ده، په حديث کريمه کې هم د خطبې څخه په ذکر باندې تعبير شوی دی، رسول الله ﷺ فرمايي چې: اذا كان يوم الجمعة وقفت الملايكة على باب المسجد يكتبون الاول فالاول، ومثل المهجر كمثل الذى يهدى بدنةً، ثم كالذى يهدى بقرة، ثم كبشاً ثم دجاجةً ثم بيضة فاذا خـرج الامـام طـوَو صحفهم ويستمعون الذكر. [بخاری ج/۱ ص۱۲۷، مسلم ج/۱ ص۲۸۲]. کله چې د جمعې ورځ شي نو ملايکې د مسجد په دروازه کې ودريږي او راتلونکي خلک يو د بل پسې ليکي اول راتلونکی داسې دی لکه د الله جل‌جلاله د رضا لپاره چې اوښ چاته ورکړي، دوهم داسې دی لکه غوا چې ورکړی، وروسې داسې دی لکه ګډ (پسه) چې ور کړي، وروسې داسې دی لکه چرګه چې ورکړی او وروسې داسې دی لکه چې هګۍ چې ورکړي، نو کله چې امام راووځی نو ملايکې خپل کاغذونه راټول کړي او ذکر (خطبې) ته غوږ کيږدي، نو د قرآن او د حديث دواړو څخه ثابته شوه چې خطبه ذکر الله دی نو لکه تعوذ، تسمية، تسبيح، تحميد، التحيات...وغيره اذکار چې په مانځه کې په غيرعربۍ باندې لوستلی شی او د قادر لپاره په عربۍ باندې حرام دی نو همدارنګه خطبه هم د دوه رکعته مونځ قايم مقامه ده نو دا به هم په عربۍ باندې لوستلی شي او په غيرعربۍ باندې به مکروه تحريمي وي.

۲- خطبه د دوه رکعته مونځ په ځای باندې لوستل کيږي. [مصنف بن ابی شيبة ج۲/ ص۱۲۸، مصنف عبدالرزاق ج۳/ ص۲۳۷، المدونة الکبری ج۱/ ص۱۵۸، معجم طبرانی کبير ج۹/ ۳۰۹].

همدارنګه مونځ او خطبه په ډير احامو او شرايطو کې سره شريک دي لکه منع الاکل والشرب وقت الصلوة والخطبة، ومنع الکلام، فی وقت الصلوة والخطبة. نو لکه مونځ چې په عربۍ باندې ضروري دی، نو همدارنګه به خطبه هم په عربۍ باندې ضروري وي.

۳- خطبه په اجماع سره د مانځه لپاره شرط ده، نو په کومه ژبه چې مشروط لوستلی شي چې عربی ده، نو په همغه ژبه به يې شرط هم لوستلی شي چې عربي ده.

۴- رسول الله ﷺ امر کړی دی چې د جمعې مونځ د خطبې په نسبت اوږد کړئ. (أطيلوا الصلوة وأتصرو الخطبة) [مسلم ج۱/ ص۲۸۶]. نو اوس که يوه يا يوه نيمه ګينته په پښتو يا په فارسی يا په اردو باندې بيان په خطبه حساب شي نو خطبه به د مانځه څخه اوږده شي.

۵- رسول الله ﷺ ټول عمر په عربی باندې خطبه لوستلې ده، حالانکې د رسول الله ﷺ په خطبه کې يواځې عربان نه وو بلکې عجم هم پکې وو او د هغوي هم ددين زده کولو ته ضرورت وو لکن رسول الله ﷺ هيڅکله هم په بله ژبه باندې خطبه نه ده لوستلې، معلوميږي دا چې د خطبې مقصد صرف وعظ نه وو، خلفاء راشدينو هم ټول عمر په عربی باندې خطبه لوستلې ده، حالانکه د دوي په خطبه کې هم يواځې عربان نه وو، همدارنګه نور صحابه کرام ﷺ او تابعين رحمهم الله چې د دين د تبليغ لپاره څو مره ملکونو ته تللي دی، يو هم پکې په بله ژبه خطبه نه ده لوستلې نو که خطبه وعظ وی نو په عجمو کې خو په عجمی باندې عظ ضروري وو، نو په عربی باندې مواظبت د دې خبرې واضح دليل دی چې خطبه په عربی باندې ضرور ده.

حضرت شاه ولی الله رحمه الله فرمايي چې: «چون خطب انحضرت ﷺ وخلفاء وهلم جراً ملاحظه کرديم تنقيح آن وجود چند چيز ست، حمد، وشهادتين، وصلوة بر آنحضرت ﷺ، وأمر بتقوی، وتلاوت آيتی، ودعا برای مسلمين ومسلمات وعربی بودن خطبه ... وعربی بودن نيز بجهت عمل مستمر مسلمين درمشارق ومغارب با وجود آنکه در بسياری از اقاليم مخاطبان عجمی بودند. [موی مصفی شرح مؤطأ امام مالک ج۱/ ص۱۵۴].

## چې خطبه شروع شي نو بيا مونځ کول او خبرې کول مکروه دي

۱- عن سَلْمَانَ الفَارِسِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنِ اغْتَسَلَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ، وَتَطَهَّرَ بِمَا اسْتَطَاعَ مِنْ طُهْرٍ، ثُمَّ ادَّهَنَ أَوْمَسَّ مِنْ طِيبٍ، ثُمَّ رَاحَ فَلَمْ يُفَرِّقْ بَيْنَ اثْنَيْنِ، فَصَلَّى مَاكُتِبَ لَهُ، ثُمَّ إِذَا خَرَجَ الإِمَامُ أَنْصَتَ، غُفِرَ لَهُ مَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْجُمُعَةِ الأُخْرٰى».[بخاری ج۱/ ص۱۲٤]. حضرت سلمان فارسی ﷺ فرمايي چې: رسول الله ﷺ فرمايلی دي چې: څوک چې د جمعې په ورځ غسل وکړي او ترخپلې وسې او طاقت پورې صفائی وکړي بيا تيل ولګولې او يا خوشبويي ولګوله بيا مانځه ته لاړ شي نو ددوو کسانو په

مينځ کې جدايي رانه ولي بيا چې څومره ورته الله ﷻ ليکلی وي هغومره مونځ وکړي بيا چې کله امام د خطبې لپاره راووځي، چپ شي نو وبه ببنلی شي دده لپاره هغه ګناهونه چې ددې جمعې او دتيرې جمعې په مينځ کې يې کړي وي.

۲- عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «مَنِ اغْتَسَلَ؟ ثُمَّ أَتَى الْجُمُعَةَ، فَصَلَّى مَا قُدِّرَ لَهُ، ثُمَّ أَنْصَتَ حَتَّى يَفْرُغَ مِنْ خُطْبَتِهِ، ثُمَّ يُصَلِّي مَعَهُ، غُفِرَ لَهُ مَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْجُمُعَةِ الْأُخْرَى، وَفَضْلُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ» [مسلم ج/١ ص٢٨٣]. رسول الله ﷺ فرمايي چې: چا چې غسل وکړو، بيا د جمعې لپاره مسجد ته راشي نو چې څومره ورته الله ﷻ مقرر کړي وي هغومره مونځ وکړي، بيا چپ شي تردې پورې چې امام د خطبې څخه فارغ شي، بيا د امام سره د جمعې مونځ وکړي، نو وبه ببنلی شي، دده لپاره هغه ګناهونه چې ددې جمعې او د تيرې جمعې ترمينځ يې کړي دی او ذرې ورځې زياتې هم.

۳- عَنْ عَطَاءٍ الْخُرَاسَانِيِّ رحمه الله، قَالَ: كَانَ نُبَيْشَةُ الْهُذَلِيُّ رضي الله عنه، يُحَدِّثُ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَنَّ الْمُسْلِمَ إِذَا اغْتَسَلَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ، ثُمَّ أَقْبَلَ إِلَى الْمَسْجِدِ، لَا يُؤْذِي أَحَدًا، فَإِنْ لَمْ يَجِدِ الْإِمَامَ خَرَجَ، صَلَّى مَا بَدَا لَهُ، وَإِنْ وَجَدَ الْإِمَامَ قَدْ خَرَجَ، جَلَسَ فَاسْتَمَعَ وَأَنْصَتَ، حَتَّى يَقْضِيَ الْإِمَامُ جُمُعَتَهُ وَكَلَامَهُ، إِنْ لَمْ يُغْفَرْ لَهُ فِي جُمُعَتِهِ تِلْكَ ذُنُوبُهُ كُلُّهَا، أَنْ تَكُونَ كَفَّارَةً لِلْجُمُعَةِ الَّتِي تَلِيهَا». [مسند احمد ج/٥ ص٧٥].

حضرت عطاء الخراسانی رحمه الله فرمايي چې: حضرت نبيشة الهذلی رضي الله عنه به د رسول الله ﷺ دا ارشاد رانقلولو چې کله يو مسلمان د جمعې په ورځ باندې غسل وکړي، بيا د جومات طرفته په داسې حال کې لاړ شي چې چاته ضرر نه رسوی نو که وی ليدل چې امام نه دی راوتلی نو چې څومره يې خوښه وی هغه مونځ وکړی او که وی ليدل چې امام راوتلی دی، نو کينی، غوږ کيږدي او چپ شي، تردې پورې چې امام د خطبې او د مونځ څخه فارغ شي نو که پدې جمعه کې دده ټول ګناهونه معاف نه شي، نو د مخکنی جمعې لپاره به کفاره شي.

۴- ابو هريرة رضي الله عنه فرمايي چې: رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې کله د جمعې ورځ شي نو ملايکې د مسجد په دروازه کې دريږي او د راتلونکو خلکو نومونه يو دبل پسې ليکي او په اول کې راتلونکی داسې دی لکه اوښ يې چې هديه کړی وي، بيا وروسې داسې دی لکه غوا يې چې هديه کړی وي، بيا وروسې داسې دی لکه پسه يې چې هديه کړی وي، بيا وروسې داسې دی لکه چرګه يې چې هديه کړې وي، بيا وروسې

داسې دی لکه هګۍ یې چې هدیه کړې وي. فاذا خرج الامام طوو صحفهم ویستمعون الذکر. [بخاری ج۱/ ص۱۲۷]. کله چې امام راووځی نو بیا خپل کاغذونه کلوله راټول کړي او خطبې ته غوږ کیږدي.

۴- ابو هریرة د رسول الله ﷺ څخه روایت کوي چې: إِذَا قُلْتَ لِصَاحِبِكَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ: أَنْصِتْ، وَالإِمَامُ يَخْطُبُ، فَقَدْ لَغَوْتَ. [بخاری ج۱/ ص۱۲۷]. کله چې دې ملګري په د جمعې په ورځ وویلې چې چپ شه په داسې حال کې چې امام خطبه لوستله نو په تحقیق سره تا لغوه او بیکاره کار وکړو.

۵- عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ تَكَلَّمَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ، فَهُوَ كَمَثَلِ الْحِمَارِ يَحْمِلُ أَسْفَارًا، وَالَّذِي يَقُولُ لَهُ: أَنْصِتْ، لَيْسَ لَهُ جُمُعَةٌ. [مسند احمد ج۱/ ص۲۳۰] رسول الله ﷺ فرمايي چې د خطبې په حالت کې د خبرو کوونکی د هغه خره په مثال دی چې کتابونه پرې بار وي او هغه سړی چې ده ته ووایي چې چپ شه نو د هغه هم جمعه ونه شوه.

۱- عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: «سَمِعْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: " إِذَا دَخَلَ أَحَدُكُمُ الْمَسْجِدَ وَالْإِمَامُ عَلَى الْمِنْبَرِ فَلَا صَلَاةَ وَلَا كَلَامَ حَتَّى يَفْرُغَ الْإِمَامُ» [مجمع الزواید ج۲/ ص۱۸٤]. رسول الله ﷺ فرمايي چې: کله یو کس ستاسو په داسې حالت کې مسجد ته راغلو چې امام خطبه لوستله نو نه به مونځ کوي او نه به خبرې کوي، تر دې پورې چې چې امام فارغ شي.

۸- ابن شهاب زهری رحمه الله فرمايي چې: ماته ثعلبة بن مالک القرظی وفرمایل چې مونږ به د عمر رضی الله عنه په زمانه کې د جمعې په ورځ ترهغې پورې مونځونه کول چې ترڅو پورې به عمر رضی الله عنه نه وو راوتلی، بیا به د اذان په وخت کې هم مونږ خبرې کولې خو فَإِذَا سَكَتَ الْمُؤَذِّنُ، وَقَامَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يَخْطُبُ، أَنْصَتْنَا، فَلَمْ يَتَكَلَّمْ مِنَّا أَحَدٌ. قَالَ ابْنُ شِهَابٍ رحمه الله: فَخُرُوجُ الْإِمَامِ يَقْطَعُ الصَّلَاةَ. وَكَلَامُهُ يَقْطَعُ الْكَلَامَ [مؤطا امام مالک ص۸۸] کله به چې اذان کوونکي چپ شول او حضرت عمر رضی الله عنه به خطبه شروع کړه نو بیا به په مونږ کې هیڅوا هخبرې نه کولې. ابن شهاب زهری رحمه الله فرمايي چې: د امام راوتل د خلکو مونځ ختموي او د امام کلام د خلکو خبرې ختموي.

۹- عَنِ ابْنِ شِهَابٍ رحمه الله قَالَ: حَدَّثَنِي ثَعْلَبَةُ بْنُ أَبِي مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّ «قُعُودَ الْإِمَامِ يَقْطَعُ السُّبْحَةَ، وَأَنَّ كَلَامَهُ يَقْطَعُ الْكَلَامَ [الحدیث مسند الامام الشافعی ج۱/ ص۱۳۹]. ابن شهاب : زهری رحمه الله

فرمايي چې: ماته ثعلبه بن مالک ﷺ حديث بيان کړی دی چې د امام کيناستل په ممبر باندې د خلکو مونځ قطع کوي. او دده کلام د خلکو خبرې ختموي.

١٠- عَنْ ثَعْلَبَةَ بْنِ أَبِي مَالِكٍ الْقُرَظِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: «أَدْرَكْتُ عُمَرَ، وَعُثْمَانَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، فَكَانَ الْإِمَامُ إِذَا خَرَجَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ، تَرَكْنَا الصَّلَاةَ». [مصنف ابن ابی شيبة ج٢/ ص١١١]. حضرت ثعلبة بن مالک القرضی ﷺ فرمايي چې: ما د حضرت عمر ﷺ او دحضرت عثمان ﷺ زمانه ليدلی ده، (په هغه وخت کې د جمعې په ورځ دا معمول وو) چې امام به (د خطبې لپاره راووتلو) نو مونږ به مونځ پريښودلو.

١١- سايب بن يزيد ﷺ فرمايي چې: د حضرت عمر ﷺ په زمانه کې به مونږ د جمعې په ورځ مونځ کولو. فَإِذَا خَرَجَ عُمَرُ ﷺ وَجَلَسَ عَلَى الْمِنْبَرِ قَطَعْنَا الصَّلٰوةَ [نصب الراية ج٢/ ص٢٠٤] کله به چې عمر ﷺ راووتلو او په ممبر به کيناستلو نو مونږ به مونځ پريښودلو.

١٢- حضرت علی ﷺ فرمايي چې: د جمعې مانځه ته درې قسمه خلک راځي، يو هغه سړی دی چې د جمعې مانځه ته په سکون، وقار او خاموشۍ سره راځي، نو دا هغه سړی دی چې ددې دواړو جمعو په مينځ کې ګناهونه ورته معاف کيږي. راوي فرمايي چې: زما دا ګمان دی چې دا يې هم وويل چې دزايدو ورځو ګناهونه هم ورته معاف کيږي، بل هغه سړی دی چې په جمعه کې شريک شي او لغوه کارونه کوي، نو دده برخه همدغه لغوه او بيکاره کار دی. .(وَرَجُلٌ صَلَّى بَعْدَ خُرُوجِ الْإِمَامِ فَلَيْسَتْ بِسُنَّةٍ، إِنْ شَاءَ أَعْطَاهُ وَإِنْ شَاءَ مَنَعَهُ. [منصف عبدالرزاق ج٣/ ص٢١٠]، دريم هغه سړی دی چې د امام (د خطبې لپاره) د راوتلو څخه وروسته مونځ کوي، دده دا مونځ د سنتو سره موافق نه دی، که د الله ﷻ اراده وشي نو ثواب به ورکړي او که اراده يې وشي نو نه به يې ورکوي.

١٣- عَنِ الْحَارِثِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ: أَنَّهُ كَانَ يَكْرَهُ الصَّلَاةَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ. حضرت علی ﷺ د خطبې په وخت کې مونځ مکروه ګڼلو. [المدونة الکبری ج١/ص١٤٨].

١٤- عَنْ عَطَاءٍ رحمه الله، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ: «أَنَّهُمَا كَانَا يَكْرَهَانِ الصَّلَاةَ وَالْكَلَامَ بَعْدَ خُرُوجِ الْإِمَامِ [مصنف بن ابی شيبة ج٢/ ص١١١].

حضرت ابن عباس او حضرت ابن عمر رضي الله عنهم به د خطبې په وخت کې مونځ او خبرې مکروه ګڼلې.

۱۵- عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ: سَأَلُوهُ عَنِ الرَّجُلِ يُصَلِّي وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ؟ قَالَ: «أَرَأَيْتَ لَوْ فَعَلَ ذٰلِكَ كُلُّهُمْ كَانَ حَسَنًا؟»

د حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه څخه خلکو د خطبې په وخت کې د مانځه په باره کې پوښتنه وکړه؟ هغه ورته وفرمایل چې که د خطبې په وخت کې ټول خلک په مونځ ودریږي نو آیا دا به ښه کار وي؟ [مصنف عبدالرزاق ج۳/ ص۲۴۵].

۱۶- عَنْ نَافِعٍ رحمه الله قَالَ: كَانَ ابْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا «يُصَلِّي يَوْمَ الْجُمُعَةِ فَإِذَا تَحَيَّنَ خُرُوجُ الْإِمَامِ قَعَدَ قَبْلَ خُرُوجِهِ» [مصنف عبدالرزاق ج۳/ ص۲۱۰]

حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه به د جمعې په ورځ مونځ کولو پس کله به چې د امام د راوتلو وخت شو نو د امام د راوتلو څخه به مخکې کیناستلو.

۱۷- عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: «الصَّلَاةُ وَالْإِمَامُ عَلَى الْمِنْبَرِ مَعْصِيَةٌ» [طحاوی ج۱/ ص۲۵۴]

حضرت عقبة بن عامر رضي الله عنه فرمایي چې پداسې حال کې مونځ کول چې امام په ممبر باندې ناست وي ګناه ده.

۱۸- هشام به عروه رحمه الله فرمایي چې: حضرت عبدالله بن صفوان رضي الله عنه پداسې وخت کې مسجد ته راغلو چې حضرت عبدالله بن زبیر رضي الله عنه خطبه لوستله... فَاسْتَلَمَ الرُّكْنَ ثُمَّ قَالَ: «السَّلَامُ عَلَيْكَ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ وَبَرَكَاتُهُ ثُمَّ جَلَسَ وَلَمْ يَرْكَعْ».. [طحاوی ج۱/ ص۲۵۴] حجر اسود یې ښکل کړ بیا یې سلام واچولو بیا کیناستلو او سنت یې ونه کړل؟

۱۹- عَنِ ابْنِ سِيرِينَ رحمه الله، أَنَّهُ كَانَ يَقُولُ: «إِذَا خَرَجَ الْإِمَامُ، فَلَا يُصَلِّ أَحَدٌ حَتّٰى يَفْرُغَ الْإِمَامُ» [مصنف ابن ابی شیبة ج۲/ ص۱۱۱]. ابن سیرین رحمه الله فرمایي چې: کله امام راووتلو نو هیڅوک دې تر هغې پورې مونځ نه کوي ترڅو پورې چې امام فارغ شي.

۲۰- عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، رَحِمَهُمَا اللّٰهُ قَالَ: «إِذَا قَعَدَ الْإِمَامُ عَلَى الْمِنْبَرِ فَلَا صَلَاةَ». [مصنف بن ابی شیبة ج۲/ ص۱۱۱]. هشام رحمه الله د خپل پلار عروة بن زبیر رضي الله عنه څخه روایت کوي چې کله امام په ممبر باندې کیناستلو نو بیا مونځ نشته.

۲۱- عَنْ مَعْمَرٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ رَحِمَهُمَااللّٰهُ: «فِي الرَّجُلِ يَجِيءُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ، يَجْلِسُ وَلَا يُصَلِّي» [مصنف ابن ابی شیبة ج۲/ ص۱۱۱، طحاوی ج۱/ ص۲۵٤]. معمر د زهری رحمه الله عليه څخه د هغه سړي په باره کې روايت کوي چې پداسې حالت کې مسجد ته راشي چې امام خطبه لولي نو کيني به او مونځ به نه کوي.

۲۲- عَنْ لَيْثٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ رَحِمَهُمَااللّٰهُ «أَنَّهُ كَرِهَ أَنْ يُصَلِّيَ وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ». [طحاوی ج۱/ ص۲۵۵] امام مجاهد رَحِمَهُ اللّٰهُ به د خطبې په وخت کې مونځ ته مکروه ويلي دي.

۲۳- عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ رَحِمَهُمَااللّٰهُ، قَالَ: «خُرُوجُ الْإِمَامِ يَقْطَعُ الصَّلَاةَ، وَكَلَامُهُ يَقْطَعُ الْكَلَامَ»[مصنف ابن ابی شیبة ج۲/ ص۱۱۱، مصنف عبدالرزاق ج۳/ ص۲٤٥] سعيد بن مسيب رحمه الله عليه فرمايي چې: د امام د خطبې لپاره راوتل مونځ او د امام کلام د خلکو خبرې ختموي.

نو د جمهورو مسلمانانو په نيز باندي د خطبي په وخت کي د مونځ کول صحيح نه دي، امام نووي رحمه الله ليکي چې: د امام مالک رحمه الله، امام ليث بن سعد رحمه الله، امام ابو حنيفه رحمه الله او ده جمهورو صحابؤو رضي الله عنهم او د تابعينو رحمهم الله مسلک دا دی چې د خطبي په وخت کي مونځ صحيح نه دی. د حضرت عمر رضي الله عنه، حضرت عثمان رضی الله عنه او حضرت علي رضی الله عنه همدا مسلک دی. نووي شرح مسلم ج ۲ صـ ۴۱۵

علامه عراقي فرمائي چې د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما، ابن عباس رضي الله عنهما، عروه بن زبير رضي الله عنه، مجاهد رحمه الله، عطاء بن أبي رباح رحمه الله، سعد بن المسيب رحمه الله، محمد بن سيرين رحمه الله، امام زهري رحمه الله، قتادة رحمه الله، ابراهيم نخعي رحمه الله او د قاضي شريح رحمه الله همدا مذهب دی. فتح الملهم ج۲ صـ ۴۱۵ ] امام ترمذي رحمه الله فرمائي چې د کوفې د فقهاوو او د محدثينو همدا مسلک دی. ترمذي ج۱ صـ ۶۷

رسول الله عليه السلام فرمائي چې: يصلي ما كتب له ثم ينصت اذا تكلم الامام بخاري ج۱ صـ ۱۲۱ مسلم ج۱ صـ ۲۸۳]. طيالسي صـ ٦٥ (دامام د راوتلو څخه مخکي) چې څومره مونځ ورته مقرر وي هغه دي وکړي بيا چې امام خطبه شروع کړه نو چپ دي شي، نو د دي صحيح احاديثو څخه معلومه شوه چې د خطبي په وخت کي د چپ کيدلو څخه بغير بله چاره نشته او حضرت نبيشة الهذلي رضي الله عنه د رسول الله عليه السلام څخه روايت کوي چې:

فَإِنْ لَمْ يَجِدِ الْإِمَامَ خَرَجَ صَلَّى مَا بَدَا لَهُ، وَإِنْ وَجَدَ الْإِمَامَ قَدْ خَرَجَ جَلَسَ فَاسْتَمَعَ وَأَنْصَتَ (الحديث مجمع الزوايد ج ۲ صــ ۱۷۱ وَقَالَ رَوَاهُ أَحْمَدُ وَرِجَالُهُ رِجَالُ الصَّحِيحِ خَلَا شَيْخَ أَحْمَدَ رحمه الله وَهُوَ ثِقَةٌ . . . . انتهى

كه امام د خطبي لپاره نه وو راوتلي نو چې څومره مونځ كول غواړي و دې ئي كړي .او چې كله امام د خطبي لپاره راووتلو نو په دغه وخت كې دې هر سړى كينيي او چپ دې شي، علامه هيثمي فرمائي چې : د دې روايت ټول راويان د بخاري او د مسلم راويان دي د امام احمد د استاذ څخه ما سوا، ليكن هغه هم ثقه دى. د دې صحيح حديث څخه هم معلومه شوه چې د خطبي په وخت كې د مونځ اجازت نشته.

**فان قيل:** چې په حديث كې راځي : «إِذَا جَاءَ أَحَدُكُمْ يَوْمَ الْجُمُعَةِ، وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ، فَلْيَرْكَعْ رَكْعَتَيْنِ، وَلْيَتَجَوَّزْ فِيهِمَا».[مسلم ج/۱ ص۲۸۷]. په تابسو كې چې څوك پداسې حالت كې راغلو چې امام خطبه لوستله، نو دوه ركعته لمونځ دې په اختصار سره وكړي.

**قلنا:** دا حديث د يوې خاصې واقعې سره تعلق لري . بيا بعضي راويانو د نقل بالمعني په اعتبار د عموم جامه وراغوستي ده اصل واقعه دا وه چې حضرت سليک غطفاني رضي الله عنه د ډيري غريبى بنكار شوي وو، كله چې رسول عليه السلام د ده خراب حالت وليدلو نو د چندې اراده ئي ورته وكړه ، او حكم ئې ورته وكړو چې پاځيږه او دوه ركعته مونځ وكړه ، او دا حكم ئي د دي لپاره ورته وكړو چې خلك د ده خراب حالت وګوري او د زړه د اخلاصه چنده ورسره وكړي د روايت اصل الفاظ داسې دي چې :

جَاءَ رَجُلٌ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ بِهَيْئَةٍ بَذَّةٍ، فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَصَلَّيْتَ؟» قَالَ: لَا، قَالَ: «صَلِّ رَكْعَتَيْنِ، وَحَثَّ النَّاسَ عَلَى الصَّدَقَةِ».. الحديث نسائي ج ۱ صــ ۱۵۸)

رسول الله عليه السلام خطبه لوستله چې په دې وخت كې يو سړى چې حالت ئي ډير خراب وو راغلو . نو رسول الله عليه السلام ورته وفرمائيل چې آيا مونځ دې كړى دى ؟ هغه ورته وفرمائيل چې نه ، نو رسول الله عليه السلام ورته وفرمائيل چې پاسيږه او دوه ركعته مونځ وكړه ، او خلک ئي په صدقه باندې تيز كړل. دمسند احمد د روايت الفاظ داسې دي چې رسول الله عليه السلام وفرمائيل چې : إِنَّ هَذَا الرَّجُلَ دَخَلَ الْمَسْجِدَ فِي هَيْئَةٍ بَذَّةٍ فَأَمَرْتُهُ أَنْ يُصَلِّيَ رَكْعَتَيْنِ وَأَنَا أَرْجُو أَنْ يَفْطِنَ لَهُ رَجُلٌ فَيَتَصَدَّقَ عَلَيْهِ (فتح الباري ج۲صــ۳۳].

دا سړي مسجد ته په خراب حالت کي راغلو، نو ما ورته امر وکړو چې دوه رکعته لمونځ وکړه او څه امید لرم چې څوک د ده په خراب حالت باندي خبر شي نو صدقه به وربانديي وکړي، نو د دي څخه معلومه شوه چې دا یوه مخصوصه واقعه وه، نو بعضي راویانو روایت بالمعنی وکړو، او د عموم جامه ئي ورته وراغوستله، په یو روایت کي داسي هم راغلي دي چې: وامسک عن الخطبة حتي فرغ من صلوته. دارقطني ج ۱ صـــ ۱۶۹، زیلعي ج ۲ ص۲۰۳] د دي سړي د مانځه څخه تر فارغیدلو پوري نبي علیه السلام خطبه درولې وه. په یو روایت کي الفاظ داسي دي چې: ارکع رکعتین ولا تعد لمثل هذا. دار قطني ج ۱ صـــ ۱۶۹ ته دوه رکعته مونځ وکړه خو بیا داسي مه کوه، نو چونکه دا سړي نهایت غریب وو، نو رسول الله علیه السلام ورته امر وکړو چې دوه رکعته لمونځ وکړي، د دي لپاره چې خلکو ته دده خراب حالت ښکاره شي او چنده ورسره وکړي، او کله چې په دوهمه او دریمه جمعه باندي راغلو نو بیا ورته رسول الله علیه السلام وفرمائیل چې پاڅیږه او مونځ وکړه. فتح الباري ج ۱ صـ ۴۹۹. او دا هم د دې لپاره چې خلک د ده خراب حالت وګوري او چنده ورسره وکړي کله چې دا په دوهمه جمعه باندي راغلو. رسول الله علیه السلام خطبه لوستله نو وي فرمائیل چې: ان یصدقوا علیه وان یصلي رکعتین. جزء القراءت صـــ ۳۷ خلک دي په ده باندي صدقه وکړي او ده ته ئي د دوه رکعته مونځ حکم وکړو

۳) په اعتراض کي په ذکر شوي حدیث کي الفاظ داسي دي چې: «إِذَا جَاءَ أَحَدُكُمْ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ، فَلْيَرْكَعْ رَكْعَتَيْنِ، وَلْيَتَجَوَّزْ فِيهِمَا» الحدیث.

یخطب صیغه د مضارع ده نو خطبه په استقبال کي ده نو معني دا شوه چې کوم سړي چې راغلو په داسي حالت کي چې امام د خطبې لوستل غوښتل، او د خطبې اراده ئي کړي وه، نو د خطبې څخه مخکي دې دوه رکعته مختصر مونځ وکړي. امام نسائي په سنن الکبري کي د دې حدیث لپاره داسي باب قائم کړي دي چې: باب الصلوة قبل الخطبة نو د امام نسائي د تحقیق مطابق دا واقعه د خطبې څخه مخکـې مخې ته راغلې وه، همدا معني علماؤو په نظر کي نیولي ده او د یخطب ترجمه ئي په یرید الخطبة سره کړي ده وګوره فتح الملهم ج ۲ صـ ۲۱۷ فیض الباري ج ۲ صـ ۳۴۴].

## د جمعې په ورځ لس رکعته سنت مؤکد دي، څلور د فرضو څخه مخکې او شپږ د فرضو څخه وروسته دي.

۱- عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي قَبْلَ الْجُمُعَةِ أَرْبَعًا، وَبَعْدَهَا أَرْبَعًا، عَنْ عَلِيٍّ رضی الله عنه، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَجْعَلُ التَّسْلِيمَ فِي آخِرِهِنَّ رَكْعَةً. [معجم طبرانی اوسط بحواله نصب الراية ج۲/ ص۲۰٦، باب صلوة الجمعة آحاديث سنة الجمعة].
حضرت علی رضی الله عنه فرمايي چې: رسول الله ﷺ د جمعې د مانځه څخه مخکې او وروسته څلور څلور رکعته کول، سلام به يې په اخيرني څلورم رکعت باندې ګرځولو.

۲- وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ: «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَرْكَعُ قَبْلَ الْجُمُعَةِ أَرْبَعًا وَبَعْدَهَا أَرْبَعًا لَا يَفْصِلُ بَيْنَهُنَّ. [مجمع الزوايد ج۲/ ص۱۹۵، باب فی سنة الجمعة]. عبد الله بن عباس رضی الله عنه فرمايي چې: رسول الله ﷺ د جمعې د فرضو څخه مخکې څلور رکعته کول او وروسته به يې هم څلور رکعته کول د دې څلورو رکعتونو په مينځ کې به يې (په دوو رکعتونو) سلام نه ګرځولو.

۳- ابن عباس رضی الله عنه فرمايي چې: كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَرْكَعُ قَبْلَ الْجُمُعَةِ أَرْبَعًا، لَا يَفْصِلُ فِي شَيْءٍ مِنْهُنَّ [ابن ماجة ص۷۹]. باب ماجاء فی الصلوة قبل الجمعة] رسول الله ﷺ به د جمعې د فرضونو څخه مخکې څلور رکعته سنت کول او د دوي په مينځ کې به يې جدايي نه راوستله.

٤- عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ (مَرْفُوعًا) مَنْ كَانَ مُصَلِّيًا (يَوْمَ الْجُمُعَةِ) فَلْيُصَلِّ قَبْلَهَا أَرْبَعًا وَبَعْدَهَا أَرْبَعًا. [كنز العمال ج۷/ ص۷٤۹]. رسول الله ﷺ فرمايي چې: څوک د جمعې مونځ کوي نو د فرضو څخه مخکې دې څلور رکعته وکړي او وروسته دې هم څلور رکعته وکړي.

۳- عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمُ الْجُمُعَةَ فَلْيُصَلِّ بَعْدَهَا أَرْبَعًا. [مسلم ج۱/ ص۲۸۸]. رسول الله ﷺ فرمايي چې: کله يو ستاسو د جمعې مونځ وکړونو دې څخه وروسته دې څلور رکعته (سنت) وکړي.

۵- عَنْ قَتَادَةَ رحمه الله، أَنَّ ابْنَ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ كَانَ يُصَلِّي قَبْلَ الْجُمُعَةِ أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ، وَبَعْدَهَا أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ [مصنف عبدالرزاق ج۳/ ص۲٤۷، ترمذی باب الصلوة قبل الجمعة وبعدها]. عبد الله بن مسعود رضی الله عنه

به د جمعې د فرضو څخه مخکې او وروسته څلور څلور رکعته (سنت) کول او په يو روايت کې شپږ رکعته راغلي دي. [مجمع الزوايد ج۱/ ص۱۹۵].

٦- عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ كَانَ يُصَلِّي بَعْدَ الْجُمُعَةِ رَكْعَتَيْنِ. [بخاری ج۱/ ص۱۲۸، مسلم ج۱/ ص۲۸۸]. سالم رحمه الله د خپل پار عبدالله بن عمر رضي الله عنهما څخه روايت کوي چې رسول الله ﷺ به د جمعې د مانځه څخه وروسته دوه رکعته (سنت) کول. د اتم نمبر، نهم، لسم، يوولسم، دولسم، ديارلسم، څوارلسم او پنځلسم نمبر احاديثو څخه معلومېږي چې نبي عليه السلام دا دوه رکعته د هغه څلورو رکعتونو سره کول کوم چې د نبي عليه السلام معمول وو.

٧- عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّي بَعْدَ الْجُمُعَةِ رَكْعَتَيْنِ فِي بَيْتِهِ [ابوداؤد ج۱/ ص۱٦۱، نسائی ج۱/ ص۲۱۰ باب صلوة الامام بعد الجمعة]. عبدالله بن عمر رضي الله عنهما فرمايي چې: رسول الله ﷺ به د جمعې د مانځه څخه وروسته دوه رکعته په کور کې کول.

٨- عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمٰنِ السُّلَمِيِّ رحمه الله قَالَ: كَانَ عَبْدُ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يَأْمُرُنَا أَنْ نُصَلِّيَ قَبْلَ الْجُمُعَةِ أَرْبَعًا، وَبَعْدَهَا أَرْبَعًا، حَتّٰى جَاءَنَا عَلِيٌّ رضي الله عنه فَأَمَرَنَا أَنْ نُصَلِّيَ بَعْدَهَا رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ أَرْبَعًا. [مصنف عبدالرزاق ج۳/ ص۲٤۷]. حضرت ابوعبدالرحمن السلمی رحمه الله فرمايي چې: حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه مونږ ته حکم کولو چې د جمعې د فرضو څخه مخکې څلور رکعته کوئ او وروسته هم څلور رکعته کوئ تردې چې حضرت علی رضي الله عنه راغلو نو هغه مونږ ته حکم وکړو چې د فرضو څخه وروسته اول دوه او بيا څلور رکعته کوئ.

٩- عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمٰنِ رحمه الله، قَالَ: «كَانَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يُعَلِّمُنَا أَنْ نُصَلِّيَ أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ بَعْدَ الْجُمُعَةِ» حَتّٰى سَمِعْنَا قَوْلَ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ: «صَلُّوا سِتًّا»، قَالَ أَبُو عَبْدِ الرَّحْمٰنِ رحمه الله: «فَنَحْنُ نُصَلِّي سِتًّا»، قَالَ عَطَاءٌ رحمه الله: «أَبُو عَبْدِ الرَّحْمٰنِ رحمه الله يُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ أَرْبَعًا». [معجم طبرانی ج۹/ ۳۱۰، مصنف ابن ابی شيبة ج۲/ ص۱۳۲، مجمع الزوايد باب فی سنة الجمعة]. حضرت ابو عبدالرحمن السلمی رحمه الله فرمايي چې: عبدالله بن مسعود رضي الله عنه به مونږ ته راښودل چې د جمعې د مانځه څخه وروسته څلور رکعته راښودل تردې چې مونږ د حضرت علی رضي الله عنه خبره واوريدله چې شپږ رکعته کوئ، ابوعبدالرحمن فرمايي چې: بيا مونږ شپږ رکعته کول حضرت عطاء رحمه الله فرمايي چې: حضرت ابو عبدالرحمن به د جمعې د فرضو څخه وروسته اول دوه رکعته او بيا څلور رکعته کول.

١٠- عن أبی عبد الرحمن رحمة الله عليه عن علی رضی الله عنه أنه قال: "مَنْ كَانَ مِنْكُمْ مُصَلِّيًا بَعْدَ الْجُمُعَةِ فَلْيُصَلِّ أَرْبَعًا" [طحاوی ج١/ ص٢٣٣]. حضرت ابو عبدالرحمن السلمی رحمة الله عليه د حضرت علی رضی الله عنه څخه روايت کوي چې حضرت علی رضی الله عنه فرمايل چې: څوک چې د جمعې د مانځه څخه وروسته مونځ کوي نو شپږ رکعته دې وکړي.

١١- قال الامام الترمذی رحمة الله عليه: وَرُوِيَ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: أَنَّهُ كَانَ يُصَلِّي قَبْلَ الْجُمُعَةِ أَرْبَعًا، وَبَعْدَهَا أَرْبَعًا. وَرُوِيَ عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّهُ: أَمَرَ أَنْ يُصَلَّى بَعْدَ الْجُمُعَةِ رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ أَرْبَعًا. [ترمذی ج١/ ص١١٧]. امام ترمذی رحمة الله عليه فرمايي چې: د عبدالله بن مسعو د رضی الله عنه څخه روايت دی چې د جمعې د مانځه څخه مخکې او وروسته دې څلور څلور رکعته (سنت) وکړی شي او د حضرت علی بن ابی طالب رضی الله عنه څخه روايت دی چې هغه رضی الله عنه به د جمعې د فرضو څخه وروسته اول د دوو دوه او بيا د څلورو رکعتو سنتو امر کولو.

١٢- عن جبلة بن سحيم رحمة الله عليه عن عبدالله بن عمر رضی الله عنهما «أَنَّهُ كَانَ يُصَلِّي بَعْدَ الْجُمُعَةِ سِتَّ رَكَعَاتٍ». [مصنف ابن ابی شيبة ج٢/ ص١٣٢]. حضرت ابو بکر رحمة الله عليه بن ابی موسی رضی الله عنه د خپل پلار حضرت ابو موسی اشعری رضی الله عنه څخه روايت کوي چې ده به د جمعې د مانځه څخه وروسته شپږ رکعته (سنت) کول.

١٤- عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْتَشِرِ رحمة الله عليه، عَنْ مَسْرُوقٍ رحمة الله عليه، قَالَ: «كَانَ يُصَلِّي بَعْدَ الْجُمُعَةِ سِتًّا، رَكْعَتَيْنِ، وَأَرْبَعًا» [مصنف بن ابی شيبة ج٢/ ص١٣٢] حضرت محمد بن المنتشر رحمة الله عليه د حضرت مسروق رحمة الله عليه څخه روايت کوی چې ده به د جمعې د مانځه څخه وروسته شپږ رکعته سنت کول، اول دوه او بيا څلور رکعته.

**فان قيل:** دا شپږ رکعته به په کوم ترتيب سره اداء کيږي؟

**قلنا:** امام ابو يوسف رحمة الله عليه او امام طحاوی رحمة الله عليه فرمايي چې: د فرضو څخه وروسته اول څلور رکعته سنت کول او بيا د وه رکعته سنت کول بهتر دي. امام طحاوی رحمه الله فرمايي چې: فَثَبَتَ بِمَا ذَكَرْنَا أَنَّ التَّطَوُّعَ الَّذِي لَا يَنْبَغِي تَرْكُهُ بَعْدَ الْجُمُعَةِ سِتٌّ . وَهُوَ قَوْلُ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ إِلَّا أَنَّهُ قَالَ: أَحَبُّ إِلَيَّ أَنْ يَبْدَأَ بِالْأَرْبَعِ ثُمَّ يُثَنِّي بِالرَّكْعَتَيْنِ لِأَنَّهُ هُوَ أَبْعَدُ مِنْ أَنْ يَكُونَ قَدْ صَلَّى بَعْدَ الْجُمُعَةِ مِثْلَهَا عَلَى مَا قَدْ نُهِيَ عَنْهُ .

بیا امام طحاوی رحمه الله په خپل سند باندې نقل کوي چې: «أَنَّ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ كَانَ يَكْرَهُ أَنْ يُصَلِّيَ بَعْدَ صَلَاةِ الْجُمُعَةِ مِثْلَهَا» قَالَ أَبُو جَعْفَرٍ رحمه الله: فَلِذٰلِكَ اسْتَحَبَّ أَبُو يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ أَنْ يُقَدِّمَ الْأَرْبَعَ قَبْلَ الرَّكْعَتَيْنِ لِأَنَّهُنَّ لَسْنَ مِثْلَ الرَّكْعَتَيْنِ فَكُرِهَ أَنْ يُقَدِّمَ الرَّكْعَتَانِ لِأَنَّهُمَا مِثْلُ الْجُمُعَةِ. [شرح معانی الآثار ج۱/ص۱۶۶، باب التطوع بعد الجمعة کیف هو؟ ].

او حضرت شاه صاحب رحمه الله فرمايي چې: اول دوه رکعته او بيا څلور رکعته کول بهتر دي او ددې تائيد د حضرت علی رضی الله عنه او د حضرت ابن عمر رضی الله عنه د مخکنيو اثارو څخه کيږي.

*   *   *

فِیْ بُیُوْتٍ اَذِنَ اللّٰهُ اَنْ تُرْفَعَ وَیُذْكَرَ فِیْهَا اسْمُهٗ یُسَبِّحُ لَهٗ فِیْهَا بِالْغُدُوِّ وَالْاٰصَالِ ۙ

# په مسجد او په عيدګاه کې

## دېنګو دلمونځ او د اعتکاف مسائل اعتکاف



بسم الله الرحمن الرحیم

الحمد لله وحده والصلوة والسلام علی ن لا نبی بعده.

اما بعد!

په عباداتو، معاملاتو، معاشراتو وغیره کې شریعت دنارینوو دغیرت او دښځو دشرم او دحیا او دپاکدامنۍ لحاظ کړی دی، غربي معاشره غواړي چې دا فرق ختم کړي او ددې خدمت لپاره یې لامذهبه اهلحدیث هم استخدام کړي دي، لامذهبه اهلحدیث کوشش کوي چې ښځې دې هم دسړو په شان په مسجد او په عیدګاه کې مونځ وکړي، همدارنګه دوي دښځو لپاره دسړو سره یوځای په مسجد کې داعتکاف زمینه هم برابره کړی ده او لکه څرنګه چې دعیسویانو په ګرجو کې، دهندوانو په درمسالونو کې او دشیعه ګانو په امام باړو کې ښځې او سړي سره یوځای نام نهاد عبادت کوي، نو همدارنګه دوي غواړي چې داهل سنتو مسلمانانو په مساجدو کې هم دا لوبه شروع شي، هم به لمونځ کیږي او هم زنا، یو طرف ته به غربي مفکوره په مسلمانانو کې عادي شي او بل طرفته به دلوچکانو دراجلبولو لپاره هم یو دام شي، دسینماګانو په ځای به ورته دا هلحدیثو مساجد دعملي سینما کار ورکوي او په اسانه به ترینه لامذهبه اهلحدیث جوړیږي، زه به نو ددیني حمایت په بنا باندې له الله تعالی په توفیق یو څو مضمونونه ولیکم دالله تعالی څخه سوال او امید کوم چې دبې لارو ذهنونو لپاره یې دهدایت سبب وګرزوي. امین

## په عیدګاه او په مسجد کې لمونځ دقرآن په رڼآ کې

فِيْ بُيُوْتٍ اَذِنَ اللّٰهُ اَنْ تُرْفَعَ وَيُذْكَرَ فِيْهَا اسْمُهٗ ۙ يُسَبِّحُ لَهٗ فِيْهَا بِالْغُدُوِّ وَالْاٰصَالِ ۙ (سورة النور، اية ۳۶، ۳۷)

**طریقه داستدلال:** رجال درجل جمع ده په معنی دسړي، نو په بیوت الله (مساجدو) کې دسړو دعبادت دتخصیص څخه معلومیږي چې دښځو لپاره په کورونو کې لمونځ بهتر دی.

۱-ابو محمد حسین بن مسعود البغوی المتوفی ۵۱۰ هق لیکي چې: خَصَّ الرِّجَالَ بِالذِّكْرِ فِي هٰذِهِ الْمَسَاجِدِ لِاَنَّهٗ لَيْسَ عَلَى النِّسَآءِ جُمُعَةٌ وَلَا جَمَاعَةٌ فِي الْمَسْجِدِ (معالم التنزیل المعروف تفسیر بغوی ج ٦ ص ۵۱)

په مساجدو کې دذکر لپاره دسړیو تخصیص له دې وجې څخه وشو چې مسجد ته تلل او په مسجد کې دجمعې او نور دجماعت لمونځونه کول په ښځو باندې نه دي لازم.

۲-امام رازی رحمه الله فرمايي چې: السُّؤَالُ الثَّانِي: لِمَ خَصَّ الرِّجَالَ بِالذِّكْرِ؟ وَالْجَوَابُ: لِأَنَّ النِّسَآءَ لَسْنَ مِنْ أَهْلِ التِّجَارَاتِ أَوِ الْجَمَاعَاتِ..(تفسير كبير تحت هذه الآية)

سوال: څه حكمت ؤ چې يو اځې سړي يې ذكر كړه؟

جواب: ځكه چې ښځې (په شرعي لحاظ) د جماعت او د تجارت اهليت نه لري.

۳-محمد بن احمد القرطبی رحمه الله فرمايي چې: السَّادِسَةَ عَشْرَةَ-لَمَّا قَالَ تَعَالَى: "رِجَالٌ..." وَخَصَّهُمْ بِالذِّكْرِ دَلَّ عَلَى أَنَّ النِّسَآءَ لَا حَظَّ لَهُنَّ فِي الْمَسَاجِدِ، إِذْ لَا جُمُعَةَ عَلَيْهِنَّ وَلَا جَمَاعَةَ، وَأَنَّ صَلَاتَهُنَّ فِي بُيُوتِهِنَّ أَفْضَلُ. رَوَى أَبُو دَاوُدَ رحمه الله عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: (صَلَاةُ الْمَرْأَةِ فِي بَيْتِهَا أَفْضَلُ مِنْ صَلَاتِهَا فِي حُجْرَتِهَا وَصَلَاتُهَا فِي مَخْدَعِهَا أَفْضَلُ مِنْ صَلَاتِهَا فِي بَيْتِهَا) (قرطبی تحت هذه الآية)

شپاړسمه مسئله: كله چې الله تعالى خاص د سړيو ذكر وكړو نو دا دليل شو چې: ۱- د ښځو لپاره په مسجدونو كې د (ثواب) حصه نشته ځكه چې په ښځو باندې نه جمعه واجبه ده او نه جماعت، ۲- د ښځو لپاره په كورونو كې لمونځ بهتر دى په ابو داؤد كې د عبد الله بن مسعود رضي الله عنه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي چې د ښځې مونځ په كوټې كې د صحن په نسبت بهتر دى او په خاصه وړه كوټه كې د لويې كوټې په نسبت بهتر دى.

۴- ابو الحسن على بن محمد الخازن رحمه الله فرمايي چې: خص الرجال بالذكر فى هذه المساجد لان النساء ليس عليهن حضور المساجد لجمعة ولا جماعة (تفسير الخازن تحت هذه الاية)

په دې ايت كې يو اځې سړي له دې وجې څخه ذكر شو چې په ښځو باندې جمعې او جماعت ته حاضريدل نه دي لازم.

۵- اسماعيل بن عمر بن كثير رحمه الله فرمايي: وَأَمَّا النِّسَآءُ فَصَلَاتُهُنَّ فِي بُيُوتِهِنَّ أَفْضَلُ لَهُنَّ لِمَا رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ رحمه الله عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «صَلَاةُ الْمَرْأَةِ فِي بَيْتِهَا أَفْضَلُ مِنْ صَلَاتِهَا فِي حُجْرَتِهَا، وَصَلَاتُهَا فِي مَخْدَعِهَا أَفْضَلُ مِنْ صَلَاتِهَا فِي بَيْتِهَا».

عَنِ السَّائِبِ رحمه الله مَوْلَى أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «خَيْرُ مَسَاجِدِ النِّسَآءِ قَعْرُ بُيُوتِهِنَّ» (تفسير ابن كثير تحت هذه الآية)

د ښځو لمونځ په كورونو كې بهتر دي، ځكه چې عبد الله بن مسعود رضي الله عنه د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه روايت كوي چې د ښځې په كوټه كې لمونځ كول د صحن په نسبت بهتر دى او په خاصه

توګه وړه کوټه کې دلویې کوټې په نسبت بهتر دی، همدا رنګه دأم سلمة رضی الله عنها څخه روایت دی چې رسول الله، صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایلي دي چې د ښځو بهترین مسجد د دوي د کورونو پټ کونج دی.

۶- ابراهیم بن عمر البقاعی رحمه الله فرمایي چې: وَخَصَّ الرِّجَالَ مَعَ أَنَّ حُضُورَ النِّسَاءِ سُنَّةٌ شَهِيرَةٌ إِشَارَةٌ إِلَى أَنَّ صَلٰوتَهُنَّ فِي بُيُوتِهِنَّ أَفْضَلُ (نظم الدرر ج ۵ص۔ ۴۷۴)

یواځې سړي یې له دې وجې څخه ذکر کړل چې د ښځو مونځ په کورونو کې بهتر دی بیا یې داستدلال په طریقه د عبد الله بن مسعود رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ او دأم سلمة رضی الله عنها د مخکنیو حدیثونو سره سره یو دریم حدیث هم ذکر کړی دی چې :عن أم حميد امرأة أبی حميد الساعدی قالت یا رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انی احب الصلوة معک قالت قد علمت أنک تحبين الصلوة معی وصلوتک فی بيتک خير من صلواتک فی حجرتک وصلوتک فی حجرتک خير من صلوتک فی دارک وصلوتک فی دارک خير من صلوتک فی مسجد قومک وصلوتک فی مسجد قومک خير من صلوتک فی مسجدی قال فأمرت فبنی لها مسجد فی أقصی بيت من بيتها وأظلمه فکانت تصلی فيه حتی لقت الله (نظم الدرر ج ۵ص۔ ۴۷۴).

ام حمید رضی الله عنها وفرمایل چې یا رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زه ستاسره (په جماعت) باندې لمونځ خوښوم، رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمایل چې زه پوهیږم چې ته زما سره لمونځ خوښوې، لکن ستا لمونځ په وړه کوټه کې دغټې په نسبت بهتر دی او په دار کې د مسجد د محلې په نسبت بهتر دی او په مسجد د محلې کې د مسجد نبوي په نسبت بهتر دی، نو بیا ما امر وکړو نو دیوې کوټې په منځ کې په یو تیاره ځای کې راته د مانځه لپاره ځای جوړ کړی شو.

۷- وتخصيص الرجال بالذکر لانهم الاحقاء بالمساجد فقد أخرج احمد والبيهقی عن أم سلمة عن رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خير مساجد النساء قعربيوتهن (روح المعانی ج ج۱۳ص۔ ۴۱۴).

دسړیو تخصیص له دې وجې څخه دی چې دوي ډیر مستحق دي چې مساجدو ته لاړ شي، ځکه چې ام سلمی رضی الله عنها دنبي کریم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څخه روایت کړی دی چې د ښځو لپاره بهترین مساجد منځ د کوټو دي.

۸- وجه تخصيص الرجال بالذکر فی هذه البيوت أنه ليس علی النساء جمعة ولا جماعة فی المسجد تفسير ثعلبی ج ۱ص۔ ۱۶۰۲)

دنارينه وو دتخصيص وجه داده چې په ښځو باندې په مسجد کې نه جمعه شته او نه جماعت.

۹- فَاعْلَمْ أَنَّ تَخْصِيصَهُ مَنْ يُسَبِّحُ لَهُ فِيهَا بِالرِّجَالِ فِي قَوْلِهِ يُسَبِّحُ لَهُ فِيهَا بِالْغُدُوِّ وَالْآصَالِ رِجَالٌ يَدُلُّ بِمَفْهُومِهِ عَلَى أَنَّ النِّسَاءَ يُسَبِّحْنَ لَهُ فِي بُيُوتِهِنَّ لَا فِي الْمَسَاجِدِ... لِأَنَّ الرِّجَالَ لَا تُخْشَى مِنْهُمُ الْفِتْنَةُ، وَلَيْسُوا بِعَوْرَةٍ بِخِلَافِ النِّسَاءِ... اعْلَمْ أَنَّ السُّنَّةَ النَّبَوِيَّةَ بَيَّنَتْ مَفْهُومَ الْمُخَالَفَةِ فِي قَوْلِهِ تَعَالَى فِي هَذِهِ الْآيَةِ الْكَرِيمَةِ: رِجَالٌ، فَبَيَّنَتْ أَنَّ الْمَفْهُومَ الْمَذْكُورَ مُعْتَبَرٌ، وَأَنَّ النِّسَاءَ لَسْنَ كَالرِّجَالِ فِي حُكْمِ الْخُرُوجِ إِلَى الْمَسَاجِدِ، وَأَوْضَحَتْ أَنَّ صَلَاتَهُنَّ فِي بُيُوتِهِنَّ أَفْضَلُ لَهُنَّ مِنَ الْخُرُوجِ إِلَى الْمَسَاجِدِ وَالصَّلَاةِ فِيهَا فِي الْجَمَاعَةِ، بِخِلَافِ الرِّجَالِ. (اضواء البيان فى تفسير القرآن بالقرآن ج ٦ صـ ٢٤)

په ايت کريمه کې صرف رجالو ذکر کول په اعتبار دمفهوم سره په دې خبره باندې دلالت کوي چې ښځې به کور کې تسبيح (لمونځ) کوي، ځکه چې مسجد ته دسړيو په تللو ؛ ې نه فتنه شته او نه عورت دی په خلاف دښځو په دې ايت کريمه کې ددې مفهوم مخالف بيان سنت نبوي ﷺ کړی دی چې ښځې مسجد ته په تللو کې دنارينه وو په شان نه دي او دا يې واضحه کړې ده چې دښځو لمونځ په کورونو کې بهتر دی.

## مسجد او عيدگاه ته دښځو تلل داحاديثو په رڼا کې

پدې مسئله باندې دپوره پوهيدلو لپاره اول دهغو ټولو احاديثو کتل پکار دي کوم چې ددې مسئلې سره متعلق دي، دامام اعظم رَحِمَهُ اللهُ همدا طريقه وه چې ديوې مسئلې دحل کولو لپاره به يې اولا ددې مسئلې سره متعلق ټول احاديث دغور لاندې نيول دې ته دعلماوو په اصطلاح کې سردُ الاحاديث وايي، مسجد او عيدگاه ته دښځو دتللو په باره کې څلور قسمه احاديث دي. (۱) هغه احاديث چې په هغوي کې بلا شرطه ښځو ته اجازت ورکړل شوی دی او ددوي دحصار ولو څخه پکې ممانعت دی.

(۲) هغه احاديث چې په هغوي کې مشروط اجازت دي.

(۳) هغه احاديث چې په هغوي کې ښځو ته ترغيب ورکړل شوی دی چې په کورونو کې لمونځونه وکړي.

(۴) هغه احاديث چې په هغوي کې مسجد او عيدگاه ته دښځو دتللو څخه ممانعت ذکر شوی دی.

## اول قسم دمطلق اجازت احاديث

عَنِ ابْنِ عُمَرَ رضي الله عنه، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «لَا تَمْنَعُوا إِمَاءَ اللهِ مَسَاجِدَ اللهِ» (مسلم ج ۱ صـ ۱۸۳، سنن ابی داؤد ج ۱ صـ ۱۸٤)

د الله بندګانې د الله تعالى له کورنو مه منع کوئ!

وعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رضي الله عنه قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: «لَا تَمْنَعُوا إِمَاءَ اللَّهِ مَسَاجِدَ اللَّهِ». (مجمع الزوائد ج٢صـ ٣٣)

د الله تعالى وينځې د الله تعالى د کورونو څخه مه منع کوئ.

## دوهم قسم دمشروط اجازت

**١-شرط الاستيذان:**

عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِيهِ رضي الله عنه، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «إِذَا اسْتَأْذَنَتِ امْرَأَةُ أَحَدِكُمْ فَلَا يَمْنَعْهَا»(صحيح البخاری ج ٢صـ ٧٨٨، صحيح المسلم ج ١صـ١٨٣)

ترجمه: دحضرت سالم بن عبد الله څخه روايت دى هغه دخپل پلار څخه او هغه دنبى كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څخه روايت کوي چې که يوه ښځه ستاسو څخه (مسجد ته دتللو) اجازت وغواړي نو مه يې منعه کوئ.

عَنِ ابْنَ عُمَرَ رضي الله عنه، يَقُولُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «إِذَا اسْتَأْذَنَكُمْ نِسَاؤُكُمْ إِلَى الْمَسَاجِدِ فَأْذَنُوا لَهُنَّ»(صحيح مسلم ج ١صـ ١٨٣)

ترجمه: حضرت ابن عمر رضى الله عنهما فرمايي چې اوريدلي دي ما د رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څخه چې که اجازت وغواړي ستاسو څخه ښځې دستاسو لپاره دتللو مسجد ته. نو اجازت ورکړئ.

**فايده:** ددې دواړو احاديثو څخه معلومه شوه چې:

(١)ښځه چې مسجد او يا عيدګاه ته ځي نو دخاوند څخه به اجازت أخلي، بغير داجازت څخه مسجد ته نشي تللى، اګرچې بيا خاوند ته دنرمي رويې ترغيب هم ورکړل شوى دى، چې که ښځې اجازت وغوښتلو نو خاوند دې اجازت ورکړي، ددې تائيد ددې حديث څخه هم کيږي چې د دريو کسانو لمونځ نه قبليږي يو پکې (المرأة تخرج من بيتها بغير إذنه) هغه ښځه ده چې دميړه د اجازې څخه بغير د کوره وځي.

(٢) کله چې ښځه دميړه داجازې پابنده ده، نو معلوميږي دا چې په ښځه باندې مسجد او عيدګاه ته تلل فرض او واجب نه دي، ځکه چې کوم کار چې فرض او يا واجب وي نو دهغې د ادا کولو لپاره

استیذان یعنې د اجازې غوښتل نه وي ضروري، مثلا د رمضان روژه فرض ده ، نو د دې روژې په نیولو کې د اجازت غوښتل شرط نه دي البته د نفلي روژې په نیولو کې به اجازت غواړي .

(۳) ښځه چې مسجد او یا عیدګاه ته د تللو اجازت وغواړي، نو خاوند ته اختیار دی چې اجازت ورکوي او که نه که چیرته خاوند د اجازت د ورکولو پابند وی او همدا شق متعین وی نو بیا د اجازت د غوښتلو څه معنی ده؟

(۴) په یو حدیث کې داسې دي چې (فأذنوا لهن) په بل حدیث کې داسې دي چې "لاتمنعوا" د لته د أمر او د نهی څخه ادنی درجه مراده ده، چې د أمر په جانب کې رخصت او اباحت دی او د نهی په جانب کې کراهت تنزیهي دی ، یعنې خاوند ته د اجازت د ورکولو او د نه ورکولو دواړو اختیار دی، لکن د اجازت ورکول أولی دي او منع یعنې د اجازت نه ورکول مکروه تنزیهي دي .

(۵) د دې دوهم قسم احادیثو له وجې به په اول قسم (مطلقو احادیثو) کې هم همدا قید لګوو .

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمایي چې:

وَفِيهِ إِشَارَةٌ إِلَى أَنَّ الْإِذْنَ الْمَذْكُورَ لِغَيْرِ الْوُجُوبِ لِأَنَّهُ لَوْ كَانَ وَاجِبًا لَا تنفى مَعْنَى الِاسْتِئْذَانِ لِأَنَّ ذٰلِكَ إِنَّمَا يَتَحَقَّقُ إِذَا كَانَ الْمُسْتَأْذَنُ مُخَيَّرًا فِي الْإِجَابَةِ أَوِ الرَّدِّ (فتح الباری ج ۲صـ ۴۴۲، باب خروج النساء الی المساجد باللیل والغلس)

د دې څخه معلومه شوه چې د استیذان د غیر واجب لپاره دی، ځکه چې که د ښځو وتل واجب وی نو بیا به د استیذان څه مطلب وو؟ ځکه چې استیذان په هغه ځای کې کیږي چې اجازت ورکونکي ته د اجازت د ورکولو او د نه ورکولو دواړو اختیار وي ، نو خلاصه دا چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې "فأذنوا " او یا "لاتمنعوا "ویلي دي نو دا یې د مشورې په طریقه باندې ویلي دي .

عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللهِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، أَنَّ عَبْدَ اللهِ بْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «لَا تَمْنَعُوا نِسَاءَكُمُ الْمَسَاجِدَ إِذَا اسْتَأْذَنَّكُمْ إِلَيْهَا» قَالَ: فَقَالَ بِلَالُ بْنُ عَبْدِ اللهِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: وَاللهِ لَنَمْنَعُهُنَّ، قَالَ: فَأَقْبَلَ عَلَيْهِ عَبْدُ اللهِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: فَسَبَّهُ سَبًّا سَيِّئًا مَا سَمِعْتُهُ سَبَّهُ مِثْلَهُ قَطُّ وَقَالَ: "أُخْبِرُكَ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَتَقُولُ: وَاللهِ لَنَمْنَعُهُنَّ." (مسلم ج۱صـ ۱۸۳)

ترجمه: سالم بن عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څخه اوریدلي دي چې فرمایل به یې: مه منع کوئ خپلې ښځې د مسجد و نو څخه کله چې اجازه وغواړي مسجد ته د تګ لپاره ،

نو حضرت بلال بن عبد الله رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې زه به يې خامخا منع کوم، نو مخې ور واړه وه حضرت عبد الله او کنځلې يې ورته وکړې داسې کنځلې چې مخکې ما داسې هيڅ کله اوريدلې نه وې او وې فرمايل چې زه درته د رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څخه خبر درکوم تا ته او ته وايې چې زه به يې خامخا منعه کوم.

فايده: کله چې د ښځو منع کول مکروه تنزيهي وو، نو بيا حضرت عبد الله بن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د څه لپاره څوی څخه ولې دومره خفه شو؟ نو جواب دادی چې: ۱-يا خو د حضرت بلال بن عبد الله دا د تکلم انداز غير مناسب انداز وو، ځکه چې عبد الله بن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حديث بيان کړو چې په هغې کې "لاتمنعوا" وو او بلال بن عبد الله وفرمايل چې "والله لنمنعهن" نو د لته په ظاهر کې تعارض راغلو که بلال بن عبد الله په مناسب انداز باندې داسې ويلی وی چې: پلاره! هلته حالات او د حالاتو تقاضی بدله وه او اوس حالات او د حالاتو تقاضی بل قسم ده نو عبد الله بن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به دا تهديد نه وی ورکړی.

**حافظ ابن حجر رحمه الله همدا خبره کوي او ليکي چې:**

وَكَأَنَّهُ قَالَ ذٰلِكَ لَمَّا رَأَى مِنْ فَسَادِ بَعْضِ النِّسَآءِ فِي ذٰلِكَ الْوَقْتِ وَحَمَلَتْهُ عَلٰى ذٰلِكَ الْغَيْرَةُ وَإِنَّمَا أَنْكَرَ عَلَيْهِ ابْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ لِتَصْرِيحِهِ بِمُخَالَفَةِ الْحَدِيثِ وَإِلَّا فَلَوْ قَالَ مَثَلًا: إِنَّ الزَّمَانَ قَدْ تَغَيَّرَ وَإِنَّ بَعْضَهُنَّ رُبَّمَا ظَهَرَ مِنْهُ قَصْدُ الْمَسْجِدِ وَإِضْمَارُ غَيْرِهِ لَكَانَ يَظْهَرُ أَنْ لَا يُنْكِرَ عَلَيْهِ. (فتح الباری ج ۲ص ۴۴۳)

بلال بن عبد الله د ښځو د فساد د ليدلو له وجې د غيرت په تقاضی دا خبره وکړه او عبد الله بن عمر رضی الله عنهما په غوصه شو چې حضرت بلال بن عبد الله په مخالفت د حديث باندې تصريح کړه او که دا تصريح يې نه وی کړې، بلکې داسې يې ويلي وی چې په په (اهل) د زمانې کې تغير راغلی دی او دا هم ممکنه ده چې ظاهرا د مسجد په نوم باندې ووزي او نيت يې بل شی وي.

۲-او يا د غوصې وجه دا وه چې په حديث کې د استيذان ذکر دی چې بيا خاوند ته د اجازت د ورکولو او د نه ورکولو د واړو اختيار دی، نو اوس که يو اڅې يو شق متعين کړی شي نو بيا به سد د باب الاستيذان راشي.

**دوهم شرط: الليل**

دوهم شرط دا دی چې ښځې په تياره کې عيدگاه او يا مسجد ته تللی شي په رڼا کې به نه ځي.

عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «إِذَا اسْتَأْذَنَكُمْ نِسَآؤُكُمْ بِاللَّيْلِ إِلَى الْمَسْجِدِ فَأْذَنُوا لَهُنَّ». (صحيح بخاری ج ۱ص ۱۲۳)

ترجمه: حضرت ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ دنبی کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څخه روایت کوي هغه فرمايي چې: که دشپې ورځخه زنانو و مسجد ته دتللو اجازت وغوښتلو نو اجازه ورکړئ.

**فایده:** په دې حدیث کې صراحةً دشپې اشتراط ذکر شوی دی امام بخاری رحمه الله ددې حدیث لپاره باب قائم کړی دی په نوم د (باب هل على من لايشهد الجمعة غسل من النساء الخ) امام بخاری رحمه الله دې خبرې ته اشاره کوي چې په زنانه وو باندې دجمعې لمونځ فرض نه دی او چې کله وربانديې دجمعې لمونځ فرض نه دی ، نو دجمعې غسل هم وربانديې نشته ، امام بخاری رحمه الله په ښځو دجمعې دعدم فرضیت لپاره په دلیل کې دغه مذکور حدیث پیش کړی دی، چې پدې حدیث کې راغلي دي چې مسجد او عیدګاه ته په شپه کې دښځو دوتلو اجازت دی او د ورځې نشته او دجمعې لمونځ د ورځې لمونځ دی ، نوکله چې ښځه د ورځې نشي وتلی ، نو دجمعې لمونځ هم وربانديې نه دی فرض، ددې څخه معلومه شوه چې دامام بخاری رحمه الله په نیز باید دښځې مسجد ته دتللو لپاره ، شپه شرط ده لکن دا شرط د اولویت دی یعني اولی دا ده چې زنانه دشپې مسجد ته لاړې شي د ورځې دې نه ځي ، دصحیح بخاری شارح علامه کرماني رحمه الله فرمايي :

فيه دليل أن النهار بخلاف الليل لنصه على الليل وحديث لاتمنعوا اماء الله مساجد الله محمول على الليل ، ايضا (صحيح البخارى مع شرح كرمانى ج ٥صــ ٢٥٧).

پدې حدیث کې ددې خبرې دلیل دی چې ښځې چې مسجد او یا عیدګاه ته ځي نو ددوي په حق کې دشپې او د ورځې حکم مختلف دی ، ځکه چې په دې حدیث په (لیل) بانديې تصریح شوی ده او د (لاتمنعوا اماء الله مساجد الله) مطلق حدیث هم په همدې مقید صورت ورحمل دی ، یعنې په شپه کې ښځې دمساجدو څخه مه منع کوئ .

امام نووي رحمه الله فرمايي چې: وَهٰذَا النَّهْيُ عَنْ مَنْعِهِنَّ مِنَ الْخُرُوجِ مَحْمُولٌ عَلٰى كَرَاهَةِ التَّنْزِيهِ. ( شرح صحيح مسلم ج ١صــ ١٨٣) نو د ورځې دښځو وتل خلاف الأولی دی او دشرائطو دحفاظت با وجود دشپې دوتلو څخه منع کول خلاف الأولی دي .

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې: په کوم حدیث چې مطلق دی یعنې د اللیل قید پکې نشته نو هغه به هم په قرینه دمقید حدیث بانديې مقید کوو.

وَالَّذِي يَظْهَرُ أَنَّهُ جَنَحَ إِلٰى أَنَّ هٰذَا الْمُطْلَقَ يحمل عَلٰى ذٰلِكَ الْمُقَيَّدِ (فتح البارى، ج ٢صــ ٢٨٧)

ظاهره دا ده چې د امام بخاری میلان دې طرفته دی چې مطلق حدیث هم په مقید و باندې ورحمل کړی شي، ځکه چې امام بخاري رَحِمَهُ اللّٰهُ په باب کې د (اللیل) قید ذکر کړی دی، باب خروج النساء الى المساجد بالليل والغلس، او بیا لاندې د عبد الله بن عمر رضی الله عنهما هغه حدیث ذکر کوي چې په هغې کې د (اللیل) قید نشته، نو معلومیږي چې د امام بخاری رحمه الله په نیز باندې مطلق په مقید باندې ورحمل دی، همدارنګه علامه عینی رحمه الله هم فرمایي چې:

هذا الحديث مطلق والذى قبله مقيد فكأن البخارى حمل هذا المطلق على ذلك المقيد. دا حدیث مطلق دی او ددې څخه مخکښې حدیث مقید دی، نو امام بخاری رحمه الله دا مطلق په مقید باندې ورحمل کړی دی، لکن د اللیل قید هم شرط د اولویت دی شرط د وجوب نه دی یعنې د ورځې دې نه ځي او که لاړې نو خلاف الأولى دی.

## دریم شرط پرده:

عن عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ ﷺ، أَنَّ عَائِشَةَ ﷺ أَخْبَرَتْهُ، قَالَتْ: «كُنَّ نِسَاءُ الْمُؤْمِنَاتِ يَشْهَدْنَ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَاةَ الْفَجْرِ مُتَلَفِّعَاتٍ بِمُرُوطِهِنَّ، ثُمَّ يَنْقَلِبْنَ إِلَى بُيُوتِهِنَّ حِينَ يَقْضِينَ الصَّلَاةَ، لَا يَعْرِفُهُنَّ أَحَدٌ مِنَ الْغَلَسِ (صحيح البخارى ج١صـ ٨٢، صحيح مسلم ج١صـ ٢٣٠)

د مسلمانانو ښځې به په داسې حالت کې د نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره په جماعت کې شریکیدلې چې په ټکریو کې به تاوې، بیا به د مانځه څخه وروسته کورونو ته تللې چې هیڅ چا به د تیارې له وجې څخه نه پیژندلې.

**وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ قَالَ: «كُنَّ النِّسَاءُ يُصَلِّينَ مَعَ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - الْغَدَاةَ ثُمَّ يَخْرُجْنَ مُتَلَفِّعَاتٍ بِمُرُوطِهِنَّ»** (مجمع الزوائد ج٢صـ صـ ٣٣)

حضرت ابوهريره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ څخه روایت دی هغه فرمایي چې وې ښځې چې د سهار لمونځ به یې کولو د رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره او بیا به ووتلې چې پیچلې به وې په خپلو ټیکریو کې.

یوې ښځې د رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څخه پوښتنه وکړه چې په مونږ کې چې د چا سره غټ څادر نه وي او عیدګاه ته لاړه نشي، نو ایا څه ګناه ورباندې شته؟ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمایل چې: (لتلبسها صاحبتها من جلبابها) ددې بله دوسته دی ورته غټ څادر ور واغوندي (صحيح البخارى ج ١صـ ٤٦، باب شهود الحائض العيدين وصـ ١٣٤، باب اذا لم يكن لها جلبا فى العيد)

ددې دوه صورته دي یو دا چې ددې بله دوسته ورته عاریةً خپل څادر ورکړي او دوهم صورت دادی چې دوه یو څادر واغوندي، ددې روایاتو څخه معلومه شوه چې عیدګاه او یا مسجد ته دښځې دتللو لپاره پرده دومره ضروري ده چې دکومې ښځې سره چې څادر نه وي نو دبلې دوستې څخه دې یې عاریةً واخلي.

## څلورم شرط: خوشبويي نه لګول

مسجد او یا عیدګاه ته دښځې د وتلو لپاره څلورم شرط دادی چې خوشبويي به نه لګوي، اګر چې دبدن څخه یې بد بويي روانه وي.

عَنْ زَيْنَبَ ﵂، امْرَأَةِ عَبْدِ اللهِ ﵁، قَالَتْ: قَالَ لَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا شَهِدَتْ إِحْدَاكُنَّ الْمَسْجِدَ فَلَا تَمَسَّ طِيبًا» (مسلم ج ۱ صـ ۱۸۳، مصنف ابن ابی شیبه ج ٤ صـ ۲۱۷)

حضرت زینب رضی الله عنها فرمايي چې مونږ ته رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې کله حاضره شي یوه دستاسو مسجد ته نو خوشبويي دې نه لګوي.

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ﵁ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَيُّمَا امْرَأَةٍ أَصَابَتْ بَخُورًا فَلَا تَشْهَدْ مَعَنَا الْعِشَاءَ الْآخِرَةَ». (مسلم ج ۱ صـ ۱۸۳)

رسول الله ﷺ وفرمايل چې کومې ښځې چې خوشبويي لګولې وي نو دماخوستن لمونځ ته دې نه راځي.

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ﵁، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «لَا تَمْنَعُوا إِمَاءَ اللهِ مَسَاجِدَ اللهِ، وَلَكِنْ لِيَخْرُجْنَ وَهُنَّ تَفِلَاتٌ» (مسند احمد ج ۱۹ صـ ۱۳۸) الشیخ احمد محمد شاکر فرمايي چې اسناده صحیح (سنن ابی داؤد ج ۱ صـ ۸۴. اسناده حسن موارد الظمئان صـ ۱۰۲)

ترجمه: دحضرت ابی هریرة ﵁ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې مه منعه کوئ مینځې دالله تعالی دکورونو دالله تعالی څخه. لکن وځي دې په داسې حال کې چې خوشبويي نه وي لګولې.

عَنِ ابْنِ عُمَرَ ﵄ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «ائْذَنُوا لِلنِّسَاءِ بِاللَّيْلِ إِلَى الْمَسَاجِدِ، تَفِلَاتٍ» (مسند احمد ج ۸ ص، ۸۲، وقال الشیخ احمد محمد شاکر اسناده صحیح)

ترجمه: مسجد ته دوتلو لپاره په داسې حال کې ښځو ته اجازت ورکوئ چې خوشبويي یې نه وي لګولې

عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الْجُهَنِيِّ ﷺ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: «لَا تَمْنَعُوا إِمَاءَ اللّٰهِ الْمَسَاجِدَ وَلْيَخْرُجْنَ تَفِلَاتٍ». (رواه احمد والبزار والطبرانی فی الکبیر واسناده حسن مجمع الزوائد ج ۲صـ ۱۵۲ موارد الظمئان)

ترجمه: دالله تعالی بندګانې مساجدو ته د وتلو څخه مه منع کوئ او خامخا دې بې خوشبويي ووزي.

عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: لَا تَمْنَعُوا إِمَاءَ اللّٰهِ مَسَاجِدَ اللّٰهِ وَلْيَخْرُجْنَ تَفِلَاتٍ.

قَالَتْ عَائِشَةُ ﷺ: وَلَوْ رَأَى حَالَهُنَّ الْيَوْمَ مَنَعَهُنَّ. (جامع المسانيد السنن ج ۳۷، صـ ۳٦٦)

ترجمه: حضرت عايشه رضی الله عنه دنبی کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څخه روايت کوي هغه فرمايي چې مه منعه کوئ بندګانې دالله تعالی دمساجدو څخه او وځي دې بدبويه ،حضرت عايشه رضی الله عنها فرمايي چې کچيرته نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اوس ليدلی وای نو مساجدو ته د وتلو څخه به يې منعه کړې وې.

وَمُوسَى بْنُ يَسَارٍ - رضی الله عنه - قَالَ: مَرَّتْ بِأَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ امْرَأَةٌ وَرِيحُهَا تَعْصِفُ، فَقَالَ لَهَا: إِلَى أَيْنَ تُرِيدِينَ يَا أَمَةَ الْجَبَّارِ؟ قَالَتْ: إِلَى الْمَسْجِدِ قَالَ: تَطَيَّبْتِ؟ قَالَتْ: نَعَمْ، قَالَ: فَارْجِعِي فَاغْتَسِلِي، فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "لَا يَقْبَلُ اللّٰهُ مِنَ امْرَأَةٍ صَلَاةً خَرَجَتْ إِلَى الْمَسْجِدِ وَرِيحُهَا تَعْصِفُ حَتَّى تَرْجِعَ فَتَغْتَسِلَ" (رواه ابن خزيمة فی صحيحه، الترغيب الترهيب ج ۳صـ ۸۸، ابو داؤد ج ۲صـ ۲۱۹، باب فی طيب المرأة للخروج ،ابن ماجه صـ ۲۸۸، باب فتنة النساء)

يوه ښځه دابو هريرة رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ څنګ ته تيريدله او خوشبويي ترينه خوزه وره وه ابو هريره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ورته وفرمايل چې ای دجبار مينځې کوم طرفته ځې؟ هغې ورته وويل چې مسجد ته ځم ، ابو هريره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ورته وفرمايل چې بيرته وګرزه او غسل وکړه ما د رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څخه اوريدلي دي چې تر هغې پورې دهغې ښځې لمونځ نه قبليږي ترکومې چې خوشبويي ترې روانه وي تر څو يې چې ونه وينځي

عَنِ الْأَشْعَرِيِّ ﷺ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَيُّمَا امْرَأَةٍ اسْتَعْطَرَتْ فَمَرَّتْ عَلَى قَوْمٍ لِيَجِدُوا مِنْ رِيحِهَا فَهِيَ زَانِيَةٌ» ( سنن نسائی ، باب ما يكره للنساء من الطيب ج ۲صـ ۲۸۲)

ترجمه: دحضرت اشعری رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ څخه روايت دی چې نبی کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي هره ښځه چې خوشبويي ولګوي او په يو قوم تيره شي او هغه قوم ددې خوشبويي محسوسه کړي نو دا ښځه زانيه ده يعنې زناکاره ده.

تهانوي رحمه الله په حاشیه نمبر ۲ کې لیکلي دي چې دې ښځې ته زانیه ځکه وویل شوه چې : لانها قد هجت شهوة الرجال بعطرها وحملتهم على النظر اليها وشوشت قلبه فاذا هى سبب زناه بالعين فتكون هى ايضا زانية الخ

دې ښځې په خپلې خوشبويې باندې دنارينوو شهوت راوپارولو او هغه يې ديته تيار کړل چې دې ښځې ته وګوري او دهغوي زړونه يې مشوش کړل، نو دا ښځه دنارينوو دسترګو دزنا سبب شوه نو دا هم زناکاره شوه.

دعطرو لګولو ځخه وروسته بازار او مسجد ته تلل يو برابر دي، بلکې مسجد ته تلل يې زياته ګناه ده، ځکه چې په دې وخت کې دا ښځه دنورو مونځ کونکو په زړونو کې دوسوسو د أچولو سبب ګرځي.

يو ورځ حضرت عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپله بي بي په داسې حالت کې وليدله چې خوشبويي يې لګولې وه، نو عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته قسم ورکړو او ورته وې فرمايل چې نن شپه بهر ته مه وزه (مصنف ابن ابى شيبه باب من كره للمرأة الطيب اذا خرجت)

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا خَرَجَتِ الْمَرْأَةُ إِلَى الْمَسْجِدِ، فَلْتَغْتَسِلْ مِنَ الطِّيبِ، كَمَا تَغْتَسِلُ مِنَ الْجَنَابَةِ (نسائى ص ۲۸۲، باب اغتسال المرأة من الطيب)

ترجمه: دحضرت ابى هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ځخه روايت دى چې نبى کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي کومه زنانه چې دکور ځخه مسجد ته د وتلو اراده لري او خوشبو يي يې لګولې وي نو داسې غسل دې وکړي نو لکه ځرنګه چې غسل کوي دجنابت ځخه.

امام سندهى رحمه الله دلته په حاشيه کې ليکي چې دعطرو له وجې دا غسل دجنابت دغسل سره مشابه کړى شو او دعطرو مړل دزنا سره مشابه کړى شو، پدې کې دعطرو داستعمال قباحت ته اشاره ده امام نسائى رحمه الله په ج ۲ص ۲۸۳) کې ددې شرط لپاره باب لګولى دى په نوم د (النهى للمرأة أن تشهد لصلوة ) اذا اصابت من البخور او ددې باب لاندې يې اوه (۷) احاديث ذکر کړي دي.

## ښځم شرط: ترک الزينة

امام ترمذي ددې شرط لپاره باب قائم کړى دى په نوم د: (باب ماجاء فى كراهية خروج النساء فى الزينة)

درسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خادمه حضرت ميمونة بنت سعد رضى الله عنها فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې:

مَثَلُ الرَّافِلَةِ فِي الزِّينَةِ فِي غَيْرِ أَهْلِهَا كَمَثَلِ ظُلْمَةِ يَوْمِ الْقِيَامَةِ لَا نُورَ لَهَا.

دخپل کور ځخه بهر زیب او زینت کونکې او ناز او نخره کونکې ښځه به داسې وي لکه دقیامت ورځې تیاره چې رڼا نه لري.

عَنْ عَائِشَةَ رضي الله عنها، قَالَتْ: بَيْنَمَا رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - جَالِسٌ فِي الْمَسْجِدِ، إِذْ دَخَلَتْ امْرَأَةٌ مِنْ مُزَيْنَةَ تَرْفُلُ فِي زِينَةٍ لَهَا فِي الْمَسْجِدِ، فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "يَا أَيُّهَا النَّاسُ! انْهَوْا نِسَاءَكُمْ عَنْ لُبْسِ الزِّينَةِ وَالتَّبَخْتُرِ فِي الْمَسْجِدِ، فَإِنَّ بَنِي إِسْرَائِيلَ لَمْ يُلْعَنُوا حَتَّى لَبِسَ نِسَاؤُهُمُ الزِّينَةَ وَتَبَخْتَرْنَ فِي الْمَسَاجِدِ" (سنن ابن ماجه صـ ۲۸۸ باب فتنة النساء)

حضرت عایشه رضی الله عنها فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم په مسجد کې ناست وو چې دمزنیه دقبیلې یوه زنانه د زیب او زینت ناز او نرو سره مسجد ته راغله ، رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې ای خلکو ! چې خپلې ښځې ددې ځخه منع کړئ چې دزیب او زینت ناز او نخرو سره مسجد ته راشي ، ځکه چې بني اسرائیل تر هغه پورې نه وو ملعون شوي تر ځو یې چې ښځو دزینت جامې واغوستلې او په مساجدو کې یې ناز او نخرې وکړې.

وَالْقَوَاعِدُ مِنَ النِّسَاءِ الَّتِي لَا يَرْجُونَ نِكَاحًا فَلَيْسَ عَلَيْهِنَّ جُنَاحٌ أَنْ يَضَعْنَ ثِيَابَهُنَّ غَيْرَ مُتَبَرِّجَاتٍ بِزِينَةٍ وَأَنْ يَسْتَعْفِفْنَ خَيْرٌ لَهُنَّ وَاللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ.

هغه زړې ښځې چې د ډیر زوړ والي له وجې دحیض او داولاد ځخه وتلې وي که هغوي خپل غټ ځادر کیږدي نو ګناه ورباندې نشته خو په دې شرط چې خپل زیب او زینت ښکاره نه کړي او که دغټ ځادر دکوزولو ځخه ځان وساتي نو دا ورته بهتره ده.

تفسیر مظهري او خازن لیکي چې دلته دزړو ښځو ځخه دومره زړې ښځې مرادې دي چې دهغوي دلیدلو په وجه دکشش په ځای په زړه کې نفرت پیدا کیږي، نو که داسې ښځې دټکري دپاسه اغوستل شوی غټ ځادر کوزکړي نو پروانه لري، دټکري کوزول ورته حرام دي او د غټ ځادر کوزول هم په هغه وخت کې ورته روادي چې دزیب او دزینت اظهار نه کوي ، که دزوړوالي سره سره پکې کشش وو او یا یې دزیب او دزینت اظهار کولو نو بیا ددوي حکم هم دځوانو ښځو په شان دی ، که کشش پکې نه وو او دزیب او دزینت اظهار یې هم نه کولو نو بیا اګر چې دغټ ځادر کوزول ورته روا دي لکن بیا هم بهتره دا

ددې کوزیبې نکړي، نو چې کله بهر ته د وتلو په صورت کې ورته زیب او زینت نه دی جایز نو مسجد ته وتل ورته څرنګه جایز شو؟ په مسجد کې خو هجوم ډیر وي.

ورُوِيَ عَنِ ابْنِ الْمُبَارَكِ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّهُ قَالَ: أَكْرَهُ الْيَوْمَ الْخُرُوجَ لِلنِّسَآءِ فِي الْعِيدَيْنِ، فَإِنْ أَبَتِ الْمَرْأَةُ إِلاَّ أَنْ تَخْرُجَ فَلْيَأْذَنْ لَهَا زَوْجُهَا أَنْ تَخْرُجَ فِي أَطْمَارِهَا وَلاَ تَتَزَيَّنْ، فَإِنْ أَبَتْ أَنْ تَخْرُجَ كَذٰلِكَ فَلِلزَّوْجِ أَنْ يَمْنَعَهَا عَنِ الْخُرُوجِ.

(ترمذی ج ۱ صـ ۱۲۰)

عبدالله بن المبارک فرمایي چې زه پدې زمانه کې په اخترونو کې دښځو وتل مکروه ګڼم او که ښځه په وتلو باندې ټینګار کوي نو خاوند دې یې ورته په دې شرط باندې اجازه ورکړي چې په سولیدلو زړو جامو کې دې ووځي او زینت به نه کوي او که ښځې دا شرط نه منلو نو خاوند دې منع کړي.

## شپږم شرط: عدم الاختلاط بالرجال

مسجد او عیدګاه ته دښځو دتللو لپاره یو شرط عدم اختلاط النساء بالرجال دی او دعدم اختلاط لپاره مختلف تدابیر دي:

الف: په لاره کې د تللو په وخت کې دلارې یوې غاړې ته تلل، مقصد دا چې ښځه دسړي سره ونه لګیږي.

عَنْ حَمْزَةَ بْنِ أَبِي أُسَيْدٍ الْأَنْصَارِيِّ رضی الله عنه، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: وَهُوَ خَارِجٌ مِنَ الْمَسْجِدِ فَاخْتَلَطَ الرِّجَالُ مَعَ النِّسَآءِ فِي الطَّرِيقِ، فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلنِّسَآءِ: «اسْتَأْخِرْنَ، فَإِنَّهُ لَيْسَ لَكُنَّ أَنْ تَحْقُقْنَ الطَّرِيقَ عَلَيْكُنَّ بِحَافَّاتِ الطَّرِيقِ» فَكَانَتِ الْمَرْأَةُ تَلْتَصِقُ بِالْجِدَارِ حَتّٰى إِنَّ ثَوْبَهَا لَيَتَعَلَّقُ بِالْجِدَارِ مِنْ لُصُوقِهَا بِهِ (سنن ابی داؤد ج ۲ صـ ۳۵۸ باب فی مشی النساء فی الطریق)

حضرت حمزه بن ابی اسید الانصاری دخپل پلار څخه روایت کوي چې ما درسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څخه واوریدل چې دی مبارک دمسجد څخه بهر وو او په لاره کې سړي او ښځې سره خلط شول نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ښځو ته وفرمایل چې وروسته شئ ځکه تاسو ته حق نشته چې دلارې په منځ کې لاړې شئ تاسې باید دلارې په غاړې کې لاړې شئ راوي فرمایي چې ددې څخه وروسته به ښځې چسپیدلې د دیوال سره تر دې چې جامې یې نښتلې د دیوال سره د وجې دچسپیدلو نه.

عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا: «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، نَهَى أَنْ يَمْشِيَ يَعْنِي الرَّجُلَ بَيْنَ الْمَرْأَتَيْنِ»(ابوداؤد ج ۲صـ ۳۵۹)

حضرت ابن عمر رضی الله عنهم دنبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څخه روایت کوي چې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منع کړې ده له تیریدلو دسړي څخه په مابین ددوه ښځو کې.

**ب:باب النساء**

دسړیو اودښځو لپاره دجدا جدا دروازې مقررول.

امام ابو داؤد په سنن ابی داؤد ج ۱صـ ۶۶، (باب اعتزال النساء فی المساجدعن ا لرجال) کې دا حدیث لیکلی دی چې:

بَابٌ فِي اعْتِزَالِ النِّسَاءِ فِي الْمَسَاجِدِ عَنِ الرِّجَالِ) این حدیث شریف را نقل کرده است: عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَوْ تَرَكْنَا هَذَا الْبَابَ لِلنِّسَاءِ»، قَالَ نَافِعٌ رَحِمَهُ اللهُ: فَلَمْ يَدْخُلْ مِنْهُ ابْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، حَتَّى مَاتَ

ترجمه: حضرت ابن عمر رضی الله عنهما فرمایي چې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایي کاشکې چې دا دروازه مو ښځو ته پریښې وی، نو حضرت نافع رَحِمَهُ اللهُ فرمایي چې داخل نشو له دې دروازې څخه ابن عمر رضی الله عنهما تر وفات پورې.

امام ابوداؤد مخکې ځي بل باب قائم کوي په نوم د(باب التشدید فی ذلک ) ددې لاندې یې دعبد الله بن عمر رضی الله عنهما دا حدیث ذکر کړی دی چې:

عَنْ نَافِعٍ رَحِمَهُ اللهُ، أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، «كَانَ يَنْهَى أَنْ يُدْخَلَ مِنْ بَابِ النِّسَاءِ»

ترجمه: حضرت نافع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې بیشکه عمر ابن ا لخطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به خلک ددې څخه منع کول چې دښځو ددروازې له لارې مسجد ته داخلې شي.

**ج: دصفونو ترتیب:**

که په یو مانځه کې سړي، ښځې او ماشومان وي نو په اول صف کې به سړي دریږي، په دوهم صف کې به ماشومان دریږي او وروسته به زنانه دریږي، حضرت ابو مالک اشعری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپل ددې لپاره راجمع کړو چې درسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په طریقه باندې لمونځ ورته وښایي، نو په همدې ترتیب سره

يې صفونه برابر كړل (فصف ا لرجال فى أدنى الصف ، وصف الولدان خلفهم، وصف النساء خلف الولدان ثم أقام الصلوة.

**د: دښځو لپاره بهترين صف وروستنى صف دى :**

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «خَيْرُ صُفُوفِ الرِّجَالِ أَوَّلُهَا وَشَرُّهَا آخِرُهَا، وَخَيْرُ صُفُوفِ النِّسَاءِ آخِرُهَا وَشَرُّهَا أَوَّلُهَا (سنن ابى داؤد صـ ٩٩) باب صف النساء والتأخر عن الصف الأول.

رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي چې دنارينه وو لپاره بهتر صف اول صف دى او بد تر صف اخر صف دى او دښځو لپاره بهتر صف، اخر صف دى او بدتر صف اول صف دى.

په مصنف ابن ابى شيبه كې باب دى په نوم د (باب من قال خير صفوف النساء آخرها) ددې باب لاندې يې نهه احاديث ليكلي دي چې ددې ټولو خلاصه داده چې دښځو لپاره بهترين صف وروستنى صف دى او بدترين صف ورته مخكنى صف دى، يعنې كه دښځو صفونه ډير وو نو بيا دښځو په صفونو كې دثواب په اعتبار بهترين صف وروستنى صف دى او دثواب په اعتبار سره كمتر صف مخكنى صف دى.

**امام نووي رحمه الله ددې حكمت داسې ذكر كوي چې:**

وَإِنَّمَا فَضَلَ آخِرَ صُفُوفِ النِّسَاءِ الْحَاضِرَاتِ مَعَ الرِّجَالِ لِبُعْدِهِنَّ مِنْ مُخَالَطَةِ الرِّجَالِ وَرُؤْيَتِهِمْ وَتَعَلُّقِ الْقَلْبِ بِهِمْ عِنْدَ رُؤْيَةِ حَرَكَاتِهِمْ وَسَمَاعِ كَلَامِهِمْ. (مسلم مع شرح النووي ج ١ صـ ١٨٢)

په مسجد كې هغو ښځو ته چې دسړيو سره په جماعت كې شريكې وي د وروستني صف بهتري له دې وجې څخه ده چې هغه په دې وخت كې دنارينه وو داختلاط څخه لرې وي، همدارنگه دسړيو اوددوي دحركاتو او ددوي د اوازونو د اوريدلو څخه دلرې والي په وجه ددې ښځو اطمنان قلبى وي.

دمصنف ابن ابى شيبه په مذكور باب كې دعبد الله بن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يو بل احتياطى تدبير هم ذكر شوى دى او هغه دا چې د ښځو په صفو نو كې به يې زړې ښځې مخكې درولې او ځوانې ښځې به يې شاته درولې : أَنَّ ابْنَ مَسْعُودٍ رضي الله عنه: «كَانَ يُقَدِّمُ الْعَجَائِزَ فِي الصَّفِّ الْأَوَّلِ مِنْ صُفُوفِ النِّسَاءِ، وَيُؤَخِّرُ الشَّوَابَّ إِلَى الصَّفِّ الْمُؤَخَّرِ».

يېشكه چې حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به مخكې كولې زړې ښځې اول صف ته دصفونو دښځو څخه او وروسته كولې به يې ځوانې ښځې اخري صف ته.

**هـ: دجماعت څخه وروسته اول دښځو وتل بیا دامام وتل او بیا دسړیو وتل:**

عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رضي الله عنها: «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا سَلَّمَ يَمْكُثُ فِي مَكَانِهِ يَسِيرًا» قَالَ ابْنُ شِهَابٍ رحمه الله: «فَنُرَى وَاللهُ أَعْلَمُ لِكَيْ يَنْفُذَ مَنْ يَنْصَرِفُ مِنَ النِّسَاءِ» (صحيح البخاری ج ۱ صـ ۱۱۷)

ترجمه: حضرت ام سلمة رضی الله عنها دنبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څخه روایت کوي کله به چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سلام وګرزولو نو یو څه وخت به یې انتظار کولو ابن شهاب فرمایي چې زمونږ خیال دادی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ددې لپاره انتظار کولو چې دنارینه وو څخه مخکې زنانه ووځي.

په دې حدیث کې اجمال دی دأم سلمی رضی الله عنها په یو بل حدیث کې تفصیل دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به دومره کیناستلو ترڅو چې ښځې به کورونو ته ورسیدلې:

قال ابن شهاب رحمه الله حَدَّثَتْنِي هِنْدُ بِنْتُ الحَارِثِ الفِرَاسِيَّةُ رحمها الله تعالی، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رضي الله عنها زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَكَانَتْ مِنْ صَوَاحِبَاتِهَا - قَالَتْ: «كَانَ يُسَلِّمُ، فَيَنْصَرِفُ النِّسَاءُ، فَيَدْخُلْنَ بُيُوتَهُنَّ مِنْ قَبْلِ أَنْ يَنْصَرِفَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ» (صحيح البخاری ج ۱ صـ ۱۱۷)

ترجمه: ابن شهاب فرمایي چې ماته هند بنت حارث فراسیه دام سلمی رضی الله عنها څخه حدیث بیان کړی دی (او دا هند دحضرت ام سلمی ددوستانو ښځو څخه وه) حضرت ام سلمه رضی الله عنها فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به سلام وګرزولو نو ښځې به فوراً روانې شوې حتی چې دنبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دروانیدلو څخه مخکې مخکې به کورونو ته ورسیدلې.

حضرت ام سلمة رضی الله پخپل یو بل حدیث کې فرمایي چې:

«أَنَّ النِّسَاءَ فِي عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُنَّ إِذَا سَلَّمْنَ مِنَ المَكْتُوبَةِ، قُمْنَ وَثَبَتَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَنْ صَلَّى مِنَ الرِّجَالِ مَا شَاءَ اللهُ، فَإِذَا قَامَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَامَ الرِّجَالُ».

درسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې به چې ښځو لمونځ وکړو نو فوراً به کورونو ته لاړې او رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او نور لمونځ کونکي سړي به هغومره وخت څومره چې دالله تعالی اراده وه ناست وو، پس کله به چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پاڅیدلو نو بیا به لمونځ کونکي نارینه هم پاڅیدل.

**تشریح:** ددې حدیثونو څخه داسې ترتیب را معلوم شو چې دلمانځه څخه تر فارغیدلو وروسته به اول ښځې دمسجد څخه وتلې بیا به رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کورته تللو، وروسته نور لمونځ کونکي تلل او دا صرف ددې لپاره چې دسړیو او دښځو اختلاط پاتې نشي، همدې ته ورته حدیث په صحیح البخاري ج ۱ صـ ۱۲۰) کې هم شته او امام ابوداؤد دام سلمي رضی الله عنها حدیث ته باب لګولی دی په

نوم د (باب انصراف النساء قبل الرجال من الصلوة) په فقه حنفي کې يو ه مشهوره مسئله دمحاذات ده چې که ښځه دسړي سره په څنګ کې ودريدله نو دسړي لمونځ ورسره فاسديږي او دا ځکه چې په حديث کې نارينه وو ته حکم شوی دی چې ښځې په وروستني صف کې ودروي، نو کله چې تقصير سړي وکړو له دې وجې لمونځ هم دسړي باطل شو، ددې په خلاف دلامذهبو هيرو نذيرحسين ليکي چې دښځو او دسړيو اختلاط مسجد ته دښځو دتللو څخه مانع نشي کيدلی، ځکه چې دښځو او دسړيو اختلاط څه نوې خبره نه ده، بلکې د اختلاط سلسلهٔ د أزل څخه را روانه ده او تر أبده پورې به جاري وي، د اختلاط له وجې دشريعت حکم نشي بدليدلی (فتاوی علماء حديث ج ۴ ص ۱۷۶)

## اووم شرط: اواز نه أچتول

دښځو په اواز او په انداز کې الله تعالی يو خاص کشش ايښی دی، له دې وجې دښځې اواز هم دعورت په حکم کې دی ، لکه څرنګه چې ښځو زيب او زينت دفتنو سبب دی نو همدارنګه ښځې دې داجنبي سړي سره په نرمه او محبتي لهجه باندې خبرې نه کوي پس طمع به وکړي هغه سړی چې په زړه کې يې (دخواهش پرستۍ) مرض وي ښځينه اوازهم دفتنو سبب دی الله تعالی فرمايي چې: فَلَا تَخْضَعْنَ بِالْقَوْلِ فَيَطْمَعَ الَّذِي فِي قَلْبِهِ مَرَضٌ

همدارنګه علامه جذري رَحِمَهُ اللَّهُ يو حديث ليکلی دی چې: «نَهَى رسول الله ﷺ أَنْ يَخْضَعَ الرَّجُل لِغَيْرِامرأتِهِ» أَيْ يَلِينُ لَهَا فِي الْقَوْلِ بِمَا يُطْمِعُهَا مِنْهُ (نهايه ج ۲ص ۱۰۹)

رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نارينه ددې خبرې څخه منع کړي دي چې دخپلې منکوحې څخه بغير دپردې ښځې سره په زړه راښکونکي لهجه باندې خبرې وکړي چې دهغې په وجه دې سړي څخه دښځې أميد پيداشي

په نهايه کې يې يو ه واقعه ليکلې ده چې: يوه ورځ يو سړی په لاره روان وو، يو سړی او ښځه يې وليدل چې پخپل مينځ کې په نرم او دمينې په انداز باندې خبرې کوي دا تيريدونکی سړی په غوصه شو سړی يې په سر ووهلو تر دې پورې چې سر يې زخمي شو کله چې معامله حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته راغله حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وهونکی سړی ملامت نکړو.

دحضرت ابو هريرة رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ څخه روايت دی چې: أن رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نهى أن يتمطى الرجل في الصلوة او عند النساء الا عند إمرأته.

ترجمه: بيشکه حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منعه فرمايلې ده دمټ دښکاره کولو دسړي څخه په لمانځه کې او يا دزنانوو په مخکې مګر که دخپلې ښځې په مخکې يې ښکاره کوي باک نشته.

ددې احاديثو مطابق نارينه وو او زنانه وو دواړو ته حکم دی چې دوي دې يو د بل په مخ کې هيڅکله داسې حرکت او اواز نه کوي چې دهغې له وجې ديو بل ته کشش پيدا کيږي، حتی چې که امام سهوه شي، نو که سړی فتح ورکوي سبحان الله به وايي او که ښځه فتح ورکوي نو يو لاس به په بل لاس باندې وهي امام ابو داؤد باب قائم کړی دی، په نوم د (التصفيق فی الصلوة) ددې باب لاندې يې ددې مضمون څلور حديثونه رانقل کړي دي، لدې وجې مسجد او عيدګاه ته دښځو دتللو لپاره يو شرط دا دی چې په اوچت اواز به نه غږيږي.

## اتم شرط چې دفتنې او دفساد ويره به نه وي

که معاشره او ما حول داسې وو چې دمذکورو شرائطو او تخفظاتو سره سره بيا هم مسجد او عيدګاه ته دښځو تلل دفتنې او دفساد سبب وو، نو بيا هم مسجد او عيدګاه ته تلل ورته ناجايز دي، لهذا دښځې لپاره به مسجد او عيدګاه ته تلل په هغه صورت کې جايز وي چې په تللو او راتللو کې دفتنې او دفساد خوف او خطر نه وي، په ابن ماجه کې يې باب قائم کړی دی په نوم د (باب فتنة ا لنساء) ددې لاندې يې ددې مضمون پنځه احاديث رانقل کړي دي دحضرت اسامه بن زيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه روايت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي چې:

ما أدع بعدی فتنة أضر علی الرجال من ا لنساء (ترمذی باب ما جاء فی تحذير فتنة النساء بخاری ج ۱صـ ۷۶۳، مشکوة ج ۲صـ ۲۶۷)

ما دخپل ځان څخه وروسته هيڅ داسې فتنه نه ده پريښې چې سړيو ته دښځو په نسبت زياته خطرناکه وي.

عَنْ أَبِی سَعِيدٍ رضی الله عنه، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَا مِنْ صَبَاحٍ إِلَّا وَمَلَكَانِ يُنَادِيَانِ: وَيْلٌ لِلرِّجَالِ مِنَ النِّسَاءِ، وَوَيْلٌ لِلنِّسَاءِ مِنَ الرِّجَالِ

ترجمه: حضرت ابی سعيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايلي چې نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې سهار دوه ملايکې اوازونه کوي چې هلاکت دی نارينه وو ته دزنانه وو له وجې او هلاکت دی زنانه وو ته دنارينه وو له وجې.

عَنْ أَبِی سَعِيدٍ الْخُدْرِیِّ رضی الله عنه قَالَ: اَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَامَ خَطِيبًا وَكَانَ فِيمَا قَالَ: إِنَّ الدُّنْيَا حُلْوَةٌ خَضِرَةٌ، وَإِنَّ اللهَ مُسْتَخْلِفُكُمْ فِيهَا فَنَاظِرٌ كَيْفَ تَعْمَلُونَ، أَلَا فَاتَّقُوا الدُّنْيَا وَاتَّقُوا النِّسَاءَ.

دابو سعید خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه روایت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونږ ته تقریر وکړو او وې فرمایل چې دنیا ډیره خوږه او ښایسته ده او الله تعالی تاسو په دې دنیا کې نائبین جوړ کړي يئ، پس الله تعالی کتونکی دی چې تاسو څه عمل کوئ؟ خبردار چې د دنیا څخه وویرېږئ او د ښځو څخه وویرېږئ.

عَنْ عَبْدِ اللهِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: الْمَرْأَةُ عَوْرَةٌ، فَإِذَا خَرَجَتْ اسْتَشْرَفَهَا الشَّيْطَانُ. (ترمذی ج ۱ص ۲۲۲)

ترجمه: حضرت عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دنبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څخه روایت کوي چې زنانه عورت ده کله چې دکور څخه وځي نو شیطان ورته په زیر زیر ګوري (چې ددې په وجه څوک په فتنه کې واچوي).

قَالَ عَبْدُ اللهِ ابْنِ مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: "احْبِسُوا النِّسَاءَ فِي الْبُيُوتِ، فَإِنَّ النِّسَاءَ عَوْرَةٌ، وَإِنَّ الْمَرْأَةَ إِذَا خَرَجَتْ مِنْ بَيْتِهَا اسْتَشْرَفَهَا الشَّيْطَانُ، وَقَالَ لَهَا: إِنَّكِ لَا تَمُرِّينَ بِأَحَدٍ إِلَّا أُعْجِبَ بِكِ (مصنف ابن ابی شیبه ج ۳ص ۴٦۷)

ترجمه: حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې بندې کړئ زنانه خپلې په کورونو کې، ځکه زنانه عورت دی او زنانه چې کله دکور څخه وځي شیطان ورته زیر زیر ګوري او ورته وايي چې نه به تیرېږئ په یوچا مګر تعجب به کوي تاته.

حضرت حذیفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ فِي خُطْبَتِهِ: النِّسَاءُ حَبَائِلُ الشَّيْطَانِ (مشکوة ص ۴۴۴، کتاب الرقاق)

ترجمه: حضرت حذیفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې اوریدلي دي ما درسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څخه چې فرمایل به يې په خطبه کې چې بیشکه زنانه رسۍ دشیطان دي.

کله چې شیطان دانسان په اغوا کولو کې دنورو لارو څخه عاجز شي نو دښځو لومه او دام ورته کیږدي (مائیس الشیطان من بنی آدم الا اتی من قبل النساء، مرقات ج ۹ص ٦۵)

نه دی ناأمیده شوی شیطان دانسان څخه مګر دناأمیدۍ په وخت کې دښځو دلارې څخه ورته راغلی.

په دې کې شک نشته چې دښځې دکور څخه وتل دفتنو او دفساد سبب دی، له دې وجې چې نور ټول شرائط او تحفظات برابر وي لکن که بیا هم دفتنې او دفساد ویره وه بیا به هم مسجد او عیدګاه ته دښځو تلل ناجایز وي.

# تائیدات

## ددې مضمون لپاره دیو څو علماؤ اقوال هم واورئ:

امام نووي رحمه الله لیکي چې:

هٰذَا وَشِبْهُهُ مِنْ أَحَادِيثِ الْبَابِ ظَاهِرٌ فِي أَنَّهَا لَا تُمْنَعُ الْمَسْجِدَ لَكِنْ بِشُرُوطٍ ذَكَرَهَا الْعُلَمَاءُ مَأْخُوذَةً مِنَ الأحاديث وهو أن لا تكون مُتَطَيِّبَةً وَلَا مُتَزَيِّنَةً وَلَا ذَاتَ خَلَاخِلَ يُسْمَعُ صَوْتُهَا وَلَا ثِيَابٍ فَاخِرَةٍ وَلَا مُخْتَلِطَةً بِالرِّجَالِ وَلَا شَابَّةً وَنَحْوَهَا مِمَّنْ يُفْتَتَنُ بِهَا وَأَنْ لَا يَكُونَ فِي الطَّرِيقِ مَا يُخَافُ بِهِ مَفْسَدَةٌ وَنَحْوُهَا (صحيح المسلم مع شرح النووي ج ۱ ص ۱۸۳)

ددې حدیث او همداسې د نورو احادیثو ظاهري مفهوم دادی چې ښځې د مسجد څخه مه منع کوئ، لکن ددې لپاره یو څو شرطونه دي چې علماوو ذکر کړي دي او د احادیثو څخه مأخوذ دي هغه دادي چې خوشبويي به یې نه وي لګولې، زینت به یې نه وي کړی او نه به یې داسې ګونګروګان اچولي وي چې اواز یې اوریدل کیږي او نه به یې دفخر جامې اغوستې وي او نه به دسړیو سره یو ځای ځي او نه به ځوانې وي یا په مثل ددې چې فتنه ترینه راولاړیږي او نه به وي په لارې کې داسې شی چې دفساد ویره وي ترینه یا په مثل ددې.

حافظ ابن حجر عسقلاني رحمه الله دبخاری په شرحه کې لیکي چې:

قَالَ بن دَقِيقِ الْعِيدِ رحمه الله: هَذَا الْحَدِيثُ عَامٌّ فِي النِّسَاءِ إِلَّا أَنَّ الْفُقَهَاءَ خَصُّوهُ بِشُرُوطٍ مِنْهَا أَنْ لَا تَتَطَيَّبَ وَهُوَ فِي بَعْضِ الرِّوَايَاتِ وَلْيَخْرُجْنَ تَفِلَاتٍ... قَالَ وَيَلْحَقُ بِالطِّيبِ مَا فِي مَعْنَاهُ لِأَنَّ سَبَبَ الْمَنْعِ مِنْهُ مَا فِيهِ مِنْ تَحْرِيكِ دَاعِيَةِ الشَّهْوَةِ كَحُسْنِ الْمَلْبَسِ وَالْحُلِيِّ الَّذِي يَظْهَرُ وَالزِّينَةِ الْفَاخِرَةِ وَكَذَا الِاخْتِلَاطُ بِالرِّجَالِ ... وَقَدْ وَرَدَ فِي بَعْضِ طُرُقِ هَذَا الْحَدِيثِ وَغَيْرِهِ مَا يَدُلُّ عَلَى أَنَّ صَلَاةَ الْمَرْأَةِ فِي بَيْتِهَا أَفْضَلُ مِنْ صَلَاتِهَا فِي الْمَسْجِدِ وَذَلِكَ فِي رِوَايَةِ حَبِيبِ بْنِ أَبِي ثَابِتٍ رحمه الله عَنِ ابْنِ عُمَرَ رضي الله عنهما بِلَفْظِ لَا تَمْنَعُوا نِسَاءَكُمُ الْمَسَاجِدَ وَبُيُوتُهُنَّ خَيْرٌ لَهُنَّ. أخرجه أَبُو دَاوُدَ وَصَحَّحَهُ بْنُ خُزَيْمَةَ رحمه الله ...وَوَجْهُ كَوْنِ صَلَاتِهَا فِي الْإِخْفَاءِ أَفْضَلَ تَحَقُّقُ الْأَمْنِ فِيهِ مِنَ الْفِتْنَةِ وَيَتَأَكَّدُ ذَلِكَ بَعْدَ وُجُودِ مَا أَحْدَثَ النِّسَاءُ مِنَ التَّبَرُّجِ وَالزِّينَةِ وَمِنْ ثَمَّ قَالَتْ عَائِشَةُ رضي الله عنها مَا قَالَتْ. (فتح الباری ج ۲ ص ٤٤٤)

حافظ ابن دقیق العید فرمایي چې په ظاهر کې دا حدیث ټولو ښځو ته شامل دی، لکن فقهاوو ورسره یو څو شرطونه لګولي دي چې په هغوی کې یو دادی چې (مسجد ته راتلونکې ښځه) به په خوشبويي باندې معطره نه وي او دا شرائط په بعضې حدیثونو کې ذکر شوي دي، رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي چې ښځې دې په داسې حالت ووځي چې ددوي جامې او بدن د ترک د خوشبويي

له وجې بدبويه شوی وي او همدا حکم د هر هغه شي دی چې د خوشبويي په شان محرک د شهوت وي ، لکه ښکلی لباس، ښکاره زيورات، قابل د فخر زينت ، همدا رنګه د سړيو سره اختلاط ، با ددې حديث په بعضې سندونو کې او همدا رنګه په نورو احاديثو کې داسې الفاظ راغلي دي چې په دې خبره باندې دلالت کوي چې د ښځې لمونځ په کور کې د مسجد په نسبت بهتر دی دا حديث په ابوداؤد کې دی او ابن خزيمه ورته صحيح ويلي دي او ددې افضليت وجه داده چې په دې صورت کې د فتنو څخه أمن وي او زمونږ په زمانه کې چې د زيب او د زينت سره د ښځو وتل شروع شوي دي دا حکم نور هم پوخ شو، له دې وجې حضرت عايشې رضی الله عنها وفرمايل چې که نبي کريم ﷺ د ښځو دا اوسنی حالت ليدلی وی نو مساجدو څخه به يې منع کړې وې

شاه ولی الله الدهلوی رحمه الله فرمايي: وَلَا اخْتِلَاف بَين قَوْله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إذا اسْتَأْذَنت امْرَأَة أحدكُم إِلَى الْمَسْجِد فَلَا يمْنَعهَا" وَبَين مَا حكم بِهِ جُمْهُور الصَّحَابَة ﷺ من مَنعهنَّ إِذْ الْمنْهِي الْغيرَة الَّتِي تنبعث من الأنفة دون خوف الْفِتْنَة، والجائز مَا فِيهِ خوف الْفِتْنَة، وَذَلِكَ قَوْله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْغيرَة غيرتان" الحَدِيث، (يعنى احدهما ما يحبه الله وثانيهما مايبغضه الله فالأول الغيرة فى الريبة اى موضع التهمة والثانى فى غيرريبة،ناقل (حجة الله البالغة صـ٤٦٩، باب الجماعة)

ترجمه: درسول الله ﷺ فرمان دی چې که ښځو اجازت مساجدو ته دتللو لپاره وغوښتلو نو مه يې منع کوئ او دصحابوو فرمان دی چې ښځې منع کوئ، ددې دواړو په مابين کې هيڅ تعارض نشته، ځکه چې د رسول الله ﷺ دنه اجازت څخه منع په هغه صورت کې ده چې دا منع دمتکبرانه غيرت له وجې وي، او دصحابوؤ منع دخوف دفتنې له وجې وه، يو جايز غيرت دی چې دتهمت او دخوف دفتنې په ځای کې وي، دا غيرت الله تعالی ته محبوب دی، او دوهم ناجايز غيرت دی چې خالص دکبر له وجې وي، دا غيرت الله تعالی ته مبغوض دی.

مولانا شبير احمد العثمانی رحمه الله فرمايي چې: ويمكن أن يقال أن الزوج لايمنع زوجته من تلقاء نفسه اذا استأذنته ان لم يكن فى خروجها ما يدعوا الى الفتنة من طيب او حلى او زينة وغيرها نعم يمنعها العلماء المفتون والأمراء القائمون بدفع الفتنة وتغير المنكرات لشيوع الفتن وعموم البلوى والزوج ايضا يخبرها بمنع العلماء وأولى الأمر (فتح الملهم ج ٢صـ٦٩)

او دا خبره چې کله ښځه دشروطو او دتحفظاتو پابنده وي نو دا اجازت دغوښتلو په صورت کې دې يې خاوند نه منعه کوي نو ددې معنی داده چې خاوند دې يې په خپله نه منع کوي البته اهل فتوی علماء

کرام، حکام کوم چې داصلاح او ددفع دمنکراتو ذمه وار ان دي هغوي دې یې ددفع دفتنو لپاره منع کړي او خاوند دې ښځه ددې پاندې ځخه خبره کړي.

امام نووي رحمه الله باب قائم کړی دی په نوم د(باب خروج النساء الی المساجد اذا لم یترتب علیه فتنة وانها لاتخرج مطیبة) شرح صحیح مسلم ج ۱صـ ۱۸۳)

باب دی په بیان د وتلو دښځوکې مساجدو ته کله چې ورباندې فتنه نه مرتبیږي او دا چې ښځه به معطره نه ووځي.

لکن غیر مقلدین ددې شرط څخه منکر دي اولیکي چې هرڅومره فتنه او فساد چې وي ښځې به مسجد او عیدګاه ته ځي اګر چې په لاره کې دزنا پیښې مخې ته راشي، (سلفی تحقیقی جایزه، صـ ۷۸۱) او استدلال په هغه واقعه باندې کوي،چې دیوې زنانه سره په لاره کې زنا بالجبر وشوه بیا هم نبی کریم ﷺ ونه فرمایل چې زمانه فاسده ده ص(۷۸۷) لکن مونږ وایو چې یوې نیمې واقعې ته فساد دزمانې نه وایي.

## دأحادیثو دریم قسم: (په کورونو دلمونځ دکولو ترغیبي أحادیث)

په دې احادیثو کې زنانه وۀ ته په کورونو کې دلمونځ ترغیب ورکړل شوی دی (۱) که په مذکوره شرطونو کې کوم یو شرط نه وو، نو بیا دزنانه وو لپاره عیدګاه اویا مسجد ته وتل ناجایز دي (۲) که مذکوره ټول شرطونه موجود وو، نو بیا ورته عیدګاه او مسجد ته تلل جایز دي، لکن ددې سره سره یې په کور کې لمونځ کول ډیر ثواب لري، حتی چې دمسجد نبوی ﷺ په نسبت یې هم په کورنو کې مونځ کول ډیر ثواب لري، امام منذري رحمه الله باب قائم کړی دی په نوم د(ترغیب النساء فی الصلوة فی بیوتهن ولزومها وترهیبهن من الخروج منها) ددې باب لاندې یې یوولس احادیث رانقل کړي دي، یوڅو احادیث یې لاندې ولولئ:

**اول حدیث:** عَنِ ابْنِ عُمَرَ رضي الله عنهما، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا تَمْنَعُوا نِسَاءَكُمُ الْمَسَاجِدَ وَبُيُوتُهُنَّ خَيْرٌ لَهُنَّ». (ابوداؤد ج ۱صـ ۸٤)

ترجمه: حضرت ابن عمر رضی الله عنهما فرمایی چې نبی کریم ﷺ فرمایلي دي مه منع کوئ خپلې زنانه دمسجدونو څخه او کورونه ورته بهتر دي (دلمانځه لپاره).

**دوهم حديث:** عَنْ عَبْدِ اللهِ رضي الله عنه، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «صَلَاةُ الْمَرْأَةِ فِي بَيْتِهَا أَفْضَلُ مِنْ صَلَاتِهَا فِي حُجْرَتِهَا، وَصَلَاتُهَا فِي مَخْدَعِهَا أَفْضَلُ مِنْ صَلَاتِهَا فِي بَيْتِهَا» (ابوداؤد ج ١صـ ٨٤)

دښځې لمونځ په وړه کوټه کې دلويې کوټې په نسبت بهتر دی، او په مخصوصه کوټه کې دوړې کوټې په نسبت بهتر دی.

**دريم حديث:** وَعَنْ أُمِّ حُمَيْدٍ رضي الله عنها - امْرَأَةِ أَبِي حُمَيْدٍ السَّاعِدِيِّ رضي الله عنه - أَنَّهَا جَاءَتِ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَتْ: «يَا رَسُولَ اللهِ! إِنِّي أُحِبُّ الصَّلَاةَ مَعَكَ؛ قَالَ: "قَدْ عَلِمْتُ أَنَّكِ تُحِبِّينَ الصَّلَاةَ مَعِي، وَصَلَاتُكِ فِي بَيْتِكِ خَيْرٌ مِنْ صَلَاتِكِ فِي حُجْرَتِكِ، وَصَلَاتُكِ فِي حُجْرَتِكِ خَيْرٌ مِنْ صَلَاتِكِ فِي دَارِكِ، وَصَلَاتُكِ فِي دَارِكِ خَيْرٌ مِنْ صَلَاتِكِ فِي مَسْجِدِ قَوْمِكِ، وَصَلَاتُكِ فِي مَسْجِدِ قَوْمِكِ خَيْرٌ مِنْ صَلَاتِكِ فِي مَسْجِدِي" قَالَتْ: فَأَمَرَتْ فَبُنِيَ لَهَا مَسْجِدٌ فِي أَقْصَى بَيْتٍ فِي بَيْتِهَا وَأَظْلَمِهِ فَكَانَتْ تُصَلِّي فِيهِ حَتَّى لَقِيَتِ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ»(رواه احمد ورجاله رجال صحيح غير عبدالله بن سويد الانصاری ووثقه ابن حبان مجمع الزوائد ج ٢صـ ٣٤)

دابوحميد الساعدي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د بي بي حضرت أم حميد رضي الله عنها څخه روايت دی چې هغه رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته راغله او وې فرمايل چې يارسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زه ستا سره په مسجد کې لمونځ خوښوم ؛ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمايل چې زه پوهيږم چې ته زما سره لمونځ خوښوې ، لکن ستا لمونځ په وړه کوټه کې دغټې په نسبت بهتر دی او په غټه کوټه کې دکور دميدانۍ څخه بهتر دی او دکور په ميدانۍ کې دکلي دمسجد څخه بهتر دی اودکلي په مسجد کې زما دمسجد څخه بهتر دی دحديث راوي فرمايي چې أم حميد دخپل کور والاوو ته حکم وکړو، نو دکور په يو تياره ځای کې يې ورته دلمانځه ځای جوړ کړو، نو أم حميد تر وفاته پورې په هغه ځای کې لمونځ کولو.

پدې حديث کې سوچ وکړه! چې د وړې کوټې لمونځ دغټې کوټې دمونځ څخه ډير ثواب لري او دغټې کوټې مونځ دصحن دمونځ په نسبت ډير ثواب لري او دصحن مونځ دمسجدنبوی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دمونځ په نسبت ډير ثواب لري، نو د وړې کوټې مونځ دمسجدنبوي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په نسبت په ډيرو درجو بهتر شو.

**څلورم حديث:** وَعَن أم سَلَمَة رَضِي الله عَنْهَا عَن رَسُول الله صلى الله عَلَيْهِ وَسلم قَالَ: خير مَسَاجِد النِّسَاء قَعْر بُيُوتهنَّ.(الترغيب والترهيب ج ١صـ ٢٢٦)

ترجمه: حضرت أم سلمة رضی الله عنها دنبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څخه روايت کوي چې دزنانه وو لپاره په مساجدو کې بهترين مسجد ددوی دکور مخفي او پټه حصه ده.

**پنځم حدیث:** وعن أم سلمة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَت: قَالَ رَسُول الله صلى الله عَلَيْهِ وَسلم: صَلَاةُ الْمَرْأَةِ فِي بَيتهَا خير من صلَاتهَا فِي حُجْرَتهَا وصلاتها فِي حُجْرَتهَا خير من صلَاتهَا فِي دارها وصلاتها فِي دارها خير من صلَاتهَا فِي مَسْجِد قَومهَا (الترغيب والترهيب ج ١ص ـ ٢٢٦)

دښځې لمونځ په تنګه او وړه کوټه کې دغټې په نسبت بهتر دی او په غټه کوټه کې دمیدانی په نسبت بهتر دی او په میدانی کې دکلي دمسجد په نسبت بهتر دی.

**شپږم حدیث:** عن عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنهُ عَن النَّبِي صلى الله عَلَيْهِ وَسلم قَالَ: إِن أحب صَلَاة الْمَرْأَة إِلَى الله فِي أَشد مَكَان فِي بَيتهَا ظلمَة (الترغيب والترهيب ج ١ص ـ ٢٢٧)

الله تعالی ته دښځې محبوب ترین لمونځ دکور په سخت ځای کې دی، (یعنې تیاره ځای کې)

**اوم حدیث:** وعن ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنهُ قال ما صلت امرأة من صلاة أحب الى الله من أشد مكان فى بيتها ظلمة (الترغيب والترهيب ج ١ص ـ ٢٢٧)

الله تعالی ته محبوب ترین لمونځ دکور په سخت ځای کې دی (یعنې تیاره ځای کې)

**اتم حدیث:** عن ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنهُ النِّسَاء عَورَة وَإِن الْمَرْأَة لتخرج من بَيتهَا وَمَا بهَا بَأْس فيستشرفها الشَّيْطَان فَيَقُول إِنَّك لَا تمرين بِأحد إِلَّا أعجبته وَإِن الْمَرْأَة لتلبس ثِيَابهَا فَيُقَال أَيْن تريدين؟ فَتَقول: أعود مَرِيضاً أَو أشهد جَنَازَة أَو أُصَلِّي فِي مَسْجِد وَمَا عبدت امْرَأَة رَبهَا مثل أَن تعبده فِي بَيتهَا.

رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایي چې ښځه عورت دی او ښځه چې دکور څخه ووځي، حال دا چې په زړه کې غلط خیالات نه وي، بیا هم شیطان ورته زیر شي او ورته وایي چې ته په هیچا نه تیریږئ مګر نا ته به تعجب وي، او په بیشکه ښځه خپلې جامې واغوندي بیا څوک ترې تپوس وکړي چې کوم طرف نه ځئ، نو ښځه ورته وایي چې دبیمار پوښتنې ته ځم، یا جنازې ته حاضریږم، یا په مسجد کې لمونځ کوم (یعنې دخیر کارونه کوم) او دښځې دکور دعبادت په شان بل عبادت نشته.

**نهم حدیث:** عَنْ عَبْدِ اللهِ رضي الله عنه، عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: "إِنَّ الْمَرْأَةَ عَوْرَةٌ، فَإِذَا خَرَجَتْ اسْتَشْرَفَهَا الشَّيْطَانُ، وَأَقْرَبُ مَا تَكُونُ مِنْ وَجْهِ رَبِّهَا وَهِيَ فِي قَعْرِ بَيْتِهَا". (رواه ابن خزيمة وابن حبان رحمهما الله تعالى فى صحيحيهما)

ښځه ټول عورت دی پس کله چې دکور څخه ووځي، نو شیطان ورته زیر شي او ښځه خپل رب ته په هغه وخت کې ډیره نږدې وي کله چې دخپل کور په مخفي ترین ځای کې وي.

**لسم حدیث:** عن عبد الله بن عمر عن النبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قال صلوة المرأة وحدها تفضل علی صلاتها فی الجمع بخمس وعشرین درجة (الجامع الصغیر مع فیض القدیر ج ٤صـ ٢٢٣)

ترجمه: حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما دنبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څخه روایت کوي چې دښځې انفرادي لمونځ دجماعت دلمونځ څخه پنځه ویشت درجې فضیلت لري.

**یوولسم حدیث:** عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنهما: أَنَّ امْرَأَةً سَأَلَتْهُ عَنِ الصَّلَاةِ فِي الْمَسْجِدِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ، فَقَالَ: «صَلَاتُكِ فِي مَخْدَعِكِ أَفْضَلُ مِنْ صَلَاتِكِ فِي بَيْتِكِ، وَصَلَاتُكِ فِي بَيْتِكِ أَفْضَلُ مِنْ صَلَاتِكِ فِي حُجْرَتِكِ، وَصَلَاتُكِ فِي حُجْرَتِكِ أَفْضَلُ مِنْ صَلَاتِكِ فِي مَسْجِدِ قَوْمِكِ». (مصنف ابن ابی شیبه: ٢٧٧/٢، باب من کره ذلك)

یوې ښځې دعبد الله بن عباس رضی الله عنهما څخه دجمعې دلمانځه په باره کې پوښتنه وکړه، نو عبد الله بن عباس رضی الله عنهما ورته وفرمایل چې ستا لمونځ ستا په مخصوص ځای کې د وړې کوټې په نسبت بهتر دی او په وړه کوټه کې دلویې کوټې په نسبت بهتر دی او په لویه کوټه کې دکلي دمسجد په نسبت بهتر دی.

**دولسم حدیث:** عن عبدالله بن مسعود رضي الله عنه: أَنَّهُ كَانَ يَحْلِفُ فَيَبْلُغُ فِي الْيَمِينِ: مَا مِنْ مُصَلًّى لِلْمَرْأَةِ خَيْرٌ مِنْ بَيْتِهَا إِلَّا فِي حَجٍّ أَوْ عُمْرَةٍ، إِلَّا امْرَأَةً قَدْ يَئِسَتْ مِنَ الْبُعُولَةِ وَهِيَ فِي مَنْقَلَيْهَا قُلْتُ: مَا مَنْقَلَيْهَا؟ قَالَ: امْرَأَةٌ عَجُوزٌ قَدْ تَقَارَبَ خَطْوُهَا (رواه الطبرانی فی الکبیر ورجاله موثقون مجمع الزوائد ج ٢صـ ٣٥)

ترجمه: حضرت عبد الله بن مسعود به سخت قسم کولو چې دښځې دمونځ لپاره بهترین ځای کور دی سوی دحج او دعمرې څخه یا هغه زړه ښځه چې میړه ته یې ضرورت نه وي پاتې او په خپلو موزو کې وي، راوي پوښتنه وکړه چې پخپلو موزو کې څه معنی ده، عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې هغه زړه ښځه چې د ډیر زوړوالي څخه تنګ تنګ قدمونه اخلي.

## اجماع الأمة

ددې تیرو دلایلو په رڼا کې دا واضحه شوه چې دښځو لپاره مطلقا په کور کې لمونځ بهتر دی.

حافظ ابن عبد البر رحمه الله لیکي چې: لم یختلفوا أن صلوة المرأة فی بیتها أفضل من صلاتها فی المسجد (التمهید ج ١١صـ ١٩٦)

ترجمه: پدې کې اختلاف نشته چې دښځې لمونځ دمسجد په نسبت په کور کې بهتر دی.

علامه کسانی رحمه الله فرمایي چې: لا خلاف فی أن الأفضل أن لا یخرجن فی صلاة (بدائع الصنائع ج١صـ ٢١٧)

ترجمه: پدې کې اختلاف نشته چې دښځې دپاره بهتره دا ده چې دلمانځه لپاره مسجد ته ونه وځي.

## څلورم قسم احاديث

څلورم قسم هغه احاديث دي چې په هغوي کې زنانه عيدګاه او مسجد ته دتللو څخه منع شوې دي.

**اول حديث:** وَعَن أبى عَمْرو الشَّيْبَانِيّ رحمه الله أنه رأى عبد الله رضي الله عنه يخرج النِّسَآءمن الْمَسْجِد يَوم الجُمُعَة وَيَقُول اخرجن إلى بيوتكن خير لكُن. رَوَاهُ الطَّبَرَانِيّ فِي الْكَبِير بِإِسْنَاد لَا بَأْس بِهِ بحواله الترغيب والترهيب ج ۱ صـ ۲۲۸)

دابو عمرو الشيباني رحمه الله څخه روايت دی چې ده عبد الله بن مسعود رضى الله عنهما وليدلو چې دجمعې په ورځ به يې ښځې دمسجد څخه ويستلې او ورته فرمايل به يې چې تاسو زنانه کورونو ته لاړې شئ دا ستاسو لپاره بهتره دی.

**دوهم حديث:** عَنْ أَبِى عَمْرٍو الشَّيْبَانِيّ رحمه الله، قَالَ: «رَأَيْتُ ابْنَ مَسْعُودٍ رضي الله عنه يَحْصِبُ النِّسَآءَ يُخْرِجُهُنَّ مِنَ الْمَسْجِدِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ». (مصنف ابن ابى شيبه ج ۲ صـ ۲۷۷)

ابوعمرو الشيبانى رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې ما عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وليدلو چې دجمعې په ورځ به يې ښځې په وړو تيګو ويشتلې او دمسجد څخه به يې ويستلې.

**دريم حديث :** سُئِلَ الْحَسَنُ رحمه الله عَنِ امْرَأَةٍ جَعَلَتْ عَلَيْهَا إِنْ أُخْرِجَ زَوْجُهَا مِنَ السِّجْنِ أَنْ تُصَلِّيَ فِي كُلِّ مَسْجِدٍ تُجْمَعُ فِيهِ الصَّلَاةُ بِالْبَصْرَةِ رَكْعَتَيْنِ، فَقَالَ الْحَسَنُ رحمه الله: «تُصَلِّي فِي مَسْجِدِ قَوْمِهَا، فَإِنَّهَا لَا تُطِيقُ ذٰلِكَ لَوْ أَدْرَكَهَا عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رضي الله عنه لَأَوْجَعَ رَأْسَهَا». (مصنف ابن ابى شيبه ج ۲ صـ ۲۷۷)

دحسن بصري رَحِمَهُ اللهُ څخه پوښتنه وشوه چې يوې زنانه نذر منلې دی چې که زما خاوند دبنديخانې څخه راخلاص شو نو دبصرې په هر هغه مسجد کې به دوه رکعته لمونځ کوم په کوم کې چې په جماعت باندې لمونځ کيږي، نو حسن بصري رَحِمَهُ اللهُ ورته وفرمايل چې دخپل کلي په مسجد کې دې دوه رکعته لمونځ وکړي چې نذر يې پوره شي، ځکه چې دبصرې په ټولو مساجدو کې دلمونځ کولو (شرعي) طاقت نه لري، همدارنګه يې وفرمايل چې که دا نذر منونکې ښځه حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ليدلې وی نو په سر به يې دردولې وه.

**څلورم حديث:** عَنِ الْأَعْمَشِ رحمه الله، عَنْ إِبْرَاهِيمَ رحمه الله، قَالَ: «كَانَ لِإِبْرَاهِيمَ رحمه الله ثَلَاثُ نِسْوَةٍ، فَلَمْ يَكُنْ يَدَعُهُنَّ يَخْرُجْنَ إِلَى جُمُعَةٍ وَلَا جَمَاعَةٍ». (مصنف ابن ابى شيبه ج ۲ صـ ۲۷۷)

ترجمه: حضرت اعمش د حضرت ابراهیم څخه روایت کوي هغه فرمايي چې ابراهیم له درې ښځې وې حضرت ابراهیم به نه پرېښودلې چې ووځي د جمعې لمونځ یا د جماعت لمانځه ته.

**پنځم حدیث:** عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: «لَوْ أَدْرَكَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا أَحْدَثَ النِّسَآءُ لَمَنَعَهُنَّ كَمَا مُنِعَتْ نِسَآءُ بَنِي إِسْرَآئِيلَ» قُلْتُ لِعَمْرَةَ: أَوَمُنِعْنَ؟ قَالَتْ: نَعَمْ. (بخاری ج ١ صـ ١٢٠، مسلم ج ١ صـ ١٨٣، ابوداؤد ج ١ صـ ٨٤)

حضرت عایشه رضی الله عنها فرمايي چې که رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د نن صبا د ښځو ناز او نخرې لیدلې وی، نو مساجدو څخه به یې منع کړې وې، لکه د نبي اسرائیلو ښځې چې منع کړی شوې وې، راوي فرمايي چې ما عمرة ته وفرمایل ایا د بني اسرائیلو ښځې منع کړې شوې وې؟ هغه ووېل چې هو.

علامه عینی رحمه الله د ما احدث په تفسیر کې لیکي چې من الزینة والطیب وحسن الثیاب ونحوها.

علامه عینی رحمه الله فرمايي چې د حضرت عایشې رضی الله عنها مقصد د ما أحدث النساء څخه زینت او خوشبویي او ښایسته جامې وغیرها وی.

**شپږم حدیث:** وَكَانَ ابْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالَىٰ عَنْهُمَا، یقوم یحصب النِّسَآءَ یَوْمَ الْجُمُعَةِ یخرجهن من الْمَسْجِد (عمدة القاری قدم ج ٣ صـ ٢٢٨)

ترجمه حضرت ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ به په تیګو ویشتلې زنانه په ورځ د جمعې کې او ویستلې به یې د مسجد څخه.

**اووم حدیث:** عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ رحمه الله، عَنْ عَطَآءٍ رحمه الله قَالَ: قُلْتُ لَهُ: أَيَحِقُّ عَلَى النِّسَآءِ إِذَا سَمِعْنَ الْأَذَانَ أَنْ يُجِبْنَ كَمَا هُوَ حَقٌّ عَلَى الرِّجَالِ؟ قَالَ: «لَا لَعَمْرِي» (مصنف عبد الرزاق ج ٣ صـ ١٤٧)

ابن جریج رَحِمَهُ اللّٰهُ د حضرت عطاء رَحِمَهُ اللّٰهُ څخه روایت کوي چې په ښځه باندې نه ده لازمه چې د اذان د اورېدو څخه وروسته مسجد ته لاړه شي.

**اتم حدیث:** عَنِ الْأَعْمَشِ رحمه الله، عَنْ إِبْرَاهِيمَ رحمه الله قَالَ: «كُنَّ لَهُ ثَلَاثُ نِسْوَةٍ مَا صَلَّتْ وَاحِدَةٌ مِنْهُنَّ فِي مَسْجِدِ الْحَيِّ» مصنف عبدالرزاق ج ٣ صـ ١٥١)

ترجمه: حضرت اعمش د ابراهیم څخه روایت کوي چې د ابراهیم درې ښځې وې یوې ښځې یې هم په ټکلي په مسجد کې لمونځ ونکړو.

**نهم حدیث:** عَنْ إِبْرَاهِيمَ رَحِمَهُ اللهُ، قَالَ: «كَانَ لِعَلْقَمَةَ امْرَأَةٌ، فَدَخَلَتْ فِي السِّنِّ تَخْرُجُ إِلَى الْعِيدَيْنِ».
(مصنف ابن ابی شیبه ج ۲ص ۸۷)

ترجمه: د حضرت ابراهیم څخه روایت دی چې د حضرت عقلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یوه بي بي وه چې ډیره زړه شوې وه او وتله به د اخترونو لمانځه ته د دې څخه معلومیږي چې حضرت علقمه به ځوانو ښځو ته د اختر لمانځه ته د وتلو اجازه نه ورکوله.

**لسم حدیث:** عَنْ إِبْرَاهِيمَ رَحِمَهُ اللهُ، قَالَ: «يُكْرَهُ خُرُوجُ النِّسَاءِ فِي الْعِيدَيْنِ»(مصنف ابن ابی شیبه ج ۲ص ۸۸)

ترجمه :د حضرت ابراهیم نخعي رَحِمَهُ اللهُ څخه روایت دی هغه فرمایي چې مکروه دي وتل د ښځو داخترونو لمانځه ته .

**یوولسم حدیث:** عَنْ نَافِعٍ رَحِمَهُ اللهُ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا «أَنَّهُ كَانَ لَا يُخْرِجُ نِسَاءَهُ فِي الْعِيدَيْنِ». (ایضا)

ترجمه: حضرت نافع د ابن عمر رضی الله عنهما څخه روایت کوي چې ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه ویستلې بیبیانې خپلې په اخترونو کې .

**فایده:** په یو روایت کې راځي چې عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به چې کله په خپل أهل کې ګنجایش لیدلو نو ویستلو به یې ،نو کیدی شي، چې د کور زړو ښځو ته به یې اجازت ورکولو او ځوانو ته به یې نه ورکولو او یا به یې وړو ماشومانو ته اجازت ورکولو، دا هم په أهل کې داخل دي او ښځو ته به یې اجازت نه ورکولو، یا به یې په اول کې اجازت ورکولو او د حالاتو د تبدیلۍ له وجې به یې وروسته نه ورکولو.

**دولسم حدیث :** عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ رَحِمَهُ اللهُ، عَنْ أَبِيهِ، «أَنَّهُ كَانَ لَا يَدَعُ امْرَأَةً مِنْ أَهْلِهِ تَخْرُجُ إِلَى فِطْرٍ، وَلَا إِلَى أَضْحًى»(ایضا)

عروه به د خپل کور هیڅ زنانه ته اجازه نه ورکوله چې د وړوکي او یا غټ اختر لمونځ ته لاړه شي.

**دیارلسم حدیث:** عن عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْقَاسِمِ رَحِمَهُ اللهُ، قَالَ: «كَانَ الْقَاسِمُ رَحِمَهُ اللهُ، أَشَدَّ شَيْءٍ عَلَى الْعَوَاتِقِ، لَا يَدَعُهُنَّ يَخْرُجْنَ فِي الْفِطْرِ وَالْأَضْحَى» (ایضا)

ترجمه: حضرت قاسم به ډیر سخت وو په ځوانو ښځو چې نه به یې پریښودلې چې ووځي په واړه اختر کې یا لوی اختر کې .

**خوارلسم حدیث:** عَنْ إِبْرَاهِيمَ رَحِمَهُ اللهُ، قَالَ: «كُرِهَ لِلشَّابَّةِ أَنْ تَخْرُجَ إِلَى الْعِيدَيْنِ». (ایضا)

ترجمه: حضرت ابراهيم رحمه الله فرمايي چې مکروه دی لپاره دځوانو ښځو چې ووځي اخترونو ته

**پنځلسم حديث:** عَنْ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ رحمه الله: أَنَّهُ كَرِهَ الْيَوْمَ الْخُرُوجَ لِلنِّسَاءِ إِلَى الْعِيدِ. (ترمذی: ج ۱ صـ ۱۲۰)

ترجمه: دحضرت سفيان ثوري څخه روايت دی هغه فرمايي چې نن صبا اخترونو ته دښځو وتل مکروه دي.

**شپاړسم حديث:** عن أُمِّ حُمَيْدٍ رضي الله عنها، قَالَتْ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْنَعُنَا أَزْوَاجُنَا أَنْ نُصَلِّيَ مَعَكَ وَنُحِبُّ الصَّلَاةَ، مَعَكَ، فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «صَلَاتُكُنَّ فِي بُيُوتِكُنَّ أَفْضَلُ مِنْ صَلَاتِكُنَّ فِي حُجَرِكُنَّ، وَصَلَاتُكُنَّ فِي حُجَرِكُنَّ أَفْضَلُ مِنْ صَلَاتِكُنَّ فِي الْجَمَاعَةِ». (مصنف ابن ابی شيبه: ۲۷۷/۲)

أم حميد رسول الله صلى الله عليه وسلم ته شکايت وکړو چې زمونږ خاوندان مونږ ستاسره دمانځه څخه منع کوي، رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل چې ستاسو لمونځونه په وړو کوټو کې دغټو په نسبت بهتر دی او په غټو کوټو کې دجماعت په نسبت بهتر دی.

فايده: ددې حديث په سند کې عبد الله بن لهيعه دی چې بعضو علماوؤ ورته ضعيف ويلی دی، لکن دلامذهبو سرګروه نواب صديق حسن خان په نزل الابرار بالعلم الماثور من الادعية والاذکار صـ (۲۴۱) کې ليکي چې (رجال من الحسن) علاوه لا دا چې ددې حديث ډير شواهد دي کما مر وسيأتي.

**اولسم حديث:** قَالَتْ أُمُّ عَطِيَّةَ رضي الله عنها: «كُنَّا» نُنْهَى عَنِ اتِّبَاعِ الْجَنَائِزِ، وَلَمْ يُعْزَمْ عَلَيْنَا "(رواه مسلم بسندين ج ۱ صـ ۳۰)

ام عطيه رضی الله عنها فرمايي چې مونږ دجنازو پسې دتللو څخه منع شوي وو لکن پدې ممانعت باندې عمل کول په مونږ باندې لازم کړی شوي نه وو.

**اتلسم حديث:** عن عَلِيٍّ رضي الله عنه، قَالَ: خَرَجَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَإِذَا نِسْوَةٌ جُلُوسٌ، فَقَالَ: "مَا يُجْلِسُكُنَّ؟" قُلْنَ: نَنْتَظِرُ الْجِنَازَةَ، قَالَ: "هَلْ تَغْسِلْنَ؟" قُلْنَ: لَا، قَالَ: "هَلْ تَحْمِلْنَ؟" قُلْنَ: لَا، قَالَ: "هَلْ تُدْلِينَ فِيمَنْ يُدْلِي؟" قُلْنَ: لَا، قَالَ: "فَارْجِعْنَ مَأْزُورَاتٍ غَيْرَ مَأْجُورَاتٍ". سنن ابن ماجه صـ ۱۱۳)

يوه ورځ رسول الله صلى الله عليه وسلم را ووتلو نو يو څو زنانه يې وليدلې چې ناستې وې، رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل چې څه شي کينولې يئ؟ هغوي ورته وويلې چې دجنازې انتظار کوو، رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل چې ايا تاسو مړي ته غسل ورکوئ؟ هغوي ورته وويلې چې نه، بيا ورته رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې ايا تاسو مړی اُوچتوئ؟ هغوي ورته وويلې چې نه، بيا

ورته رسول الله ﷺ وفرمايل چې ايا تاسو دنورو خلکو په شان مړی قبر ته کوزوئ؟ هغوي ورته وويلې چې نه، نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل چې بيرته کورونو ته گناهگارې لاړې شئ ثواب يافته نه يئ.

**فايده:** ددې دواړو حديثونو څخه معلوميږي چې مخکې دزنانه وؤ لپاره دجنازو پسې تلل دکراهت سره جايز وو، وروسته په دې حکم کې شدت راغلو اوکراهت په حرمت بدل شو او دجنازو پسې تلل دښځو لپاره گناه وگرزول شوه، همدارنگه په اول کې مسجد او عيدگاه ته دښځو په تللو کې نرمي وه لکن وروسته ورته شرطونه ولگيدل او دشرطونو او دتحفظاتو سره سره ورته په کور کې دمونځ داداکولو ترغيب ورکړل شو، دشرائطو لنډيز دادی:

۱-دخاوند اجازه ۲- شپه، ۳- پرده۴- ترک دعطرو ۵- ترک دزينت۶- عدم الاختلاط بالرجال۷- عدم رفع الصوت ۸- عدم خوف الفتنة، په دوي کې يو اځې د "الليل" شرط د اولويت لپاره دی او نور شرائط دوجوب دي او دوجوب دټولو شرطونو دپوره والي سره سره بيا هم د زنانه وو مونځ په کورونو کې ډير ثواب لري.

## تائيدات

مخکې اتلس احاديث دممانعت په باره کې ذکر شو ددې څخه علاوه دعلماؤ فتوی هم شته. مثلا:

۱-وذلک اذا لم يخف الفتنة عليها ولابها وقد کان الأغلب فی حال ذلک الزمان (صحيح البخاری مع شرح الکرمانی ج ۵صـ ۲۰۷)

او مسجد ته تلل په هغه وخت کې جايز دي چې نه دښځې لپاره دفتنې ويره وي او نه نارينه وؤ ته دزنانه وو له وجې دفتنې ويره وي، په نن زمانه کې خوف دفتنې غالب دی.

۲-علامه کرماني په باب انتظار الناس الامام العالم کې دحضرت عايشې رضی الله عنها دحديث په تشريح کې ليکي چې: ( فان قلت من أين علمت عائشة هذه الملازمة والحکم بالمنع وعدمه ليس الا لله تعالی قلت مما شاهدت من القواعد الدينية المقتضية لحسم مواد الفساد (صحيح البخاری مع شرح الکرمانی ج ۵صـ۲۰۹)

ترجمه: که اعتراض وشي چې حضرت عايشې رضی الله عنها ته څه معلوم وو چې که دا حالت په عهد نبوی ﷺ کې وي نو نبی کريم ﷺ به ښځې دمساجدو څخه منع کړې وي؟

جواب دادی چې: حضرت عایشې رضی الله عنها ته دشریعت هغه أصول او قواعد معلوم وو کوم چې دفساد او دفتنې دختمولو تقاضی کوي ، دهغو قواعدو شرعیه ؤ له وجې حضرت عایشې رضی الله عنها دا معلومه کړې وه.

۳- علامه عینی رحمه الله فرمایي چې: قلت لو شاهدت عائشة رضى الله عنها نساء هذا الزمان من أنواع البدع والمنكرات لكانت أشد انكارا ولاسيما نساء مصر فان فيهن بدعا لاتوصف ومنكرات لاتمنع (عمدة القارى ج ٦ صـ ١٥٨، باب الخروج الى المساجد بالليل)

ترجمه: که حضرت عایشې رضی الله عنها زمونږ په زمانه کې دښځو منکرات او بدعات لیدلي وی نو دزنانه وو دوتلو په باره کې به یې ډیر تشدد کړی وی ، خصوصا دمصر دښځو په باره کې ځکه چې په دوي کې داسې بدعات دي چې د ویلو نه دي او داسې منکرات پکې دي چې منع کول یې نه دي ممکن.

۴- علامه عیني رَحِمَهُ اللَّهُ د مصر دښځو دبدعاتو او دمنکراتو دبیان څخه وروسته لیکي چې: فَانْظُرْ إِلَىٰ مَا قَالَت الصديقة رَضِي الله تَعَالَىٰ عَنْهَا من قَوْلهَا: لَو أدْرك رَسُول الله - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مَا أحدثت النِّسَآء وَلَيْس بَين هَذَا القَوْل وَبَين وَفَاة النَّبِي - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِلَّا مُدَّة يسيرَة على أَن نسَآء ذَلِك الزَّمَان. (عمدة القارى شرح صحيح البخارى ج ٦ صـ ١٥٩)

دحضرت عایشې رضی الله عنها ددې قول او دنبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مابین کې ډیره لږه فاصله وه او دحضرت عایشې رضی الله عنها په وخت کې چې کوم بد حالت وو نو هغه زمونږ د زمانې دبد حالت زرمه حصه هم نه دی (یعنی چې دحضرت عایشې رضی الله عنها دزمانې حالاتو ددې تقاضی کوله چې ښځې دمساجدو څخه منع شي نو زمونږ دزمانې حالات یې زر چنده زیات تقاضی کوي.

۵- په یو بل ځای علامه عیني رحمه الله فرمایي چې: وللعلمآء فِيهِ أَقْوَال وتفاصيل. قَالَ صَاحب (الْهِدَايَة): وَيكرهُ لَهُنَّ حُضُور الْجَمَاعَات. قَالَت الشُّرَّاح: وَيَعْنِي الشواب مِنْهُنَّ. وَقَوله: الْجَمَاعَات، يتَنَاوَل الْجُمُعَ والأعياد والكسوف وَالِاسْتِسْقَآء، وَعَن الشَّافِعِي: يُبَاح لَهُنَّ الْخُرُوج. قَالَ أَصْحَابنَا: لِأَن فِي خروجهن خوف الْفِتْنَة وَهُوَ سَبَب لِلْحَرَامِ، وَمَا يُفْضِي إِلَى الْحَرَام فَهُوَ حرَام، فعلى هَذَا قَوْلهم: يكره، مُرَادهم يحرم، لَا سِيمَا فِي هَذَا الزَّمَان لشيوع الْفساد فِي أَهله، قَالَ: لَا بَأْس وللعجوز أَن تخرج فِي الْفجْر وَالْمغْرب وَالْعشَآء لحُصُول الْأَمْن، وَهَذَا عِنْد أبي حنيفَة رَحِمَهُ اللَّهُ، وَعَن أبي يُوسُف وَمُحَمّد رَحِمَهُمَا اللَّهُ: يخرجن فِي الصَّلَوَات كلهَا لِأَنَّهُ لَا فتْنَة فِيهِ لقلَّة الرَّغْبَة، (عمدة القارى ج ٦ ص( ١٤٥٦)

مسجد ته دښځو دتللو په باره کې دعلماؤو مختلف اقوال دي او په دې مسئله کې تفصیلات دي صاحب دهدائی لیکلي دي چې مسجد ته دښځو حاضریدل مکروه دي، او دهدایې شارحین فرمایي چې دا کراهت دځوانو ښځو لپاره دی او صاحب دهدایې چې (الجماعات) فرمایلي دي نو داد جمع صیغه ده چې دجمعو عیدینو ،کسوف، استسقاء وغیر ټولو جماتونه ته شامل دی نو پدې ټولو کې دځوانو زنانه وو شمولیت مکروه دی، دامام شافعي رَحِمَهُ اللّٰهُ یو قول داده چې (په شرط دعدم خوف دفتنې) دځوانو زنانه وو شمولیت مباح دی زمونږ حنفي علماء فرمایي چې دځوانو زنانه وو په وتلو کې دفتنې ویره ده او حرامو لپاره سبب دی او دحارمو سبب حرام وي (لهذا دځوانو ښځو وتل دسببیت الحرام له وجې حرام دي) خصوصا په دې زمانه کې ځکه چې اهل دزمانې فاسد دي او که زړې ښځې دسهار ماښام او ماخوستن لمونځونو ته ځي نو باک نه لري ځکه چې په دې وختونو کې (دتیارو له وجې) امن وي وزړو ښځو لپاره په دې دریو وختونو کې د وتلو عدم کراهیت دامام صاحب قول دی او دصاحبینو په نیز زړې ښځې پنځه وخته جماعت ته تللی شي ، ځکه چې زړو ښځو په تللو کې خوف دفتنې نشته ځکه چې زړو ښځو ته دخلکو میلان کم وي او همدارنګه خلکو ته هم دزړو ښځو میلان کم وي، ددې ځخه یوه دا خبره ثابته شوه چې دځوانو ښځو تلل اتفاقا حرام دي او دوهم دا ثابته شوه چې امام صاحب او صاحبین رحمهم الله په دې خبره متفق دي چې که دفتنې ویره وه نو بیا دزړو ښځو تلل هم حرام وي صرف اختلاف په دې کې دی چې ماسپښین او په مازیګر کې د زړو ښځو په باره کې خوف دفتنې شته او که نه ؟

٦- ابن الحاج رحمه الله لیکي چې: قَدْ تَقَدَّمَ «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَمَرَ النِّسَاءَ بِالْخُرُوجِ إِلَى صَلَاةِ الْعِيدِ فِي الْمُصَلَّى حَتَّى الْحُيَّضَ وَرَبَّاتِ الْخُدُورِ» وَذٰلِكَ مَحْمُولٌ عَلَى مَا كَانَ عَلَيْهِ فِي وَقْتِهِ - عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ - مِنْ التَّسَتُّرِ وَتَرْكِ الزِّينَةِ وَالصِّيَانَةِ وَالتَّعَفُّفِ وَأَنَّ مُرُوطَهُنَّ تَنْجَرُّ خَلْفَهُنَّ مِنْ شِبْرٍ إِلَى ذِرَاعٍ وَبُعْدِهِنَّ مِنْ الرِّجَالِ، وَقَدْ قَالَتْ عَائِشَةُ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - لَوْ عَلِمَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مَا أَحْدَثَ النِّسَاءُ بَعْدَهُ لَمَنَعَهُنَّ الْمَسَاجِدَ كَمَا مُنِعَهُ نِسَاءُ بَنِي إِسْرَائِيلَ. وَإِذَا كَانَ ذٰلِكَ كَذٰلِكَ فَيَتَعَيَّنُ مَنْعُهُنَّ فِي هٰذَا الزَّمَانِ عَلَى كُلِّ حَالٍ لِمَا فِي خُرُوجِهِنَّ مِنْ الْفِتَنِ الَّتِي لَا تَكَادُ تُنْحَصَى، وَمَا يُتَوَقَّعُ مِنْ ضِدِّ الْعِبَادَةِ الْمَأْمُورِ بِهَا. (المدخل لابن لحاج صـ ٢٩٦)

ترجمه: مخکې دا خبره ذکر شوه چې نبی کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ټولو زنانه وؤ ته حکم وکړو چې عیدګاه ته لاړې شئ تر دې چې حایضو او پرده دارو ښځو ته یې هم حکم وکړو ، لکن داحکم دنبی کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دښکلې زمانې او دښو حالاتو له وجې وو ، یعنې دنبی کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې پرده، ترک دزینت، دسترګو حفاظت، او پاکدامني ښه وو، دهغې وخت دزنانه وو څادرونه به دومره غټ وو

چې دیوې لیشتې او یا یو ګز په مقدار به وریسې شاته کشیدل او هغه ښځې د نارینه وو د اختلاط څخه ډیرې لرې وې وروسته حالات بدل شو حتی چې حضرت عایشې رضی الله عنها وفرمایل چې د رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څخه وروسته چې د ښځو کوم حالت شروع دی که د دوې دا حالت رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لیدلی وی نو رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به زنانه له مساجدو څخه منع کړې وې لکه د بنی اسرائیلو ښځې چې منع کړې شوې وې ، نو کله چې خبره داسې ده نو په دې زمانه کې به په هر صورت کې ښځې د مساجدو څخه منع کولی شي ، ځکه چې د کورونو څخه د وتلو په صورت کې چې کومې فتنې دي هغه د هیچا څخه پټې نه دي او د دې څخه علاوه په کې د عبادت مطلوبه بالعکس په فساد او په معصیت کې د وقوع خطر هم دی.

۷- علامه کاسانی رحمه الله فرمايي چې : ۱- أَجْمَعُوا عَلَى أَنَّهُ لَا يُرَخَّصُ لِلشَّوَابِّ مِنْهُنَّ الْخُرُوجُ فِي الْجُمُعَةِ وَالْعِيدَيْنِ وَشَيْءٍ مِنَ الصَّلَاةِ، لِقَوْلِهِ تَعَالَى: وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ... [الأحزاب: ۳۳] وَالْأَمْرُ بِالْقَرَارِ نَهْيٌ عَنِ الِانْتِقَالِ وَلِأَنَّ خُرُوجَهُنَّ سَبَبُ الْفِتْنَةِ بِلَا شَكٍّ، وَالْفِتْنَةُ حَرَامٌ، وَمَا أَدَّى إِلَى الْحَرَامِ فَهُوَ حَرَامٌ.

۲- وَأَمَّا الْعَجَائِزُ فَلَا خِلَافَ فِي أَنَّهُ يُرَخَّصُ لَهُنَّ الْخُرُوجُ فِي الْفَجْرِ وَالْمَغْرِبِ وَالْعِشَاءِ وَالْعِيدَيْنِ.

۳- وَاخْتَلَفُوا فِي الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ وَالْجُمُعَةِ، قَالَ أَبُو حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ: لَا يُرَخَّصُ لَهُنَّ فِي ذَلِكَ وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ رَحِمَهُمَا اللهُ: يُرَخَّصُ لَهُنَّ فِي ذَلِكَ.

وَجْهُ قَوْلِهِمَا: أَنَّ الْمَنْعَ لِخَوْفِ الْفِتْنَةِ بِسَبَبِ خُرُوجِهِنَّ، وَذَا لَا يَتَحَقَّقُ فِي الْعَجَائِزِ وَلِهَذَا أَبَاحَ أَبُو حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ خُرُوجَهُنَّ فِي غَيْرِهِمَا مِنَ الصَّلَوَاتِ، وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّ وَقْتَ الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ وَقْتُ انْتِشَارِ الْفُسَّاقِ فِي الْمَحَالِّ وَالطُّرُقَاتِ فَرُبَّمَا يَقَعُ مَنْ صَدَقَتْ رَغْبَتُهُ فِي النِّسَاءِ فِي الْفِتْنَةِ بِسَبَبِهِنَّ أَوْ يَقَعْنَ هُنَّ فِي الْفِتْنَةِ لِبَقَاءِ رَغْبَتِهِنَّ فِي الرِّجَالِ وَإِنْ كَبِرْنَ، فَأَمَّا فِي الْفَجْرِ وَالْمَغْرِبِ وَالْعِشَاءِ فَالْهَوَاءُ مُظْلِمٌ وَالظُّلْمَةُ تَحُولُ بَيْنَهُنَّ وَبَيْنَ نَظَرِ الرِّجَالِ، وَكَذَا الْفُسَّاقُ لَا يَكُونُونَ فِي الطُّرُقَاتِ فِي هَذِهِ الْأَوْقَاتِ فَلَا يُؤَدِّي إِلَى الْوُقُوعِ فِي الْفِتْنَةِ، وَفِي الْأَعْيَادِ وَإِنْ كَانَ تَكْثُرُ الْفُسَّاقُ تَكْثُرُ الصُّلَحَاءُ أَيْضًا فَتَمْنَعُ هَيْبَةُ الصُّلَحَاءِ أَوِ الْعُلَمَاءِ إِيَّاهُمَا عَنِ الْوُقُوعِ فِي الْمَآثِمِ، وَالْجُمُعَةُ فِي الْمِصْرِ فَرُبَّمَا تَصْدِمُ أَوْ تُصْدَمُ لِكَثْرَةِ الزِّحَامِ وَفِي ذَلِكَ فِتْنَةٌ.

وَأَمَّا صَلَاةُ الْعِيدِ فَإِنَّهَا تُؤَدَّى فِي الْجَبَّانَةِ فَيُمْكِنُهَا أَنْ تَعْتَزِلَ نَاحِيَةً عَنِ الرِّجَالِ كَيْ لَا تُصْدَمَ فَرُخِّصَ لَهُنَّ الْخُرُوجُ وَاللهُ أَعْلَمُ ثُمَّ هَذَا الْخِلَافُ فِي الرُّخْصَةِ وَالْإِبَاحَةِ فَأَمَّا لَا خِلَافَ فِي أَنَّ الْأَفْضَلَ أَنْ لَا يَخْرُجْنَ فِي صَلَاةٍ لِمَا رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنَّهُ قَالَ: «صَلَاةُ الْمَرْأَةِ فِي دَارِهَا أَفْضَلُ مِنْ صَلَاتِهَا فِي مَسْجِدِهَا، وَصَلَاتُهَا فِي بَيْتِهَا أَفْضَلُ مِنْ صَلَاتِهَا فِي دَارِهَا، وَصَلَاتُهَا فِي مَخْدَعِهَا أَفْضَلُ مِنْ صَلَاتِهَا فِي بَيْتِهَا» ثُمَّ إِذَا رُخِّصَ فِي صَلَاةِ الْعِيدِ هَلْ يُصَلِّينَ؟ رَوَى الْحَسَنُ رَحِمَهُ اللهُ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ يُصَلِّينَ، لِأَنَّ الْمَقْصُودَ بِالْخُرُوجِ هُوَ الصَّلَاةُ قَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - «لَا تَمْنَعُوا إِمَاءَ اللّٰهِ مَسَاجِدَ اللّٰهِ وَلْيَخْرُجْنَ إِذَا خَرَجْنَ تَفِلَاتٍ أَيْ غَيْرَ مُتَطَيِّبَاتٍ»، وَرَوَى الْمُعَلَّى رحمه الله عَنْ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله لَا يُصَلِّينَ الْعِيدَ مَعَ الْإِمَامِ؛ لِأَنَّ خُرُوجَهُنَّ لِتَكْثِيرِ سَوَادِ الْمُسْلِمِينَ لِحَدِيثِ أُمِّ عَطِيَّةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - «كُنَّ النِّسَاءُ يَخْرُجْنَ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - حَتَّى ذَوَاتُ الْخُدُورِ وَالْحُيَّضُ» وَمَعْلُومٌ أَنَّ الْحَائِضَ لَا تُصَلِّي فَعُلِمَ أَنَّ خُرُوجَهُنَّ كَانَ لِتَكْثِيرِ سَوَادِ الْمُسْلِمِينَ فَكَذٰلِكَ فِي زَمَانِنَا.(بدائع الصنائع:١/ ٢١٧، ٢١٨)

ترجمه: علامه کاساني رحمه الله دد ې مسئلې په تحقیق کې یو څو صورتونه لیکلي دي.

(١)پدې خبره اجماع ده چې ځوانو زنانهٔ ته دجمعې او دعیدینو اوبل هیڅ مونځ ته هم د وتلو اجازت نشته ځکه چې الله تعالی فرمایي چې و (قرن في بیوتکن) او امر په قرار دخروج یعنې د وتلو سره منافی دی اوبل له دې وجې څخه چې دکور څخه وتل سبب دفتنې دي او فتنه حرامه ده او سبب د حرامو حرام وي (لهذا دځوانو ښځو وتل دفتنې له وجې حرام دی)

(٢)په دې خبره هم اتفاق دی چې زړې ښځې دسهار، دماښام، دماخوستن او دعیدینو لمونځونو ته وتلی شي.

(٣) البته دزړو ښځو په باره کې دماسپښین، دمازدیګر او دجمعې مانځه ته د وتلو په باره کې اختلاف دی دامام صاحب په نیز ورته رخصت نشته او دصاحبینو رحمهما الله په نیز ورته رخصت شته دصاحبینو دلیل دادی چې په دې وختونو کې دزړو ښځو په وتلو کې علت دحرمت نشته، چې هغه فتنه ده ،لکه څرنګه چې ددې علت دانتفاء په وجه امام صاحب رَحِمَهُ اللّٰهُ په نورو وختونو کې ورته په وتلو کې رخصت ورکړی دی او دامام صاحب رحمه الله په نیز په دې وختونو کې فتنه شته، ځکه چې په دې و ختونو کې فاسقان په لارو کې ګرځي، نو کیدی شي چې ددوي له وجې ډیر شهوتي سړی په فتنه کې واقع شي اویا ښځې په فتنه کې واقع شي، ځکه چې ښځه که زړه شي بیا یې هم سړیو ته رغبت کیږي، او په سهر، ماښام او ماخوستن کې تیاره وي او په تیاره کې ښځې چاته نه ښکاري، همدارنګه په دې وختونو کې شرارتي خلک په لارو کې نه وي او په اخترونو کې اګر چې فاسقان ډیر وي خو صلحاء هم ډیر وي نو دصلحاؤ او دعلماؤ څخه ویره په ګناه کې دواقع کیدلو څخه مانع ګرځي او دجمعې لمونځ په ښار کې کیږي نو ډډیر ازدحام له وجې دسړیو او دښځو یو دبل سره دلګیدلو خطر وي او د اختر لمونځ خو په دشته کې کیږي، نو دسړیو سره دلګیدلو خطر پکې نه وي ځکه چې ښځه دسړیو څخه جدا تللی شي، والله اعلم

بیا دا اختلاف په نفس رخصت او اباحت کې دی او پدې کې دهیڅ اختلاف نشته چې أفضله او بهتره داده چې ښځې عیدګاه او مسجد ته ونه وځي، ځکه چې رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایي چې دښځې لمونځ په کور کې بهتر دی، بیا چې کله زړو ښځو ته عیدګاه ته په وتلو کې رخصت ورکړل شو نو ایا مونځ به کوي؟ نو حسن دامام صاحب څخه روایت کوي چې مونځ به کوي ځکه چې د وتلو څخه مقصود مونځ کول دي، رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایي چې دالله بندګانې دمساجدو څخه مه منع کوئ او کورونه ورته دمساجدو څخه بهتر دي او ښځو ته پکار دي چې کله وځي نو خوشبویي دې نه لګوي او معلی دامام ابو یوسف رَحِمَهُ اللَّهُ څخه او هغه دامام صاحب رَحِمَهُ اللَّهُ څخه روایت کوي چې مونځ به نه کوي، ځکه چې دښځو وتل صرف دمسلمانانو دتعداد دزیات ښکاره کولو لپاره وو دحضرت ام عطیه رضی الله عنها په حدیث کې راځي چې ښځې به دنبی کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره عیدګاه ته وتلې حتی چې پرده داري او حایضې ښځې به هم وتلې او دا خو معلومه خبره ده چې حایضه مونځ نه کوي نو معلومه شوه چې دښځو وتل صرف دتکثیر السواد لپاره وو (نو که دکثرت دمظاهری ضرورت وو) نو زمونږ په زمانه کې به هم همدا حکم وی.

۸-علامه شنقیطی رحمه الله فرمایي چې: الْمَسْأَلَةُ الْخَامِسَةُ: اعْلَمْ أَنَّ صَلَاةَ النِّسَاءِ فِي بُيُوتِهِنَّ أَفْضَلُ لَهُنَّ مِنَ الصَّلَاةِ فِي الْمَسَاجِدِ، وَلَوْ كَانَ الْمَسْجِدُ مَسْجِدَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَبِهِ تَعْلَمُ أَنَّ قَوْلَهُ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: «صَلَاةٌ فِي مَسْجِدِي هَذَا خَيْرٌ مِنْ أَلْفِ صَلَاةٍ فِيمَا سِوَاهُ إِلَّا الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ» خَاصٌّ بِالرِّجَالِ، أَمَّا النِّسَاءُ فَصَلَاتُهُنَّ فِي بُيُوتِهِنَّ خَيْرٌ لَهُنَّ مِنَ الصَّلَاةِ فِي الْجَمَاعَةِ فِي الْمَسْجِدِ.

قَالَ أَبُو دَاوُدَ رَحِمَهُ اللَّهُ فِي سُنَنِهِ: حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ، ثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا الْعَوَّامُ بْنُ حَوْشَبٍ، حَدَّثَنِي حَبِيبُ بْنُ أَبِي ثَابِتٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: «لَا تَمْنَعُوا نِسَاءَكُمُ الْمَسَاجِدَ وَبُيُوتُهُنَّ خَيْرٌ لَهُنَّ» وَقَالَ النَّوَوِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ فِي شَرْحِ الْمُهَذَّبِ فِي هَذَا الْحَدِيثِ: وَحَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ صَحِيحٌ رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ رَحِمَهُ اللَّهُ بِلَفْظِهِ هَذَا، بِإِسْنَادٍ صَحِيحٍ عَلَى شَرْطِ الْبُخَارِيِّ رَحِمَهُ اللَّهُ اهـ.

وَهَذَا الْحَدِيثُ أَخْرَجَهُ أَيْضًا الْإِمَامُ أَحْمَدُ رَحِمَهُ اللَّهُ، وَقَالَ ابْنُ حَجَرٍ رَحِمَهُ اللَّهُ فِي فَتْحِ الْبَارِي: وَقَدْ وَرَدَ فِي بَعْضِ رِوَايَاتِ هَذَا الْحَدِيثِ وَغَيْرِهِ، مَا يَدُلُّ عَلَى أَنَّ صَلَاةَ الْمَرْأَةِ فِي بَيْتِهَا أَفْضَلُ مِنْ صَلَاتِهَا فِي الْمَسْجِدِ، وَذَلِكَ فِي رِوَايَةِ حَبِيبِ بْنِ أَبِي ثَابِتٍ رَحِمَهُ اللَّهُ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بِلَفْظِ: «لَا تَمْنَعُوا نِسَاءَكُمُ الْمَسَاجِدَ وَبُيُوتُهُنَّ خَيْرٌ لَهُنَّ» أَخْرَجَهُ أَبُو دَاوُدَ رَحِمَهُ اللَّهُ، وَصَحَّحَهُ ابْنُ خُزَيْمَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ، وَلِأَحْمَدَ رَحِمَهُ اللَّهُ وَالطَّبَرَانِيِّ رَحِمَهُ اللَّهُ مِنْ حَدِيثِ أُمِّ حُمَيْدٍ السَّاعِدِيَّةِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا أَنَّهَا جَاءَتْ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! إِنِّي أُحِبُّ الصَّلَاةَ مَعَكَ، فَقَالَ: «قَدْ عَلِمْتُ، وَصَلَاتُكِ فِي بَيْتِكِ خَيْرٌ لَكِ مِنْ صَلَاتِكِ فِي حُجْرَتِكِ، وَصَلَاتُكِ فِي حُجْرَتِكِ خَيْرٌ مِنْ صَلَاتِكِ فِي دَارِكِ،

وَصَلَاتُكِ فِي دَارِكِ خَيْرٌ مِنْ صَلَاتِكِ فِي مَسْجِدِ قَوْمِكِ، وَصَلَاتُكِ فِي مَسْجِدِ قَوْمِكِ خَيْرٌ مِنْ صَلَاتِكِ فِي مَسْجِدِ الْجَمَاعَةِ» (اضواء البيان فی ایضاح القرآن)

پدې خبره باندې ځان پوه کړئ چې دمسجد په نسبت دښځو لمونځ په کور کې بهتر دی اګر چې مسجد نبوی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ولې نه وي ،ددې څخه دا معلومه شوه چې دمسجد نبوي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فضيلت په نورو مساجدو باندې په نظر سره سرېو ته دې، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي چې زما په مسجد کې مونځ دمسجد حرام څخه بغير دنورو مساجدو په نسبت زرچنده بهتر دی نو دا دسړيو په باره کې دی او دښځو مونځ په کور کې دمسجد په نسبت ډير ثواب لري ، امام ابو داؤد په خپل سند سره د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څخه روايت کوي چې دالله تعالى بندګانې دمساجدو څخه مه منع کوئ او کورونه ورته دمساجدو څخه بهتر دي، دا حديث صحيح دی، په فتح الباری کې ابن حجر رحمه الله فرمايي چې دا حديث او ددې مضمون مطابق دنورو احاديثو څخه دا خبره ثابتيږي چې دښځې لمونځ دمسجد په نسبت په کور کې بهتر دی لکه څرنګه چې دأم حميد رضی الله عنها په حديث کې راځي چې دابی بی رضی الله عنها رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته راغله او د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره يې د خپل مونځ دشوق اظهار وکړو، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمايل چې زه ستا په شوق باندې خبريم ، خو ستا مونځ ستا په کوټه کې دصحن په نسبت بهتر دی او په وړه مخصوصه کوټه کې دلويې کوټې په نسبت بهتر دی .

**فايده:** چې کله دښځې په حق کې دفرض مونځ لپاره مسجد ته تلل ندی بهتر نو داختر دلمانځه لپاره عيد ګاه ته څرنګه بهتر شو؟ ددې په خلاف دغير مقلدينو دنظر مطابق په ښځو باندې د اختر لمونځ فرض دی ، دغير مقلدينو دا نظريه دقرآن او دحديث څخه مخالفه ده .

## دتيرو احاديثو او دعلماؤ د اقوالو نتيجه

مساجدو او عيدګاوو ته دښځو دتللو په باره کې موتقريبا او يا احاديث، درې ايتونه او داوو علماوؤ اقوال پيش کړل، څوک چې دشريعت په مزاج پوهيږي نو پدې دلايلو کې دسوچ څخه وروسته دهغوي اجماعي فيصله داده چې ١- ښځه چې دکور څخه ووځي بيا برابره خبره ده چې مسجد ته ځي او که عيدګاه ته ځي او که بازار ته ځي او که بل هر ځای ته ځي دخاوند څخه به اجازه أخلي داجازت دنه اخستلو په صورت کې به ګناهګاره وي .

۲-ښځه چې د کور څخه وځي نو د اسبابو دفتنې څخه به ځان ساتي، لکه خوشبويي لګول، زينت کول، د سړيو سره اختلاط کول، په اوچت اواز باندې خبرې کول، خبروته د ضرورت په وخت کې په نرمه لهجه باندې خبرې کول، وغيره او د کور څخه بهر دا شيان ځکه حرام دي چې د دې شيانو داستعمال څخه دفتنې او د فساد ويره ده، نو د دې اسبابو د سد الباب څخه اصل مقصود دفتنې او د فساد ختمول دي ، اوس که يوه ښځه د دې شرطونو رعايت کوي لکن د دې شرطونو او د تحفظاتو با وجود بيا هم د فتنې او د فساد ويره وي ،نو بيا به هم د ښځې وتل ممنوع او حرام وي حضرت عايشې رضی الله عنها او بعضې صحابه کرامو رضی الله عنهم چې د ممانعت فتوی ورکولې نو هغه د همدې فساد او دفتنې د ويرې له وجې وي.

خلاصه دا چې مسجد او يا عيدګاه ته دتللو لپاره ښځو ته د اجازت او د ممانعت اصل علت خوف الفتنة او عدم خوف الفتنة دی.

## هر لامذهبه أهل حديث ځان ته خداى او پيغمبر وايي

۱-په هر ځاى کې چې صحابه وو رضی الله عنهم ، تابعينو او فقهاؤ دقرآني اودنبوي دلايلو په رڼا کې کومه رأيه قايمه کړې وي نو غير مقلدين هغې ته خو دساخته او دملايانو خبره وايي او د دې په مقابل کې خپلې رأيې ته عين قرآن او حديث وايي اودخپلې خبرې څخه مخالف ته دالله تعالى او دمحمد صَلَّىٰ اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څخه مخالف وايي ګويا چې دځان څخه يې خداى او پيغمبر جوړ کړی وي (معاذ الله ) غيرمقلدين ددوي دنظريې څخه مخالف څخه ته خپل مخالف نه وايي بلکې دالله تعالى او دپيغمبر صَلَّىٰ اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخالف ورته وايي ، يو غير مقلد شپه او ورځ داسې نشريات کوي ، (محمدي لمونځ بمقابله حنفی لمونځ )هغه دګنج ددروازې په مقدار د ازادو ښو والا خپل شخصي مونځ ته يې محمدي لمونځ وويلو او دده دنظر څخه مخالف مونځ ته يې دمحمدي مونځ څخه مخالف وويلو چې دا عين دمحمد والي او دپيغمبرۍ دعوه ده.

۲-مسجد دتللو لپاره دښځو داستيذان په باره کې دوه قسمه احاديث دي، په يو کې د الليل قيد دی يعنی ښځې چې کله دشپې اجازت وغواړي او په دوهم کې د الليل قيد نشته بلکې مطلق دي، يعنی چې دشپې اجازت وغواړي او که د ورځې، نو اوس دلته دوه رايې دي، يوه دامام بخاری رحمه الله او دصحيح البخاری دشارحينو رأيه ده او بله دغير مقلد لامذهبه اهل حديث محمد رئيس ندوي (استاذ جامعه سلفيه بنارس )رأيه ده.

د امام بخاری رحمه الله رأیه دا ده چې مطلق په مقید ورحمل دی او دا قید هم د اولویت لپاره دی، یعنی أولی دادی چې ښځې دشپې اجازت وغواړي او مسجد ته لاړې شي او دورځې دې نه اجازت غواړي او نه دې مسجد ته ځي او که د ورځې یې اجازت وغوښتلو او مسجد ته لاړې نو خلاف الأولی کاریې وکړو مګر جایز دی، امام بخاری رحمه الله په ص ۱۱۹ کې باب لګولی دی په نوم د (باب خروج النساء الی المساجد باللیل والغلس) پدې کې یې همدې ته اشاره کړې ده، خکه چې امام بخاری رحمه الله یوائې دشپې قید لګولی دی د ورځې ذکر یې نه دی کړی او د لامذهبه بناسپتی رئیس ندوي رأیه داده چې دا حکم عام دی او د اللیل قید اتفاقي دی (سلفی تحقیقی جایزه ص. ۷۸۳) یو دیوبندي عالم مولانا حبیب الرحمن قاسمی رحمه الله د دارالعلوم دیوبند مدرس د امام بخاری رحمه الله د رأیه د حوالې سره په خپله رساله کې رانقل کړې ده په نوم د (*خواتین کی بہترین مسجد*) کله چې دا رأیه د دې بناسپتی رئیس دشخصي رأیې څخه مخالفه وه نو رد یې پرې وکړو او دعوه یې وکړه چې دا رأیه د الله تعالی او د محمد ﷺ دخبرې څخه مخالفه ده او د دې رأیې والا صفا جهنمي دی په دنیا او په اخرت کې د سزا مستحق دی (سلفي تحقیقي جایزه ص ۷۸۳)

وګوره لامذهبه بناسپتی رئیس ته چې څرنګه یې د خدایي او د پیغمبرۍ دعوه وکړه؟.

۳- کله چې ښځه عیدګاه او یا مسجد ته د شرطونو او د تحفظاتو د لحاظ څخه بغیر ځي نو وتل یې حرام دي او که د شرطونو او د تحفظاتو لحاظ یې کړی وي نو بیا یې وتل مکروه تنزیهي دی او دلیل یې هغه ترغیبی احادیث دي چې په هغوي کې د ښځو لپاره په کور کې د مانځه زیات ثواب ذکر شوی دی او د زیات ثواب پرېښودل خلاف الاولی او مکروه تنزیهي دي غیرمقلدین دا ترغیبي احادیث بالکل نه مني او وایي چې د شرطونو د لحاظ څخه وروسته هیڅ کراهت نه پاتې کیږي، دا د غیر مقلدینو شخصي رأیه ده، که غیر مقلدینو دا رأیه خپله شخصي رأیه ګڼلې نو دومره د ګیلې ځای به نه وو لکن افسوس په دې دی چې غیر مقلدین دې خپلې رأیې ته د قرآن او د حدیث نوم ورکوي او د مقابل طرف خبرې ته خود ساخته رأیه وایي، مذکور لامذهبه بناسپتي رئیس لیکي چې: کله چې د شرطونو سره ښځو ته مطلقا اجازت دی نو بیا هم ورته مکروه تنزیهي ویل خود ساخته خبره ده (سلفی تحقیقی جایزه ص ۷۸۳)

۴- په احادیثو کې عیدګاه او مسجد ته د ښځو د وتلو لپاره یو څو هدایات او تحفظات ذکر شو او خطراتو او دفتنو نشاندهي پکې وشوه، د تحفظاتو سره سره ورته په کور کې د لمونځ ترغیب ورکړل شو.نو صحابه کرامو لکه حضرت عایشه رضی الله عنها، حضرت عمر رضی الله عنه، حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما، حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه حضرت علی رضی الله عنه او تابعینو او تبع تابیعنو (لکه ابراهیم نخعي رحمه الله، عطاء رحمه الله، قاسم بن محمد رحمه الله، سفیان ثوری رحمه الله حسن بصری رحمه الله وغیره وو) دا وفهمو له چې دا مسئله معلوله بعلة ده، علت ورته دفتنې خوف، او عدم خوف دی نو چونکې نن سبا عیدګاه او مسجد ته دځوانو او پیغلو ښځو وتل دتحفظاتو سره سره هم سبب دفتنې دی، له دې جې ددوي وتل خو په هر صورت کې حرام دی، همدارنګه هغه پخې ښځې هم دی په کومو کې چې دسړیو طرفته میلان وي او یا ورته دسړیو میلان کیږي او هغه زړې ښځې چې دهغوي وتل هیڅ سبب دفتنې نه وي نو دهغوي وتل اګر چې جایز دی لکن بیا یې هم په کور کې مونځ کول ډیر ثواب لري دجمهور أمت په خلاف دغیر مقلدینو رأیه داده چې نه دا علت صحیح دی او نه دا فرق او بیا دې خپلې رأیې ته دقرآن او دحدیث نوم ورکوي، مذکور لامذهبه بناسپتي رئیس لیکي چې وړې ځوانې او زړې ټولو ته اجازت عامه دی په حدیث کې فرق ندی ذکر شوی او علت فساد هم ندی ذکر شوی (سلفی تحقیقی جایزه ص۲۸۱)

## دحضرت عائشې رضی الله عنها فهم او دغیر مقلدینو فهم

دحضرت عایشې رضی الله عنها فهم دادی چې زمونږ په زمانه کې چې ښځو کومې نخرې شروع کړې دي که دا نخرې یې دنبی کریم صلی الله علیه وسلم په زمانه کې هم کولې نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم به دمساجدو څخه منع کړې وې او دغیر مقلدینو فهم دادی چې که ښځو دا نخرې دنبی کریم صلی الله علیه وسلم په زمانه کې هم کولې نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم به دمساجدو څخه نه وی منع کړی (فتاوی نذیریه ج ۱ص۶۱۸، فتاوی علماء حدیث ج ۴ص ۱۷۵)

نو دلامذهبو اهلحدیثو په نیز دحضرت عایشې رضی الله عنها فهم د رسول الله صلی الله علیه وسلم دفهم څخه مخالف دی او ددوي خپل فهم د رسول الله صلی الله علیه وسلم دفهم سره موافق دی.

وګورئ نذیر حسین دځان څخه رسول جوړ کړو او خپل فهم ته یې فهم الرسول وویلې او بیا یې دحضرت عایشې رضی الله عنها فهم ددې جعلي رسول دفهم سره مخالف وګرزولو.

## دصحابه وو رضی الله عنهم فهم او دلامذهبو فهم

نذیر حسین مخکې ځي او لیکي چې: یہ حضرت عائشہ رضی اللہ عنہا اپنی فہم سی فرماتی ہیں اور فہم صحابہ حجت شرعی نہیں ہی (فتاوی علماء حدیث ج ۴ ص ۱۷۶)

دا د حضرت عایشې رضی الله عنها خپل فهم دی او دصحابه وو فهم شرعي حجت نه دی.

نو ورونو! لامذهبان ځکه فهم دصحابه وو رضی الله عنهم حجت نه ګڼي چې دوي خپل فهم ته فهم الرسول وايي او خپلې رائې ته حديث الرسول وايي، ځکه چې دوي وايي چې مونږ فهم دصحابه وو رضی ا لله عنهم د رسول الله ﷺ دفهم په مقابله کې حجت نه ګڼو حالانکې مقابله دفهم دصحابه ؤ او دفهم دلامذهبو ده لکن دوي خپل فهم ته فهم الرسول وايي او بيا ورسره دصحابه وؤ فهم مخالف ګڼي.

## دلامذهبو اهلحدیثو دبطلان واضح دليل

لامذهبه اهلحديث فهم دصحابه وو رضی الله عنهم ته اعتبار نه ورکوي، مخکې تاسو دنذير حسين خپل عبارت وکتلو، نواب نور الحسن ليکي چې: در اصول متقرر شده که قول صحابی حجت نباشد (عرف الجادی صـ ۱۰۱)

نواب صديق حسن خان ليکي چې: وحاصل آنکه حجت بتفسير صحابه غير قايم است لاسيما نزد اختلاف، بدور الاهله صـ ۱۳۹)

حالانکه دالله تعالی او دمحمد ﷺ په نيز دهغه چا دين ته هيڅ اعتبار نشته کوم چې په فهم دصحابه وو باندې نه وي بناء، لامذهبان ځکه دصحابه وو فهم ته دليل نه وايي چې دوي دصحابه وو دفهم په مقابل کې خپل فهم ته فهم ا لرسول وايي تاسو تجربه و کړئ هيڅکله به ددوي څخه وانه ورئ چې دا زما فهم دی بلکې هميشه خپل فهم ته حديث الرسول وايي.

## دصحيح البخاری او دفهم الصحابه څخه دلامذهبو نفرت

لامذهبيت او غير مقلديت دخواهش پرستۍ دوهم نوم دی، دوي دقرآن او دحديث نوم زمزمه کوي او خپل خواهشات پوره کوي، کله چې دصحيح البخاری دحضرت عايشې رضی الله عنها حديث دلامذهبو دخواهش څخه مخالف وو، نو نذير حسين يو ځلې وويلې چې دا فهم دعايشې رضی الله عنها دی او د رسول الله ﷺ دفهم څخه مخالف دی، بيا يې وويلې چې دا فهم دعايشې رضی الله

عنها دی او فهم دصحابه وو حجت نه دی، وروسته لامذهبه بناسپتي رئیس راپورته شو او سوچ یې وکړو چې دزرګر دټک ټک په ځای د اهنګر دپلک یو ګذار پکار دی چې نه سر پاتې شی او نه سر درد، له دې وجې یې ولیکل چې دصحیح بخاري حدیث هم غلط دی او دحضرت عایشې رضی الله عنها فهم هم غلط دی (سلفی تحقیقی جایزه صـ ( ۷۸۴)

وروسته نور هم په غوصه شو اود حضرت عایشې رضی الله عنها حدیث ته یې سندره وویلې، لامذهبه خناس لیکي چې (*ان تلبیسات کی بعد دیوبند یہ نی حدیث عائشہ والی راگنے پہر گائی* ) سلفی تحقیقی جایزه صـ ۷۸۷. اوس دې مسلمانان پخپله فیصله وکړي چې حدیث ته سندره ویل څه حکم لري؟

## یو نوی بدعت

لکه څرنګه چې اهلسنت والجماعت همیشه دسنتو د راژوندي کولو جذبه لري نو بالمقابل أهل بدعت همیشه دنوو نوو بدعاتو دجاري کولو شیطاني جذبه لري دلامذهبه جعلي اهلحدیثو په جدیدو بدعاتو کې یو بدعت دادی چې په ښځو باندې دأختر لمونځ ته په عیدګاه کې فرض وایي دغیرمقلدینو مذکور بناسپتی رئیس لیکي چې (*لہٰذا فرض وواجب ہی کہ عورتین نماز عید کیلی عیدگاہ جائیں*) په ښځو باندې عیدګاه ته د اختر دلمانځه لپاره تلل فرض او واجب دي (سلفي تحقیقي جایزه صـ۷۹۸) همدارنګه لیکی چې:

زړه وي او که ځوانه، باکره وي او که ثیبه، هره ښځه باید عیدګاه ته د اختر دلمانځه لپاره لاړه شي او یا لیکي چې څوک چې ورته واجب نه وایي هغه ممسوخ الفطرات دی (صـ۷۹۸)

او په استدلال کې وایي چې په احادیثو کې صراحةً حکم شوی دی چې ښځې دی داختر دلمانځه لپاره عیدګاه ته لاړې شي، همدارنګه داحدیث (دام عطی رضی الله عنها) په تواتر سره په صیغې دأمر روایت شوی دی لهذا په ښځو باندې فرض او واجبه ده چې د أختر دمانځه لپاره عیدګاه ته لاړې شي (صـ۷۹۸)

## په ښځو باندې اختر لمونځ فرض نه دی

**تمهید:** هر امر دوجوب لپاره نوی لکه ﴿ وَإِذَا حَلَلْتُمْ فَاصْطَادُوا ﴾ ﴿ قُلْ تَمَتَّعْ بِكُفْرِكَ ﴾(أمرت بالسوک) أمرت بالضحی والوتر ولم تکتب) مسند احمد

لدې وجې مونږ وایو چې دحضرت ام عطیه رضی الله عنها په حدیث کې دأمرنا لفظ دفرضیت په معنی نه دی.

**دلایل: ۱-** هغه ترغیبي احادیث چې په هغوي کې دا مضمون په ډیر صراحت سره ذکر شوی دی چې دښځو مونځ په کورونو کې ډیر ثواب لري، ددې مضمون والا احادیث ډیر زیات دي، مخکې مونږ ددې مضمون والا صرف دولس احادیث ولیکل، په هغې احادیثو کې د اختر دمونځ استثناء نشته.

۲- دښځې په باره کې دکور څخه د وتلو په صورت کې ترهیبي احادیث: امام منذري رَحِمَهُ اللهُ په الترغیب والترهیب کې باب لګولی دی په نوم د (ترغیب النساء فی الصلوة فی بیوتهن ولزومها ترهیبهن من الخروج منها) ددې باب لاندې یې یوولس ترغیبي او ترهیبي احادیث ذکر کړی دي او په یو حدیث کې هم پکې د اختر دمونځ او دعامو مونځونو فرق نه دی ذکر شوی.

۳- حضرت أم حمید رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته شکایت وکړو چې زما خاوند ما ستا سره دجماعت لمونځ ته نه پریږدي، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ددې خاوند ته دتهدید په ځای باندې ښځو ته په کورنو کې دمونځ ترغیب ورکوي، ګویا چې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ددې دخاوند تایید وکړو، پدې حدیث کې هم دا اختر دمونځ استثناء نشته بلکې تر اخره پورې بیا أم حمید رضی الله عنها دخپل کور په یو تیاره کونج کې لمونځ کولو.

۴- داستیذان احادیث: که چیرته په ښځو باندې په عیدګاه کې د اختر لمونځ فرض وی، نو بیا داستیذان څه معنی ده؟ ځکه چې د اجازت دغوښتلو معنی داده چې خاوند ته د اجازت د ورکولو او د نه ورکولو دواړو اختیار دی، نو اوس که خاوند اجازت ورنکړي نو ښځه به دا فرض څرنګه ادا کوي؟ او که دسړیو په شان بې اجازته عیدګاه ته ځي نو بیا دا ستیذان څه فایده ده؟ که لامذهبان داسې حدیث لري چې په هغې کې داستیذان څخه دا اختر دمونځ استثناء وي نو پیش دې یې کړي.

۵- حضرت ابن عمر رضی الله عنهما، حضرت ابن مسعود رضی الله عنه حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت عایشه رضی الله عنها، حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عروه بن زبیر رحمه الله قاسم بن محمد رحمه الله، ابراهیم نخعي رحمه الله، حسن بصري رحمه الله، عطاء بن رباح رحمه الله او سفیان ثوري ولې ښځې دعیدګاه او دمسجد څخه منع کولې؟ که په ښځو باندې په عیدګاه کې د اختر لمونځ فرض وی نو بیا ایا ددې دا معنی نده چې دغې مذکورو صحابه وو او تابعینو خلک د فرض څخه منع کول؟

۶- مخکې تیر شول چې پدې خبره باندې اجماع ده چې دفتنو او دفساد په وخت کې عیدګاه او مسجد ته دښځو تلل حرام دي، دا اجماع ددې دلیل دی چې په ښځو باندې د اختر لمونځ او عیدګاه ته تلل فرض نه دي.

٧- دجمعې او دپنځه وخته مونځ چې څومره تاکيدات دي هغه د اختر دلمونځ په باره کې نشته، دجمعې او دپنځه وخته لمونځ په پرېښودلو چې څومره وعيدات دي هغه داختر د مونځ په باره کې نشته، نو چې دجمعې او پنځه وخته لمونځ ته مسجد ته تلل او جماعت کول وربانديې فرض نه دی نو د اختر مونځ څرنګه وربانديې فرض شو؟

٨- دفتنې او دفساد په صورت کې چې مسجد ته تلل حرام دي نو عيدګاه ته څرنګه فرض شو؟

٩- که په ښځو بانديې د اختر مونځ فرض وي نو بيا خو په حديث کې دا هم راغلي دي چې حايضو ښځو ته هم حکم شوی وو چې عيدګاه ته لاړې شئ، لکن مونځ مه کوئ نو حايضو ته ولې امر کيدلو؟ معلوميږي دا چې ښځو ته عيدګاه ته دتللو حکم ددې وجې څخه نه وو چې پدوي بانديې د اختر لمونځ فرض دی بلکې له دې وجې څخه وو چې په ابتداء کې دمسلمانانو عددي قوت کم وو ، نو دخپل عددي افرادي قوت دښودنې لپاره ښځو ته حکم شوی وو چې عيدګاه ته لاړې شي ، نو کيدای شي چې په يووخت کې په ښځو بانديې تلل لازم وو ، لکن چې کله دمسلمانانو تعداد زيات شو نو بيا هغه لزوم ختم شو او دشرايطو او دتحفظاتو سره صرف رخصت او اباحت پاتې شو .

١٠- په ښځو بانديې عيدګاه ته دتللو فرضيت ددې ايت کريمه سره معارض دی چې و (قرن فی بيوتکن) مونږ وايو چې د وقرن فی بيوتکن مطابق مطابق دښځو لپاره په کورونو کې عبادت افضل دی او دحديث له وجې ورته مسجد او عيدګاه تلل جايز دي لکن دشرايطو سره .

## دأم عطيه رضی الله عنها په حديث کې دأمر معنی

دمذکورو دلايلو په بناء دجمهور أمت په نيز بانديې دأم عطيه رضی الله عنهاپه حديث کې د(أمرنا) جمله دفرضيت لپاره نه ده، لامذهبان دي د(أمرنا) څخه دفرضيت دثابتولو لپاره کوم دليل پيش کړي، مونږ وايو چې د (أمرنا) جمله د رخصت او داباحت لپاره ده ، پدې سره به داحاديثو په مابين کې تطبيق راشي او هغه داسې چې دأم عطيه رضی الله عنها په حديث کې رخصت او اباحت ذکرشوی دی او په ترغيبي او ترهيبي احاديثو کې او لويت او افضليت ذکر شوی دی، په رخصت او افضليت کې هيڅ تعارض نشته او که دأم عطيه رضی الله عنها په حديث کې فرضيت ذکر شي نو بيا به يې دهغو ترغيبي او ترهيبي احاديثو سره تعارض راشي .

دأم عطيه رضی الله عنها حديث خبر واحد دی او فرضيت خو په داسې دليل باندې ثابتيږي چې هغه قطعي الثبوت او قطعی الدلالت وي.

## دلامذهبو او دأمت دعلماؤ په مابين کې څلور اختلافی نکتې

مخکې دا څلور نکتې واورئ او بيا دلامذهبو سب او شتم واورئ.

١-مسجد او عيدګاه ته د ښځو دتللو شرعي حيثيت څه دی ؟

٢-مسجد او عيدګاه ته د ښځو تلل معلول بعلة دی او که نه ؟

٣-د ښځو په باره کې د مسجد او دعيدګاه حکم يو دی او که نه ؟

٤-دحضرت ام عطيه رضی الله عنها په حديث کې د(أمرنا) جمله دفرضيت لپاره ده او که نه؟

**اوله نکته:**

عيدګاه او مسجد ته د ښځو دتللو لپاره يو څو شرايط دي چې عبارت دي له : استيذان از خاوند، پرده ،ترک دخوشبويي، ترک دزينت، ترک داختلاط مع الرجال، اواز نه اوچتول عدم دخوف دفتنې وغيره.

نو که ددې شرايطو او تحفظاتو لحاظ وو نو بيا عيدګاه او مسجد ته د ښځو تلل مباح دي، لکن بيا هم په کور کې يې ثواب زيات دی او دکور په نسبت يې په کوټه کې ثواب زيات دی او دکوټې په نسبت يې په وړه مخصوصه کوټه کې ثواب زيات دی او دلايل ورته مخکيني ذکر شوي ترغيبي او ترهيبي احاديث دي، ددې په خلاف دلامذهبو مسلک دادی چې په ښځو باندې عيدګاه ته تلل او دأختر لمونځ فرض دی (سلفی تحقيقی جايزه ص ٧٩٨)

په دې فتوی باندې د (١٩) غيرمقلدو علماو دستخط دی ، فتاوی علماء حديث ج ۴ ص ٢٠٠)

په ښځو باندې داختر دلمانځه لپاره عيدګاه ته تلل لازم او ضروري دي (ايضًا، بحواله الروضة النديه ج ١ص ١۴٢)

**دوهم نکته:**

دعلماؤ دامت په نيز داحکم معلول بعلةٍ دی، علت داباحت عدم خوف دفتنې دی او علت دمنع خوف دفتنې دی او دليل ورته لزوم دشرايطو او دتحفظاتو دی شرايط او تحفظات دهمدې خوف دفتنې له وجې لازم شو ، همدارنګه حضرت عايشې رضی الله عنها خوف دفتنې محسوس کړو او وېفرمايل

چې که دښځو دا اوسني حالت په عهد نبوي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کې ظاهر شوی وی نو رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به ښځې دمساجدو څخه منع کړی وی، لکه دبنی اسرائیلو ښځې چې منع کړې شوې وې معلومیږي دا چې داسرائیلي ښځو دمنع سبب فتنه او فساد وو، همدا أسباب دفتنې صحابه وو لیدلی وو او خوف دفتنې ورسره پیدا شوی وو لدې وجې څخه یې ښځې دمساجدو څخه منع کړې وې . دابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ دخپل ځوی سره تشدد صرف دحدیث الرسول صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره دلفظي ټکر له وجې وو ،که ټول صحابه وو رضی الله عنهم په دې متفق وو چې داباحت او دمنع مدار په عدم خوف او په خوف دفتنې دی ، بعضو صحابه کرامو ته چې خوف دفتنې ډیر ښکاره وو هغوي په منع کې ډیر تشدد کولو او کومو صحابه وو رضی الله عنهم ته چې خوف دفتنې دومره ډیر ظاهر نه وو نو هغوي سهولت کولو ، ددې په خلاف دلامذهبو په نیز دا حکم معلول بعلة نه دی، که هرڅومره حالات خراب وي بیا هم په ښځه باندې داختر دلمانځه لپاره عید ګاه ته تلل فرض دي او مسجد ته تلل ورته جایز دي، لامذهبان په داسې نا أمنه خرابو حالاتو کې هم دښځو منع کول وته دشریعت بدلول، شیطاني اغواء او شیطاني قیاس وایي .
(فتاوی علماء حدیث ج ۴ص ۱۷۴، سلفی تحقیقی جایزه ص ۷۸۱)

لامذهبه بناسپتي رئیس لیکي چې د رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې دیوې زنانه سره دزنا واقعه پیښه شوه لکن بیا هم رسول الله ښځې دمسجد څخه منع نه کړې او داسې یې ونه فرمایل چې اوس زمانه فاسده شوه نو مساجدو ته مه راځئ (سلفي تحقیقي جایزه ص ۷۸۷) بناسپتي رئیس پدې نه پوهیږي چې یوه جزئي واقعه پیښیدل دزمانې دفساد دلیل نه دی.

**دریمه نکته:**

دعلماؤ دامت په نیز باندې دمسجد او دعیدګاه حکم یو دی، چې که دشرایطو او دتحفظاتو لحاظ ورنو بیا دواړو ته تلل مباح دي او نه تلل ورته أفضل دي او که دشرایطو او دتحفظاتو لحاظ نه وو نو بیا دواړو ته تلل ممنوع دي او په اهلسنتو کې چې کومو علماوو فرمایلي دي چې زړو ښځو ته پنځه وخته لمونځ ته دتللو رخصت نشته او عیدینو ته ورته دتللو رخصت دی نو ددې وجه دا ده چې: تکثر الصلحاء ایضا فتمنع هیبة الصلحاء العلماء ایاهما عن الوقوع فی الفتنة (بدایع الصنایع ج ۱ص ۶۱۷) په عیدینو کې علماء او صلحاء په کثرت سره موجود وي، نو ددوي هیبت ښځې او سړي دګناه څخه منع کوي،

ددې ځخه هم معلومیږي چې داباحت او دمنع اصل علت عدم خوف او خوف دفتني دی عیدینو ته درخصت علت عدم خوف دفتنې دی او نورو جماعاتو ته دمنع علت خوف دفتنې دی که عیدینو ته دتللو په صورت کې خوف دفتنې غالب شي نوبیا به عیدین هم دېنځه وخته لمونځ په شان وي ،لکن ددې په خلاف دغیر مقلدینو په نیز په مسجد او په عیدګاه کې فرق دی ، عیدګاه ته تلل فرض دي او مسجد ته تلل جایز دي.

**ځلورمه نکته:**

دامت دعلماؤ په نیز دحضرت أم عطیه رضی الله عنها په حدیث کې د "أمرنا" جمله دفرضیت لپاره نه ده او یا ابتداءً دفرضیت لپاره وه چې بیا وروسته فرضیت منسوخ شو ، لکن ددې په خلاف دغیر مقلدینو په نیز دا جمله دفرضیت لپاره ده او دا حکم دائمي دی . (فتاوی علماء حدیث ج ۴ ص ۱۷۳)

## صحابه وؤ رضی الله عنهم او تابعینو ته دلامذهبو شتم او سب

پدې ځلورو نکتو کې یوه رأیه دصحابه وو رضی الله عنهم او دتابعینو او دتبع تابعینو ده، لکه حضرت عایشه رضی الله ، حضرت زبیر بن عوام رضي الله عنه ، حضرت قاسم بن محمد رحمه الله ، حضرت ابراهیم نخعي رحمه الله ، حضرت سفیان ثوری رحمه الله ، حضرت عطاء بن ابی رباح رحمه الله ، حضرت حسن بصری رحمه الله او بله رأیه دغیر مقلدینو لامذهبه جعلي اهلحدیثو ده دغیر مقلدینو رأیه صراحة په هیڅ ایت او په هیڅ حدیث کې نشته، لکن بیا هم دخدایي او دپیغمبری دعوه کوي او خپلې رأیې ته عین حدیث الرسول وایي او دخپلې رأیې ځخه مخالف ته دالله تعالی اود رسول الله ځخه مخالف وایي دلامذهبو دشیخ الکل نذیر حسین دهلوي یوه اږده فتوی ده چې دنورو لامذهبانو دستخطونه هم وربانديې شوي دي، دهغې فتوی ځخه دیو ځو لاندې خبرو اقتباس کیږي .

۱-دلامذهبو فتوی فهم د رسول الله صلی الله علیه وسلم دی او دعلماؤ دامت فتوی فهم دعایشې رضی الله عنها دی، نذیر حسین لیکي چې، *حضرت عایشہ رضی اللہ عنہا کا روکنا اس سبب سے تھا کہ مطابقت فہم رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم سا تھ آپنی فہم کی ضروری نہ جانا* (فتاوی علماء حدیث ج ۴ ص- ۱۷۳)

۲- دلامذهبو رأیه فهم دشارح او فهم دمعصوم دی، ددې په مقابل کې فهم دعایشې رضی الله عنها دی او فهم دصحابه وو شرعی حجت نه دی ، نذیر حسین لیکي چې: *حضرت عایشہ اپنی فہم کی فرماتی ہیں اور فہم صحابہ حجت شرعی نہیں ہی .* (حواله بالا)

۳- دلامذهبو رأیه شرعي أمری دی چې ددې په مقابل کې د حضرت عایشې رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د نورو صحابه وو رأیه ددې أمر شرعي افساد دی ، نذیر حسین لیکي چې: غرض جو امر باعث فساد ہی اس کے اصلاح شارع ہی خود ثابت ہی اس کی اصلاح بقدر نقصان کرنا چاہی نہ کہ معدوم کر دینا اصل امر شرعی حکم کا یہ اصلاح نہیں ہے بلکہ افساد ہی (حوالہ بالا)

۴- دلامذهبو رأیه صحیح مرفوع حدیث دی او بالمقابل د حضرت عایشې رضی الله عنها رأیه ددې صحیح صریح مرفوع حدیث سره معارضه ده ، نذیر حسین لیکي چې : اگر مان لیا جائی کہ مقصود عائشہ رضی اللہ عنہا کا امتناع عام ہی تو یہ اثر کب معارض ہو سکتا ہے حدیث صریح صحیح مرفوع کا (حوالہ بالا)

۵- دلامذهبو رأیه عین هدایت دی او ددې په مقابل کې د حضرت عایشې رضی الله عنها او د نورو صحابه وو رأیه شیطاني اغواء ده ، نذیر حسین لیکي چې: غرض جس مجمع خلاف مین کہ فساد واقع ہو رہا ہے اس سے چشم پوشی کرنا اور مجمع موافق الشرع کو موقوف کر دینا فقط تقاضی شرافت وامارت واغوائی شیطانی ہی (حوالہ بالا)

۶- دلامذهبو رأیه د معصوم نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کلام دی او منسوخ نه دی او ددې په مقابل کې د حضرت عایشې رضی الله عنها او د نورو صحابه ؤ رأیه دا د امتیانو او د غیر معصومو خلکو کلام دی چې ناسخ نه شي جوړیدلی (اور ناسخ بھی کلام معصوم کا نہیں) حواله بالا)

۷- دلامذهبو رأیه د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کلام دی، هدایت دی او سبیل المؤمنین دی او ددې په مقابل کې د حضرت عایشې رضی الله عنها رأیه د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څخه مخالفت دی ، غیر سبیل المؤمنین دی او پدې رأیه باندې تلونکي تهول دوزخیان دي ، نذیر حسین بدبخته لیکی چې: پہر آپ جو شخص بعد ثبوت قول رسول و فعل صحابہ کی مخالفت کری وہ اس ایت کا مصداق ہے ﴿وَمَنْ يُشَاقِقِ الرَّسُولَ مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ الْهُدَىٰ وَيَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيلِ الْمُؤْمِنِينَ نُوَلِّهِ مَا تَوَلَّىٰ وَنُصْلِهِ جَهَنَّمَ وَسَاءَتْ مَصِيرًا﴾

۸- دلامذهبو رأیه د شریعت صریح حکم دی او ددې په مقابل کې د حضرت عایشې رضی الله عنها او د نورو صحابه وو رأیه شیطاني قیاس، لعنتي رأیه او شیطاني رأیه ده ،نذیر حسین لیکي چې: جو حکم

صراحةً شرع شريف ميں ثابت ہو جائی اس مين ہرگز رائی وقياس کو دخل نہ دينا چاہے کہ شيطان اسے قياس سے کہ انا خير منہ حکم صريح الہی سی انکار کرکی ملعون بن گياہے. (حوالہ بالا) .

۹- دلاذمذهبو رأيه شريعت دی او ددې په مقابل کې دحضرت عايشې رضی الله عنها او دنورو صحابه وو رأيه دشريعت بدلول دي ، نذير حسين ددې رأيې په باره کې ليکي چې: شريعت کوبدل ڈالناہے (حواله بالا)

۱۰- دلامذهبو رأيه دالله تعالی او د رسول الله قول دی او ددې په مقابل کې د حضرت عايشې رضی الله عنها او دنورو صحابه وو رأيه دالله تعالی او درسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دقول څخه مخالفت دی ددې رأيی والا خلک ظالمان او فاسقان دي او داسماني عذاب مستحق دي ، نذير حسين ليکي چې: ددوهمې رأيې والا ددې ايت مصداق دی چې (فبدل الذين ) (ظلموا قولا غير الذين قيل لهم) (فتاوی علماء حديث ج ۴ص ۱۷۳، ۱۷۶)

۱۱- بناسپتي رئيس ليکي چې دلامذهبو رأيه شرعي حکم دی او بله رأيه د ممسوخ الفطرت والا وو خلکو ده. (سلفي تحقيقي جايزه ص ۱۹۸)

۱۲- دلامذهبو رأيه دالله تعالی او درسول الله حکم دی او مقابل طرف کافران سرکشه او دالله تعالی او د رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دشمنان دي (فتاوی علماء حديث ج ۴ص ۲۰۱) شمع محمدي ص ۷۱)

خلاصه دا چې غير مقلدينو صحابه کرامو رضی الله عنهم تابعينو او تبع تابعينو ته دا لاندې کنځلې وکړې.
ممسوخ الفطرت ، مخالفين د الله تعالی او د رسول ، معلونين ، په دين کې تحريف کونکي .دوزخيان، کافران، سرکشان، دالله تعالی او د رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دشمنان ، مفسدين ، شيطاني اغواء کاران (معاذ الله، ثم معاذ الله ، ثم معاذ الله ، الی غير النهاية)

## په مسجد کې دښځو داعتکاف شرعي حکم

درمضان په اخرو لسو ورځو کې اعتکاف کول سنت دي او پدې خبره دټول امت اتفاق دی چې دنارينه وو لپاره داعتکاف ځای عام مسجد دی او دښځو لپاره بهتره داده چې دوي په کورونو کې په خاصو خاصو مسجدونو کې اعتکاف وکړي، د کور دخاص مسجد څخه مراد هغه ځای دی کوم چې په کور کې دلمانځه لپاره مقرر شوی وي لکه څرنگه چې ام عطيه رضی الله عنها رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

نه عرض وکړو چې په زمانه د رسول الله صَلَّى ٱللَّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زمونږ په کور کې مونږ ته په يو ځای کې مونځ وکړه چې مونږ به د لمونځ لپاره مقرر کړو او که په کور کې د مخکې څخه د اسې ځای نه وي مقرر نو د اعتکاف په وخت کې دې د اسې ځای مقرر کړي او په هغې کې دې اعتکاف وکړي، د دې په خلاف د غير مقلدينو مسلک دادی چې ښځې دې هم د سړيو په شان په عمومي مسجد کې اعتکاف وکړي، د ښځو لپاره د کور په خاص مسجد کې اعتکاف نه دی جايز د دوي په نيز پکار دی چې د ښځو لپاره د سړيو څخه جدا انتظام وشي او که جدا انتظام نه وو ممکن نو بيا ورته په مسجد کې هم اعتکاف ناجايز دي، لامذهبه صلاح الدين يوسف پخپلو حواشيو د قران کې ليکي چې: د اعتکاف لپاره مسجد ضروري دی معتکف نارينه وي او که زنانه، د زنانه وو لپاره په کورونو کې اعتکاف نه دی صحيح، البته د زنانه وو لپاره په مساجدو کې جدا انتظام ضروري دی که د جدا انتظام امکان نه وو، نو بيا ورته په مسجد کې اعتکاف نه دی جايز دا يو نفلي عبادت دی تر څو پورې چې پوره تحفظ نه وي د دې نفلي عبادت نه کول بهتر دي. (تفسير احسن البيان ص ۷۵)

د غير مقلدينو دا مسلک د غير مقلدينو په لاندې کتابونو کې هم ذکر شوی دی، تحفه رمضان ۸۶، آپ کی مسایل ص ۲۹۵، فتاوی برکاتيه ص ۹۰، فتاوی علماء حديث ج ۶ ص ۴۵۰، وغيره)

## د اختلاف اسباب

د غير مقلدينو او د أهل سنت والجماعت په مابين کې د اختلاف منشأ او سبب د قرآن او د حديث يو څو نصوص دي.

**د اختلاف اول سبب:** الله تعالى فرمايي چې: ﴿وَلَا تُبَاشِرُوهُنَّ وَأَنتُمْ عَاكِفُونَ فِي الْمَسَاجِدِ﴾ (البقره ص ۱۸۷)

د دې ايت څخه د و مره خبره را معلوميږي چې د اعتکاف لپاره مسجد شرط دی، د و مره خبره متفق ده، د دې څخه وروسته د نارينه وو او د زنانه وو لپاره د مسجد د مصداق په تعين کې اختلاف دی أهل سنت والجماعة فرمايي چې د دې ايت په مفهوم کې دوه احتماله دي.

**اول احتمال:** دادی چې پدې ايت کې خطاب عام شي نارينه وو او زنانه وو دواړو ته نو پدې صورت کې به د مسجد څخه هم عامه معنی مراده شي، يعنې د فرض لمونځ لپاره مخصوص ځای به ترينه مراد شي او د فرض لمونځ لپاره مخصوص ځای د نارينه وو په حق کې د محلې مسجد دی او د زنانه وو په

حق کې په کور کې مخصوص ځای دی، نو نارینه دې په عامو مساجدو کې اعتکافونه کوي او زنانه دې په خاصو مساجدو کې اعتکافونه کوي، ۱-رسول الله ﷺ فرمايي چې: خير مساجد النساء قعر بيوتهن ) ترغيب وترهيب للمنذری ج ۱صـ ۲۲۶)

نو چې د اعتکاف لپاره مسجد شرط شو نو د ښځو داعتکاف لپاره همغه مسجد بهتر دی کوم ته چې رسول الله ﷺ بهتر ويلي دي چې قعر بيوتهن دی.

۲-همدارنګه رسول الله ﷺ فرمايي چې: وصلاتها فی دارها خير من صلاتها فی مسجد قومها (ترغيب وترهيب للمنذری ج ۱صـ ۲۲۶)

نو چې مونځ يې دمسجد نبوي د رسول الله دامامتی په نسبت په کور کې بهتر دی، نو اعتکاف يې هم په کور کې بهتر دی، رسول الله ﷺ زنانه وو ته په کور کې دعبادت ترغيب ورکوي او لامذهبان ورته په مسجد کې دعبادت ترغيب ورکوي او بيا هم دطاعت د رسول الله ﷺ چيغې وهي.

۳-داعتکاف لپاره چې کوم مسجد شرط دی دهغې څخه مراد هغه مسجد دی په کوم چې پنځه وخته لمونځ دجماعت سره اداکيږي لکه څرنګه چې په يو روايت کې راځي چې: لاعتکاف الا فی مسجد جماعة (مصنف عبدالرزاق ج ۳صـ ۱۶۸، سنن کبری للبيهقی ج ۴صـ ۳۲۱)

اعتکاف صرف دجماعت والا په مسجد کيږي او دجماعت لمونځ په نارينه وو باندې دی دزنانه وو په باره کې دجماعت لمونځ منسوخ دی (وجماعتهن منسوخة ) عنايه شرح الهدايه ج ۱صـ ۴۱۰ مجمع الانهر ج ۱صـ ۳۲۵ تبيين الحقائق ج ۲صـ ۱۶۳، فتاوی مفتی محمود ج ۳صـ ۴۹۱) نو چې کله دجماعت لمونځ په نارينه وو باندې دی، نو له دې وجې ورته اعتکاف په مسجد کې پکار دی چې دجماعت لمونځ ترينه فوت نه شي او په زنانه وو باندې جماعت ندی لازم بلکې ددوي مونځ په کور کې ډير ثواب لري، لهذا اعتکاف هم ورته په کور کې ډير ثواب لري، ښځه به څرنګه اعتکاف ته مسجد ته ځي او د ډير ثواب دحصول لپاره به مونځ کورته رارسوي ؟.

۴-حضرت عايشة رضي الله عنها فرمايي چې که دا موجوده حالات د رسول الله ﷺ په وخت کې ظاهر شوی وي نو رسول الله ﷺ به ښځې دمساجدو څخه منع کړې وې (صحيح البخاری ج اصـ ۱۳۰) ابو عمرو الشيبانی رحمه الله فرمايي چې عبدالله بن مسعود رضي الله عنه به ښځې په تيګو ويشتلې اودجمعې دلمانځه لپاره مسجد ته دراتللو څخه به يې منع کولې (مصنف ابن ابی شيبه ج ۲صـ ۲۷۷) حضرت

عبد الله بن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به دجمعې په ورځ ښځې په تیګو ویشتلې او دمسجد څخه به یې شړلې (عمدة القاري قدمی ج ۳ص ۲۲۸)په جماعت باندې لس یا پنځلس دقیقې لګیږي نو چې دزنانه وو په مسجد کې دومره حصاریدل صحابه وو نه برداشت کول، نومسلسلې لس شپې او ورځې په مسجد کې حصاریدل به څرنګه برداشت کړلی شي؟ دیته قیاس نه وایي بلکې دلالت النص ورته وایي چې بالاجماع حجت دی.

۵- ابراهیم نخعي رحمه الله فرمایي چې کومې ښځې چې په کور کې اعتکاف کړی وي نو هغه داعتکاف دکوټې مخې ته په لاره کې چې کومه کوټه اویا بربنده وي نو په هغې کې تیریدلی شي او شاطرفته کوټې ته نه شي تللی (معرفة السنن والاثار للبیهقي ج ۶ص ۴۰۳، مصنف عبد الرزاق ج ۴ص ۳۵۰)

**دوهم احتمال:** چې چونکې ﴿ وَلَا تُبَاشِرُوهُنَّ وَأَنْتُمْ عَاكِفُونَ فِي الْمَسَاجِدِ ﴾د مذکر صیغې دي، نو خطاب خاص نارینه وو ته دی او دمساجدو څخه هم یوائې دمحلې عام مسجد مراد دی ، او پاتې شو دښځو حکم نو دا ایت دښځو دحکم څخه ساکت دی ،لدې وجې به نورو دلایلو ته رجوع کوو او هغه دلایل مخکې مونږ ذکر کړه چې ښځه دې دکور په مسجد کې اعتکاف کوي.

**دلامذهبو مسلک:** دلامذهبو په مسلک کې تقریبا درې جزء دي : ۱- په ایت کریمه کې دمسجد څخه مراد ، عام دمحلې مسجد دی ، ۲- په ایت کریمه کې خطاب عام دی نارینه وو او زنانه وو دواړو ته شامل دی ، لهذا دواړه به دمحلې په مسجد کې اعتکاف کوي، ۳- دزنانه وو لپاره به جدا انتظام کولی شي که جدا انتظام نه وو ،ممکن نو بیا دښځو لپاره دمحلې په مسجد کې اعتکاف کول ناجایز دي.

**زمونږ پوښتنه:** لامذهبو چې کومې درې خبرې وکړې دا نه دالله تعالی فرمان دی او نه درسول الله حدیث دی بلکې دلامذهبو شخصي او ذاتي رائې دي له دې وجې لامذهبانو ته پکار دي چې دا هره خبره په ایت اویا په حدیث کې صراحة وښایئ.

**داختلاف دوهم سبب:**

داهل سنت والجماعت او دلامذهبه جعلي اهلحدیثو په مابین کې داختلاف دوهم سبب د أمهات المؤمنین اعتکاف دی یعنې په بعضې احادیثو کې راغي چې بعضو امهات المؤمنین په مسجد نبوي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کې دنبی کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره اعتکاف کړی دی همدارنګه په یو حدیث کې راغي چې حضرت عایشې رضی الله عنها حضرت حفصې رضی الله عنها او حضرت زینب رضی الله عنها د

رسول الله ﷺ څخه اجازت وغوښتلو چې په مسجد کې اعتکاف وکړي ، رسول الله ﷺ ورته اجازت ورکړو ،نو لامذهبان وايي چې امهات المؤمنين چې په مسجد کې اعتکاف کړی دی او رسول الله ﷺ ورته اجازت ورکړی دی نو معلوميږي چې دنارينه وو او دزنانه وو دواړو لپاره داعتكاف ځای دمحلې عمومي مسجد دی.

اهل سنت والجماعت فرمايي چې۱- دلته خو أمهات المؤمنين د رسول الله ﷺ سره اعتکاف کړی دی، نو دا خو دزنانه وو اعتکاف دخپل خاوند سره شو.۲-دا چې ازوج مطهرات أمهات المؤمنين دي ددوي نكاح دبل چاسره حرامه ده، نو دا دخپل محرم سره اعتكاف دی ، لهذا ددې احاديثو څخه دزنانه وو لپاره دمحلې په مسجد کې د اعتکاف دوه صورتونه رامعلوميږي ، اول: دخپل خاوند سره اعتکاف، دوهم: دخپل محرم سره اعتکاف دخاوند څخه بغير اعتكاف په دې حديثونو کې نه دی ذکر شوی اگر چې دزنانه وو لپاره جدا انتظام وي، لکه څرنگه چې زنانه وو ته دخپل خاوند او دخپل محرم سره سفر کول جايز دی لکن ددې څخه هيڅکله دانه ثابتيږي چې دزنانه لپاره دغير محرم سره هم سفر کول جايز شي اگر چې دسړيو څخه ورته جدا انتظام شوی وي ، نو همدارنگه دزنانه وواعتکاف دخپل خاوند او دمحرم سره هم دی، چې ددې څخه هيڅكله دغير محرم سره اعتكاف نه ثابتيږي اگر چې جدا انتظام ورته شوی وي.

۳-بعضو أمهات المؤمنين مخکې په مسجد نبوي کې د رسول الله ﷺ سره اعتکاف کړی وو، وروسته يې بيا يو ځلې اجازت وغوښتلو، رسو ل الله ﷺ ورته اجازت ورکړو کله يې چې په سهار کې دحضرت عايشې رضی الله عنها حضرت حفصې رضی الله عنها او د حضرت زينب رضی الله عنها خيمې او دخپله خيمه په مسجد نبوي کې وليدلې نو رسول الله خفه شو او وې فرمايل چې ايا دوي دنيکی اراده کړې ده ؟ او يا دوي دنيکی گومان کوي؟ استفهام انکاري دی يعنې دا هيڅکله نيکي نه ده بيا رسول الله ﷺ حکم وکړو او ټولې خيمې دمسجد څخه لرې کړې شوې، حتی چې رسول الله ﷺ په دغې کال باندې په رمضان کې اعتکاف ونکړو بلکې دهغې په عوض کې يې په شوال کې اعتکاف وکړو ،نو رسول الله ﷺ په اول کې اجازت ورکړو لکن وروسته يې څومره په سختی سره منع وکړه .لهذا چې أمهات المؤمنين په مسجد کې داعتكاف څخه منع کړی شوی نو نورو زنانه وو ته به څرنگه اجازت وي ؟ ددې ممانعت څخه که حرمت ثابت نشي نو أقلا غير اولويت خو ترينه ثابتيږي.

## یوه پوښتنه

لامذهبان دې دامهات المؤمنين څخه بغیر په ټول خیر القرون کې صرف دیوې صحابي رضی الله عنها او تابعي او یا تبع تابعي نوم پیش کړي چې هغې دمحلې په مسجد کې اعتکاف کړی وي ،ایا دخیر القرون دزنانه وو څخه دلامذهبو زنانه ډیرې ددین شوق لري؟ که لامذهبان وایي چې یو ځلې خو أمهات المؤمنين په عام مسجد کې اعتکاف کړی وو لهذا زمونږ زنانه دې هم په عام مسجد کې اعتکاف کوي نو بیا مونږ وایو چې دأمهات المؤمنين لپاره خو په هر شي کې دسړیو څخه جدا انتظام نه وو ، نو تاسو ولې په هر شي کې دجدا انتظام شرط لګوئ؟

که تاسو وایي چې مونږ دنور دلایلو څخه دجدا انتظام شرط لګوو نو همدارنګه بیا مونږ هم دنورو دلایلو له وجې وایو چې دښځو لپاره دکور په مسجد کې اعتکاف بهتر دی .

که غیر مقلدین نورې زنانه په ازواجو مطهراتو باندې قیاسوي نو ددې څخه خو زیات نه زیات دزنانه وو لپاره دمحلې په مسجد کې داعتکاف جواز ثابتیږي اګر چې أفضل او بهتر دکور مسجد دی لکن دمحلې دمسجد اشتراط خو ترینه نه معلومیږي دا اشتراط په کوم حدیث کې راغلی دی؟

په کوم مرفوع حدیث کې دښځو داعتکاف لپاره دمحلې دمسجد په شرط کیدلو باندې تصریح شوې ده؟

## دیوې شبهې ازاله

په بعضې اثارو کې په بعضو هغو زنانه وو باندې انکار شوی دی، کومې چې دکور په مسجد کې اعتکاف کوي. نو دهغې اثارو محمل دنذر صورت دی، که کومې ښځې نذر ومنلو چې دکور په مسجد کې به اعتکاف کوي نو دا نذر منل بدعت دی. لکه څرنګه چې دحضرت جابر رَضِيَٱللَّهُعَنْهُ په یو حدیث کې راغلي دي چې: (أنه سئل عن امرأة جعلت عليها ان تعتكف فى مسجد بيتها؟ قال لايصلح لتعتكف فى مسجد كما قال الله تعالى وانتم عاكفون فى المساجد ) یوې زنانه په ځان باندې نذر منلی وو چې دکور په مسجد کې به اعتکاف کوي حضرت جابر رَضِيَٱللَّهُعَنْهُ وفرمایل چې دا صحیح نه دی په عام مسجد کې دې اعتکاف وکړي. لکه څرنګه چې الله تعالی فرمایي چې تاسو په مساجدو کې اعتکاف کونکي یئ. (فتح الباري لابن رجب الحنبلي ج ٢ص ٣٧٨)

تمت بالخير والحمد لله .

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله وحده والصلوة والسلام على ن لانبي بعده.

اما بعد!

الله تعالى جل جلاله په سورة الناس کې دداسې انسانانو او پيريانو ذکر کړی دی چې هغوي خپل ټول عمر دې ته وقف کړی وي چې د مسلمانانو په زړونو کې وسوسې واچوي، مسلمانان د اطمنان او ديقين دعظيم دولت څخه محروم کړي، پدې شيطانانو کې وکټوري اهلحديث هم دي وکټوري اهل حديث ددې مذموم مقصد د حاصلولو لپاره خپلې هرې رأيې ته دقرآن او دحديث نوم ورکوي او بل طرفته داتبليغات کوي چې صرف مونږ په قرآن او په حديث باندې عمل کوو او حنفيان، شافعيان، مالکيان او حنبليان دخپلو امامانو په فقه باندې عمل کوي، مونږ د رسول الله صلى الله عليه وسلم اتباع کوو او مقلدين دامامانو اتباع کوي، اوبالخصوص چې کله کومه مبارکه موقع راشي نو ددوي دشرارت رګونه ډير مست شي د رمضان په مياشت کې داتو رکعتو تراويحو شور شورع کړي کله چې داختر ورځ شی نو غير مقلدين اعلانونه شروع کړي چې په فلانکي فلانکي مسجد کې به په سنت طريقه داختر لمونځ ادا کيږي، نو اوريدونکي حيران شي چې أيا صرف دغير مقلدينو لمونځ دسنتو سره مطابق دی؟ او دأحنافو مونځ لکه چې دسنتو څخه مخالف دی؟ پدې رسالە کې به دالله تعالى په توفيق باندې دا ذکر کړو چې داحنافو داختر لمونځ دسنتو سره مطابق دی او دلامذهبو ددلايلو حال به هم ذکر کړو.

### داهل سنت والجماعة دعوی:

داختر په لمانځه کې شپږ زائد تکبيرات دنبي عليه السلام او دصحابوو رضی الله عنهم او دتابعينو رحمهم الله سنت دي.

**تفصيل:** داختر په لمانځه کې دقيام په حالت کې درې تکبيرات أصل دي، يو تکبير تحريمه او دوه درکوع تکبيرونه، چې ديته تکبيرات صلواتيه ويلی کيږي او شپږ زائد تکبيرات دي، په بعضو احاديثو کې ټول تعداد (۹) ذکر شوی دی او په بعضو کې په اولني رکعت کې دپنځو او په دويم کې د څلورو ذکر دی چې مجموعه يې نه شو او په بعضو کې د څلورو څلورو ذکر دي چې په اولني رکعت کې دقراءت

څخه مخکې د تکبير تحريمه سره څلور تکبيرات دي او د رکوع تکبير د دې څخه جدا دی هغه يې نه دی ذکر کړی ځکه چې هغه د قرائت څخه وروسته دی او په دويم رکعت کې د قرائت څخه وروسته د رکوع د تکبير سره څلور تکبيرات دي.

خلاصه: د ټولو احاديثو داده چې د اختر په لمانځه کې د قيام په حالت کې مجموعي (۹) تکبيرات دي، (درې تکبيرات صلواتيه او شپږ زائد).

دلائل: (۱) أَنَّ الْقَاسِمَ أَبَا عَبْدِ الرَّحْمنِ رحمه الله حَدَّثَهُ، قَالَ: حَدَّثَنِي بَعْضُ أَصْحَابِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: صَلَّى بِنَا، النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ عِيدٍ، فَكَبَّرَ أَرْبَعًا، وَأَرْبَعًا، ثُمَّ أَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهِ حِينَ انْصَرَفَ، قَالَ: «لَا تَنْسَوْا، كَتَكْبِيرِ الْجَنَائِزِ، وَأَشَارَ بِأَصَابِعِهِ، وَقَبَضَ إِبْهَامَهُ» (طحاوي ص ۳۷۱، کتاب الزيادات باب صلوة العيدين كيف التكبير فيها)

ابو عبد الرحمن قاسم فرمايي چې ماته په صحابه وو کې بعضې صحابه وو فرمايلي دي چې مونږ ته نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اختر لمونځ راکړو، نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څلور څلور تکبيره وکړل، بيا يې مونږ ته مخ راوګرځولو او وې فرمايل چې هير يې نه کړئ. د اختر تکبيرونه د جنازې په شان (څلور) دي (يو د تکبير تحريمه او درې زوايد)، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يوه ګوته بنده کړه او په (څلور) ګوتو سره يې اشاره وکړه.

۲- عَنْ مَكْحُولٍ رحمه الله، قَالَ: أَخْبَرَنِي أَبُو عَائِشَةَ، رحمه الله جَلِيسٌ لِأَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه، أَنَّ سَعِيدَ بْنَ الْعَاصِ رضي الله عنه، سَأَلَ أَبَا مُوسَى الْأَشْعَرِيَّ رضي الله عنه، وَحُذَيْفَةَ بْنَ الْيَمَانِ رضي الله عنه، كَيْفَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُكَبِّرُ فِي الْأَضْحَى وَالْفِطْرِ؟ فَقَالَ أَبُو مُوسَى رضي الله عنه: «كَانَ يُكَبِّرُ أَرْبَعًا تَكْبِيرَهُ عَلَى الْجَنَائِزِ»، فَقَالَ حُذَيْفَةُ رضي الله عنه: صَدَقَ، فَقَالَ أَبُو مُوسَى رضي الله عنه: «كَذَلِكَ كُنْتُ أُكَبِّرُ فِي الْبَصْرَةِ، حَيْثُ كُنْتُ عَلَيْهِمْ»، وَقَالَ أَبُو عَائِشَةَ رحمه الله: «وَأَنَا حَاضِرُ سَعِيدَ بْنَ الْعَاصِ رضي الله عنه». (ابوداؤد ص ۱۶۳)، مصنف ابن ابی شيبه ج ٤ ص ۲۰۳، نمبر ۵۷٤٤) تخريج والا او بغير تخريج والا ص ۷۸، ج ۳)

د ابو هريرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ همنشين ابو عائشة فرمايي چې (د کوفې والي) سعيد بن العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ابو موسی اشعری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د حذيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه پوښتنه وکړه چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به په اخترونو کې تکبيرونه څرنګه کول؟ نو ابو موسی اشعری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به په اخترونو کې د جنازې د لمانځه په شان (څلور څلور) تکبيرونه کول (يو تکبير تحريمه

او دري زوايد) حضرت حذيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دابو موسى اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تصديق وكړو، بيا حضرت ابو موسى اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې كله چې زه په بصره كې حاكم ووم نو همداسې تكبيرونه به مې كول ابو عايشه رحمه الله فرمايي چې زه په دغه وخت كې د سعيد بن العاص سره ناست ووم.

٣- عَنْ عَلْقَمَةَ، وَالْأَسْوَدِ بْنِ يَزِيدَ رَحِمَهُمَا اللهُ قَالَ: كَانَ ابْنُ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ جَالِسًا وَعِنْدَهُ حُذَيْفَةُ وَأَبُو مُوسَى الْأَشْعَرِيُّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، فَسَأَلَهُمَا سَعِيدُ بْنُ الْعَاصِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ التَّكْبِيرِ فِي الصَّلَاةِ يَوْمَ الْفِطْرِ وَالْأَضْحَى فَجَعَلَ هَذَا يَقُولُ: سَلْ هَذَا، وَهَذَا يَقُولُ: سَلْ هَذَا، فَقَالَ لَهُ حُذَيْفَةُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: سَلْ هَذَا - لِعَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - فَسَأَلَهُ، فَقَالَ ابْنُ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: «يُكَبِّرُ أَرْبَعًا ثُمَّ يَقْرَأُ، ثُمَّ يُكَبِّرُ فَيَرْكَعُ، ثُمَّ يَقُومُ فِي الثَّانِيَةِ فَيَقْرَأُ، ثُمَّ يُكَبِّرُ أَرْبَعًا بَعْدَ الْقِرَاءَةِ» (مصنف عبدالرزاق ج ٣ ص ٥٦٨٧، نمبر ٥٦٨٦.

علقمه رحمه الله او اسود رحمه الله فرمايي چې عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ناست وو په دې مجلس كې حضرت حذيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او ابو موسى اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم موجود وو، سعيد بن العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ داختر دتكبيراتو په باره كې پوښتنه وكړه، نو حضرت حذيفة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې دابو موسى اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه پوښتنه وكړه او ابو موسى اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې د حذيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه پوښتنه وكړه، نو بيا ورته حذيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې د حضرت عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه پوښتنه وكړه، كله يې چې دعبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه پوښتنه وكړه نو هغه ورته وفرمايل چې څلور تكبيرونه (تكبير تحريمه او درې زوائد) وكړه بيا قرائت وكړه بيا تكبير وكړه او ركوع ته لاړ شه بيا دوهم ركعت ته اودريږه، قراءت وكړه او د قرآئت څخه وروسته څلور تكبيرونه وكړه (درې زوائد او يو د ركوع).

٤- كردوس فرمايي چې د ماخوستن څخه وروسته وليد بن عقبه، دحضرت عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت حذيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د حضرت ابو موسى اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او دابو مسعود انصاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ طرفته يو سړى ورولېږلو هغه قاصد دې حضراتو رضى الله عنهم ته وفرمايل: فَقَالَ: إِنَّ هَذَا عِيدُ الْمُسْلِمِينَ فَكَيْفَ الصَّلَاةُ؟ فَقَالُوا: سَلْ أَبَا عَبْدِ الرَّحْمَنِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فَسَأَلَهُ فَقَالَ: «يَقُومُ فَيُكَبِّرُ أَرْبَعًا، ثُمَّ يَقْرَأُ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ، وَسُورَةٍ مِنَ الْمُفَصَّلِ، ثُمَّ يُكَبِّرُ، وَيَرْكَعُ فَتِلْكَ خَمْسٌ، ثُمَّ يَقُومُ فَيَقْرَأُ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ، وَسُورَةٍ مِنَ الْمُفَصَّلِ، ثُمَّ يُكَبِّرُ أَرْبَعًا يَرْكَعُ فِي آخِرِهِنَّ فَتِلْكَ تِسْعٌ فِي الْعِيدَيْنِ»، فَمَا أَنْكَرَهُ وَاحِدٌ مِنْهُمْ (معجم الكبير للطبراني ج ٩ ص ٣)

دا د مسلمانانو داختر ورځ ده نو مونځ به څرنګه كوو؟ نو دوي ټولو ورته وويل چې دابو عبد الرحمن يعنې دعبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه پوښتنه وكړه، كله يې چې دعبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه پوښتنه وكړه، نو عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ جواب وركړو چې په اول ركعت كې دې څلور تكبيرونه وكړي

(يو تكبير تحريمه او درې زوائد) بيا دې سورة فاتحه او دمفصلو سورتو نو څخه يو سورت تلاوت وكړي، بيا دې تكبير ووايي او ركوع ته دې لاړشي نو دا پنځه تكبيره شول، بيا دې په دوهم ركعت كې سورة فاتحه او دمفصلو سورتو نو څخه يو سورت ولولي بيا دې څلور تكبيرونه وكړي په څلورم تكبير دې ركوع وكړي چې دا په اخترونو كې نهه تكبيره شول نو هلته په موجودو صحابه وو كې هيچا هم انكار ونكړو.

٥- عَنْ عَلْقَمَةَ، وَالْأَسْوَدِ بْنِ يَزِيدَ ﷺ، أَنَّ ابْنَ مَسْعُودٍ ﷺ "كَانَ يُكَبِّرُ فِي الْعِيدَيْنِ تِسْعًا تِسْعًا: أَرْبَعًا قَبْلَ الْقِرَاءَةِ، ثُمَّ كَبَّرَ فَرَكَعَ، وَفِي الثَّانِيَةِ يَقْرَأُ فَإِذَا فَرَغَ كَبَّرَ أَرْبَعًا، ثُمَّ رَكَعَ (مصنف عبدالرزاق ج ٣ص ٢٩٣) روايت نمبر ٥٦٨٦، تخريج والا)

عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به په اول ركعت كې دقرائت څخه مخكې څلور تكبيرونه كول (يو تكبير تحريمه او درې زوائد) بيا به يې تكبيرو كړو او ركوع ته به لاړو او په دوهم ركعت كې به يې اول قرائت كولو بيا به يې څلور تكبيرونه وكړل او ركوع ته به لاړو، دا نهه تكبيره شول، نو عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به په اخترونو كې نهه نهه تكبيرنه كول.

٦- عَنْ كُرْدُوسٍ رَحِمَهُ اللهُ، قَالَ: «كَانَ عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْعُودٍ ﷺ يُكَبِّرُ فِي الْأَضْحَى، وَالْفِطْرِ تِسْعًا تِسْعًا، يَبْدَأُ فَيُكَبِّرُ أَرْبَعًا، ثُمَّ يَقْرَأُ ثُمَّ يُكَبِّرُ وَاحِدَةً فَيَرْكَعُ بِهَا، ثُمَّ يَقُومُ فِي الرَّكْعَةِ الْآخِرَةِ فَيَبْدَأُ فَيَقْرَأُ، ثُمَّ يُكَبِّرُ أَرْبَعًا يَرْكَعُ بِإِحْدَاهُنَّ». (المعجم الكبير ج ٩ص ٣)

عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به په اول ركعت كې دقرائت څخه مخكې څلور تكبيرونه كول (يو تكبير تحريمه او درې زوائد) بيا به يې تكبيرو كړو او ركوع ته به لاړو او په دوهم ركعت كې به يې اول قرائت كولو بيا به يې څلور تكبيرونه وكړل او ركوع ته به لاړو دا نهه تكبيره شول، نو عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به په اخترونو كې نهه نهه تكبيرنه كول.

٧- عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ الْحَارِثِ رَحِمَهُمَا اللهُ قَالَ: شَهِدْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ ﷺ «كَبَّرَ فِي صَلَاةِ الْعِيدِ بِالْبَصْرَةِ تِسْعَ تَكْبِيرَاتٍ، وَالَى بَيْنَ الْقِرَاءَتَيْنِ» قَالَ: وَشَهِدْتُ الْمُغِيرَةَ بْنَ شُعْبَةَ ﷺ فَعَلَ ذَلِكَ أَيْضًا. فَسَأَلْتُ خَالِدًا كَيْفَ فَعَلَ ابْنُ عَبَّاسٍ ﷺ؟ فَفَسَّرَ لَنَا كَمَا صَنَعَ ابْنُ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (مصنف عبدالرزاق ج ٣ص ٢٩٤، ٢٩٥، روايت نمبر ٥٦٨٩، وقال الحافظ فى التلخيص اسناده صحيح)

دعبد الله بن الحارث څخه روايت دى چې زه بصرې ته عبد الله بن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته (په اختر كې ورغلم، نو عبد الله بن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دنهو تكبيرونو سره لمونځ وكړو او دقرائت په مابين كې يې پيوست والي راوستلو (يعني دسورة فاتحې او دقرائت په منځ كې يې تكبير ونه ويلو او حضرت مغيره

بن شعبه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هم همدا سې کول، اسماعيل بن الوليد فرمايي چې ما د خالد څخه پوښتنه وکړه چې ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به څرنګه کول؟ نو هغه راته همغسې تفصيل بيان کړو څرنګه چې د عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په حديث کې دی.

٨- عَنِ الشَّعْبِيِّ رَحِمَهُ اللَّهُ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ "أَنَّهُ كَانَ يُكَبِّرُ فِي الْفِطْرِ وَالْأَضْحَى تِسْعًا تِسْعًا: خَمْسًا فِي الْأُولَى، وَأَرْبَعًا فِي الْآخِرَةِ" (مصنف ابن ابی شيبه ج ٤ صـ ٢١٦، روايت ٥٤٥٤)

حضرت شعبي رحمه الله فرمايي چې عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به په وړوکي او غټ اختر کې نهه نهه تکبيرونه کول، پنځه په اول رکعت کې (يو تکبير تحريمه درې زوائد يو د رکوع) او څلور په وروستني رکعت کې (د قرات څخه وروسته درې زوائد، يو د رکوع)

٩- عَنْ قَتَادَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، وَسَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَا: «تِسْعُ تَكْبِيرَاتٍ». (ابن ابی شيبه ج٤صـ ٢١٦)

حضرت قتاده د جابربن عبد الله او سعيد بن مسيب رضی الله عنهما څخه روايت کوي چې تکبيرات نهه دي.

١٠- عَنْ مَسْرُوقٍ رَحِمَهُ اللَّهُ، قَالَ: "كَانَ عَبْدُ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يُعَلِّمُنَا التَّكْبِيرَ فِي الْعِيدَيْنِ تِسْعَ تَكْبِيرَاتٍ: خَمْسٌ فِي الْأُولَى، وَأَرْبَعٌ فِي الْآخِرَةِ، وَيُوَالِي بَيْنَ الْقِرَاءَتَيْنِ. (مصنف ابن ابی شيبه ج ٤صـ ٢١٤، روايت نمبر ٥٧٥٧).

مسروق رحمه الله فرمايي چې عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به مونږ ته د اختر د لمونځ په باره کې نهه تکبيرونه ښودل پنځه په اول رکعت کې او څلور په دوهم رکعت کې او پيوستوالی به يې راوستلو په مابين د قرائتونو کې.

١١- حضرت شعبی رحمه الله فرمايي چې زياد مسروق ته پيغام وليږلو چې مونږ د خپلو کارونو له وجې د مسائلو څخه غافله يو: فَكَيْفَ التَّكْبِيرُ فِي الْعِيدَيْنِ؟ قَالَ: «تِسْعُ تَكْبِيرَاتٍ»، قَالَ: «خَمْسًا فِي الْأُولَى، وَأَرْبَعًا فِي الْآخِرَةِ». (مصنف ابن ابی شيبه رحمه الله صـ ٢١٦، ٢١٧، ج ٤، روايت نمبر ٥٧٥٨)

١٢- عَنْ إِبْرَاهِيمَ رَحِمَهُ اللَّهُ، عَنِ الْأَسْوَدِ، وَمَسْرُوقٍ رَحِمَهُمَا اللَّهُ «أَنَّهُمَا كَانَا يُكَبِّرَانِ فِي الْعِيدِ تِسْعَ تَكْبِيرَاتٍ». (مصنف ابن ابی شيبه ج ٤صـ ٢١٧، روايت نمبر ٥٧٥٩)

حضرت ابراهيم رحمه الله د حضرت اسود رحمه الله او د حضرت مسروق رَحِمَهُ اللَّهُ څخه روايت کوي چې دوي دواړو به تکبير کولو په اختر کې نهه تکبيرونه.

۱۳ - عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ رَحِمَهُ اللهُ، عَنْ أَنَسٍ رضي الله عنه «أَنَّهُ كَانَ يُكَبِّرُ فِي الْعِيدِ تِسْعًا» (مصنف ابن ابی شیبه صـ ۲۱۷، روایت نمبر ۵۷۶۵)

حضرت محمد بن سیرین د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه روایت کوي چې ده به تکبیر کول په اختر کې نهه تکبیره.

۱۴ - عَنْ إِبْرَاهِيمَ رحمه الله: «أَنَّ أَصْحَابَ عَبْدِ اللهِ رضي الله عنه، كَانُوا يُكَبِّرُونَ فِي الْعِيدِ تِسْعَ تَكْبِيرَاتٍ» (مصنف ابن ابی شیبه ج٤صـ ۲۱۷) روایت نمبر ۵۷٦۱)

ترجمه: حضرت ابراهیم فرمايي چې اصحابو د عبد الله به تکبیرونه کول په اختر کې نهه تکبیرونه.

۱۵ - عَنْ جَابِرٍ رضي الله عنه، عَنِ ابْنِ جَعْفَرٍ رحمه الله، أَنَّهُ «كَانَ يُفْتِي بِقَوْلِ عَبْدِ اللهِ رضي الله عنه، فِي التَّكْبِيرِ فِي الْعِيدَيْنِ». (مصنف ابن ابی شیبه (ج ٤صـ ۲۱۷)

جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې ابن جعفر به د اختر د تکبیراتو په باره کې د حضرت عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د قول مطابق فتوی ورکوله.

۱۶ - عَنْ أَبِي قِلَابَةَ رحمه الله، قَالَ: «التَّكْبِيرُ فِي الْعِيدَيْنِ تِسْعٌ تِسْعٌ» (مصنف ابن ابی شیبه ج ٤صـ ۲۱۷)

ابو قلابه رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې د اخترونو تکبیرونه نهه نهه دي.

۱۷ - قَالَ مُحَمَّدٌ رحمه الله: أَخْبَرَنَا أَبُو حَنِيفَةَ رحمه الله، عَنْ حَمَّادٍ رحمه الله، عَنْ إِبْرَاهِيمَ رحمه الله، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّهُ كَانَ قَاعِدًا فِي مَسْجِدِ الْكُوفَةِ وَمَعَهُ حُذَيْفَةُ بْنُ الْيَمَانِ وَأَبُو مُوسَى الْأَشْعَرِيُّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ فَخَرَجَ عَلَيْهِمُ الْوَلِيدُ بْنُ عُقْبَةَ بْنِ أَبِي مُعَيْطٍ - وَهُوَ أَمِيرُ الْكُوفَةِ يَوْمَئِذٍ - فَقَالَ: إِنَّ غَدًا عِيدُكُمْ فَكَيْفَ أَصْنَعُ؟ فَقَالَا: أَخْبِرْهُ يَا أَبَا عَبْدِ الرَّحْمَنِ كَيْفَ يَصْنَعُ؟ فَأَمَرَهُ عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْعُودٍ رضي الله عنه أَنْ يُصَلِّيَ بِغَيْرِ أَذَانٍ وَلَا إِقَامَةٍ وَأَنْ يُكَبِّرَ فِي الْأُولَى خَمْسًا وَفِي الثَّانِيَةِ أَرْبَعًا وَأَنْ يُوَالِيَ بَيْنَ الْقِرَاءَتَيْنِ وَأَنْ يَخْطُبَ بَعْدَ الصَّلَاةِ عَلَى رَاحِلَتِهِ" قَالَ مُحَمَّدٌ رحمه الله: وَبِهِ نَأْخُذُ، وَلَا بَأْسَ أَنْ يَخْطُبَهَا قَائِمًا، وَإِنْ لَمْ يَكُنْ عَلَى رَاحِلَتِهِ، وَهُوَ قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (کتاب الاثار بروایت امام محمد رحمه الله صـ ۵۳)

امام ابو حنیفه رحمه الله په خپل سند باندې د عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه روایت کوي چې عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د کوفې په مسجد کې ناست وو، حذیفه بن یمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او ابو موسی اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم ورسره وو، په دغه وخت کې د کوفی امیر ولید بن عقبه راغلو، او دې حضراتو څخه يې پوښتنه وکړه چې سبا ته اختر دی نو زه څرنګه وکړم؟ حضرت حذیفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت ابو

موسی اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وفرمايل چې ته جواب ورکړه چې څه وکړي؟ نو عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې اذان او قامت دې نه کوي، دوه رکعته لمونځ دې وکړي، په اول رکعت کې دې پنځه تکبيرونه وکړي (يو تکبير تحريمه درې زوائد او يو د رکوع تکبير) او په دوهم رکعت کې دې څلور تکبيرونه وکړي (درې زوائد او يو د رکوع) او د قراءتونو په مابين کې دې پيوست والی راولي او پخپله سورلۍ باندې دې خطبه ولولي، امام محمد رحمه الله فرمايي چې په همدې باندې مونږ عمل کوو او همدا د امام ابو حنيفة رَحِمَهُ اللهُ قول دی.

## ۱۸-د جمهورو صحابه کرامو مذهب

هذا الفعل وهو المولاة بين القرائتين والتكبير ثلاثا فی كل ركعة اولى... وهو قول ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وأبى موسى الاشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وحذيفة ابن اليمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وعقبة ابن عامر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وابن الزبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وابی مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ البدري وابی سعيد الخدري والبراء بن عازب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وعمر بن الخطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وابی هريرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ والحسن البصري رحمه الله وابن سيرين رحمه الله وسفيان الثورى رحمه الله وهو رواية عن احمد رحمه الله وحكاه البخارى رحمه الله فى صحيحه مذهبالابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وذكر ابن الهمام رحمه الله فى التحرير أنه قول ابن عمر رضى الله عنهما ايضا اتحاف السادة (شرح احياء العلوم ج ۳ صـ ۳۹۷)

درې، درې زوائد تکبيرونه چې مجموعه شپږ کيږي د ډيرو صحابه وو قول دی، لکه د ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، ابو موسی اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، ابن زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، ابو مسعود بدری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، ابو سيعد خدری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ. براء ابن عازب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، عمر بن الخطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، ابو هريرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، ابن عباس رضى الله عنهما، ابن عمر رضى الله عنهما، همدا رنګه همدا قول د حسن بصري رَحِمَهُ اللهُ، ابن سيرين رَحِمَهُ اللهُ سفين ثوری رَحِمَهُ اللهُ او د امام احمد رَحِمَهُ اللهُ يو قول هم دی.

امام ترمذي رحمه الله ددې حديث د رانقلولو څخه وروسته فرمايي چې: وَقَدْ رُوِيَ عَنْ غَيْرِ وَاحِدٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوُ هٰذَا. وَهُوَ قَوْلُ أَهْلِ الْكُوفَةِ. وَبِهِ يَقُولُ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ رحمه الله (ترمذی صـ ۲۳۳)

دا طریقه د رسول الله ﷺ د ډیرو صحابه وو څخه نقل شوی ده او همدا د سفیان ثوري او د أهل کوفه وو مسلک دی.

## ۱۲۰جماع دصحابه کرامو رضی الله عنهم

نبی کریم ﷺ چې وفات شو نو دجنازې تکبیرات مختلف وشول چا څلور تکبیرات وکړل او چا پنځه وکړل او چا شپږ او چا اوه، ددوهم خلیفه حضرت عمر رضی الله عنه تر زمانې پورې دا سلسله روانه وه کله چې حضرت عمر رضی الله عنه دا صورت اولیدلو نو صحابوو رضی الله عنهم سره یې مشوره وکړه. فَأَجْمَعُوا أَمْرَهُمْ عَلَى أَنْ يَجْعَلُوا التَّكْبِيرَ عَلَى الْجَنَائِزِ، مِثْلَ التَّكْبِيرِ فِي الْأَضْحَى وَالْفِطْرِ. أَرْبَعَ تَكْبِيرَاتٍ, فَأُجْمِعَ أَمْرُهُمْ عَلَى ذَلِكَ" (طحاوی، کتاب الجنایز، باب التکبیر علی الجنایز ج ۱صــ ۳۱۹) نو ټولو صحابه وؤ په دې خبره اتفاق وکړو چې د وړوکي او دغټ اختر په شان دجنازې هم څلور تکبیره کړې

## دلامذهبه وکتوري اهلحدیثو دعوی

د اختر دلمونځ په اول رکعت کې اوه تکبیرات او په دویم رکعت کې یې پنځه تکبیرات سنت او یا واجب دي او ددې څخه بغیر لمونځ نه پوره کیږي او شپږ تکبیرات بدعت او ګمراهي ده (فتاوی ستاریه ج اصـ ۱۳۷).

## دغیر مقلدینو دټولو دلائلو څخه اجمالي جوابات

۱-ددولسو تکبیراتو والا احادیث د سند په اعتبار سره ضعیف دي، ابن رشد المالکي رحمه الله فرمایي چې: په دې باره کې دنبی علیه السلام څخه یو حدیث هم نه دی ثابت، امام حاکم رحمه الله په خپل مستدرک کې د حضرت عایشې رضی الله عنها ابن عمر رضی الله عنهما او د حضرت ابو هریره رضی الله عنه دا حادیثو په باره کې فرمایي چې ددې اسناد فاسد دی (او جز المسالک ج ۳صـ ۳۵۲)

۲- ددولسو تکبیراتو روایات دابتدائي زمانې سره تعلق لري. وروسته بیا دعمر رضی الله عنه په دور کې په نهو تکبیرونو باندې دصحابه وؤ رضی الله عنهم اجماع راغلې ده کما فی الطحاوي)

۳- ددولسو تکبیراتو والا أحادیث ضعیف دي أو دنهو والا بعضې صحیح دي أو بعضې حسن دي. لهذا دقوت دسند له وجې دنهو تکبیراتو والا أحادیثو ته ترجیح حاصله ده.

۴- دنهو يا دشپږو تكبيراتو والا روايات بعضې قولي دي أو بعضې فعلي دي أو ددولسو تكبيراتو والا صرف فعلي دي أو دا قاعده ده چې كله چې دقولي او دفعلي په مابين كې تعارض راشي، نو ترجيح به قولي ته وركولى شي.

۵- ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او دهغه شاګردانو به خلكو ته داحاديثو مطابق دشپږو (زائدو) تكبيراتو تعليم وركولو او ددې په مقابله كې دهيڅ صحابي څخه هم ددولسو تكبيراتو تعليم نه دى ثابت.

۶- د اوو او دپنځو تكبيراتو والا احاديث محتمل دي، چې په أولني ركعت كې او ه تكبيرات سره د تكبير تحريمه څخه دې او كه دتكبير تحريمه څخه علاوه دي ؟ هم دغه وجه ده چې د ائمې ثلاثه وو په منځ كې اختلاف دى دامام شافعي رحمه الله په نيز دتكبير تحريمه او دركوع دتكبير څخه علاوه په اولني ركعت كې اوه (۷) او په دويم ركعت كې پنځه دي نو دده په نيز زائد تكبيرونه دولس دي ، دامام مالك رحمه الله او امام احمد رحمه الله په نيز په أولني ركعت كې دتكبير تحريمه سره او ه (۷) تكبيرات دي او په دويم ركعت كې د ركوع دتكبير څخه علاوه دولس دي او ددې په مقابله كې دشپږو تكبيراتو په احاديثو كې دقرائت او دتكبيراتو پوره تفصيل دى پس معلوم المراد احاديثو لره به ترجيح وركولى شي.

۷- دصحابه وو په اثاروكې دعبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او دابو هريره اثار ضعيف دي دابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اثر قوي دى ،لكن مضطرب دى ، ځكه چې دعبدالله بن عباس رضى الله عنهما څخه او ه (۷) نه(۹) دولس (۱۲) او يا ديارلس (۱۳) مختلف قسم تكبيرونه روايت شوي دي او دعبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اثار قوي دي او غيرمضطرب دي ، دعبدالله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په ټولو اثارو كې شپږ زائد تكبيرونه راغلي دي .

۸- دشپږو (زائدو) تكبيراتو احاديث دصحابوو داجماع سره موافق دي.

**تفصيل:**

۱-ددولسو تكبيراتو په باره كې دعبد الله ابن عمرو بن العاص حديث ،ترمذي او ابن ماجه رانقل كړى دى ، لكن ددې په سند كې كثير ابن عبد الله راوي دى چې انتهائي ضعيف دى ،امام شافعي رحمه الله فرمايي: (ركنٌ من اركان الكذب) امام ابن معين فرمايي (ليس بشيء) امام ابو داؤد فرمايي (كذاب) امام ابن حبان فرمايي چې دده سره يو كتاب وو چې دهغې څخه به ده د عن ابيه عن جده سره روايت نقل كولو ،لكن د هغه كتاب په كتب دحديثو كې ذكر كول حلال نه دي او نه دهغه څخه روايت ذكر كول جايز دي ،

امام نسائي او امام دارقطني رحمهما الله فرمايي چې: (وليس بشيء) امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمايي چې: منكر الحديث ليس بشيء، امام ابوذرعه رحمه الله فرمايي واهي الحديث عبد الله بن احمد فرمايي ځما پلار (امام احمد) په خپل مسند کې دده داحاديثو څخه اعراض کړی دی او دهغه څخه یې هیڅ قسمه حديث نه دی نقل کړی (ميزان الاعتدال ص ۴۹۲ - ۴۹۴، تهذيب التهذيب ص ۴۲۳. ۴۲۴)

دا ددې روايت حال دی دکوم په باره کې چې ترمذي رحمه الله ليکي چې: حسن شيء في هذا الباب) او امام بخاری رحمه الله فرمايي چې: ليس في هذا الباب شيء أصح من هذا (ترمذی ص ۱۱۹)

نو هرکله چې ددولسو تکبيراتو په مسئله کې (احسن شيء في هذا الباب او اصح شيء في هذا الباب) دومره ضعيف دی نو ددې موضوع دنورو احاديثو به څه حال وي؟.

۲-دويم روايت دعبد الله بن عمرو بن العاص الطائفي دی چې په ابو داؤد او په ابن ماجه کې دی دهغه په سند کې عبد الرحمن دی، امام نسائي دده په باره کې فرمايي چې: (ليس بذالک القوی) امام ابو حاتم فرمايي چې: (ليس بقوی، لين الحديث) او همدرانګه په ده باندې طلحه، عمر بن راشد، وعبد الله المؤمل هم طعن کړی دی، امام ابن جوزی رحمه الله ورته ضعيف ويلي دي او امام بخاری رحمه الله فرمايي چې: فيه نظر (الضعفاء للبخاری ص ۱۹) او علامه زيلعی رحمه الله فرمايي چې: وقال بن قطان ضعّفه جماعة منهم ابن معين (نصب الرأيه ج ۲ص ۲۱۷، ميزان الاعتدال ج ٤ص ۱۳۵)

۳-دريم روايت: دحضرت عايشې رضی الله عنها دی چې هغه ابو داؤد، ابن ماجه، وغيره نقل کړی دی، ددې حديث په سند کې ابن لهيعه ضعيف راوي دی، امام ترمذي دده په باره کې ليکي چې: (ضعّفه يحی بن سعيد (ترمذی ج ۱ص ۸) غير مقلد مبارکپوري دده په باره کې ليکي چې: قُلْتُ وَمَعَ ضَعْفِهِ فَهُوَ مُدَلِّسٌ أَيْضًا وَكَانَ يُدَلِّسُ عَنِ الضُّعَفَاءِ. (تحفة الاحوذی ج ۱ص ٥٤، ص ۱۱٦، ص ۱٤۰، ص ٥۲٦، ج ۳ص ٦٥، ص ۱٤٤) لهذا دغير مقلدينو په نيز دا دبل ضعيف راوي دی.

۴-څلورم روايت دحضرت ابو هريرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه په مسند احمد کې نقل دی. لکن ددې په سند کې هم ابن لهيعه ضعيف دی (عند المحدثين).

۵-پنځم روايت دسعد قرطبی رحمه الله څخه ابن ماجه وغيره نقل کړی دی، لکن دده په سند کې عبد الرحمن بن سعد بن عمار ضعيف او منکر الحديث دی، دده په باره کې دابن معين رحمه الله څخه پوښتنه شوه نو هغه وفرمايل چې ضعيف دی (تقريب التهذيب ص ۵۷۹ ايضًا ميزان الاعتدال ج ۴ص ۴۸۶)

۶-یو حدیث دابن عمر رضی الله عنهما څخه موقوفا روایت دی، لکن دغیر مقلدینو په نیز (موقوفات صحابه حجة نیست ) لهذا ددې څخه استدلال دهغوي په نیز صحیح نه دی ، دویم دا چې ددې حدیث په سند کې نافع ابن ابی نعیم راوي دی، دده په باره کې امام احمد رحمه الله فرمایي چې دا د اوو قاریانو څخه دی، قرآن خو ترینه اخستل کیږي ،لکن په حدیث کې دده هیڅ درجه نشته (ولیس فی الحدیث بشیء).

۷-اوم روایت دحضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه موقوفا راغلی دی لکن دغیر مقلدینو په نیز (موقوفات صحابه حجت نیست ) همدارنګه ددې روایت په سند کې عبدالرحمن ابن زیاد ابن أنعم الأفریقی دی، دده په باره کې ابن معین او نسائي فرمایي چې (ضعیف) او امام دارقطني فرمایي چې(لیس بالقوی) او امام احمد رحمه الله فرمایي چې مونږ دده څخه هیڅ روایت نه کوو (اتحاف السادة ج ۳ص ۳۹۷، نصب الرأیه ج ۲ص ۲۱۶، اثار السنن ص ۴۹۳)

دصحابه کرامو ددې اجماع، عمل او فتوو په خلاف لامذهبان لیکي چې شپږ تکبیرونه په شریعت محمدي کې نشته او وایي چې دا نه د الله تعالی حکم دی او نه د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حکم دی، څوک چې دېته دالله تعالی او یا د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حکم وایي هغه غټ أکذب دی (فتاوی ستاریه ج ۱ص ۱۳۷) مسلمانانو ورونو! سوچ وکړئ چې څومره غټې هستۍ ددې منحوسانو دفتوی لاندې راغلل ، صحابه کرامو ته الله تعالی او رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صادقین او مصدوقین ویلي دي لکن دا منحوسان ورته اکذبان وایي (معاذ الله) تاسو خپله فیصله وکړئ چې ددومره احادیثو دنه منلو څخه وروسته لامذهبان أهل حدیث دي او که منکرین دحدیثو دي ؟أهل سنت دي او که أهل بدعت؟

## رفع الیدین فی تکبیرات العیدین

دائمه ثلاثه وو په نیز داختر په تکبیراتو کې رفع الیدین سنت دي او دامام مالک رحمه الله څخه دوه روایته دي (او جز المسالک ج ۳ص ۳۰۶،) وروی عن مطرف وابن کنانه یرفع یدیه فی العیدین مع کل تکبیرة (اوجز المسالک)

غیر مقلدین اکثر د اعتراض کوي چې تاسو په عامو لمونځونو کې رفع الیدین نه کوئ نو داختر لمونځ کې یې ولې کوئ؟

داختر دلمونځونو په تکبیراتو زائده وو کې رفع الیدین کول دنبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او دخلفاؤ راشدینو او تابعینو په نیز سنت دي، ددې په ترک او یا په نسخه باندې یو ضعیف حدیث هم نشته.

١-يو عادت دی او بل عبادت دی، په ابتداء د اسلام کښ به خلکو په عبادتونو کښ عادتونه کول او جائز هم وو، وروسته منعه راغله: رفع اليدين کول په دوه قسمه دي، اول: هغه دي چې دهغې سره ذکر يعني الله اکبر ويلی کيږي، دويم: هغه دي چې دهغې سره الله اکبر نه ويل کيږي، اول قسم عادتي رفع اليدين دي ځکه هسې بې ذکره لاسونه وهل انسان عادت وي او څه ثواب پرې هم نه ورکول کيږي، په عامو لمونځونو کښ چې د تکبير تحريمه څخه علاوه کوم رفع اليدينونه دي هغه په عادت کښ داخل دي دهغوي سره هيڅ ذکر نشته او د اختر د رفع اليدين سره ذکر يعني الله اکبر شته. فلهذا دا په عبادت کښ داخل دي او په دې باندې (أقم الصلوة لذكرى) قرينه او دليل دی.

**دلائل:** امام بيهقی رحمه الله د دې مسئلې لپاره په ج ٣ ص ٢٩٢ کښ مستقل باب قائم کړی دی، په نوم د (باب رفع اليدين فی تكبير العيد) او د دې باب لاندې يې دا لاندې احاديث رانقل کړي دي.

١-حديث سالم: **عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ ﷺ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ** "... **وَيَرْفَعُهُمَا فِي كُلِّ تَكْبِيرَةٍ يُكَبِّرُهَا قَبْلَ الرُّكُوعِ حَتّٰى تَنْقَضِيَ صَلَاتُهُ**" (جزء رفع اليدين ص١٨، حديث نمبر ٣٧، بحواله ابوداؤد.

رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د رکوع څخه مخکښ د هر تکبير سره رفع يدين کول.

٢- **عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ ﷺ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ... وَيَرْفَعُهُمَا فِي كُلِّ رَكْعَةٍ وَتَكْبِيرَةٍ يُكَبِّرُهَا قَبْلَ الرُّكُوعِ حَتّٰى تَنْقَضِيَ صَلَاتُهُ**". (جزء رفع اليدين ص ٢٣ حواله مسند احمد)

٣- **عَنِ الزُّهْرِيِّ رحمه الله، عَنْ سَالِمٍ رحمه الله، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ... وَيَرْفَعُهُمَا فِي كُلِّ تَكْبِيرَةٍ يُكَبِّرُهَا قَبْلَ الرُّكُوعِ.** (جزء رفع اليدين ص ٢٩ بحواله دارقطني)

٤- **عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ ﷺ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ** "... **وَيَرْفَعُهُمَا فِي كُلِّ رَكْعَةٍ وَتَكْبِيرَةٍ يُكَبِّرُهَا قَبْلَ الرُّكُوعِ.** (جزء رفع اليدين ص٣١، حديث نمبر ٦٣)

٥- **عَنِ الزُّهْرِيِّ رحمه الله، عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بن عُمَرَ ﷺ، كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ**"... **وَيَرْفَعُهُمَا فِي كُلِّ تَكْبِيرَةٍ يُكَبِّرُهَا قَبْلَ الرُّكُوعِ** (جزء رفع اليدين ص٣٧، حديث نمبر ٧٨، بحواله دارقطنی)

٦- **عَنْ عُمَرَ ﷺ أَنَّهُ كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي التَّكْبِيرَاتِ**، التلخيص الحبير ص٨٦«

۷- أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ مَعَ كُلِّ تَكْبِيرَةٍ فِي الْجِنَازَةِ وَالْعِيدَيْنِ (السنن الكبرى البيهقي ج ۳ ص ۲۹۳)

اعتراض: دا حدیث ضعیف دی ځکه چې دا منقطع دی په منیځ کې یو راوي حذف شوی دی چې ابو ذرعه لخمي دی.

جواب: دا حدیث په نیز د خیر القرون انقطاع موجب د ضعف نه دی، ځکه چې انقطاع چې موجب ضعف وي نو وجه یې دا وي چې په حذف شوي راوي کې امکان د ضعف وي لکن بیا چې کله تعین اوشي چې هغه روای دروغجن دی نو حدیث ضعیف ګرزي او چې کله هغه راوي ثقه وی، نو بیا هغه حدیث قوي وي او دلته هغه متروک روای ابو ذرعه لخمي ثقه دی.

اعتراض: په محکمو حدیثو کې د رکوع د رفع الیدین ذکر هم راغلی دی او په اُخرني حدیث کې د جنازې د تکبیراتو سره هم د رفع الیدین ذکر راغلی دی حال دا دی چې تاسو دا نه کوئ؟

جواب: چونکه دا ختر د تکبیراتو د رفع الیدین احادیث غیر متعارض دي، ځکه چې د ترک او د پرینبودلو یو حدیث یې هم نشته او د جنازې او د رکوع د تکبیراتو د رفع الیدین احادیث متعارض دي، د ترک او د پرینبودلو ډیر حدیث یې راغلي دي، لهذا په خترونو کې رفع الیدین سنت دی او په جنازه او د رکوع په حالت کې ترک د رفع الیدین سنت دی. مثال

۱- عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنه، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ عَلَى الْجِنَازَةِ فِي أَوَّلِ تَكْبِيرَةٍ ثُمَّ لَا يَعُودُ» (دار قطني ج ۲ ص ۷۵)

رسول الله صلی الله علیه وسلم به د جنازې په لمونځ کې صرف د اول تکبیر سره رفع الیدین کولو.

۲- عَنْ عُبَيْدِ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ جُمَيْعٍ الزُّهْرِيِّ رَحِمَهُمَا اللهُ قَالَ: رَأَيْتُ إِبْرَاهِيمَ رحمه الله إِذَا صَلَّى عَلَى الْجِنَازَةِ رَفَعَ يَدَيْهِ فَكَبَّرَ ثُمَّ لَا يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِيمَا بَقِيَ، وَكَانَ يُكَبِّرُ أَرْبَعًا، مصنف ابن ابی شیبه بغیر تخریج ج ۳ ص ۱۸۰)

۳- عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: كَبَّرَ عَلَى جِنَازَةٍ فَرَفَعَ يَدَيْهِ فِي أَوَّلِ تَكْبِيرَةٍ وَوَضَعَ الْيُمْنَى عَلَى الْيُسْرَى. (ترمذي ج ۱ ص ۲۰۶)

استدلال: ابو هریرة دا خبره واضحه کړه چې نبي کریم ﷺ په اولني تکبیر کې رفع الیدین وکړل نو یوائې د اول تکبیر سره رفع یدین ذکر کول دد ې خبرې دلیل دی چې په نورو تکبیرونو کې به یې نه کول کنه د(فی اول تکبیرة) تخصیص به لغوه شي.

دویم دا که چیرته په ټولو تکبیراتو د جنازې کې رفع الیدین وی نو بیا به د اول تکبیر په ځای (فی کل تکبیرة) راغلی وی.

شوکاني غیرمقلد لیکي چې: وَالْحَاصِلُ أَنَّهُ لَمْ يَثْبُتْ فِي غَيْرِ التَّكْبِيرَةِ الْأُولَى شَيْءٌ يَصْلُحُ لِلِاحْتِجَاجِ بِهِ عَنْ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَأَفْعَالُ الصَّحَابَةِ وَأَقْوَالُهُمْ لَا حُجَّةَ فِيهَا، فَيَنْبَغِي أَنْ يُقْتَصَرَ عَلَى الرَّفْعِ عِنْدَ تَكْبِيرَةِ الْإِحْرَامِ، لِأَنَّهُ لَمْ يُشْرَعْ فِي غَيْرِهَا إلَّا عِنْدَ الِانْتِقَالِ مِنْ رُكْنٍ إلَى رُكْنٍ كَمَا فِي سَائِرِ الصَّلَوَاتِ، وَلَا انْتِقَالَ فِي صَلَاةِ الْجِنَازَةِ. ،نیل الاوطار، ج ٤صـ ٦٧، باب القراءة والصلوة علی رسول الله ﷺ.

خلاصه دخبرې دا ده چې په جنازه کې د اولني تکبیر څخه علاوه په نورو تکبیرونو کې رفع الیدین نه دې ثابت، داسې یو حدیث هم دنبی علیه السلام څخه نه دی نقل شوی چې قابل د احتجاج وي، باقي اقوال او احوال دصحابه وو حجت نه دي، لدې وجې مناسبه دا ده چې د تکبیر تحریمه په رفع الیدین باندې عمل وشي، ځکه چې د تکبیر تحریمه څخه علاوه رفع الیدین دانتقالاتو په وخت کې دي او په جنازه کې انتقالات نشته.

۸- ابن عمر رضی الله عنهما سره دد ې چې د سنتو په تابعدارۍ کې مشهور وو (یرفع یدیه مع کل تکبیرة )(زاد المعاد ابن قیم ج ۱صـ ۳۴۳) د اخترونو دهر تکبیر سره به یې رفع الیدین کولو ،په یو ځای کې لامذهبه نذیر حسین لیکي چې: ابن عمر رضی اللہ عنہما کا ہر تکبیر میں رفع یدین کرنا پسند صحیح ثابت ہے مگر یہ حضرت ابن عمر کا فعل ہے (فتاوی نزیریہ ص-۴۵۵)

۹- عَنْ إِبْرَاهِيمَ النَّخَعِيِّ رحمه الله قَالَ: "تُرْفَعُ الْأَيْدِي فِي سَبْعِ مَوَاطِنَ: فِي افْتِتَاحِ الصَّلَاةِ, وَفِي التَّكْبِيرِ لِلْقُنُوتِ فِي الْوِتْرِ, وَفِي الْعِيدَيْنِ... الخ. (طحاوی ج ۱صـ ٤١٦)

۱۰- عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ رحمه الله، عَنْ عَطَاءٍ رحمه الله أَنَّهُ قَالَ: "يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي كُلِّ تَكْبِيرَةٍ (السنن الكبرى للبيهقی ج ۳صـ ۲۹۳)

۱۱- وَقَالَ مُحَمَّدُ بن الحسن رحمه الله أَخْبَرَنَا ابو حنيفة رحمه الله عَنْ طَلْحَةَ بن مصرف رحمه الله عَنْ ابراهيم رحمه الله انه قَالَ ترفع الايدى فِي سبع مَوَاطِن فذكر فِي ذَلِكَ الْعِيدَيْنِ. كتاب الحجة ج ۱صـ ۳۰۰)

## اجماع الأمة

١-اِتَّفَقُوْا عَلٰى رَفْعِ الْيَدَيْنِ فِى التَّكْبِيْرَاتِ. (رحمة الأمة فى اختلاف الأئمة: صـ٦٣)

٢- وَاتَّفَقُوْا عَلٰى رَفْعِ الْيَدَيْنِ فِى تَكْبِيْرَاتِ الْعِيْدَيْنِ خِلَافًا لِأَبِىْ يُوْسُفَ رحمه الله فِىْ رِوَايَةٍ. مرقات شرح مشكوة: ج٣ صـ٥٤٨)

٣- وَاَجْمَعُوْا عَلٰى أَنَّهٗ يَرْفَعُوا الْأَيْدِىْ فِىْ تَكْبِيْرِ الْقُنُوْتِ وَتَكْبِيْرَاتِ الْعِيْدَيْنِ.(بدائع الصنائع: ١/٤٨٤)

## قياسي دليل

دقنوت فى الوتر او دعيدينو تكبيرات زايد دي : وګوره كتاب الفقه على المذاهب الاربعة ج ١صـ ٣٤٦ الى صـ ٣٤٨)

ارواء الغليل ج ٣صـ ١١٣، ناصر الدين البانى ، شرح معانى الاثار ج١صـ٤١٧، مرعات ج ٥صـ ٥٦، التحقيق لابن الجوزى ج ٢صـ ٢٢٤، بدايع الصنايع ج ٣صـ ١٠٠، تبيين الحقائق ج ٣صـ ١٠٢، تحفة الفقهاء ج ١صـ ٤٦، الحاوى فى الفقه الشافعى ج ٢صـ ٤٩١، الشرح الكبير للرافعى ج ٥صـ ٤٦، المجموع للنووى ج ٤صـ ١٢٣، حيلة العلماء ج ٢صـ ٣٥، روضة الطالبين شرح الوجيز تهذيب الاسماء للنووى ج ١صـ ٨٧٦. فتاوى ابن تيميه ج ٢صـ ٦٢) او په تكبير زايده للقنوت كې خو رفع اليدين شته نو په تكبيرات زايده وودعيدينو كې به هم وي.

وصلى الله تعالى على خير خلقه محمد واله وصحبه اجمعين

# داختر په ورځ دجمعې دلمانځه شرعي حکم

لیکوال: ابوالشیخ ابو ابراهیم رحیم الله الدهقاني
کاتب: تلمیذ الشیخ، مولوي هدایت الله همت بدر

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله وحده والصلوة والسلام على من لانبى بعده.

امابعد!

## داختر په ورځ دجمعې دمانځه شرعی حکم

داسلام په مزاج کې دعبادت کثرت دی لکه : (۱) نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به دومره نوافل کول چې پښې مبارکې به یې وپړسیدلې. (۲) حضرت ابو بکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپل ټول مال په چنده کې ورکړو، (۳) دډیرو صدقاتو او دډیر ذکر صفت په قرآن او په حدیث کې بیا بیا شوی دی وغیره، لکن ددې په خلاف دلامذهبو ذوق او مزاج دعبادت راکمول دي ،۱-دفرضو څخه وروسته سنن او نوافل نه کوي ، ۲- وتر ددریو په ځای یو کوي، ۳-ددوي په نیز تراویح نفل دي که دچا خوښه وي ودې یې کړي والا فلا ، ۴-بیا دشلو رکعتو تراویحو په ځای اته رکعته کوي ، ۵-تراویح او تهجد یو لمونځ ګڼي او یو رکعت تهجد وته جایز وایي لهذا تراویح هم یو رکعت جایز شو، ۶-دجمعې دلمانځه څخه وروسته صرف دوه رکعته کوي . ۷-دشب براة عبادة ته بدعت وایي ، ۸-صلوة التسبیح ته بدعت وایي ۹-په قصد باندې دپرېښودلې شوي مونځ قضائي نه مني، عرف الجادی صـ۳۵، ۱۰- داختر په ورځ دجمعې لمونځ ته ساقط وایي وغیره .نواب صدیق حسن خان لیکي چې دا هلحدیثو په نیز دډیر نوافل او دډیر صدقات او وظائف نشته ، ترجمان وهابیه صـ۶۲)

دأهل سنت والجماعت دعوی او موقف دادی چې داختر دلمانځه څخه وروسته دجمعې لمونځ په خپل وخت کې فرض دی داختر له وجې د جمعې دلمونځ فرضیت نه ساقطیږي.

**دلایل:** يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا نُودِيَ لِلصَّلٰوةِ مِنْ يَوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا إِلَىٰ ذِكْرِ اللهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ...(الآية)

۱-نو ددې ایت مطابق دبیان په خلکو باندې د (زرو البیع له وجې) دجمعې لمونځ فرض دی او دا فرضیت ټولو جمعو ته شامل دی، له دې څخه هیڅ یوه جمعه هم نده مستثنی اودا ایت په خپل عموم کې قطعي دی ، نو ددې عموم دختمولو لپاره به ددې په شان قطعي دلیل پکار وي، لهذا دا عام حکم که جمعه

داختر په ورځ وي او که داختر څخه علاوه په بله ورځ وي ټولو ته شامل دی، پس د اختر په روځ باندې دجمعې لمونځ ته رخصت ورکول ددې قطعي حکم څخه خلاف دی.

۲-دلیل: عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْتَشِرِ رحمه الله، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ سَالِمٍ رحمه الله، مَوْلَى النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ رحمه الله، عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ رحمه الله، قَالَ: «كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الْعِيدَيْنِ، وَفِي الْجُمُعَةِ بِسَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى، وَهَلْ أَتَاكَ حَدِيثُ الْغَاشِيَةِ»، قَالَ: «وَإِذَا اجْتَمَعَ الْعِيدُ وَالْجُمُعَةُ، فِي يَوْمٍ وَاحِدٍ، يَقْرَأُ بِهِمَا أَيْضًا فِي الصَّلَاتَيْنِ (مسلم صـ ۲۸۸، جلد کتاب الجمع، نسائي صـ ۲۳۲، باب القرائت فی العیدین، ترمذی ج ۱صـ ۱۱۹)

رسول الله صلی الله علیه وسلم به دجمعې او داختر په لمانځه کې (سبح اسم ربک الأعلی، او هل اتاک حدیث الغاشیه) لوستلو او کله به چې دجمعې په ورځ اختر وو، نو بیا به یې هم همدا دوه سورتونه لوستل، نو ددې حدیث څخه معلومه شوه چې په کومه ورځ باندې چې اختر او جمعه یو ځای شي نو دنبی علیه السلام سنت دادي چې دواړه لمونځونه وکړی شي، ځکه چې نبی علیه السلام دواړه لمونځونه کړي دي.

۳- أَنَّ عَلِيًّا رضي الله عنه كَانَ إِذَا اجْتَمَعَا فِي يَوْمٍ وَاحِدٍ صَلَّى فِي أَوَّلِ النَّهَارِ الْعِيدِ وَصَلَّى فِي آخِرِ النَّهَارِ الْجُمُعَةِ.

(مصنف عبدالرزاق ج ۳صـ ۹۲ بغیر تخریج) کله به چې دجمعې په ورځ اختر وو نو حصرت علی رضي الله عنه به دورځې په اوله حصه کې داختر لمونځ کولو او دورځې په اخره حصه کې یعنې بعد الزوال به یې دجمعې مونځ کولو.

دحضرت علی رضي الله عنه په زمانه کې په زرګونو صحابه او تابعین موجود وو هیچا هم اعتراض نه دی کړی، نو معلومه شوه چې دا دصحابه وو اجماعي طریقه ده.

۴- قَالَ أَبُو عُبَيْدٍ رحمه الله: ثُمَّ شَهِدْتُ الْعِيدَ مَعَ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ رضي الله عنه، فَكَانَ ذَلِكَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ، فَصَلَّى قَبْلَ الْخُطْبَةِ، ثُمَّ خَطَبَ فَقَالَ: «يَا أَيُّهَا النَّاسُ، إِنَّ هَذَا يَوْمٌ قَدِ اجْتَمَعَ لَكُمْ فِيهِ عِيدَانِ، فَمَنْ أَحَبَّ أَنْ يَنْتَظِرَ الْجُمُعَةَ مِنْ أَهْلِ الْعَوَالِي فَلْيَنْتَظِرْ، وَمَنْ أَحَبَّ أَنْ يَرْجِعَ فَقَدْ أَذِنْتُ لَهُ (بخاری ج ۲صـ ۸۳۵ قدیمیه، باب مایوکل من لحوم الاضاحی، مؤطاء امام مالک باب الامر بالصلوة قبل الخطبة فی العیدین صـ ۱۶۰)

حضرت عثمان رضي الله عنه داختر دخطبې څخه مخکې لمونځ وکړو، بیا یې خطبه ولوستله او اعلان یې وکړو چې نن دوه اختره دی (جمعه او عید) نو دباندو خلک (چې دجمعې لمونځ ورباندې فرض نه دی) دهغوی خو ښه ده چې دجمعې لمونځ ته انتظار کوي او که ځې زما له خوا ورته اجازت دی.

پدې حديث کې صراحةً هغه چاته اجازت ورکړل شو، په چا چې دجمعې لمونځ فرض نه دی چې هغه دباندو خلک دي، دمدينې منورې خلکو ته اختيار نه وو، کنه بيا به د (اهل العوالی) قيد لغوه شي که دجمعې رخصت دټولو لپاره وي نو حضرت عثمان به أهل العوالي نه خاص کول.

نوټ: داخبره صرف دحضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پورې محدوده نه ده، بلکې په دغه وخت کې په زرګونو صحابه کرام او تابعين موجود وو هيچا هم انکار نه دی کړی، لهذا دا دټولو اجماعي فيصله ده.

دلته دا خبره هم دغور قابله ده چې دجمعې په ورځ به دوه اخترونه هلته جمع شي چې کله دواړه لمونځونه اداء کړی شي، که چيرې داختر لمونځ وشي او دجمعې لمونځ دټولو څخه ساقط شي نو بيا به دوه دوه اخترونه څرنګه جمع شي؟.

٥- عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه قَالَ: "اجْتَمَعَ عِيدَانِ عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: "إِنَّهُ قَدِ اجْتَمَعَ عِيدُكُمْ هَذَا وَالْجُمُعَةُ، وَإِنَّا مُجَمِّعُونَ، فَمَنْ شَاءَ أَنْ يُجَمِّعَ فَلْيُجَمِّعْ، فَلَمَّا صَلَّى الْعِيدَ جَمَّعَ (بيهقى ج ٣صـ ٣١٨ باب اجتماع العيدين)

ابوداؤ ج ١صـ١٥٣، (اذا واقع يوم الجمعة يوم عيد) مستدرک ج ١صـ ٢٨٨، باب کيف اذا اجتمع العيد والجمعة) درسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې دوه اخترونه يوځای شول، نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې په تحقيق سره نن جمعه او اختر دواړه يوځای شوي دي، او مونږ دجمعې لمونځ کوو، نو څوک چې دجمعې لمونځ کول غواړي هغه دې دجمعې لمونځ وکړي، نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې لمونځ وکړو نو (دجمعې دلمانځه په وخت کې يې) دجمعې لمونځ وکړو.

په دې حديث کې (انا) ضمير دجمع متکلمې دی، چې نبی عليه السلام او دمدينې ټولو خلکو ته شامل دی، خکه چې په حديث کې يې دمدينې دخلکو څخه يو کس هم نه دی مستثنی کړی، بيا جمله اسميه مؤکده ده يعنې مونږ دمدينې خلک به خامخا دجمعې لمونځ ادا کوو، البته هغه خلک چې په هغوي باندې دجمعې لمونځ فرض نه دی هغوي ته اختيار دی که دجمعې لمونځ کوي نو ادا دې کړي او يا نبی عليه السلام ددې اعلان څخه وروسته دجمعې لمونځ ادا کړو، دا روايت په بيهقی کې موصولا ذکر دی چې په هغې کې داهل العوالي قيد موجود دی.

٦- عن ابن عبّاس رضي الله عنهما، عَنْ رَسُولِ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- أَنَّهُ قَالَ: "اجْتَمَعَ عِيدَانِ فِي يَوْمِكُمْ هَذَا، فَمَنْ شَاءَ أَجْزَأَهُ مِنَ الْجُمُعَةِ، وَإِنَّا مُجَمِّعُونَ إِنْ شَاءَ اللَّهُ. (ابن ماجه ج ١ص ٩٣، مصنف عبد الرزاق ج ٢ص ٩٢، بغير تخريج )

حضرت ابن عباس رضی الله عنهما د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه روایت کوي چې: نن دوه اختره دي نو دچاچې خوښه وي نو داختر لمونځ دی ورته د جمعې دلمانځه څخه کافي شي، لکن مونږ (لازما) د جمعې لمونځ کوو ان شاء الله

دان شاء الله لفظ په دې خبره باندې دلالت کوي چې نبی علیه السلام داختر د لمانځه څخه وروسته فوراً د جمعې لمونځ نه وو کړی، بلکې په خپل وخت کې یې کړی وو، په (انا مجمعون) کې د جمع متکلم ضمیر او دمجمعون د جمعې صیغه دمدینې منورې ټولو خلکو ته شامله ده له دې وجې د اختر په ورځ باندې د جمعې دلمونځ د کولو اختیار به دهغه خلکو لپاره وي چې په هغوي باندې د جمعې لمونځ فرض نه وي.

بعضې وایي چې په (انا ) او مجمعون کې د جمع أقل افراد درې دي ، قلنا أصل دادی چې دا صیغې په خپل عموم باندې پریښودل شي ، ځکه چې تخصیص خلاف الاصل دی ،علاوه لا دا چې هغه درې افراد چې د جمعې دلمونځ فرضیت ورباندې باقي دی څوک دي؟

٧-حفص بن عیاض عن جعفر عن أبیه په سند سره فرمایي چې: اجْتَمَعَ عِيدَانِ عَلَى عَهْدِ عَلِيٍّ رضي الله عنه فَشَهِدَ بِهِمِ الْعِيدَ، ثُمَّ قَالَ: «إِنَّا مُجَمِّعُونَ، فَمَنْ أَرَادَ أَنْ يَشْهَدَ، فَلْيَشْهَدْ». (ابـن ابی شـیبه ج ٢ص ٩٢، بغیر تخریج ) استدلال یې دتیر شوي حدیث په شان دی.

دحضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په زمانه کې دوه اخترونه جمع شول، نو وې فرمایل چې مونږ د جمعې لمونځ کوو نو څوک چې حاضریږي حاضر دې شي

٨-عَنْ عَبْدِ الرَّزَّاقِ رحمه الله، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ رحمه الله قَالَ: أَخْبَرَنِي بَعْضُ أَهْلِ الْمَدِينَةِ عَنْ غَيْرِ وَاحِدٍ مِنْهُمْ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اجْتَمَعَ فِي زَمَانِهِ يَوْمُ جُمُعَةٍ وَيَوْمُ فِطْرٍ أَوْ يَوْمُ جُمُعَةٍ وَأَضْحَى فَصَلَّى بِالنَّاسِ الْعِيدَ الْأَوَّلَ ثُمَّ خَطَبَ فَأَذِنَ لِلْأَنْصَارِ فِي الرُّجُوعِ إِلَى الْعَوَالِي وَتَرْكِ الْجُمُعَةِ، فَلَمْ يَزَلِ الْأَمْرُ عَلَى ذَلِكَ بَعْدُ (مصنف عبدالرزاق ج ٣ص ٣٠٤ بغیر تخریج والا)

دامام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ داستاذ ، استاذ محدث عبد الرزاق چې امام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ ترینه په صحیح البخاري کې (١٢٠) روایتونه رانقل کړي دي، هغه دابن جریج څخه نقل کوي ابن جریج فرمایي چې مانه

بعضې اهل مدینه وو د نورو بې شماره أهل مدینه وو څخه خبر راکړی دی چې دنبي کریم ﷺ په زمانه کې اختر او جمعه یو ځای شول.

ورو کې اختر وو او یې لوی أختر وو ، نو رسول الله ﷺ د اول اختر خطبه وفرمایله بیا یې انصارو ته اجازت ورکړو چې بانډو ته تللی شئ او د جمعې لمونځ پرینښودلی شئ ، ددې څخه وروسته همیشه همدغه طریقه وه.

**استدلال:** په دې حدیث کې په واضحې طریقې سره مسئله بیان شوې ده، چې نبی علیه السلام داختر دلمانځه څخه وروسته دبانډو څخه راغلو انصارو ته د واپس تللو او دجمعې دپرینښودلو اجازت ورکړو، نو مطلب دا شو چې دا اجازت صرف هغه خلکو لره دی چې په هغوي بانډې دجمعې لمونځ فرض نه دی بل طرف ته د دې روایت راویان بې شمېره صحابه کرام رضی الله عنهم دي، بیا په دې روایت کې تصریح موجوده ده چې د نبی علیه السلام څخه وروسته هم دغه طریقه جاري پاتې شوه، چې کله به هم اختر او جمعه یو ځای شو او په کمو خلکو بانډې به چې جمعه فرض نه وه نو هغوي ته به دکولو او دنه کولو اختیار ورکولی شو .

۹- عَنْ عُمَرَبْنِ عَبْدِالْعَزِيزِ رحمه الله قَالَ: «اجْتَمَعَ عِيدَانِ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللّٰهِ- صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَقَالَ مَنْ أَحَبَّ أَنْ يَجْلِسَ مِنْ أَهْلِ الْعَالِيَةِ فَلْيَجْلِسْ فِي غَيْرِحَرَجٍ» (کتاب الام للامام الشافعی صـ ۲۳۹، بیهقی ج ۳صـ ۳۱۸)

عمر بن عبد العزیز فرمایي چې د رسول الله ﷺ په زمانه کې د جمعې په ورځ اختر شو نو نبی ﷺ وفرمایل چې دبانډو په خلکو کې چې چاته تکلیف نه وي هغوي دې حصار شي او که دچا خوښه وي لاړ دې شي )

دعمر بن عبدالعزیز رحمه الله دا حدیث مرسل دی، دیته مرسل دتابعیي ویلی کیږي او دجمهورو په نیز خصوصاً داحنافو په نیز داسې حدیث حجت دی، خصوصاً چې کله تابعي ثقه وي نو بیا یې په حجت کیدلو کې هیڅ شک نشته.

نوټ: علامه عینی رحمه الله لیکي چې د أهل عالیه وو څخه مراد هغه خلک دي چې هغه د مدینې منورې څخه تقریبا د درې میلو څخه واخله تر اتو میلو پورې فاصله بانډې وي په دوي بانډې د جمعې لمونځ فرض نه وو (عمدة القاری ج ۲۱صـ ۱۶۱)

۱۰- په دې احاديثو کې د(عيدان)لفظ راغلی دی، يعنې دجمعې په ورځ دوه اخترونه جمع شول او دوه اخترونه هله جوړيدلی شي چې داختر دلمونځ په شان دجمعې مونځ هم ادا شي او که دجمعې لمونځ ادانشي نو بيا دوه اخترونه نه جمع کيږي او ددوو اخترونو دجمع کيدو هيڅ مطلب نه پاتې کيږي.

۱۱- داختر لمونځ مستقل واجب دی او دجمعې لمونځ مستقل واجب دی، دعبادت کيدلو په اعتبار دواړه مستقل حيثيت لري، نو لهذا ديو له وجې څخه بل نشي ساقطيدلی او بيا خصوصا ددواړو وختونه هم جدا جدا دي.

۱۲- داختر دلمونځ شرعي حکم دجمعې په مقابله کې کمه درجه لري، يعنې داختر لمونځ سنت او يا واجب دی او دده په مقابله کې دجمعې لمونځ فرض دی او دا قانون دی چې دکمزوري له وجې قوي نه ساقطيږي، په اوسپنه باندې لرګی کټکولی شي خو په لرګی باندې اوسپنه نشي کټکولی.

۱۳- داختر لمونځ په خبرې واحد سره ثابت دي او ددې په مقابله کې دجمعې مونځ دقران مجيد په قطعي دليل سره ثابت دی، لهذا خبر واحد دقرآن مجيد دايت دپاره ناسخ نشي ګرځيدلی او نه دخبر واحد له وجې دقرآن مجيد قطعي حکم پريخودی شي.

## محدثين او فقهاء

امام محمد رحمه الله فرمايي چې: وَإِنَّمَا رَخَّصَ عُثْمَانُ ﷺ فِي الْجُمُعَةِ لِأَهْلِ الْعَالِيَةِ لِأَنَّهُمْ لَيْسُوا مِنْ أَهْلِ الْمِصْرِ، وَهُوَ قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ تَعَالَى ( موطاء امام محمد صـ ۱۴۰)

علامه عيني رحمه الله ليکي چې : انما کانو يأتون العيد والجمعة من مواضع لا يجب عليهم المجيء فاخبر بما لهم فی ذالک (عمدة القاری ج ۲۱صـ ۱۶۱)

امام محمد رحمه الله فرمايي چې کله چې دجمعې په ورځ اختر شي نو داختر لمونځ سنت دی او دجمعې لمونځ فرض دی او بيا فرمايي : ولايترک واحد منهما ) تبيين الحقائق ج ۱صـ ۲۲۴)

امام شافعي رحمه الله فرمايي چې کله چې عيد الفطر دجمعې په ورځ راشي نو امام به داختر لمونځ او کړي : ثُمَّ أَذِنَ لِمَنْ حَضَرَهُ مِنْ غَيْرِ أَهْلِ الْمِصْرِ فِي أَنْ يَنْصَرِفُوا إِنْ شَاءُوا إِلَى أَهْلِيهِمْ (کتاب الام ج ۱صـ ۲۳۹)

امام شافعی رحمه الله فرمايي چې: وَلَا يَجُوزُ هَذَا لِأَحَدٍ مِنْ أَهْلِ الْمِصْرِ أَنْ يَدَعُوا أَنْ يَجْمَعُوا إِلَّا مِنْ عُذْرٍ يَجُوزُ لَهُمْ بِهِ تَرْكُ الْجُمُعَةِ، وَإِنْ كَانَ يَوْمَ عِيدٍ. (ايضا).

حافظ ابن حجر فرمايي چې: وايضا فظاهر الحديث فى كونهم من أهل العوالي أنهم لم يكونوا ممن تجب عليهم الجمعة لبعد منازلهم من المسجد (فتح البارى ج ١٥ صـ ٢٢) دغه رنګی ارشاد السارى ج ٨ صـ ٣٠١، همدا رنګه معارف السنن ج ٤ صـ ٤٣٢، ابن قدامه رحمه الله ليکي چې: قال اکثر الفقهاء تجب الجمعة لعموم الاية والاخبار الدالة على وجوبها ولانها صلاتان واجبتان فلم يسقط احدهما الاخر (مغنى لابن قدامه ج ٢صـ ٢١٢)

حضرت شيخ ذکريا رحمه الله فرمايي چې: اګر چې بعضې شارحينو دجمعې دلمونځ سقوط امام احمد رحمه الله ته منسوب کړی دی لکن ماته دحنابلو په فقه کې دامام احمد رحمه الله دا قول پيدا نه شو (أوجز المسالک ج ٣صـ ٣٤٤)

## دغير مقلدينو دعوې

دغير مقلدينو وکتوري أهل حديثو په نيز چې کله دجمعې په ورځ اختر شي نو د اختر دلمانځه څخه وروسته دجمعې لمونځ نه شته، بلکه ددوي په نيز په دغه ورځ دجمعې دلمونځ پريښودل دسلو شهيدانو اجر لري، ځکه چې دا دمړ سنت راژوندی کول دي او همدارنګه ددوي په نيز دماسپښين دمونځ پريښودل دکولو څخه زيات بهتر دي (عرف الجادی صـ ٤٣، فتاوی نذيريه ج ١صـ ٥٧٣، کتاب الجمعة)

لامذهبه وحيد الزمان ليکي چې: والجمعة فى يوم العيد رخصة مطلقا لأهل البلد وغيرهم فان شاء صلى العيد والجمعة كليهما وان شاء صلى العيد فقط ولم يصل الجمعة وفى سقوط الظهر خلاف والحق جواز الترک ايضا، (نزالابرار ج ١صـ ١٥٥)

لامذهبه شوکاني ليکي چې: فيه أن صلوة الجمعة فى ويوم العيد يجوز ترکها (نيل الاوطار ج ٣صـ ٣٠٠)

## دلامذهبو دوکې

**اوله دوکه:** حضرت زيد بن ارقم رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم داختر مونځ وکړو او دجمعې لمونځ يې رخصت کړو او وې فرمايل چې: (من شاء ان يصلى فليصل) ځوک چې دجمعې دلمونځ کول غواړي نو ودې کړي په دې حديث کې دمن شاء لفظ عام دی.

**اول جواب:** ددې حديث په سند کې يو راوي أياس بن أبى رمله الشامى مجهول دی، ابن المنذر فرمايي چې دزيد بن أرقم حديث ثابت نه دی، ځکه چې اياس مجهول دی (ميزان وتقريب، تحت ترجمة اياس) شوکانی ليکلي چې: (وفى اسناده اياس بن رمله وهو مجهول (نيل الاوطار ج ٣صـ

٣٠٠) بعضو دده ديو شاګرد ذکر کړې دی ، ددې سره جهالت نه ختميږي ، حافظ ابن حجر رحمه الله هم ورته مجهول ويلي دي (التلخيص ج ١ص ١٤٦)

**دوهم جواب:** دمخکينو دلايلو په رڼا کې د (من شاء) څخه دباندو. خلک مراد دي، همدارنګه دا داختياري والي په صورت کې د جمعې دلمونځ داداء کولو په شق باندې به په هغه وخت کې عمل کيږي چې د جمعې فرضيت باقي پاتې شي .

**دريم جواب:** په کلمې د (من) کې عموم مرادول قطعي ندي الله تعالى فرمايي چې :أمن خلق، أمن يجيب المضطر، أمن يبدأ الخلق.

**دوهمه دوهکه:** دحضرت ابو هريرة رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په حديث کې راغلي دي چې رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې که دچا خوښه وي نو داختر لمونځ دهغه لپاره د جمعې په عوض کې کافي دی او مونږ لازما د جمعې لمونځ کوو .

**اول جواب:** ددې حديث په سند کې يو راوي بقيه بن الوليد سخت ضعيف دی ابن حبان فرمايي چې :(لايحتج به ) ابو مسهر فرمايي چې: (احاديث بقيه غير نقيه فکن منها تقية) همدارنګه بقيه مدلس هم دی ،(اتحاف السادة ج ٣ص٤٠٩ ) شوکاني ليکي چې امام احمد او دارقطني دی روايت ته مرسل ويلي دي .

**دوهم جواب:** پدې روايت کې د(انـا مجمعون) جمله پدې خبره دلالت کوي چې دا اختيار أهل مدينه وو ته نه وو .

**دريمه دهوکه:** حضرت عبد الله بن زبير رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ داختر لمونځ وکړو او د جمعې لمونځ يې ونه کړو ، عبدالله بن عباس رضى الله عنهما وفرمايل چې ده په سنت طريقه باندې عمل وکړو .

**اول جواب:** دلامذهبو په نيز باندې دصحابه وو موقوف احاديث حجت نه دی (عرف الجادی ص+١٠١، الروضة الندية ج ١ص ٧٧، ص ٢٥٤، بدور الأهله ص٣٩. ص١٢٩، ص١٣٩، ٩٤، ص٩٥، ص ٢٨، شمع محمدي قديم ص٩، جديد ١٩)

**دوهم جواب:** دعبد الله بن زبير رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او دعبد الله بن عباس رضى الله عنهما په أثر کې تضاد دی په ابو داؤد کې يې په دوو سندونو سره دا أثر رانقل کړی دی، په يو کې راځي چې عبد الله بن زبير رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د ورځې په اول کې داختر لمونځ وکړو او د ورځې په آخر کې يې د جمعې لمونځ وکړو او په بل

کې راځي چې عبد الله بن زبیر رضي الله عنه دواړه لمونځونه یو ځای وکړل نو د جمعې د فرضیت د مضبوطو دلایلو په مقابله کې به د غه متضاد اثر څرنګه دلیل شي ؟

**دریم جواب:** دلامذهبو په اصولو کې یو اُصل دادی چې د کتاب او د سنت په مقابل د صحابه وو اقوال مردود دي . (نکاح محمدي ص ۹۰، فتاوی ثنائیه ج ۲ص ۲۵۲) او دلته یې د جمعې د لمونځ د فرضیت په باب کې قرآن او سنت پرېښودل او د یو متضاد اُثر څخه یې استدلال وکړو.

**څلورم مشترک جواب:** که دا روایات په خپل عموم باندې ورحمل کړو نو د دوي عموم به د قرآن کریم د عموم سره متعارض شي ، ځکه چې د : (یآ أیها الذین امنوا اذا نودی للصلوٰة الایه) عموم تقاضی کوي چې په ټولو باندې د جمعې لمونځ فرض دی ، نو په قرآن کې د تاویلونو په ځای په دې اثارو کې تاویل پکار دی .

**پنځم مشترک جواب:** دلامذهبو د مسلک مطابق په اثارو کې تضاد راځي ، ځکه چې په بعضې اثارو کې (اهل العوالی،أهل العالیه)او(انا مجمعون) راغلی دی، د دوي څخه معلومیږي چې اختیار هغو خلکو ته وو چې په هغوي باندې د جمعې لمونځ نه وو فرض ، مونږ په دې اثارو کې تطبیق کوو چې مطلق په مقید وو ورحملوو.

**شپږم مشترک جواب:** دلامذهبو په دلایلو کې ابهام دی، چې د جمعې د لمونځ د پرېښودلو څخه وروسته یې د ماسپښین لمونځ پرېښی وو او که نه ؟ د جمعې پرېښودل د امام لپاره جایز دی او که نه ؟ ټول مقتدیان به د جمعې لمونځ پرېږدي او که بعضې به یې کوي؟ د انا مجمّعون جمله خو پدې دلالت کوي چې بعضې به یې کوي . نو په کومو بعضو باندې فرض ده ؟

## انعامی اخطار

غیر مقلدین دې یو صحیح ، صریح ، مرفوع، غیر متعارض حدیث پیش کړی چې په هغې کې راغلي وي چې په چا باندې چې د جمعې لمونځ فرض دی د هغوي څخه د اختر په ورځ د جمعې لمونځ ساقط دی او په چا چې د جمعې لمونځ فرض نه دی د هغوي څخه هم ساقط دی، که پیش یې کړو نو د هر دلیل په مقابل کې به ورباندې د دوي محبوبه غذا وریته سمسیره وخورم او د هاضمې لپاره به ورباندې د دوي حلاله روح افزاء شربت یعنې د اوبن متیازې وڅښم .

## داختر لمونځ انفراداً بې جماعته نه دی جایز

داختر دلمونځ لپاره جماعت شرط دی او دلیل ورته دنبی صَلَّىٰاللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ عمل، دصحابه وو عمل، دتابعینو او دتبع تابعینو عمل دی، په دوي کې هیچا هم یو اځې یو کس ځانته داختر لمونځ نه دی کړی علامه کاسانی رحمه الله فرمایي چې: والجماعة شرط لانها ماأديت الا بجماعه (بدایع الصنایع ج ۱ص ۶۱۶) داختر دلمونځ لپاره جماعت شرط دی، ځکه چې هیڅکله هم بې جماعته نه دی اداء شوی، لکن دخیر القرون ددې متواتر عمل په خلاف لامذهبان لیکي چې داختر لمونځ یو کس هم بې جماعته کولی شي ،(نواب صدیق حسن خان لیکي چې: واصل درهر نماز صحت او بطور افرادی ست چنانکه بجماعت صحیح است ونما زعید نمازی از نمازها است پس تنها ویاجماعت هردو صحیح باشد وهر که افرادی راصحیح نمیگوید بروی دلیل است ونگذاردن انحضرت مگر باجماعت صالح حجت نباشد (بدور الأهله ج ۱ص ۷۸)

نوسوال دادی چې یو څوک چې درسول الله صَلَّىٰاللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ دصحابه وو رضی الله عنهم او دټول خیر القرون دائمي عمل حجت نه ګڼي دهغه څه حکم دی ؟

لامذهبان دلته د رسول الله صَلَّىٰاللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ ددائمي عمل په مقابل کې قیاس پیش کوي. د دریو طلاقونو په مسئله کې دجلیل القدر و صحابو و فتوی ردوي ، لکه دعبد الله بن مسعود رضی الله عنهما ،عبدالله بن عباس رضی الله عنهما ، عبد الله بن عمر رضی الله عنهما و غیرهم فتوی د حضرت عثمان رَضِيَاللَّهُعَنْهُ أذان ردوي ، درسول الله صَلَّىٰاللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ دا فرمان ردوي چې : عليكم بسنتي وسنة الخفاء الراشدين ، ددې سره ددوي أصلي څیره رابنکاره کیږي، چې په أصل کې دلامذهبو و کتهوري اهلحدیثو نه دقرآن سره مینه شته، نه یې دسنت سره او نه دصحابۀ وو سره . نه دالله تعالی حکم مني او نه د رسول الله صَلَّىٰاللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ ، بلکې دحدیث النفس او دخپل خواهش پیروي کوي.

## داختر په باره کې دلامذهبو مسایل

۱-یو اځې بې جماعته داختر لمونځ کول جایز دی (بدور الأهله ص ۷۸، صلوة الرسول ص ۴۱۰)

۲-نبی کریم صَلَّىٰاللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ هیمشه دأختر لمونځ په جماعت سره اداکړی دی ، لکن دنبی صَلَّىٰاللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ دائمي عمل حجت نه دی (بدور الأهله ص ۷۸)

۳- داختر دلمانځه ځخه مخکې نعت خواني یا دقران تلاوت یا وعظ دا هر څه په خطبه کې داخل دي (فتاوی اهل حدیث ج ۲ص۔۳۹۵، فتاوی علماء حدیث ج ۴ص۔۱۹۸)

۴- داختر دخطبې لوستل په منبر باندې نه دي پکار (صلوة الرسول ص۔۴۱۱) که دا مسئلې صحیح وي نو ددوي سره موافق یو ایت او یا حدیث پیش کړئ او که غیر صحیح وي نو ورسره مخالف یو ایت او یا حدیث پیش کړئ.

۵- دعیدگاه او دمسجد ځخه دښځو منع کونکی غټ کافر او سرکشه دی (فتاوی علماء حدیث ج ۴ص۔۲۰۰) نو سوال دادی چې حضرت عایشې رضی الله عنها ، حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ، حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنهما چې ښځې دمسجد او دعیدگاه ځخه منع کولې نو دوي کافران او سرکشه دي او که نه ؟ (معاذ الله ثم معاذ الله )

۶- ځوک چې وایي چې داختر دلمانځه زائد تکبیرونه شپږدي دا شخص کاذب بلکې اکذب دی (فتاوی ستاریه ج ۱ص۔۱۳۷) نوسوال دادی چې عبد الله بن مسعود رضی الله عنهما ابو موسی اشعری رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، حضرت حذیفة رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ، حضرت ابو مسعود انصاری رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وغیره صحابه وو چې دشپږو تکبیرونو تعلیم ورکولو هغوي اکذبان دي او که نه ؟

۷- صادق سیالکوټي لیکي چې نبی کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په اخترونو کې سورة ق، سورة قمر، سورة الأعلی او سورة الغاشیه لوستلې دی (صلوة الرسول ص۔۴۰۰)

نو سوال دادی چې کوم امام چې ددې سورتونو ځخه ماسوی نورسورتونه ولولي نو دمقتدیانو لمونځ یې وشو او که نه ؟ او خپله ددې امام لمونځ وشو او که نه ؟ په جواب کې دخپلو اصولو مطابق یا دقرآن آیت او یا دنبی کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حدیث ولیکئ.

۸- لامذهبان لیکي چې په حرمینو کې داختر لمونځ په مسجدینو کې بهتر دی او په نورو ځایونو کې په عیدگاهونو کې بهتر دی (فتاوی علماء حدیث ج ۴ص۔۶۵) ددې مسئلې د اثبات لپاره یو ایت او یا یو حدیث ولیکئ.

۹- یو امام لمونځ ورکړو او بل خطبه ولوستله نو دا جایز دی (فتاوی علماء حدیث ج ۴ص۔۱۸۰)

۱۰- دهر تکبیر سره رفع الیدین او بیا په سینه باندې لاسونه کیښودل دي (فتاوی علماء حدیث ج ۴ص۔۲۰۲)

۱۱- سنت طریقه دوه خطبې دي لکن یوه خطبه هم جایزه ده (فتاوی علماء حدیث ج ۴ ص ۱۸۰)

۱۲- که یو څوک د سبحنک اللهم څخه مخکې تکبیرات ولوستل نو هم جایز دي (فتاوی علماء حدیث ج ۴ ص ۱۴۵)

۱۳- داختر دلمانځه څخه وروسته وخت مبارک او د دعا دقبولیت دی (فتاوی علماء حدیث ج ۴ ص ۱۸۰)

۱۴- یو ښځه نورو ښځو ته امامتي وركولی شي (فتاوی اهلحدیث ج ۲ ص ۶۲)

۱۵- عبدالجبار غزنوي لیکي چې په څلورو صورتونو کې دښځو تلل عیدګ ته ګناه ده، په صورت دخوف دفتنې کې، دښځو له خوا څخه په صورت دخوف دفتنې کې همدارنګه دنورو خلکو لخوا څخه، په لاره کې دسړیو دازدحام په صورت کې په عیدګاه کې دسړیو دازدحام په صورت کې (فتاوی علماء حدیث ج ۳۴ ص ۱۸۴)

ددې هرې مسئلې لپاره یو یو ایت اویا یو حدیث پیش کړئ.

## داختر دلمانځه په مسائلو کې دلامذهبو تضاد بیاني

١-په مسجد کې داختر دلمونځ اداکونکی ملعون دی (فتاوی علماء حدیث ج ۴ ص ۱۶۵)
معلون نه دی (خکه چې په عیدګاه کې داختر دلمونځ کول سنت دي او په ترک دسنتو باندې مؤاخذه نشته (فتاوی ثنائیه ج ۱ص (۶۲۸)

٢-دوه خطبې مسنونې دي، فتاوی علماء حدیث ج۴ ص(۱۸۰) مسنونې نه دي (فتاوی علماء حدیث ج ۴ص ۱۸۷)

٣-په اوو تکبیرونو کې تکبیر تحریمه داخله ده (فتاوی علماء حدیث ج ۴ص ۱۸۵)

۴-په اوو تکبیرونو کې تکبیر تحریمه نه ده داخله (فتاوی علماء حدیث ج ۴ص ۲۰۲)

۵- داختر دلمانځه ځخه مخکې وعظ جایز دی (فتاوی علماء حدیث ج ۴ص ۱۸۱)جایز نه دی، بلکې په خطبه کې داخل دی (فتاوی علماء حدیث ج ۴ص ۹۸)

۶- په عیدګاه کې منبر سنت دی (فتاوی علماء حدیث ج ۲ص ۱۹۹) سنت نه دی (فتاوی علماء حدیث ج ۴ص ۱۹۸)

٧-ددوو خطبو په مینځنی وقفه کې دذکر کول پکار دي (فتاوی علماء حدیث ج ۴ص ۱۸۶)
ددوو خطبو په مینځنی وقفه کې چپ کیناستل پکار دي. (رحماني نماز ص۲۱۵)

٨- ددوو خطبو په مینځنی وقفه کې ذکر متعین دی چې الله تعالی اکبر کبیرا والحمدلله کثیرا وسبحان الله بکرةً واصیلا وصلی الله علی سیدنا محمد تسلیما کثیرا دی (فتاوی علماء حدیث ج ۴ص ۲۰۲) متعین نه دی (فتاوی علماء اهل حدیث ج ۲ص ۴۰۰)

٩-داختر په ورځ جمعه فرض ده (القول السدید فی وجوب الجمعة وان وافقها یوم العید) فرض نه ده ،صلوة الرسول اص ۴۰۶ نماز نبوي ص۲۵۹)

١٠-په زائدو تکبیرونو کې رفع الیدین کول سنت دی (فتاوی ثنائیه ص ۳) په زائدو تکبیرونو کې رفع الیدین ثابت نه دی (فتاوی نذیریه ج اص۴۵۴)

١١- داختر په ورځ د ماسپښین دلمونځ رخصت دی (نزالابرار ج اص ۱۵۵)
داختر په ورځ دماسپښین لمونځ رخصت نه دی (فتاوی اهلحدیث ج ۲ص ۷۱)

١٢-نذیر حسین وایي عیدګاه ته دښځو تلل مستحب دي (فتاوی علماء حدیث ج ۴ص ۱۷۳)

محمد رئیس بنارسي وایي چې عید ګاه ته دښځو تلل فرض دي، سلفی تحقیقی جایزه ص۷۹۸)

## داختر دلمانځه په باره کې دلامذهبو دروغ

۱-لامذهبه صادق سیالکوټي په صلوة الرسول ص۴۱۰) کې لیکلي دي چې دا ختر په لمانځه کې دسبحانک اللهم یا الله باعد بینی الخ) لوستل پکار دي او حواله یې په ابن خزیمه ورکړې ده، حالانکې دا دروغ دي په ابن خزیمه کې داسې حدیث نشته.

۲-صادق سیالکوټی لیکي چې امام به په اوچت اواز سورة فاتحه لولي او مقتدي به یې په رو اواز لولي بیا به امام په اوچت اواز باندې سورة لولي او مقتدي به چپ ولاړ وي (ص ۴۱۰. او حواله یې په صحیح مسلم ورکړې ده) حالانکې دا دروغ دي په صحیح مسلم کې دا تفصیل نشته.

۳-لامذهبه شفیق الرحمن لیکي چې که دجمعې په ورځ اختر شي نو داختر دلمانځه څخه وروسته یا دجمعې لمونځ وکړئ اویا دماسپښین لمونځ وکړئ (نماز نبوی ص۲۵۹) په دې کتاب باندې دزبیر علی زئی صلاح الدین یوسف، او دعبدالصمد رفیقي تصدیق دی، او حواله یې په ابو داؤد او په ابن ماجه ورکړې ده، حالانکې په ابو داؤد او په ابن ماجه کې دا خبره صراحة نشته، بلکې دا ددې لامذهبو خپله رأیه ده.

۴-لامذهبه صادق سیالکوټی لیکي چې بیا به دعاء افتتاح ختمه کړي او اوه تکبیرونه به وکړي، صلوة الرسول ص( ۴۱۰، او حواله یې په ترمذي ورکړې ده، حالانکې په ترمذي کې ددعاء افتتاح دختمیدلو ذکر نشته.

۵-صادق سیالکوټی لیکي چې په دوهم رکعت کې به دقراءت څخه وروسته پنځه تکبیرونه وکړي او دهر تکبیر څخه وروسته به لاسونه وتړي او حواله یې په بیهقي ورکړې ده. حالانکې دبیهقي په حدیث کې دلاسونو د تړلو ذکر نشته.

۶-لامذهبه صادق (کاذب) سیالکوټی لیکي چې بیا به خطبه ولولي او دا ختر خطبه به په منبر نه لولي (صحیح مسلم) صلوة الرسول ص ۴۱۱) حالانکې دادروغ دي په صحیح مسلم کې په یو حدیث کې هم داندی راغلي چې په منبر باندې به خطبه نه لولي.

۷-یوسف جې پوري په حقیقة الفقه ص۲۰۲) کې لیکي چې ددولسو تکبیرونو والاحدیث صحیح دی او حواله یې په هدایه ج اص ۶۶۶، شرح وقایه ج اص۱۵۱) باندې ورکړې ده، حالانکې ددې تصحیح نسبت هدائې او شرح الوقائې ته دروغ دي.

۸- یوسف جي پوري په حقيقة الفقه ۲۰۲ کې لیکي چې دشپږو تکبیرونو والا قول دابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دی او حواله یې په شرح الوقایه ص ۵۲، )ورکړې ده حالانکې په شرح الوقایه کې دا خبره نشته

۹- یوسف جي پوري په حقيقت الفقه ص ۲۰۳) کې لیکي چې په داوړو رکعتونو کې به تکبیرات دقراءت څخه مخکې وکړي او حواله یې په قدوري ص ۴۰ باندې ورکړې ده، حالانکې دا دروغ دي په قدوري کې داخبره نشته.

۱۰- په حقيقة الفقه ص ۲۰۳، کې لیکي چې داختر دلمانځه څخه وروسته مصافحه مکروه ده دا دروافضو طریقه ده او حواله یې په در مختار باب العیدین، ج ۱ص ۳۸۵) باندې ورکړی ده، حالانکې دا دروغ دي په در مختار کې دباب العیدین لاندې دا مسئله نشته.

۱۱- په فتاوی علماء حدیث ج ۴ص ۲۰۰، کې یې لیکلي دي چې کله چې دښځو له طرفه غوښتنه دا اذان وشي نو په سړیو باندې اذان کول واجب دي که اذان یې ونکړو نو ګناهګاریږي، پدې فتوی باندې دنولسو لامذهبانو علماوو دستخط دی او حواله یې په بخاري او په مسلم ورکړې ده، حالانکې په صحیح البخاري او په صحیح مسلم کې دا نشته چې په سړیو باندې د اذان کول واجب دی او داذان د نه کولو په صورت کې ګناهګار دی دا په صحیح البخاري او په صحیح مسلم باندې ددې نولسو لامذهبو دروغ دي.

## داختر دلمانځه په باره کې دلامذهبو څخه یو څو پوښتنې

دلامذهبه وکتوري اهلحدیثو دا دعوه دی چې مونږ هره مسئله په صریح ایت او یا په صریح صحیح مرفوع حدیث باندې حل کوو، اجماع او قیاس دمجتهد ته ضرورت نلرو نو اوس به مونږ به دفقهې یوه یوه مسئله لیکو که غیر مقلدین ورسره موافق وي نو دثبوت لپاره دی یې ایت او یا صریح حدیث ولیکي او که ورسره مخالف وي نو په خلاف دی یې ایت او یا صریح حدیث ولیکي، که په خلاف یې صریح ایت او یا صریح حدیث ولیکلو، نو به دفقهې دهغې مسئلې څخه علانیة دبیزارۍ اعلان وکړو، ددې شرط یا دونه بیاکوو چې لامذهبان به په جواب کې دخپلو اصولو مطابق دقرآن ایت او یا دنبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صحیح صریح، مرفوع حدیث پیش کوي.

۱- زمونږ په نیز داختر لمونځ د اصح قول مطابق واجب دی، فتاوی عالمګیري ج ۱ص ۱۴۹، ستاسو په نیز داختر لمونځ فرض دی او که واجب دی او که سنت؟ همدارنګه ددې هریو یو جامع او مانع تعریف وکړئ.

۲- زمونږ په نيز بهتره داده چې نيت د مانځه سره متصل وي، او که نيت يې مخکې کړی وي نو ددې دوه صورتونه دي اول دا چې دلمونځ او دنيت په مابين کې فا صله په داسې شي باندې راغلې وي چې هغه شی د متعلقاتو د مانځه څخه وي، لکه اودس او دوهم صورت دادی چې د متعلقاتو دلمانځه څخه نه وي اول صورت جايز او دوهم ناجايز دی، عالمګيري ج ۱ صـ ۶۷، ستاسو په نيز که يو سړي داودس څخه مخکې داختر دلمونځ نيت وکړو او بيا يې دلمانځه لپاره نوی نيت ونکړو نو لمونځ يې وشو او که نه؟

۳- زمونږ په نيز په امام دا نه ده لازمه چې دهر هر مقتدي لپاره بيل بيل نيت وکړي، لکن ستاسو په نيز زيد او خالد داختر په لمانځه کې شريک وو، لکن امام دوي ته دامامت د نه کولو نيت کړی وو، نو اوس د زيد او دخالد لمونځ وشو او که نه؟

۴- يو امام ښځوته دامامت نيت نه وو کړی، لکن ښځې ورپسې ولاړې وې نو دښځو لمونځ وشو او که نه؟ زمونږ په نيز خوونه شو، (فتاوی عالمګيري ج ۱ صـ ۶۶)

۵- يو سړي په دې نيت باندې اقتداء وکړه چې اما م زيد دی دلمانځه څخه وروسته معلومه شوه چې امام خالد وو، نو دده لمونځ وشو او که نه؟ عندنا لم يصح (فتاوی عالمګيري ج ۱ صـ ۶۷)

۶- په يو ښار کې په دوه او يا دريو ځايونو کې داختر لمونځ جايز دی او که نه؟

عندنا يجوز فی الموضعين بالاتفاق، وفی ثلاثة يجوز عند محمد خلافا لابی يوسف (عالمګيري ج ۱ صـ ۱۵۰)

۷- يو سړي دسهار فرض لمونځ ندی کړی نو دده داختر لمونځ کيږي او که نه؟

عندنا يجوز (فتاوی عالمګيري ج ۱ صـ ۱۵۰)

۸- که يو سړي داختر دلمونځ څخه مخکې بل فرض لمونځ قضاء يې کوي نو دده داقضائي لمونځ کيږي او که نه؟

عندنا يجوز لان المنع عن النفلی (عالمګيري ج ۱ صـ ۱۵۰)

۹- که يو امام د اختر دلمونځ څخه مخکې د خطبه ولوستله نو داختر لمونځ يې وشو او که نه؟

عندنا يجوز لکنه يکره (عالمګيري ج ۱ صـ ۱۵۰)

۱۰-که یو مام بالکل خطبه ونه لوستله نه دلمانځه څخه مخکې او نه دلمانځه څخه وروسته نو دده لمونځه وشو او که نه ؟

عندنا یجوز لکنه یکره (عالمګیري ج ۱ ص ۱۵۰)

۱۱- دتکبیراتو څخه وروسته به لاسونه تړي او که زوړند به یې نیسي؟

عندنا یرسل (عالمګیري ج ۱ص ۱۵۰)

۱۲-امام به دوه خطبې لولي او که یوه ؟ که دوه لولي نو ددواړو خطبو په منځ کې به څومره وقفه کوي؟

عندنا اثنان وبینهما وقفة ج ۱ص ۱۵۰)

۱۳- مقتدي به په رکوع کې تسبیحات او تکبیرات دواړه لولي ؟ او که یو اځې تکبیرات به لولي؟

عندنا، که دامام درکوع څخه د راپورته کیدلو څخه مخکې ، مخکې یې دواړه کولی شو، نو دواړ دې وکړي والاکبر وترک التسبیحات (بدایع الصنایع ج ۱ص ۶۲۲)

۱۴- داختر تکبیرونه فرض دي او که واجب دي او که سنت ؟

عندنا واجب (عالمګیري ج ۱ص ۱۵۱)

۱۵- که داختر او دجنازې لمونځ یو ځای شو نو دکوم یو مخکې کول پکار دي ؟

عندنا یقدم العید ثم یقدم الجنازة علی الخطبة (عالمګیري ص ۱۵۲)

۱۶- که دامام څخه تکبیرات زیات او یا کم شو نو سجده سهو شته او که نه ؟

عندنا ان ترکها اوزاد اونقص یسجد للسهو (عالمګیري ج ۱ص ۱۲۸)

که کوم لامذهبه وکټوري اهلحدیث دجواب ارده لري نو دخپلو اصولو رعایت به کوي یعنې په جواب کې به یا دقرآن صریح ایت پیش کوي او یا به دنبی کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صریح صحیح مرفوع حدیث پیش کوي.

وصلی الله تعالی علی خیر خلقه محمد وعلی آله وأصحابه اجمعین.

***

بسم الله الرحمن الرحیم

الحمد لله وحده والصلوة والسلام علی من لانبی بعده

امابعده!

**داهل سنت والجماعت دعوی (په مقابله دغیر مقلدینو کې)** دقرباني ورځې دذی الحجې دلسم تاریخ داختر دلمانځه څخه شروع تر ددولسم تاریخ دماښام پورې دي، په دې کې چې کله غواړې قرباني کولی شئ ،لکن په لسم دذی الحجه باندې قرباني کول أفضل دي.

ددې ورځو څخه وروسته دحیواناتو ذبحه کول قرباني نه ده، په اصل کې په غیر مقلدینو باندې دابراهیم علیه السلام ددې سنت را ژوندی کول بدلیږي، دوي دا کوشش کوي چې مسلمانان قرباني اونه کړي. لدې وجې دټولو څخه مخکې دا مسئله کوي چې قرباني سنت ده، بیا چې ترینه پوښتنه وکړې چې سنت څه ته وایي ؟ نو وایي به چې سنت هغه عمل دی چې نبی علیه السلام کله کړی وي او کله یې پرېښې وي نو معنی دا شوه چې قرباني هم کله کوئ او کله یې مه کوئ، حالانکې نبي علیه السلام فرمایي چې څوک چې طاقت دقربانۍ لري او قرباني نه کوي نوهغه دی زمونږ عیدګاه ته نه راځي او دومره سخت وعید په ترک واجبوراځي، دویم: دا چې اشتهارونه یې لګولي وي اووایي به چې دا پیسې به غریبانو اودلشکر خبیثه (لشکر طیبه) نام نهاده مجاهدینو ته ورکوو حال داچې دوي خپله پرې په دفترونو کې مزې کوي او په حدیث کې راځي چې په دې ورځ دځاروي په مرئ باندې دچړې د راګاږلو او دوینې دتویولو په نسبت بل یو عمل هم الله ته دومره محبوب نه دی.

دریم : دا علانونه به کوي چې یو حیوان دټول کور څخه کافي دی ، اګر که د ټولو کارو بار جدا جدا وي او هریو صاحب دنصاب وي. بله مسئله دا کوي چې په چرګې باندې هم قرباني جایزه ده (فتاوی ستاریه ج ۲اص ۷۲) همدارنګه وایي به چې په هګۍ باندې هم قربانۍ جائز ه ده، نو مقصود یې دا وي چې خلق قرباني اونه کړي، بل کوشش دا کوي چې دخلقو قرباني خرابه شي، نو مسئله دا کوي چې دقربانۍ ورځې څلور دي او افضل هم څلورمه ورځ ده، مطلب یې دا وي چې دخلکو خرچه وشي او قرباني یې ونه شي.

**عجيبه لطيفه:** کله چې دعباداتو ذکر راشي نو غير مقلدين وايي چې تراويح (۲۰) نه دي (۸) دي، وتر درې نه دي يو ذى ، اختر چې دجمعې په روځ راشي نو وايي به چې دجمعې لمونځ چوتي دى ، همدارنګې خطبې دوه نه دي يوه ده، اذانونه دجمعې دوه نه دي يو دى، طلاقونه درې نه دي يو دى او چې کله د خوراک خبره شي نو بيا وايي چې دقربانۍ ورځې درې نه دي څلور دي.

**دلايل:**

(۱) اَعُوْذُبِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ: ﴿وَيَذْكُرُوا اسْمَ اللّٰهِ فِيْٓ اَيَّامٍ مَّعْلُوْمٰتٍ﴾ (سورة الحج ايت نمبر ۲۸، پاره ۱۷)

حافظ ابن رشد المالکي رحمه الله ددې ايت په تفسير کې فرمايي چې مشهور قول دادى چې دمعلومات څخه مراد (هو يوم النحر ويومان بعده) بدايه ج ۱ص ۴۲۲)

علامه ابن قدامه رحمه الله فرمايي چې: وَهٰذَا قَوْلُ عُمَرَ، وَعَلِيٍّ، وَابْنِ عُمَرَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُمْ. قَالَ أَحْمَدُ رحمه الله: أَيَّامُ النَّحْرِ ثَلَاثَةٌ، عَنْ غَيْرِ وَاحِدٍ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ... وَهُوَ قَوْلُ مَالِكٍ، وَالثَّوْرِيِّ، وَأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُمُ اللّٰهُ تَعَالٰى. وَقَالَ: أَيَّامُ الْأَضْحٰى الَّتِي أُجْمِعَ عَلَيْهَا ثَلَاثَةُ أَيَّامٍ (مغنى لابن قدامه ج ۱۱ص ۱۱٤)

ددې ايت په تفسير کې مفسرينو دابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ارشاد نقل کړى دى چې: فالمعلومات يو م النحر ويومان بعده (تفسير در منثور ج ٤ص ٦٤١)

(۲) عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ رضي الله عنه، أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «مَنْ ضَحّٰى مِنْكُمْ فَلَا يُصْبِحَنَّ فِي بَيْتِهِ بَعْدَ ثَالِثَةٍ شَيْئًا» (مسم شريف ج ۲ص ۱۵۹، بخارى ج ۲ص ۱۳۵)

نبى عليه السلام ديو خاص ضرورت په بناء باندې فرمايلي دي چې ددرې ورځو څخه زيات په کورونو کې غوښې مه ساتئ، په دويم کال باندې نبي عليه السلام وفرمايل چې اوس تاسو ددرې ورځو څخه زياته هم دقربانۍ غوښه ساتلى شئ.

امام ابن قدامه رحمه الله فرمايي چې که دقربانۍ ورځې څلور وى نو په حديث کې به داسې راغلي وو چې دقربانۍ دغوښې ساتل دڅلورو ورځو څخه زيات جايز نه دي ، که په څلورمه ورځ قربانۍ جائزه وى، نو نبى کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به هيڅ کله نه وو فرمايلي چې ستاسو په کورونو کې دې د درې ورځو څخه زيات دغوښې يوه تکړه هم نه وي، بلکه څلورمه ورځ به يې هم ياده کړې وه.

**اعتراض:** ددې حديث څخه صرف دا ثابتيږي چې دقربانۍ کونکي لره د درې ورځو څخه زيات دقربانۍ دغوښې پريخودل جايز نه دي؟ نو اوس تاسو وايئ چې ترکومه پورې چې دغوښې ساتل جايز دي تر هغې پورې داختر ورځې دي ، نو بيا خو چې يوسړی داختر په دريمه ورځ قرباني وکړي نو تر را روانو دريو ورځو پورې يې ساتل جايز شو نو پکار دی چې اختر هم ترراروانو دريو ورځو پورې باقي شي.

**جواب:** نبی کريم ﷺ دا خطبه داختر په اوله ورځ باندې ارشاد فرمايلی وه (سنن الکبری ج ۹ص ۲۹۹) او په سنن الکبری کې ديوم الاضحی الفاظ هم موجود دي او په صحيح البخاری او صحيح مسلم کې تصريح ده چې دقربانۍ په باره کې نبی کريم ﷺ داختر په اوله ورځ باندې خطبه فرمايلی وو ،له دې وجې ددې درې ورځو ابتداء به دنبی کريم ﷺ دخطبې د ورځې څخه وي

**دوهم جواب:** کوم عبادت چې دخاصو ورځو پورې متعلق وي نو په هغه کې تحديد حقيقي وي ، تحديد اضافي نه وي لهذا درې ورځې به داختر د اولنۍ ورځې څخه حسابيږي .

**دريم جواب:** نبی کريم ﷺ چې دکومې قافلې درعايت دپاره ددرې ورځو څخه زيات دقربانۍ دغوښې ساتل ممنوع کړځولي وو نو ددې رعايت سره تحديد حقيقي زيات مناسب دی ځکه چې که دقربانۍ څلور ورځې وی او دقربانۍ داخري ورځې څخه وروسته تر درې ورځو پورې دغوښې ساتل جائز وی، نو پدې حساب سره به تر اووه (۷) ورځو پورې دقربانۍ دغوښې ساتل جايز وو نو د کوم غرض لپاره چې نبی کريم ﷺ پابندي لګولې وه هغه حاصل نه شو ځکه چې داوو ورځو څخه وروسته ډيره معمولي غوښه بچ کيدلی شي .

**۳ دليل:** ابو عبيده رحمه الله فرمايي چې زه دحضرت علی رضي الله عنه سره داختر لمونځ ته حاضر شوم: نَصَلّٰى قَبْلَ الْخُطْبَةِ، ثُمَّ خَطَبَ النَّاسَ، فَقَالَ: «إِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَاكُمْ أَنْ تَأْكُلُوْا لُحُوْمَ نُسُكِكُمْ فَوْقَ ثَلَاثٍ». (بخاری ج ۲ص ۳۵، رحمانيه قديميه ج۲ص ۸۳۵)

**۴-دليل:** عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «كُلُوْا مِنَ الْأَضَاحِيْ ثَلَاثًا». (بخاری ص ۳۵۲، رحمانيه)

**۵-دليل:** «نَهٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ أَكْلِ لُحُوْمِ الضَّحَايَا بَعْدَ ثَلَاثٍ»، قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ أَبِيْ بَكْرٍ رضي الله عنه: فَذَكَرْتُ ذٰلِكَ لِعَمْرَةَ، فَقَالَتْ: صَدَقَ. الخ (مسلم ج ۲ص ۱۵۸)

**٦- دليل:** عَنْ نَافِعٍ رحمه الله، عَنِ ابْنِ عُمَرَ رضي الله عنهما، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: «لَا يَأْكُلُ أَحَدٌ مِنْ لَحْمِ أُضْحِيَّتِهِ فَوْقَ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ» (مسلم شريف ج ٢صـ ١٥٨)

**٧- دليل:** عَنْ جَابِرٍ رضي الله عنه، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ نَهَى عَنْ أَكْلِ لُحُومِ الضَّحَايَا بَعْدَ ثَلَاثٍ، ثُمَّ قَالَ بَعْدُ: «كُلُوا، وَتَزَوَّدُوا، وَادَّخِرُوا». (مسلم ج ٢صـ ١٥٨)

**٨-دليل:** عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ، رضي الله عنه يَقُولُ: كُنَّا لَا نَأْكُلُ مِنْ لُحُومِ بُدْنِنَا فَوْقَ ثَلَاثٍ.

بيا يې اجازت وکړو او وې وفرمايل خورئ او توخه کوئ (مسلم ج ٢صـ١٥٨)

**٩-دليل:** عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ رضي الله عنه، قَالَ: «كُنَّا لَا نُمْسِكُ لُحُومَ الْأَضَاحِيِّ فَوْقَ ثَلَاثٍ، فَأَمَرَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَنْ نَتَزَوَّدَ مِنْهَا، وَنَأْكُلَ مِنْهَا»، يَعْنِي فَوْقَ ثَلَاثٍ.

**١٠- دليل:** دابو سعيد الخدری څخه روايت دی چې: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «يَا أَهْلَ الْمَدِينَةِ! لَا تَأْكُلُوا لُحُومَ الْأَضَاحِيِّ فَوْقَ ثَلَاثٍ»- وقَالَ ابْنُ الْمُثَنَّى رضي الله عنه: ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ.

**١١-دليل:** دحضرت بريرې رضی الله عنها څخه همدغسې روايت دی (مسلم ج ٢ صـ ١٥٨)

پدې ټولو احاديثو کې دا مضمون دی چې په اول کې دا حکم وو چې د دريو ورځو څخه زيات به دقربانۍ غوښې نه ساتئ، که په څلورمه ورځ قرباني جايزه وي نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به څلور ورځې ذکر کړې وې.

**١٢-دليل:** حَدَّثَنَا مَالِكٌ رحمه الله، عَنْ نَافِعٍ رحمه الله، عَنِ ابْنِ عُمَرَ رضي الله عنهما، أَنَّهُ كَانَ يَقُولُ: الْأَضْحَى يَوْمَانِ بَعْدَ يَوْمِ الْأَضْحَى (موطأ امام مالک صـ ٤٩٧، مکتبة الحسن)

**١٣- دليل:** امام مالک رحمه الله فرمايي مونږ ته را رسيدلي دي: عَنْ عَلِيِّ ابْنِ أَبِي طَالِبٍ رضي الله عنه مِثْلُ ذٰلِكَ (موطاء صـ ٤٩٧)

**١٤- دليل:** امام ابن ابی شيبه روايت کوي د قيع څخه هغه دشعبه څخه هغه روايت کوي دقتادة څخه او هغه دانس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه فرمايي: اَلْأَضْحَى يَوْمُ النَّحْرِ وَيَوْمَانِ بَعْدَهُ. (محلی بان حزم ج ٧ صـ ٣٧٧، وصححه)

**١٥-دليل:** ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: اَلْأَضْحَى يَوْمَانِ بَعْدَ يَوْمِ النَّحْرِ (الجوهر النقی ج ٧ صـ ٢٩٦)

**نوټ:** دابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا اثر په متعددو طرقو او په مختلفو سندونو سره مروي دی ددې سندونو څخه بعض ضعيف دی او بعضې جيد دي.

**۱۶- دليل:** امام ابن ابی شيبه په خپل سند سره روايت کوي فرمايي چې: سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يَقُوْلُ: اَلْاَضْحٰى ثَلَاثَةُ اَيَّامٍ (محلی ابن حزم ج ۷ صـ ۳۷۷)

**اعتراض:** معاويه ابن صالح قوي نه دی او ابو مريم مجهول دی.

**جواب:** معاويه ابی صالح ثقه راوي دی (بغدادی ج ۱۱صـ ۴۲۸)

علامه ذهبی ورته د: الامام الفقيه الفاظ استعمالوي (تذکره ج۱صـ۱٦٦)

او امام احمد رحمه الله ورته ثقه ويلي دي، امام بن عدی رحمه الله ده ته دعلم ظرف او صدوق ويلي دي همدارنګې ابو ذرعه ورته ثقه ويلي دي (تهذيب التهذيب ج۱۰صـ ۲۰۲) او ابو مريم مجهول نه دی، امام احمد رحمه الله فرمايې چې (معروف عندنا )مخکې فرمايي چې أهل حمص دده تعريف کولو امام عجلی رحمه الله فرمايي چې ابو مريم مولی ابی هريرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ثقةٌ (تهذيب ج ۲صـ ۲۲۲) لهذا دده دجهالت دعوی باطله ده.

**۱۷- دليل:** حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې: اَلنَّحْرُ ثَلَاثَةُ اَيَّامٍ أَفْضَلُهَا اَوَّلُهَا. (محلی ابن حزم ج۷صـ۳۷)

**۱۸- دليل:** عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا مَا (مَوْصُوْلَةٌ) ذُبِحَتْ يَوْمَ النَّحْرِ وَالثَّانِيْ وَالثَّالِثِ فَهِيَ الضَّحَايَا. (محل ابن حزم ج ۷صـ ۳۷۷)

**۱۹-** حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې قرباني صرف په درې ورځو کې کيږي (محلی ابن حزم ج ۷صـصـ ۳۷۷)

**۲۰-** علامه مارديني رحمه الله فرمايي چې دټولو فقهاو پدې خبره باندې اتفاق دی چې په دريالسم دذی الحجې باندې قربانی جائز نه ده (الجواهر النقی علی سنن البيهقی ج ۹صـ ۲۹۷) امام احمد رحمه الله فرمايي چې: اَيَّامُ الضَّحٰى الَّتِيْ اِجْتَمَعَ عَلَيْهَا ثَلَاثَةُ اَيَّامٍ (مغنی لابن قدامه ج ۱۱صـ ۱۱٤،)

قال احمد رحمه الله: اَيَّامُ النَّحْرِ ثَلَاثَةٌ عَنْ غَيْرِ وَاحِدٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (الروض المربع ج ۱صـ ۵۳۳)

## دغیرمقلدینو دعوی

دغیر مقلدینو دعوې داده چې داختر دلمانځه څخه واخله ددیارلسم دذی الحجی ترماذدیګره پورې یعنې داختر دڅلورمې پورې قرباني کول سنت دي او داختر په څلورمه ورځ باندې قرباني کول په اصل سنت باندې عمل کول دي او په څلورمه ورځ باندې په قربانۍ کولو کې دسلو شهیدانو اجر دی ، ځکه چې دا سنت متروک ګرځیدلي دي .

## دغیر مقلدینو دلایل

اعوذبالله من الشیطن الرجیم ﴿وَيَذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ فِي أَيَّامٍ مَّعْلُومَاتٍ﴾

استدلال: په دې ایت مبارکه کې داسم الله ذکر راغلی دی، اوداسم الله ذکر په څارویو باندې دذبحې په وخت کې کیږي ،نو دلته دڅارویو دذبحې بیان دی، یعنې مسلمانان دې دالله تعالی نوم أخلي او څاروي دې ذبحه کوي او دقربانۍ دوخت دپاره یې ایام معلومات ذکر کړي دي، ددې څخه صرف درې ورځې نه دي مراد ، ځکه چې دعلم البلاغت قاعده داده چې کله دجمع قلت صفت صیغه دجمع راشي نو هلته مراد ددریو څخه زیات عدد وي، نو ددې څخه ثابته شوه چې دقربانۍ ورځې ددریو څخه زیاتې دي چې څلور دي .

**جواب:** په غیر مقلدینو باندې لازمه ده چې دقرآن یا دحدیث څخه دلیل پیش کړي دا قاعده نه د قرآن ایت دی او نه درسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حدیث دی بلکې دا دبلغاوو تقلید دی .

**دوهم جواب:** غیرمقلدین په دې ځای کې عملا درسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دسنتو څخه مخالفت کوي، ځکه چې په تفسیر ابن کثیر کې د ایام معلومات په باره کې دحضرت عقبه ابن عامر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مرفوع روایت هم دی چې نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایلي دي چې دعرفې ، دنحر او دتشریق ورځې زمونږ دمسلمانانو دپاره داختر ورځې دي اودا دخوراک ، څښاک أود الله تعالی دذکر ورځې دي.

**دریم جواب:** په دې ایت کې دڅلورو ورځو قرباني اشارةً هم نه ده ذکر شوې او دهغه قاعدې جواب دادی چې په قرآن مجید کې په بل ځای کې راځي چې (الحج اشهر معلومات) دحج میاشتې معلومې دي، دلته اشهر جمع قلت ده او ددې وصف معلومات جمع راغلی ده، نو دغیر مقلدینو ددې قاعدې مطابق پکار دی چې دحج میاشتې څلور شي، حالانکې دحج میاشتې دبعضو په نیز درې دي او دبعضو په نیز دوه میاشتې او لس ورځې دي ، ددریو څخه زیاتې دهیچا په نیز هم نشته ، دویم مثال په قران مجید کې راځي چې (فعدة من ایام أخر

الایه ) یعني دچا څخه چې درمضان روژې پاتې شوي وي نو په نورو ورځو کې دې یې پوره کړي، په دې کې (ایام) جمع قلت ده او ددې وصف (اخر) جمع ده، نو ایا دلته هم دغیر مقلدینو په نیز څلور ورځې مرادې دي، یعنې صرف په څلورو ورځو کې قضاء راوړلی شي او ددې څخه یې په زیاتو او کمو کې نشي راوړلی؟

**څلورم جواب:** دفنونو ټول قواعد ظني او قیاسي وي قطعي نه وي، نو معلومه شوه چې ددې ایت څخه داستدلال مدار په ظن او په قیاس باندې دی ، حالانکې دغیر مقلدینو په نیز قیاس شرک دی .

**دوهم دلیل:** ددې ایت په تفسیر کې غیر مقلدین دابن عمر رضی الله عنهما قول پیش کوي چې ابن عمر رضی الله عنهما فرمایي چې (ایام معلومات ثلاثه ایام بعد یوم النحر (تفسیر ابن کثیر)

**جواب:** په تفسیر ابن کثیر ج۱ص ۲۴۵، او ج ۳ص ۲۱۷، په دواړو مقاماتو کې دایام معلومات په تفسیر کې دحضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ارشاد دایام التشریق په باره کې دی دقربانۍ په باره کې نه دی .

**سوال:** ابن عمر رضی الله عنه د ایام معلومات په تفسیر کې اختر ورځ او دهغې څخه وروسته درې ورځې ذکر کړي دي، نو ثابته شوه چې دادده په نیز دقربانۍ ورځې دي.

جواب: داخبره غلطه ده ځکه چې دابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قول دقربانۍ په باره کې داسې دی چې: الاضحی و یومان بعد یوم الأضحی (موطأ اما مالک ص ۴۹۷) امام نووي رحمه الله فرمایي: **وَقَالَ أَبُوحَنِيفَةَ وَمَالِكٌ وَأَحْمَدُ رَحِمَهُمُ اللَّهُ تَعَالَى: تَخْتَصُّ بِيَوْمِ النَّحْرِ وَيَوْمَيْنِ بَعْدَهُ وَرُوِيَ هٰذَا عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ وَعَلِيٍّ وِبن عُمَرَ وَأَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ** (نووی شرح مسلم ج ۲ص ۱۵۳)

**دوهم جواب:** په تفسیر ابن کثیر کې دابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نور اقوال هم نقل کړی شوي دي، چې دهغوي څخه یو قول داهم دی چې ایام معلومات د ذالحجې لس ورځې دي او دا قول هم دی چې ایام معلومات د قربانۍ ورځې او وروسته دوه ورځې دي (ابن کثیر ج ۳ص ۲۱۷)

نو دحضرت ابن عمر رضی الله عنهما اقوال خو دایام تشریق په باره کې مختلف دي لکن دقربانۍ په باره کې دده قول هم هغه دی کوم چې امام مالک او امام نووي رحمهما الله نقل کړی دی یعنی (**اَلْاَضْحٰى يَوْمَانِ بَعْدَ يَوْمِ الْاَضْحٰى**) .

**۳-دلیل:** حضرت علی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي : **فَدَلَّ عَلٰى ثَلَاثَةِ اَيَّامٍ بَعْدَ يَوْمِ النَّحْرِ** (تفسیر معالم التنزیل)

**جواب:** دحضرت علی رضي الله عنه قول هم دایام التشریق په باره کې دی چې په هغې کې په خصوصیت سره دالله دذکر تلقین شوی دی، له دې وجې دلسو ورځو قول هم شته او بحث زمونږ په ایامو د قربانۍ کې دی.

**دوهم جواب:** دتفسیر ابن کثیر په کومه صفحه کې چې دابن عمر رضی الله عنهما قول نقل دی په همدغه صفحه باندې دعلی رضي الله عنه قول هم نقل دی.

وَقَالَ عَلِيُّ ابْنُ اَبِيْ طَالِبٍ رضي الله عنه هِيَ ثَلَاثَةٌ: يَوْمُ النَّحْرِ وَيَوْمَانِ بَعْدَهُ اُذْبَحْ فِيْ اَيِّهِنَّ شِئْتَ وَاَفْضَلُهَا اَوَّلُهَا.

**فانقیل:** چې حافظ ابن قیم رحمه الله هم لیکي چې دعلی رضي الله عنه قول څلور ورځې دی.

**جواب:** دا بې سنده قول دی، نه حافظ ابن قیم ددې سند ذکر کړی دی او نه بل چا.

**۴- دلیل:** ابن عباس رضي الله عنه فرمایي چې معلومات داختر ورځ او ددې څخه وروسته درې ورځې دي.

**جواب:** په دې قول کې هم دقربانۍ هیڅ ذکر نشته، بلکه دایام معلومات تفسیر ذکر کړی شوی دی چې په هغې کې دالله تعالی دذکر تلقین شوی دی چې ددې تائید دحضرت ابن عباس رضي الله عنه ددې قول څخه کیږي چې: قال ابن عباس رضي الله عنه: اَلْاَیَّامُ الْمَعْدُوْدَاتُ اَیَّامُ التَّشْرِیْقِ وَالْاَیَّامُ الْمَعْلُوْمَاتُ اَیَّامُ الْعَشْرِ (تفسیر ابن کثیر ج ۱صـ ۲٤٤).

**دوهم جواب:** دقربانۍ په باره کې علامه ماردیني رحمه الله په جید سند سره دابن عباس رضي الله عنه دا قول نقل کړی دی چې: للأضحی یوم النحر ویومان بعده (الجوهر النقی ج ۷صـ۲۹٦)

**دریم جواب:** دغیر مقلدینو په نیز باندې اقوال دصحابه وو او فعل دصحابي او تقریر دصحابي قطعا حجة نه دی.

مشهور غیر مقلد مصنف دخیر الکلام لیکي: تابعین کے اقوال بلکہ صحابہ کے اقوال اختلافی امور میں حجت نہیں ہوتی خصوصا جب کی ایک طرف صحیح حدیث موجود ہی (خیر الکلام ص-۳۴)

نواب صدیق حسن خان غیر مقلد لیکي چې: علامه شوکاني در مؤلفات خو د هزار بار مینویسد که درموقوفات صحابی حجت نیست (دلیل المطالب صـ ٦١٧) علامه نور الحسن غیر مقلد وایي: قول مین یہ بات طی ہو گئ ہے کہ صحابہ کا قول حجت نہی ہے (عرف الجادی ص- ۱۵۱)

**۵- دلیل:** واذ کرالله فی ایام معدودات (الایه)

جواب: په دې کې دقربانۍ ذکر نشته مخکې وضاحت وشو چې په دې کې ایام التشریق او دذی الحجه لس ورځې ذکر شوي دي.

**٦- دلیل:** عَنْ جُبَیْرِ بْنِ مُطْعِمٍ رضی الله عنه، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ، فَذَكَرَ مِثْلَهُ، وَقَالَ: «كُلُّ أَیَّامِ التَّشْرِیقِ ذَبْحٌ».

یعنی دایام التشریق ټولې ورځې دقربانۍ ورځې دي.

(مسند احمد) وغیره نو ثابته شوه چې دقربانۍ ورځې دایام التشریق په شان څلور ورځې دي.

**جواب:** دا روایت انتهائي ضعیف دی، ددې په سند کې سلیمان ابن موسی د جبیر ابن مطعم څخه نقل کوي حالانکې دسلمیان ابن موسی ملاقات دجبیر ابن مطعم سره ثابت نه دی لهذا دا روایت منقطع دی، حافظ ابن قیم وایی چې (فیه انقطاع) (زاد المعاد ج ۱ص ۲۴۶) او دسلیمان ابن موسی په باره کې امام بخاری رحمه الله فرمایي چې (عنده مناکیر) (تهذیب ص ۴ص ۲۲۷)

امام نسائي فرمایي چې لیس بالقوی فی الحدیث بیا فرمایي چې دده په حدیث کې خرابي ده (تهذیب التهذیب ج ۴ص ۲۲۷)

**اعتراض:** په دارقطني ج ۱ص ۵۴۴) کې دا حدیث موصول ذکر شوی دي بیا لیکي چې (رواته ثقاة).

**جواب:** دا تصحیح نه ده صحیح، ځکه چې ددارقطني په اولني سند کې سوید بن عبدالعزیز دی، امام احمد رحمه الله ورته متروک ویلي دي امام ابن معین ورته لیس بشيء ویلي دي امام ابن سعد فرمایي چې ده منکر روایتونه بیان کړي دي، امام بخاری رحمه الله فرمایي چې دده په احادیثو کې منکر روایات موجود دي، امام بخاری فرمایي چې (فیه نظر) (ای کلام) دادده قابل نه دی چې روایات ترینه واخستل شي.

یعقوب بن سفیان ورته (ضعیف الحدیث) ویلي دي، امام حاتم ورته (لین الحدیث) ویلي دي دارنګې امام ترمذي، امام احمد، الحاکم، امام خلال، امام ابوبکر البزاز او امام بن حبان وغیره ټولو دده تضعیف کړی دی (تهذیب التهذیب ج ۴ص ۲۷۶).

او دارقطني په دویم سند کې عمرو بن سلمه دی، امام ابن معین فرمایي چې ضعیف دی، امام ابو حاتم فرمایي چې دده داحادیثو څخه احتجاج صحیح نه دی، امام عقیلي رحمه الله فرمایي چې دده په حدیث کې وهم دی، امام ساجي رحمه الله فرمایي چې ضعیف دی، امام احمد فرمایي ده دظهیر څخه باطل روایات نقل کړي دي ج ۸ص ۴۳، ۴۴) دا حدیث چې په څومره سندونو سره نقل شوی دی په هغه ټولو

کې نقص موجود دی او ددې اعتراف خپله غیر مقلد عالم اسماعیل سلفي کړی دی، هغه وایي چې: (اس حدیث کی تمام طرق میں کچھ نہ کچھ نقص ہے )

، مخکې لیکي چې: جبیر ابن مطعم کی حدیث استدلال کی بنیاد نہیں ہے بلکہ مؤید ہے (فتاوی علماء حدیث ج ۱۳ص ۔ ۱۶۹، ۱۷۱)

**۷- دلیل:** حضرت جابر بن عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایلي دي چې دمنی ټولې ورځې دقربانۍ وخت دی (نیل الاوطار (شوکاني)

**جواب:** امام دارقطني رحمه الله فرمایي چې امام یحی بن سعید چې کله د اسامه عن عن عطاء عن جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه دا روایت واوریدلو نو وې فرمایل چې تاسو شاهدان اوسئ چې ما داسامه حدیث ترک کړی دی.

امام دارقطني رحمه الله فرمایي چې همدغه وجه ده چې امام بخاری رحمه الله دا حدیث بالکل ترک کړی دی (تهذیب ج ۱ص ۲۸۱)

دوهم جواب: په دې حدیث باندې خو دغیر مقلدینو هم عمل نشته ځکه چې ایام دمنی د أتم دذی الحجه څخه شروع کیږي، نو ایا دقربانۍ ورځې هم دأتم څخه شروع کیږي؟ که داسې نه وي نو بیا څرنګه ځان د افتئمنون ببعض الکتاب مصداق ګرځوي؟ په حدیث کې د(کلها) لفظ موجود دی یعنې دمنی ټولې ورځې.

**دریم جواب:** حافظ ابن حجر رحمه الله د حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه روایت نقل کړی دی هغه فرمایي چې : کنا لانأکل لحوم بدننا فوق ثلاث (فتح الباری ج ۱۰ص ۲۲، اعلاء السنن ج ۱۱ص ۱۳۸) نو معلومه شوه چې دده په نیز دقربانۍ ورځې صرف درې دي.

**۸- دلیل:** عَنْ أَبِي سَعِيدِ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيَّامُ التَّشْرِيقِ كُلُّهَا ذَبْحٌ.

**جواب:** دغیر مقلدینو په خپله په دې حدیث باندې عمل نشته ځکه چې تکبیرات دتشریق دنهم د ذی الحجه څخه شروع کیږي نو بیا ولې قرباني د نهم دذی الحجه څخه نه شروع کیږي ؟ د کلها لفظ خو نهم تاریخ هم داخلوي.

**دوهم جواب:** ددې حدیث په سند کې معاویه بن یحی الصیرفی دی چې انتهائي ضعیف دی.

**دریم جواب:** ددې روایت په سند کې اضطراب دی.

**خلورم جواب:** امام ابن ابی حاتم رحمه الله دخپل پلار څخه نقل کړی دی چې: **مُعَاوِيَةُ عَنْ سَعِيْدٍ عَنْ أَبِيْ سَعِيْدٍ هُوَمَوْضُوْعٌ** (اعلاء السنن ج۱۷ص۲۳۷)

**۹- دلیل:** دمعاویه ابن یحی الصیرفی په سند سره مروي دی چې نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي چې: **ایام التشریق کلها ذبحٌ.**

**جواب:** مخکني اول او دوهم جوابونه ددې دلیل څخه هم جواب دی.

***

# المسح على الجوربين

# په جرابو باندې مسح کول

ليكوال : الشيخ ابو ابراهيم رحيم الله الحقاني الننجرهارى

بسم الله الرحمن الرحیم

الحمدلله وكفى وسلام على عباده الذين اصطفى.

أمابعد!

## دجرابو اقسام

جرابې هغې خلتې او يا كڅوړې ته وائی چې پښو ته وراغوستلې شي. داكڅوړه كله دڅرمنې څخه وي، چې په عربۍ كې ورته (خف) اوپه پښتو كې ورته موزې ويلې شي اوكله دټراټ (ټوټې) وتارونو څخه وي چې په عربۍ كې ورته الشراب ويلی شي، دټراټ اودتارنو جرابې په دوه قسمه دي:

(۱) ډبلې چې ثخينين ورته ويلی شي.

(۲) نرۍ چې رقيقې ورته وايې.

**ثخينين:** داهغه جرابې دي چې لاندې درې شرطونه پكې راجمع شوي وي.

(۱) ډبلې به وي اوداحنافوپه نيز اقلادرې ميله اودشوافعوپه نيز درې شپې اوورځې مزل به پكې بغيردبوټونو، د څپليو او د څپلكو څخه كيږي.

(۲) چې دډبل والي په وجه به پخپله دپونډۍ پورې قايمې وي اوددې دانښتل به دتنګۍ، يا دكشک وغيره په وجه نه وي بلكه د خپل ډبلوالي په وجه به وي.

(۳) دابه دومره ډبلې وي چې اوبه وغيره به ترينه نه شي تيريدلی، داسې جرابو ته ثخينين اوصفيقين ويلی شي. (الفقه على المذاهب الاربعة ص۱۳٦) صاحب ددر مختار ليكي چې: او جوربيه الثخينين بحيث يمشي فرسخا، ويثبت على الساق بنفسه ولا يرى ولا يشف صـ ۵۰۰ ج ۱ ثخينين هغه جرابې دي چې درې ميله مزل پكې ممكن وي او خپله دپونډۍ پورې كلكې وي او چې سترګو تـه يې مخامخ كړې نو لاندې ترېنه څه شی په نظر نه راځي او اوبه نه جذبوي، الفاتح شارح القدوري فرمايي

چې: وللثخانة علامات، احدها التمسک علی الساق من غیر ربط.،والثاني ان یکون صلبًا، فاذا وضع علی الارض قام لاینکسر، والثالث ان لایری شعاع الشمس من شکلتها، والرابع ان یدخل فی الماء ثم یخرج فی الحال ولا یجاوز الماء الی باطنه ج ۱ صـ ۱۷.

**رقیقین:** داهغه جرابې دي چې د دې مذکورو شرطونو څخه پکې کوم یو اویا درې واړه شرطونه نوي، بیا دڅرمنې جرابې په دوه قسمه دي (۱) مجلدې (۲) منعلې.

**مجلدې:** داهغو جرابو ته وایي چې دومره څرمن پرې لګیدلې وي لکه دڅومره پښې مینځل چې فرض دي، یعنې چې ترخنګرو پورې څرمن پرې راتاو شوي وي لکه دنن سبا ماسې.

**منعلې:** داهغو جرابو ته وايي، چې په هغې دومره څرمن نه وي لګیدلې لکه دڅومره پښې مینځل چې فرض دي، نوجرابې ټولې په شپږ قسمه شوې:

**ثخینین مجلدین:** داهغه جرابې دي چې مذکوره درې شرطونه پکې وي اوددې سره سره دومره څرمن وربانـدې لګیدلې وي لکه دڅومره پښې مینځل چې پـه اودس کې فـرض دي، داسې جرابې دموزوپه حکم کې داخلې دي اوپدې جرابو باندې اتفاقامسح جایزه ده ،المغني ج ۱ صـ ۳۰۳ ، العدة ج ۱ صـ ۳۳ ، المجموع ج ۱ صـ ۵۰۰ . الکافي ج ۱ صـ ۱۷۸، بدایع ج ۱ صـ ۸۳، والبنایه، ج ۱ صـ ۴۲۵.

**ثخینین،منعلین :** داهغه جرابې دي چې مذکوره درې شرطونه پکې وي اوددې سره سره پرې څرمن هم لګیدلې وي، لکن څرمن صرف په تلي لګیدلې وي، یا صرف په طرفونو لګیدلې وي اویا په تلي اوطرفونو دواړو لګیدلې وي، لکن دومره نه وي چې خنګري ورکې پټ شي، داجرابې هم دموزوپه حکم کې دي اومسح وربانـدې دایمه یې ثلاثه وو په نیز جایزاو دامام مالک رحمه الله په نیز نه ده جایز. (الکافي ج ۱ صـ ۱۷۸، مختصر المزني ج ۱ صـ ۱۰ ، المجموع ج ۱ صـ ۵۰۰ ، المغني ج ۱ صـ ۳۰۳ ، بدایع ج ۱ صـ ۸۳ ).

**ساده ثخینین :** داهغه جرابې دي چې مذکوره درې شرطونه پکې وي لکن څرمن وربانـدې نوي لګیدلې: پدې قسم جرابو باندې دمسح په باره کښې اختلاف دی، صاحبین رحمهما الله امام احمد اوامام شافعي رحمهما الله فرمایي چې دادموزوپه حکم کې دي اومسح وربانـدې جایزه ده اوامام صاحب (رحمه الله) په اول کې فرمایل چې پدې قسم جرابو باندې مسح نده جائزاو بیا یې ددې قول څخه رجوع

وکړه او فتوی یې ورکړه چې پدې قسم جرابو باندې هم مسح جایزه ده. صاحب دهدایې فرمایي ج ۱/ ص ۲۴۴]. وعنه انه رجع الى قولهما وعليه الفتوى.

دترمذي په یوه نسخه کې داسې راغلي دي چې: سمعت ابامقاتل السمر قندى يقول دخلت على ابى حنيفه فى مرضه الذى مات فيه فدعابماءفتوضئاوعليه جوربان فمسح عيلهما قال فعلت اليوم شيئا لم اكن افعله مسحت على الجوربين وهما غير منعلين.

ابو مقاتل السمر قندي فرمايي چې زه امام ابو حنيفه (رحمه الله) ته ورغلم په هغه مرض کښې چې پکښې وفات شو، نو د مرګ څخه دړې ورځې مخکې یې او به وغوښتې او دس یې وکړو او په جرابو باندې یې مسح وکړه او وی ویل چې نن ما په هغه څه باندې عمل وکړو چې مخکې مې ورباندی نه و وکړی، دامام مالک په نیز او د امام شافعي رحمه الله په یو قول پداسې قسم جورابو باندې مسح نه ده جایزه، حوالې مخکې لیکل شوي دي.

**رقيق مجلدين :** داهغه جرابې دي چې مذکوره ټول او یا بعضې شرطونه پکښې نه وي لکن ددې جرابو څخه دومره څرمن راتا وشوي وي، چې تر خنګرو پورې قدم پکې پټیږي. داجرابې هم دموزو په حکم کې دي او پدې جرابو باندې هم اتفاقا مسح جایزه ده (المغني صـ ۳۰۳، العدة ج ۱صـ ۳۳، المجموع ج ۱صـ ۵۰۰ . الکافي ج ۱صـ ۱۷۸، بدایع ج ۱صـ ۸۳، والبنایه، ج ۱صـ ۴۲۵).

**رقیقې ساده:** داهغه جرابې دي چې مذکوره درې واړه شرطونه پکښې نه وي او یا دهغې شرطونو څخه کوم یو پکښې کم وي او څرمن هم ورباندې نه وي لګیدلی، لکه دنن سبانۍ جرابې ،پداسې جرابو باندې اتفاقا مسح نده جائزه، نه دامام صاحب رحمه الله په مذهب، نه دامام شافعي صاحب رحمه الله په مذهب، نه دامام مالک رحمه الله په مذهب او نه دامام احمد رحمه الله په مذهب، بلکه دټول امت مسلمه په نیز پدې نريو جرابو مسحه نده جائزه.[عمدة الرعایه ص ۱۰۱] البدایع الصنایع ج ۱/ ص ۸۳۱، المسح على الجوارب والبحر الريق ج ۱/ ص ۱۹۲] المغنى صـ ۳۰۳، العدة ج ۱صـ ۳۳، المجموع ج ۱صـ ۵۰۰ . الکافي ج ۱صـ ۱۷۸، بدایع ج ۱صـ ۹۳، والبنایه، ج ۱صـ ۴۲۵.

**رقيقې منعلي :** داهغه جرابې دي چې مذكور درې واړه ، او يا ددرې واړو څخه كوم يو شرط پكې كم وي لكن په لاندې حصه باندې ئې څرمن لګيدلې وي، پدې جرانو باندې هم اتفاقا مسح نده جائزه. الكافي ج ١ صـ ٣٤ العدة ج ١ صـ ٣٣ و كبيري، ج ١ صـ ١١٩، حاشيه الطحطاوي صـ ٧٩ ،المغني ج ١ صـ ٢٠٣

## فقه الأيمه الأربعة واقوال العلماء

مخكې د څلورو واړو امامانو مذهبونه اجمالا بيان شو، لكن مناسبه مو وګڼله چې ددوي يو څو تفصيلي عبارات هم ذكر كړو، پدې عبارتونو كې په بعضو كې په نريو جرابو باندې د مسح په عدم جواز تصريح شوې ده، او په بعضو كې دجرابو دمسح لپاره داسې قيودات او شرايط لګيدلي دي چې په نريو جرابو باندې دمسح عدم جواز په كې راځي.

## حنفي فقه

(١) قلت أرأيت رجلا توضأ ومسح على جوربيه ونعليه أو على جوربيه بغير نعلين قال لا يجزيه المسح على شيء من ذلك وهذا قول أبي حنيفة وقال أبو يوسف ومحمد رحمهم الله تعالى إذا مسح على الجوربين أجزاه المسح كما يجزي المسح على الخف إذا كان الجورب ثخينين لا يشفان (المبسوط للشيباني ج ١ صـ ٩١ ) ابو سليمان الجوزجاني رحمه الله فرمايي: ما د امام محمد رحمه الله څخه پوښتنه وكړه چې تاسو دهغه سړي په باره كې څه فرمايئ چې په جورابو او پڼو باندې مسح وكړي او يا صرف په جورابو باندې مسح وكړي؟ امام محمد رحمه الله وفرمايل چې: پدې كې په يو باندې هم مسح نه ده جائز او دا د امام ابو حنيفه رحمه الله قول دی، او د امام ابو يوسف رحمه الله او د امام محمد رحمه الله قول دادی چې كه جرابې ثخينې وی او او به يې نه جذبولې نو په هغوي باندې هم دموزو په شان مسح جايزه ده .

(٢) اَلْمَسْحُ عَلَى الْجَوْرَبِ إِذَا كَانَ مُنَعَّلًا جَائِزٌ اِتِّفَاقًا، وَإِذَا كَانَ لَمْ يَكُنْ مُنَعَّلًا، وَكَانَ رَقِيقًا غَيْرُ جَائِزٍ اِتِّفَاقًا، وَإِنْ كَانَ ثَخِينًا فَهُوَ غَيْرُ جَائِزٍ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله وَقَالَا يَجُوزُ... وَعَنْهُ أَنَّهُ رَجَعَ إِلَى قَوْلِهِمَا وَعَلَيْهِ الْفَتْوَى كَذَا فِي الْهِدَايَةِ وَأَكْثَرِ الْكُتُبِ، لِأَنَّهُ فِي مَعْنَى الْخُفِّ (البحر الرائق ج ٢ صـ ٢٠٨ په منعلو جرابو باندې اتفاقا مسح جايزه ده.(زمونږ دأيمه يې ثلاثه وواتفاق مراد دی) او په غير منعلو رقيقو باندې اتفاقا نه ده جايزه او په ساده ثخينو باندې دصاحبينو رحمهما الله په نيز جايزه ده او د امام صاحب رحمه الله په نيز نه ده جايزه، لكن امام

صاحب رحمه الله دصاحبينو قول ته رجوع كړې ده او په همدې باندې فتوی ده، په هدايه او په اكثرو كتابونو كې همداسې راغلي دي، ځكه چې داسې جرابې دموزو په حكم كې دي.

(٣) وَأَمَّا الْمَسْحُ عَلَى الْجَوْرَبَيْنِ فَإِنْ كَانَا ثَخِينَيْنِ مُنَعَّلَيْنِ يَجُوزُ الْمَسْحُ عَلَيْهِمَا)... وَإِنْ كَانَا رَقِيقَيْنِ لَا يَجُوزُ الْمَسْحُ عَلَيْهِمَا، لِأَنَّهُمَا بِمَنْزِلَةِ اللِّفَافَةِ وَإِنْ كَانَا ثَخِينَيْنِ غَيْرَ مُنَعَّلَيْنِ لَا يَجُوزُ الْمَسْحُ عَلَيْهِمَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ - رَحِمَهُ اللَّهُ تَعَالَى - ....وَعَلَى قَوْلِ أَبِي يُوسُفَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللَّهُ تَعَالَى يَجُوزُ الْمَسْحُ عَلَيْهِمَا.(المبسوط للسرخسي ج ١ صـ ٢٨٩.

په ثخينو منعلينو باندې اتفاقا مسح جايزه ده او په ساده رقيقينو باندې اتفاقا ناجايزده او په ساده ثخينو كې اختلاف دی.

(٤) وَيَجُوزُ الْمَسْحُ (عَلَى الْجَوْرَبِ مُجَلَّدًا)... (أَوْ مُنَعَّلًا)...(وَكَذَا عَلَى الثَّخِينِ) الَّذِي يَسْتَمْسِكُ عَلَى السَّاقِ مِنْ غَيْرِ رَبْطٍ (فِي الْأَصَحِّ عَنِ الْإِمَامِ، وَهُوَ قَوْلُهُمَا) (مجمع الأنهر ج ١ صـ ١١١ )

په مجلدو او په منعلو جرابو باندې مسح جايزه ده، همدارنګه په هغو ثخينو جرابو باندې هم جايزه ده چې بغير دربړ او دكشك ځخه دپوندې، پورې ټينګيږي همدا دامام صاحب قول دی او همدا دصاحبينو قول دی، او همداسې عبارت په مراقی الفلاح كې صـ ٧٩ ج ١ او حاشيه الطحطاوي على مراقى الفلاح ج ١ص ـ ٨٤، وتحفة الفقهاء ج ١ صـ٧٦ بدايع الصنايع ج ١ص ـ ٨٣ ، فقه العبادات ج ١صـ ٤٥ ، وغيره كې كتلی شئ).

## فقه حنبلي

(١) يَجُوزُ الْمَسْحُ عَلَى الْخُفَّيْنِ وَمَا أَشْبَهَهُمَا مِنَ الْجَوَارِبِ الصَّفِيقَةِ الَّتِي تَثبت فى القدمين. (عمدة الفقه ج ١ صـ ١٦ . په موزو او په هغه سختو جرابو باندې مسح جايزه ده كومې چې دموزو په شان دپښو پورې ټينګې وي.

(٢) ويشترط للجورب ان يكون صفيقا يستر القدم لانه اذا كان خفيفا يصف القدم لم يجز المسح عليه لانه غير ساتر فلم يجز المسح عليه ، لان الذي تدعوا الحاجة اليه هوالذي يثبت بنفسه ولان الاصل فى المسح هو الخف وغيره مقيس عليه ، والخف يثبت بنفسه فما لايثبت بنفسه لايلحق به . العدة شرح العمده ج صـ ٣٣. دجواز دمسح لپاره ثخانت شرط دی چې قدم پټوي ځكه چې كومې جرابې چې نرى وي او قدم ښكاره كوي نو په هغې باندې مسح نه ده جايزه ځكه چې هغه دقدم

لپاره ساترې نه دي (لکه شکېدلې موزې) او بل شرط په کې دادی چې هغه به بغير د ترلو څخه دپښو پورې ټينګې وي او همدارنګه اصل په مسح کې موزې دي او جورابې په موزو باندې قياس دي نو کومې جرابې چې پخپله نه ټينګيږي هغه په موزو باندې نه قياسيږي نو د موزو پورې نه ملحق کيږي.

(۳) يجوز المسح على جورب صفيق وهو مايلبس فى الرجل على هيئة الخف من غير الجلد. الروض المربع ج ۱ صـ۳۰) مسح په سختو جرابو باندې جايزه ده او سختې جرابې هغه دي چې د څرمنې څخه نه وي او پښو ته د موزو په شان ورأغوستلې شي.

(۴) يجوز المسح على الخفين وما اشبهما من الجوارب الصفيقة التى تثبت فى القدمين. عمدة الفقه ج ۱ صـ ۱٦) په موزو باندې مسح جايزده او په هغه جورابو باندې هم جايز ده چې د موزو سره مشابه وي يعنې چې د قدمونو پورې پخپله ټينګيدلې شي.

(۵) فان كان ...الجورب خفيفا يصف القدم او يسقط منه اذا مشى او شد لفايف لم يجز المسح. المبدع شرح المقنع ج ۱ صـ ۱۰۷) که جرابې نرۍ وي چې د قدم کيفيت ترينه ظاهريږي او يا د مزل په وخت کې غورزيږي او يا د قدم څخه لفافه تاو کړي نو په دې باندې بالاتفاق مسح نه ده جايزه.

(٦) وكذالک الجورب الصفيق همدارنګه په هغو جورابو باندې مسح جايزه ده چې ټخينين وي، يا مخکې ليکي چې: إِنَّمَا يَجُوزُ الْمَسْحُ عَلَى الْجَوْرَبِ بِالشَّرْطَيْنِ اللَّذَيْنِ ذَكَرْنَاهُمَا فِي الْخُفِّ: أَحَدُهُمَا أَنْ يَكُونَ صَفِيقًا، لَايَبْدُو مِنْهُ شَيْءٌ مِنَ الْقَدَمِ، الثَّانِي أَنْ يُمْكِنَ مُتَابَعَةُ الْمَشْيِ فِيهِ (المعنى ج ۲ صـ ۱۹ ).

(۷) فان شدّ على رجليه لفايف لم يجز المسح عليها . (الكافى فى فقه ابن حنبل ) که پښو ته يې لفافې (نرۍ جرابې) ورواغوستلې نو په هغې باندې مسح نه ده جايزه.

## فقه الشافعي

(۱) قال الشافعى رحمه الله تعالى: " وَلَا يَمْسَحُ عَلَى الْجَوْرَبَيْنِ إِلَّا أَنْ يَكُونَ الْجَوْرَبَانِ مُجَلَّدِي الْقَدَمَيْنِ إِلَى الْكَعْبَيْنِ حَتَّى يَقُومَا مَقَامَ الْخُفَّيْنِ" (الحاوي فى ا لفقه الشافعي ج ۱ صـ ٦٤)

امام شافعي رحمه الله فرمايي چې د مجلدينو څخه بغير په نورو جورابو مسح نده جايز او مجلدې جرابې د خُفينو قايم مقامې دي.

(٢) فِي مَذَاهِبِ الْعُلَمَاءِ فِي الْجَوْرَبِ قَدْ ذَكَرْنَا أَنَّ الصَّحِيحَ مِنْ مَذْهَبِنَا أَنَّ الْجَوْرَبَ إِنْ كَانَ صَفِيقًا يُمْكِنُ مُتَابَعَةُ الْمَشْيِ عَلَيْهِ جَازَ الْمَسْحُ عَلَيْهِ وَإِلَّا فَلَا. (المجمع شرح المهذب ج ١ صـ ٤٩٩) دعلماوو دمذاهبو په تحقيق کې مونږ خپل مذهب ذکر کړو ،چې زمونږ صحيح مذهب دادی چې که جرابې ثخينې وي او پرله پسې مزل پکې ممکن وو نو بيا پرې مسح جايزه ده او که داسې نه وه نو بيا نده جايزه.

(٣)وان لبس حوربا صفيقا لايشف ، ومنعلا يمكن متابعة المشى عليه جاز المسح عليه . حلية العلماء ج ١ صـ ١٣٤) که ثخينين جرابې يې اغوستې وې چې او به يې نه جذبولې او منعلې وې او پرله پسې مزل پکې ممکن وو نو بيا پرې مسح جايزه ده او که داسې نه وو نو بيا نه ده جايزه.

(۴)وهو عند الشافعية جايز بشرطين ان يكونا الجوربان صفيقتين يمنعان نفوذ الماء الى القدم لوصف عليهما، فقه العبادات شا فعي ج ١ صـ ١٢٨)

دامام شافعي رحمه الله په مذهب په جورابو دمسح لپاره دوه شرطه دي ،اول دا چې ثخينين به وي او دوهم دا چې که او به وربانديې واړول شي ،نو قدم ته به ترينه نه شي تيريدلی.

(٥) وَلَا يَمْسَحُ عَلَى الْجَوْرَبَيْنِ إِلَّا أَنْ يَكُونَ الْجَوْرَبَانِ مُجَلَّدِي الْقَدَمَيْنِ إِلَى الْكَعْبَيْنِ حَتَّى يَقُومَا مَقَامَ الْخُفَّيْنِ. (مختصر المزني ج ١ صـ ١٠) په جورابو باندې به مسحه نه کوې مګر په هغو جرابو به يې کوې چې تر خنګرو پورې څرمن ورباندې راتاو شوي وي ترڅو چې دموزو قايم مقامې شي.

(٦)فلا يجوز المسح على اللفايف والجوارب المتخذة من الصوف لانه لايمكن المشى عليها ...... ولانها ولاتمنع نفوذالماء الى الرجل الشرح الكبير الرافعي ج ٢ صـ ٣٧٣ يعنى په لفافو (نريو جرابو) باندې مسح نه ده جايزه، همدارنګه د وړيو څخه په جوړو شوو جرابو باندې هم نه ده جايز ځکه چې پدوي کې پرله پسې مزل نه کيږي او او به هم نه منع کوي.

## فقه المالكي

(١)ولا يجوز غير الخف وفى مسح الجورب المجلد قولان . اشرف المسالک ج ١ صـ ٢٢ دموزو څخه بغير (په جورابو باندې) مسح نده جايزه او په مجلدينو جورابو کې دوه قوله دي.

(۲)ابن الحاجب لايجوز المسح على الجورب الا ان يكون من فوقه ومن تحته جلد مخروز. التاج والاكليل ج ١ صـ ٢٢٤) دمجلدينو جرابو څخه بغير په نورو جرابو باندې مسح نه ده جايزه.

(۳)ولا يجوز المسح على جوربين غير المجلدين، وفى المجلدين والجرموقين روايتان . التلقين ج ١ صـ ٣١ ) په غير مجلدو جرابو باندې مسح نه ده جايزه او په مجلدينو او دموزو په سرباندې په څرمندکې دوه قوله دي.

(۴) قَالَ ابْنُ الْقَاسِمِ رحمه الله: كَانَ يَقُولُ مَالِكٌ رحمه الله فِي الْجَوْرَبَيْنِ يَكُونَانِ عَلَى الرِّجْلِ وَأَسْفَلُهُمَا جِلْدٌ مَخْرُوزٌ وَظَاهِرُهُمَا جِلْدٌ مَخْرُوزٌ أَنَّهُ يُمْسَحُ عَلَيْهِمَا. قَالَ: ثُمَّ رَجَعَ فَقَالَ: لَا يُمْسَحُ عَلَيْهِمَا (المدونة ج ١ صـ ١٤٣ ) ابن القاسم رحمه الله فرمايي چې اول به امام مالک په مجلدينو جرابو باندې مسح کولو ته جايز ويلې، وروسته يې رجوع وکړه پس وې فرمايل چې په دوي باندې به مسح نه کيږي .

(۵)فان لم يجلد فلايصح المسح عليه حاشيه الصاوي على الشرح الصغير ج ١صـ ٢٥١ . که په جرابو باندې تربښنګرو پورې څرمن نه وه راتاو شوي مسحورباندې نه ده جايزه .

## دابن تيميه رحمه الله فتوى

(۱)كل خفٍّ يلبسه الناس ويمشون فيه فلهم ان يمسحوا عليه ، مجموع الفتاوى لابن تيميه ج ٢١ صـ ١٧٤) په کومو موزو کې چې مزل کيدلی شي او خلک يې اغوندي، نو مسح ورباندې جايزه ده.

(۲)يجوز المسح على الجوربين اذا كان يمشى فيهما. اقامة الدليل على ابطال التحليل ج ٢ صـ ٣٢٧) په کومو جرابو کې چې بغير دڅپليو او دبوټونو څخه مزل کيدی شي په هغوي باندې مسح جايزه ده او داسې جرابې ضرور ثخينين وي.

(۳)مشهور غيرمقلد عبد الرحمن مبارکپوري ليکي چې : قُلْتُ كَلَامُ الْحَافِظِ بن تَيْمِيَّةَ هٰذَا لَيْسَ مُخَالِفًا لِمَا اخْتَرْنَا مِنْ أَنَّ الْجَوْرَبَيْنِ إِذَا كَانَا ثَخِينَيْنِ صَفِيقَيْنِ يُمْكِنُ تَتَابُعُ الْمَشْيِ فِيهِمَا يَجُوزُ الْمَسْحُ عَلَيْهِمَا فَإِنَّهُمَا فِي مَعْنَى الْخُفَّيْنِ فَإِنَّهُ رَحِمَهُ اللّٰهُ قَيَّدَ جَوَازَ الْمَسْحِ عَلَى الْجَوْرَبَيْنِ بِقَوْلِهِ إِذَا كَانَ يَمْشِي فِيهِمَا وَظَاهِرٌ أَنَّ تَتَابُعَ الْمَشْيِ فِيهِمَا لَا يُمْكِنُ فِيهِمَا إِلَّا إِذَا كَانَا ثَخِينَيْنِ. (تحفة الاحوذي ج ١ صـ ٢٨٨)

دحافظ ابن تیمیه رحمه الله دا قول زمونږ دمختار مذهب سره مخالف نه دی چې جورابې به ثخینې وي او پرله پسې مزل به پکې ممکن وي ځکه چې حافظ رحمه الله په جورابو باندې دمسح دجواز لپاره دا شرط لګولی دی چې پرله پسې مزل به پکې ممکن وي او پرله پسې مزل په ثخینو جرابو کې ممکن دی.

## دالشیخ ابن باز رحمه الله فتوی

(۱)السوال: ماهی الشروط التی یجب مراعاتها عند المسح علی الجوربین؟

الجواب: لابد من ان یکونا ساترین صفیقین .(فتاوی الشیخ ابن باز فی المسح علی الخفین ج ۱ صـ ٤) سوال په جورابو باندې دمسح په وخت کې دکومو شرطونو رعایت ضروري وي؟

جواب : اول شرط دادی چې جرابې به ساترې وي یعنې دپښو ساخت به یې پناه کړی وي او دوهم دا چې ثخینې به وي.

(۲)ماالحکم فی المسح علی الجورب ، الشُراب، الشفافة؟

الجواب: من شرط المسح علی الجورب ان یکون صفیقاً ساتراً فان کان شفافا لم یجز المسح علیه . (فتاوی الشیخ ابن باز فی المسح علی الخفین ج ۱صـ ۸)

په نریو جرابو باندې دمسح کولو څه حکم دی؟ په جورابو باندې دمسح لپاره ضروري ده چې جرابې به ثخینې وي او دقدم ساخت به یې پټ کړی وي او که جرابې شفافې وي چې او به او نظر ترینه تیریدلو نو بیا ورباندې مسح نه ده جایزه.

## فتوی الشیخ عبدالله بن غدیان، والشیخ عبدالرزاق العفیفي والشیخ ابن باز رحمهم الله

السؤال: فی المسح علی الجورب اثناء الوضوء هل یشترط سمک معین للجورب أم لا؟

الجواب: الحمد لله وحده ، والصلوة والسلام علی رسوله وآله وصحبه وبعد: یجب ان یکون الجواب صفیقا لایشف عماتحته . (فتاوی اللجنة الدائمة ج ٥ صـ ٢٤٧)

ایا د اودس په وخت کې د جورابو دمسح لپاره په جورابو کې دغټوالي څه معین حد شته؟ .

جواب: دحمد او د صلوة څخه وروسته په جورابو باندې دمسح لپاره واجبه ده چې دومره کلکې او دبلې به وي چې او به ترینه نه تیریږي.

## فتوی مفتي احمد ا لهريدي مفتى الديار المصريه

يجوز المسح على الجوربين شرعا، ويقوم مقام الغسل بالماء لأى شخص سليما كان او مريضا بشرط ان يكون الجوربان ثخينين لاشيفان الماء. (فتاوى الأزهر ج ١ صـ ٣٧)

په جورابو باندې مسح کول هر سړي ته جایزه ده روغ وي او که مریض وي خو په شرط ددې چې جورابې ثخینې وي.

## فتوى محمد بن ابراهيم أل الشيخ رئيس الجامعة الاسلاميه في المدينه المنورة ورئيس رابطة العالم الاسلامي

السلام عليكم نستفتي من سماحتكم هل تجوز الصلوة بالمسح على الشراب كالقطن والصوف الصناعي الموجود الأن بالاسواق؟

الجواب: الحمد لله اذا كان صفيقاً لايصف البشرة يثبت بنفسه، ساتراً للمفروض جاز المسح عليه. (فتاوى ورسايل محمد بن ابراهيم أل الشيخ ج ٢ صـ ٢٩٤)

اوس چې په بازار کې دمالوچو او دوړویو کومې جرابې خرڅیږي ایا په دې باندې مسح جایزه ده؟

جواب: جرابې چې کله ثخینې وي پخپله دپښو پورې کلکې وي او دمفروض په مقدار دقدم ساخت یې پټ کړی وي نو بیا ورباندې مسح جایزه ده.

## دلامذهبو فتوې

(١)غیرمقلد عالم شمس الحق عظیم ابادي لیکي چې: ان المسح يتعين على الجوربين المجلدين لاغيرهما. (عون المعبود ج ١ صـ ٦٢)

یوائې په مجلدینو جرابو باندې مسح جایزه ده په نورو نه ده جایزه.

(٢)غیر مقلد عالم عبد الرحمن المبارکپوري لیکي چې: وَالرَّاجِحُ عِنْدِي أَنَّ الْجَوْرَبَيْنِ إِذَا كَانَا رقيقين ثَخِينَيْنِ فَهُمَا فِي مَعْنَى الْخُفَّيْنِ يَجُوزُ الْمَسْحُ عَلَيْهِمَا وَأَمَّا إِذَا كَانَا رَقِيقَيْنِ... فهماليسا في معنى الخفين وَفِي جَوَازِ الْمَسْحِ عَلَيْهِمَا عِنْدِي تَأَمُّلٌ وَاللَّهُ تَعَالَى أَعْلَمُ. (تحفة الأحوذي ج ١ صـ ٢٨٦)

(۳) غیر مقلد عبد الرحمن المبارکپوري په بل ځای کې لیکي چې: المسح على الجوربة المذكورة ليس بجايز لانه لم يقم على جوزاه دليل. (فتاوى ثنايه ج ١ صـ ٤٤٥) په نریو جرابو باندې د مسح هیڅ دلیل نشته.

(۴) غیر مقلد عبید الله المبارکپوري لیکي چې: وَالرَّاجِحُ عِنْدِي أَنَّ الْجَوْرَبَيْنِ إِذَا كَانَا ثَخِينَيْنِ بِحَيْثُ لَا يستمسكان على القدمين بلا شد ويمكن المشي فيهما فهما فَهُمَا يَجُوزُ الْمَسْحُ عَلَيْهِمَا لِأَنَّهُمَا فِي مَعْنَى الْخُفِّ وَإِنْ لَمْ يَكُونَا كَذٰلِكَ فَفِي جَوَازِ الْمَسْحِ عَلَيْهِمَا عِنْدِي تَأَمُّلٌ وَاللّٰهُ تَعَالَى أَعْلَمُ (مرعاة المفاتيح ج ۲ صـ ۲۱۹)

په ثخینینو جرابو باندې مسح جایزه ده او ددې څخه ماسوی په نورو جرابو باندې نده جایزه.

(۵) غیر مقلد علم ابو سعید شرف الدین الدهلوي لیکي چې: په جورابو باندې مسح نه د قرآن څخه ثابته ده، نه د صحیح مرفوع حدیث څخه، نه د اجماع څخه او نه د قیاس څخه. (فتاوی ثنائیه ج ۱ صـ ۴۴۲)

(٦) غیر مقلد عالم میا نذیر حسین دهلوي لیکي چې: سوال ما قولكم ادام الله فيوضكم فى المسح على الجوربة الشايعة فى الامصار المنسوجة من الغزل او الصوف غير منعلة ولا ثخينة؟

الجواب: المسح على الجوربة المذكورة ليس بجائز لانه لم يقم على جوازه دليل، وكل ما تمسك به المجوزون ففيه خدشة ظاهرة. (فتاوى نذيريه ج ١ صـ ٣٢٧) دا هم لیکي چې دنن سبا په نریو جرابو باندې مسح کول نه دي جائز.

(۷) غیر مقلد عالم عبد الجبار غزنوي لیکي چې: په جرابو باندې مسح د هیڅ صحیح حدیث څخه نه ده ثابته البته که دومره ډبلې وې لکه د څرمنې په شان نو بیا وربانديې مسح جایزه ده. (فتاوی علماء حدیث ج ۱ صـ ۹۹)

(۸) غیر مقلد عالم علی محمد سعیدي لیکي چې: په نریو جرابو باندې په مسح کې احتیاط پکار دی (فتاوی علماء حدیث ج ۱ صـ ۱۰۰)

(۹) د غیر مقلد عالم ابو البرکات فتوی؛ په موزو باندې د مسح کولو احادیث ډیر دي لکن په جرابو باندې د مسح هیڅ صحیح حدیث نه شته.

علماو د جرابو مسح د موزو په مسح باندې قیاس کړې ده او دا قیاس صحیح دی او په ضعیفو احادیثو باندې ددې قیاس تایید هم کیږي نو احتیاطا علماو د ثخانت شرط لګولې دی (فتاوی برکاتیه ج ۱ صـ ۱۸)

همداسې فتوی دغیرمقلد عالم حسين بن محسن الانصاري (چې دمبارکپوري استاذ دی) هم ده (فتاوی علماء حديث ج ١ص ١١١ص ١١٧ص ١١٧)

## په نريو جرابو باندې مسح دقاديانيانو مسلک دی

### (١)دمرزا قادياني لعين قول:

په موزو باندې دمسح ذکر وشو، نو حضرت اقدس مزار العين وفرمايل چې په موزو باندې مسح جايزه ده او خپلې پښې مبارکې يې راښکاره کړې چې دتارونو موزې يې په پښو کړې وې او وې فرمايل چې زه په دې باندې مسح کوم. (فتاوی ملفوظات مرزا قادياني ص ٣٠١)

### (٢)دمرزا قادياني لعين عمل:

دمازديگر دمانځه وخت شو نو حضرت صاحب په خپلو جرابو باندې مسح وکړه، په دغه وخت کې مولوي محمد موسی او مولوي عبدالقادر (پلارا وځوی) موجود وو، نو د دوی شک شو، بيا يې پوښتنه وکړه چې دا جايزه ده؟ هغه وفرمايل چې هو جايزه ده (سيرة المهدي ص ٢٦) حصه دوهم.

### (٣)دمرزا قادياني اولنې خليفه نورالدين:

سوال: په جرابو باندې مسح جايزه ده او که نه؟ خصوصا دتارونو په موزو، دبلې وي او که نرې؟

جواب: از حکيم الأمة او خليفه اول نورالدين، عن المغيرة بن شعبة ان رسول الله ﷺ توضأ ومسح على الجوربين والنعلين. (مجموعه فتاوی احمديه ج ١ ص ٥٤)

(٤)فقه الاحمديه، مرتبه تدوين فقه کميټي، سلسله عاليه احمديه:

ترڅو چې جرابې داستعمال قابلې وي نو مسحورباندې پکار ده (فقه احمديه عبادات ص ٥٤)

**ددې ټولې اجماع څخه دلامذهبو خلاف او قاديانانو سره موافقت:** نن سبا چې غير مقلدين په کومو نريو جرابو باندې مسحه کوي هغه پنځم قسم جرابې دي، چې عام خلک ئې په پښو کوي ،يعنې نرۍ ساده جرابې دي، چې پدې قسم جرابو باندې دټولو مسلمانانو په نيز مسح نده جائزه. لکه څرنګه چې تاسو حوالې وکتلې.

که څوک پدې قسم جرابو باندې مسح وکړي، دهغه اودس بالکل نه کيږي او دده لمونځ بالکل بې اودسه دی، تاسو وليدل چې دغيرمقلدينو بانيين نذير حسين دهلوي، شرف الدين دهلوي، عبدالرحمن مبارکپوري، او مولوی شمس الحق عظيم ابادي وغيره هم پدې جرابو باندې مسح کولو ته ناجائزوايي.

## دنبي كريم ﷺ په زمانه كې نرۍ جرابې نه وې

(١)الجوارب الخفيفة هذه لم تكن موجودة على عهد النبي ﷺ انما كانوا يلبسون الجوارب ويمشون بها. (شر زاد المستنقع للشنقيطي ج ١٠ صـ ١٤)

(٢)ولم تكن الجوارب فهذ الجواب الموجودة الأن الشفافة الرقيقة ((شرح زاد المستنقع للشنقيطي ج ١٠ صـ ١٤)

(٣)وكذالک الجوارب فى ذلک الوقت حتى انها لغلظها يمكن مواصلة المشى فيها بدون نعلٍ. (فتاوى الشيخ ابن جبرين، ج ١ صـ٤١١ )

(٤)قد ذكرناً ان الجوارب فى عهد هم كانت غليظة قوية . (فتاوى الشيخ ابن جبرين ج ١صـ١٣)

(٥) عَنْ رَاشِدِ بْنِ نَجِيحٍ رحمة الله عليه، قَالَ: رَأَيْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ رضي الله عنه دَخَلَ الْخَلَاءَ وَعَلَيْهِ جَوْرَبَانِ أَسْفَلُهُمَا جُلُودٌ وَأَعْلَاهُمَا خَزٌّ فَمَسَحَ عَلَيْهِمَا. (السنن الكبرى للبيهقي ج ١ صـ ٢٨٥)

دحضرت أنس رضي الله عنه دجرابو په لاندې حصه باندې څرمن لګيدلې وه او په پاس حصه يې ريشم وو

## اودس دقران پاک په طريقه

الله تعالى فرمائي : يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلوٰةِ فَاغْسِلُوا وُجُوهَكُمْ وَ أَيْدِيَكُمْ إِلَى الْمَرَافِقِ وَ امْسَحُوا بِرُءُوسِكُمْ وَ أَرْجُلَكُمْ إِلَى الْكَعْبَيْنِ.

ترجمه : اى هغه كسانو چې ايمان يې راوړى دى، كله چې تاسو د ريدئ لمونځ ته، نو پس ومينځئ مخونه خپل او لاسونه خپل تر څنګلو پورې او مسحه وكړئ په سرونو خپلو او مينځئ پښې خپلې تر خنګرو پورې. او پدې باب كې تقريباً (څه دپاسه شپيته) مرفوع احاديث راغلي دي چې په هغوي كې د پښو د وينځلو صراحةً حكم دى.

١- حضرت عثمان [صحيح ابن خزيمه ج١/ص٧٨]. تَوَضَّأَ وَخَلَّلَ أَصَابِعَ قَدَمَيْهِ..

٢- حضرت عايشة. [سنن دارقطني ج١/ ص٩٥]. كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يَتَوَضَّأُ وَيُخَلِّلُ بَيْنَ أَصَابِعِهِ وَيَدْلُكُ عَقِبَيْهِ.

٣- حضرت مستورد بن شداد. [مسند ابن بزاز ج٨ ص٣٣٠/ و ابن ماجة/ ج١/ ص٣٥]. رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ تَوَضَّأَ وَخَلَّلَ اَصَابِعَ رِجْلَيْهِ بِخِنْصَرِهٖ.

٤- حضرت ابو بكرة. [مسند ابن بزاز ج٩/ ص٢١]. رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ تَوَضَّأَ ثُمَّ غَسَلَ رِجْلَيْهِ ثَلَاثًا وَخَلَّلَ بَيْنَ اَصَابِعَ رِجْلَيْهِ.

٥- ربيع بنت معوذ. [معجم اوسط ج٢/ ص٢١٤]. وَيَغْسِلُ رِجْلَيْهِ ثَلَاثًا ثَلَاثًا وَيُخَلِّلُ بَيْنَ اَصَابِعِهٖ.

٦- لقيط بن سبرة. [نسائي ج١/ ص٢٠٦]. اِذَا تَوَضَّأْتَ فَاَسْبِغِ الْوُضُوْءَ وَخَلِّلْ بَيْنَ الْاَصَابِعِ.

٧- ابن عباس [ترمذي ج١/ ص١٦]. اِذَا تَوَضَّأْتَ فَخَلِّلْ اَصَابِعَ يَدَيْكَ وَرِجْلَيْكَ.

٨- ابو ايوب انصاري [معجم الكبير ج۴/ ص١٧٧]. اَلتَّخَلُّلُ مِنَ الْوُضُوْءِ تَخَلِّلْ بَيْنَ اَصَابِعِكَ.

٩- واثلة بن الأسقع [معجم الكبير ج٢/ ص۶۴]. مَنْ لَّمْ يُخَلِّلْ اَصَابِعَهٗ بِالْمَآءِ خَلَّلَ اللّٰهُ بِالنَّارِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ.

١٠- ابو هريرة [دار قطني ج١/ ص٩٥]. خَلِّلُوْا بَيْنَ اَصَابِعِكُمْ.

١١. حضرت وايل بن حجر ﷺ مسند بزاز ج ١٠ ص ١١٦) ثُمَّ غَسَلَ بِيَمِيْنِهٖ قَدَمَهُ الْيُسْرٰى ثَلَاثًا خَلَّلَ بَيْنَ اَصَابِعِهٖ، پدې احاديثو کې دپښو دوينځلو ذکر په ضمن د خلال کې راغلو.

١٢- حضرت علي [مصنف ابن عبد الرزاق ج١/ ص٥١]. اِذَا غَسَلَ رِجْلَيْهِ خَرَجَتْ ذُنُوْبُهٗ مِنْ رِجْلَيْهِ.

١٣- ابو هريرة [مسلم ص١٢٥] فَاِذَا غَسَلَ رِجْلَيْهِ خَرَجَتْ كُلُّ خَطِيْئَةٍ مَشَتْهَا رِجْلَاهُ..

١۴- عبد الله الصنابحي [ابن ماجة ج١/ ص٢۴]. فَاِذَا غَسَلَ رِجْلَيْهِ خَرَجَتِ الْخَطَايَا مِنْ رِجْلَيْهِ.

١٥- عمرو بن العاص [مسلم ج١/ ص٢٧۶]. ثُمَّ يَغْسِلُ قَدَمَيْهِ اِلَى الْكَعْبَيْنِ اِلَّا خَرَجَتْ خَطَايَاهُ.

١٦- ابو امامة [معجم كبير ج٨/ ص٢٥١]. ثُمَّ يَغْسِلُ رِجْلَيْهِ اِلَّا خَرَجَتْ خَطَايَاهُ.

١٧- عباد العبدي [طحاوي ج١/ ص٣٧]. غَسْلُ رِجْلَيْكَ اِلَى الْكَعْبَيْنِ.

١٨- كعب ابن مرة [مسند احمد ج۴/ ص٢٣۴]. اِذَا غَسَلَ رِجْلَيْهِ خَرَجَتْ خَطَايَاهُ مِنْ رِجْلَيْهِ.

١٩- ابو بكر [مسند ابى عوانة ج١/ ص٢١٣]. جَآءَ رَجُلٌ قَدْ تَوَضَّأَ وَبَقِيَ عَلٰى ظَهْرِ قَدَمِهٖ مِثْلُ ظُفُرٍ.

٢٠- عمر [مسند ابى عوانة ج١/ ص٢١٢]. اِنَّ رَجُلًا تَوَضَّأَ فَتَرَكَ مَوْضِعَ ظُفُرٍ..

٢١- انس تفسير ابن كثير ج ١ ص ٥٦) اِنَّ رَجُلًا جَآءَ اِلَى النَّبِيِّ ﷺ قَدْ تَوَضَّأَ وَتَرَكَ عَلٰى قَدَمِهٖ مِثْلَ مَوْضِعِ الظُّفُرِ.

۲۲- ابو ہریرۃ [مسلم ج۱/ص۱۲۵]. وَيْلٌ لِلْاَعْقَابِ مِنَ النَّارِ.

۲۳- عایشة [مسلم ج۱/ ص۱۲۵] وَيْلٌ لِلْاَعْقَابِ مِنَ النَّارِ.

۲۴- عبد اللہ بن عمرو بن العاص [بخاري ج۱/ ص۲۸] وَيْلٌ لِلْاَعْقَابِ مِنَ النَّارِ.

۲۵- خالد بن الولید [ابن ماجة]ص۳۵] وَيْلٌ لِلْاَعْقَابِ مِنَ النَّارِ.

۲۶- ابو ذر [مصنف عبد الرزاق ج۱/ ص۲۲]. وَيْلٌ لِلْاَعْقَابِ مِنَ النَّارِ.

۲۷- یزید بن ابی سفیان[ابن ماجه ص ۳۵] وَيْلٌ لِلْاَعْقَابِ مِنَ النَّارِ.

۲۸- عمرو بن العاص [ابن ماجه ص ۳۵] وَيْلٌ لِلْاَعْقَابِ مِنَ النَّارِ.

۲۹- شرحبیل بن حسنه [ابن ماجه ص ۳۵] وَيْلٌ لِلْاَعْقَابِ مِنَ النَّارِ.

۳۰- ابو أمامه رضی اللہ عنہ [بیہقی ج ۱ ص ۸۴] وَيْلٌ لِلْاَعْقَابِ مِنَ النَّارِ.

۳۱- اخی ابی امامه رضی اللہ عنہ [بیہقی ج ۱ ص ۸۴] وَيْلٌ لِلْاَعْقَابِ مِنَ النَّارِ.

۳۲- حضرت معیقب رضی اللہ عنہ [بیہقی ج ۱ ص ۸۴] وَيْلٌ لِلْاَعْقَابِ مِنَ النَّارِ.

۳۳- حضرت جابر رضی اللہ عنہ [ابن ماجه ج ۱ ص ۳۵] وَيْلٌ لِلْعَرَاقِيْبِ مِنَ النَّارِ..

۳۴- ابن عباس رضی اللہ عنہ [مسند ربیع ج ۱ ص ۵۴] وَيْلٌ لِلْعَرَاقِيْبِ مِنَ النَّارِ..

۳۵- عبد اللہ بن الحارث رضی اللہ عنہ [ابن خزیمه ج ۱ ص ۱۴] وَيْلٌ لِلْاَعْقَابِ وَبُطُوْنِ الْاَقْدَامِ مِنَ النَّارِ.

۳۶- حضرت جابر رضی اللہ عنہ [دار قطنی ج ۱ ص ۱۰۷] اَمَرَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ اِذَا تَوَضَّأْنَا لِلصَّلٰوةِ اَنْ نَغْسِلَ اَرْجُلَنَا.

۳۷- ابن عباس رضی اللہ عنہ [معجم الوسیط ج ۲ ص ۳۷۷] وَغَسَلَ رِجْلَيْهِ حَتّٰى اَنْقَاهُمَا.

۳۸- عقبه بن عامر رضی اللہ عنہ [ابن حبان ج ۳ ص ۳۲۹] وَاِذَا وَضَّأَ رِجْلَيْهِ اِنْحَلَّتْ عُقْدَةٌ..

۳۹- ابن عمر رضی اللہ عنہ [دار قطني ج ۱ ص ۹۲] وَغَسَلَ رِجْلَيْهِ ثَلَاثًا ثَلَاثًا.

۴۰- عثمان رضی اللہ عنہ [بخاري ج ۱ ص ۲۸] ثُمَّ غَسَلَ رِجْلَيْهِ ثَلَاثَ مِرَارٍ اِلَى الْكَعْبَيْنِ.

# فعلي احاديث

٤١-عثمان ﷺ رأيت رسول الله ﷺ توضأ وغسل رجليه [مسند احمد ج ١ص ـ٦٦]

٤٢-على ﷺ أنه توضأ.... وغسل رجليه [ابو داؤد ج ١ صـ ١٦]

٤٣-عبدالله بن زيد ﷺ فتوضأ وغسل رجليه [بخاري ج ١صـ ٣٢]

٤٤-عاصم مزني ﷺ غسل رجليه [دارمي ج ١صـ١٩٣]

٤٥-معاويه ﷺ فتوضأ ثلاثا وغسل رجليه[ مسند احمد ج ٤ صـ ٩٤]

٤٦-ابو بكرة ﷺ ثم غسل رجليه ثلاثا[مسند بزاز ج ٩ صـ ٢١]

٤٧-ربيع بنت معوذ ﷺ فتوضأ وغسل رجليه ثلاثا[ مسند احمد ج ٦ صـ٣٥٨]

٤٨-ابو هريرة ﷺ ثم غسل رجله اليمنى ، الحديث [مسلم ج ١ صـ١٢٦]

٤٩-عبد الله بن ابى اوفى ويغسل رجليه ثلاثا ثلاثا [التحاف خيرالمهرة ج ١ صـــ ٣٣٣]

٥٠-ابن عباس ﷺ وغسل رجليه [بيهقى ج ١ صـ٧٢]

٥١-ابو رافع ، توضأ وغسل رجليه ثلاثا [معجم اوسط ج ١ صـ ٢٧٨]

٥٢-عبدالله بن انيس ﷺ وغسل رجليه ثلاثا ثلاثا [ معجم اوسط ج ٤ صـ ٢٥٧]

٥٣-مقدام بن معديكرب ، وغسل رجليه ثلاثا ثلاثا [معجم كبير ج ٢٠صـ ٢٧٦]

٥٤-حضرت أنس ﷺ فغسل.... رجليه مرةً [الترغيب فى فضايل الأعمال ج ٢ صـ ٢٧]

٥٥-حضرت قيسى ﷺ ، وغسل رجليه [ مسند احمد ج ٥ صـ ٣٦٨]

٥٦-براء بن عازب ﷺ وغسل رجليه [كنز الاعمال ج ٩ صـ ٤٢٩]

٥٧-ابو مالک الاشعرى ﷺ وغسل قدميه [مسند احمد ج ٥ صـ ٣٤١]

٥٨-ابو هريرة ﷺ غسل رجليه ثلاثا ثلاثا [مسند بزاز ج ١ صـ ٢٤٢]

٥٩-عبد الله بن عمر ﷺ ثم غسل رجليه [طحاوى ج ١صـ ٣٦]

٦٠ابن عباس ﷺ ثم غسل رجليه ثلاثا [معجم كبير ج ١١صـ ٧٥]

٦١-ابو جبير ﷺ ، وغسل رجليه [بيهقى ج ١ صـ ٤٦]

په آیت کریمه کې داوس څلور فرضونه ذکر شوي دي او په دې احدیثو مبارکه وو کې یې دپښو وینځل ضروري ګڼلی دي او درسول صلی الله علیه وسلم څخه شروع ترننه پورې ټول مسلمانان ددې څلورو شیانو په فرضوالي باندی متفق دي، لکن دیو څو کلونو څخه راپه ډیخوا یوې نوې فرقې یعنې غیر مقلدینو ددې څلورو کې دوه وو فرضونو ته مکمله چوټي ورکړې ده.

په قران پاک کې دسر دمسحه کولو حکم دی او غیر مقلدین په سر باندې مسحه نه کوي، بلکه په پګړۍ او خولۍ باندې مسحه کوي، په قزان پاک کې دپښو دمینځلو حکم دی او غیر مقلدین دقران ددې حکم مخالفت کوي او دپښو مینځلو ته په هیڅ صورت کې هم فرض نه وایي مثلا:

**(الف)** چې موزې ئی په پښو کړی وي، نو دپښو مینځلو ته فرض نه وایي بلکه مسح پرې کوي.

**(باء)** که نرۍ جرابی ئی اچولی وي بیا هم مسحه کوي، دپښو مینځلو ته فرض نه وایي.

**(ج)** که پښې ئی لوڅې وي، نه ئې موزې اچولې وي او نه جرابې، صرف څپلۍ یا پڼې یې په پښو کړې وي بیا هم دپښو مینځلو ته فرض نه وایي. (نوټ) دغیر مقلدینو په نیز لوڅې پښې لمونځ کول دیهو دو سنت دي او دڅپلیو او بوټو نو سره لمونځ کول درسول الله صلی الله علیه وسلم سنت دي (اربعین محمدی، فتاوی ستاریه).

غیر مقلدین وائی چې په سرباندې مسحه په هغه وخت کې فرض ده چې سر بالکل لوڅ وي او دپښو مینځل په هغه وخت کې فرض دي چې پښې بالکل لوڅې وي. نو مونږ وایو چې بیا دلاسو نو دمینځلو او دمخ دمینځلو څه ضرورت دی؟ لاسونه هم کله په دستکشو کې پټ وي او دښځې مخ هم په نقاب کې پټ وي نو بیا خو څلورو واړو فرضو ته مکمله چوټي ورکړئ سونږ وایو چې دقران پاک دحکم مطابق او تقریبا ددې (۶۲) احادیثو مطابق په اودس کې دپښو مینځل فرض دي او مسحه ورباندې هیڅکله نده جائزه او ترڅو چې ددې قراني حکم په مقابل کې بل قراني حکم او یا متواتر حدیث رانشي تر هغې پورې به پدې قرآني حکم کې تغیر نه راځي او که دوه یا درې خبر واحد ئی په مقابل کې راشي نو ددوي په وجه به قراني حکم نه ختمیږي.

## په موزو باندې مسحه:

دڅرمنې په موزو باندې د مسحې دثبوت لپاره داتیا وو څخه دزیاتوصحابه وو صحیح احادیث راغلي دي، نودموزودمسحې احادیث متواتردي اودمسحې احکام ئې ښه واضح بیان کړي دي، نوددې احادیثو متواتره وولـه وجې امت مسلمه په موزوباندی دمسحې رخصت قبول کړی دی. حضرت حسن بصری فرمائی چې ماته اویا ووصحابه ووبیان کړیدی چې رسول الله ﷺ په موزو باندې مسح کړې ده. [شرح مسلم ج۱\ص۱۳۲] اوابوالقاسم بن منده په تذکره کې د مسح علی الخفین راویان اتیاذکرکړي دي [المجموع ج۱\ص۴۷۷]. محمد بن جعفر الکتانی رحمه الله ۶۶-ذکر کړی دي، نظم المتناثرة ج اصـ۶۰ حافظ زیلعی ۴۶ ذکر کړي دي نصب الرایه ج ا صـ۱۶۶) حافظ ابن حجرهم (۴۶) ذکر کړي دي درایه ج اصـ۷۰) ملا علی قاري رحمه الله فرمایي چې: وقد صرح جمع من الحفاظ بان حادیثه متواترة المعنی وجمع بعضهم رواته فبلغوا مأتین. (مرقات ج ۲ صـ ۲۱۳) باب المسح علی الخفین.

په موزو د مسح احادیث چې متواتر دي، نو ددې څخه منکر کافر دی.

قال ابن عبد البر أنه متواتر وفی شرح الطحاوي قال الکرخي اثبتنا الکفر علی من لایری المسح علی الخفین. (تیسیر التحریر ج ۳ ص ـ۵۴)

## دنسخ قاعده

په شریعت کې دمخکني حکم ختمولو او بدلولو ته نسخ وایي او دا نسخ دقران او یا دسنت په ذریعه باندې کیږي، لکن په ناسخ یعنې دوروستني حکم په دلیل کې شرط دا دی چې دا به دمنسوخ یعنې دمخکني حکم ددلیل څخه قوي وي او یا به اقلاً دهغه سره په قوة کې برابر وي، دهغه څخه به کمزوری نه وي، مثلاً کوم حکم چې په قطعي دلیل باندې ثابت وي نو هغه به په قطعي دلیل باندې منسوخیږي په ظني دلیل نه منسوخیږي، لکه تیګه چې ماتیږي نو یا به یې دتیګې څخه په قوي شي یعنې په اوسپنه باندې ماتوئ او یا به یې په بل تیګه باندې ماتوئ، په لوټه باندې یې نه شئ ماتولی.

۱-مولنا عبدالحق حقاني رحمه الله لیکي چې: والاضعف لایصلح ناسخا للاقوی. (نامي شرح حسامي صـ۱۸۲)

٢-غير مقلد شوكاني دنسخ لپاره أته شرطونه ذكر كوي پنځم شرط يې داليكلى دى چې : الْخَامِسُ: أَنْ يَكُونَ النَّاسِخُ مِثْلَ الْمَنْسُوخِ فِي الْقُوَّةِ، أَوْ أَقْوَى مِنْهُ، لَا إِذَا كَانَ دُونَهُ فِي الْقُوَّةِ، لِأَنَّ الضَّعِيفَ لَا يُزِيلُ الْقَوِيَّ. قَالَ إِلْكِيَا: وَهَذَا مِمَّا قَضَى بِهِ الْعَقْلُ، بَلْ دَلَّ الْإِجْمَاعُ عَلَيْهِ، فَإِنَّ الصَّحَابَةَ ﷺ لَمْ يَنْسَخُوا نَصَّ الْقُرْآنِ بِخَبَرِ واحد (ارشاد الفحول صـ ٣١٥) يعنې عقلا او اجماعا په ناسخ کې دا شرط دى چې د منسوخ سره به په قوت کې برابر وي اويا به ترېنه قوي وي، صحابه کرامو دخبر واحد په ذريعه باندې چيرته نص دقرآن نه دى منسوخ کړى.

٣-شوکاني په بل ځاى کې ليکي چې: الثابت قطعا لاينسخه مظنون (ارشاد الفحول صـ ٣٢٣)

٤- غيرمقلد نواب صديق حسن خان ليکي چې: والخامس ان يكون الناسخ مثل المنسوخ فى القوة او اقوى منه (حصول المامول صـ ١٢٤)

٥- مولانا عبدالحق حقاني رحمه الله ليکي چې: ان نسخ الكتاب بالسنة المتواترة جايزة (نامي شرح حسامي صـ ١٨٤)

٦- ابو زيد الدبوسي رحمه الله ليکي چې: فاما بعد رسول الله ﷺ فلايجوز الا بسنة متواترة او مشهورة بمنزلتها . (تقويم الادله صـ ٢٤٦) درسوالله ﷺ څخه وروسته دقرآن کريم دکوم حکم دمنسوخولو لپاره صرف سنت متواتره او يا هغه سنت مشهور چې دسنت متواتره په درجه کې وي دليل جوړيدلى شي . وګوره اصول السرخسي(ج ٢ صـ ٦٨) واصول الفقه الاسلامي ج ٢ صـ ٩٧١)

په قرآن او تقريبا په دې (٦٢) احاديثو کې چې دپښو دوينځلو ذکر راغلى دى ،نو په دې کې يې دتخفف او دعدم تخفف فرق نه دى کړى يعنې که موزې يې په پښو کړې وي او که نه يې وي په پښو کړې په دواړو حالتونو کې يې دپښو مينځلو ته فرض ويلي دي ، لکن په موزو باندې دمسح احاديث چونکه متواتر دي، نو ناسخ قطعي شو نو دټول امت په نيزدتخفف په حالت کې دپښو وينځل منسوخ او متروک شو او اختيار ورته ورکړل شو، چې که خوښه دې وي پښې ووينځه او که خوښه دې وي په موزو مسح وکړه کله چې غسل الرجلين على التعين فرض کړى شو او بيا ددې د فعل او ترک په مابين کې اختيار ورکړل شي نو دا تخير نسخ ده (ومثال ذلک ان يوجب الله علينا غسل الرجلين ثم خيرنا بينه وبين المسح على الخفين ) محصول ج ٣ صـ ٥٤٩) په حالت دتخفف کې على التعين دپښو دوينځلو

فرضوالی منسوخ دی. وګوره ، الفصول فی الاصول ج ۱ صـ۳۴۳ ) اصول السرخسی فی بیان الناسخ صـ ۶۷ اصول البزدوي صـ۱۵۲ ) تفسیر مظهري ج ۳ صـ ۵۰ ) تحفة الاحوذي ج۱ صـ ۲۸۵ )

نو که ددې قراني حکم او تقریبا ددې ( ۶۲ ) احادیثو په خلاف په موزو باندې د مسح په باره کې دوه یا درې خبر واحده وی نو هغه به نه قبلیدل ، لکن هغه متواتر دي ځکه امت مسلمه قبول کړي دي .

**ټخینین جرابې :** د څرمنې د موزو حکم چې کله د متواترو احادیثو څخه ثابت شو ، نو هغه جرابې چې د څرمنې په شان ډبلې وي ، یعنی دوه درې میله مزل پکښې کیدې شي او او به ترینه پښې ته نه شي تیریدلی او بغیر د ربړ او تړونکي څخه ترې پښو پورې کلکې وي لکه د موزو په شان ، نو په داسې جرابو کښې د فقهاوو اختلاف دی ، لکن جمهور فقهاء داسې جرابې د موزو په حکم کې داخلوي او د موزو د احادیثو له وجې مسح ته و رباندې جایز وائی او د ثخینینو قید فقهاء د هغو متواترو احادیثو څخه اخلي کوم چې د موزو د مسح په باره کې راغلي دي .

**نرۍ جرابې:** هغه جرابې دي چې نه د څرمنې څخه جوړې شوي وي ، او نه د څرمنې په شان وي ، لکه د نن سبانۍ جرابې نو دا د موزو په حکم کې نه دي نو پداسې جرابو باندې په اجماع د امام ابو حنیفه ، امام شافعي ، امام مالک او امام احمد او په اجماع د ټول امت مسحه کول حرام دي . او د رسول الله صلی الله علیه وسلم ) د فرمان مطابق د اجماع څخه وتونکی جهنمي دی او مرګ ئی د جاهلیت مرګ دی . [بخاری ج ۱۲ص ۱۰۴۵ مسلم ج ۲ \ص ۱۲۸ ترمذی ص ۳۱۵ وص ۳۱۹ مشکوة].

نو څوک چې په نریو جرابو باندې مسح کوې د هغه او د س اجماعا ندې شوی ، د هغه لمونځ نه کیږي . داسې کس د رسول الله ﷺ د فرمان مطابق جهنمي دی او مرګ ئی د جاهلیت مرګ دی .

**لامذهبان:** د نورو لامذهبانو په تقلید کې زمونږ د زمانې یو لامذهبه د مشکوة په شرحه الحق الصریح جلد دوهم کتاب الطهارة د باب المسح علی الخفین لاندې یوه رساله لیکلې ده په نامه د (رفع العینین الی مسئلة المسح علی الجوربین ) دده په رساله باندې دیو څو کلماتو لیکلو ته وخت ورکوم .

# دلامذهبه وسوسې

**اوله:وسوسه:** لامذهبه خناس لیکي چې دامام ابو حنیفه (رحمه الله) نه دوه رائی نقل دي اول داچې مسح په جورابو باندې نده جائزه مگر چې مجلدین یامنعلین وې ....

. دوهم روایت دامام ابو حنیفه نه اباحت مطلقادی، چې په جورابو باندې مسحه جائزه ده اورجوع ئی کړې ده قول دصاحبینو ته...الخ الحق الصریح ج ۲\ص ۶۱۵ طباعت دویم ځل ]

**الاخساء:** لامذهبه خناس لیکي چې دویم روایت دامام ابو حنیفه څخه اباحت مطلقادی، چې په جورابو مسحه جائزه ده، دلته دا دعوامو ذهن ته دا وارچوي چې دامام صاحب دویم روایت دادی چی په هر قسم جورابو باندې مسحه جائزه ده، ثخینې وي او که غیرثخینې وي.

حالانکه داسې نده دامام صاحب رحمه الله دادوه روایته په ثخینو جرابو کې دي، یعنې اول امام صاحب په ثخینو جرابو باندې مسحې کولو ته ناجائزه ویلې اووروسته ئی دصاحبینو قول ته رجوع وکړه اوپه ثخینو جرابو باندې مسحې کولو ته یې جائز وویلې.

یعنې په هغو جرابو باندی یې مسحې کولو ته جائزه وویلې چې دموزوپه شان دومره دبلې وي چی اقلا درې میله مزل پکښی بغیر دبوټونو او څپلیو څخه کیږي اوده بل والي په وجه پخپله بغیر دبړاودکشک څخه دپښو پورې نښتې وي اودموزوپه شان ترینه پښوته اوبه نه تیریږي.

صاحب دبدایع فرمائی : وان کانا ثخینین لا یجوزعندابی حنیفه وعند ابي یوسف ومحمد یجوز وروی عن ابی حنیفة انه رجع الی قولهما في آخر عمره.

ترجمه :که جورابې ثخینې وې نو دامام صاحب په نیز وربانذی مسحه نده جائزه اودامام ابویوسف رحمه الله او امام محمد رحمه الله په نیز وربانذی مسحه جائزه ده اوروایت شوی دی دامام ابو حنیفه څخه چې ده په اخرعمرکی دصاحبینو قول ته رجوع کړیده .(بدایع الصنایع ج ۱\ص ۸۳ کتاب الطهارة المسح علی الجوارب). وروسته لامذهبه خناس دبدایع الصنایع عبارت داسې رانقل کړې دي چې (فعلت ماکنت منعت عنه) حالانکه دبدایع الصنایع عبارت داسې ندی بلکه هغه داسې عبارت لیکلی دی چې (فعلت ماکنت امنع الناس عنه) (بدایع ج ۱\ص ۸۳].

صاحب دبدايع دنريو جرابو په باره کې فرمائی چې (وانکانارقيقين يشفان الماءلا يجوزالمسح عليهما بالاجماع )که جرابې نرۍ وی نده جايزه وربانذی مسحه په اجماع دټول امت. (بدايع ج ۱\ص ۸۳)

صاحب دهدائی فرمايی چې : ولا يجو زالمسح على الجوربين عندابى حنيفه رحمه الله.

ترجمه : اونده جايزه مسح په جورابو باندې دامام ابو حنيفه(رحمه الله) په نيز ،وروسته صاحب دهدائی فرمايي چې (وقالا يجوز اذاكانا ثخينين يشفان ) اوصاحبين فرمائی چې کله جورابې ثخينيی وي مسح وربانذی جائزه ده . وروسته صاحب دهدائی فرمائی چې (وعنه انه رجع الى قولهما وعليه الفتوى ) اودامام صاحب څخه روايت دی چې ده دصاحبينو قول ته رجوع کړی ده اوپه همدې باندې فتوی ده ،هدايه ج ۱\ص ۶۰ ،باب المسح على الخفين. صاحب دمجمع الانهرفرمايي (وعلى الجوارب مجلدا او منعلاوكذا على الثخينين في الاصح عن الامام لرجوعه اليه قبل موته بثلاثة ايام ) وهوقولهما وعليه الفتوى) ج ۱ص ۷۴) .

نولامذهبه خناسه !دخلکوذهن ته داوسوسه مه وراچوه چې امام صاحب په نريو جرابو باندې مسح کړې ده.

**دوهمه وسوسه:** لامذهبه خناس ليکلي دي چی د(ثخينين) قيدپه هيڅ حديث کې ندی راغلی اوهيڅ دليل پرې نه دحديث نه شته اونه دصحابي داثرنه اونه دقياس صحيح نه) [الحق الصريح ج ۲ ۱۶۱\۶طباعت دويم ځل]

**الاخساء:**

۱- لامذهبه خناس دلته د اجماع قيد پريښودلو حالانکې پدې قيد باندې يو دليل اجماع ده او د اجماع څخه وتونکی جهنمي دی. [بخاري ج ۲/ ص ۱۰۴۵].

۲- سيدالتابعين امام سعيدبن المسيب رحمه الله او علامة التابعين امام حسن بصری رحمه الله اعلان کوي چې (يسمح على الجوربين اذاكاناصفيقين ).

ترجمه : په نغو جرابو مسح کیږي چې ثخینین وي (استاذالبخاری ابن ابی شیبه ج ۱\ص ۱۸۸) ددې اعلان په زمانه کې ښه ډیر صحابه ﷺ موجود وه او تابعین او تبع تابعین هم ښه ډیر وو، مګر ددې خیر القرون هیڅ محدث او مجتهد ددې قید په خلاف خپل اواز پورته نه کړو.

ددوئ څخه وروسته امام ابویوسف ،امام محمد ،امام شافعي، امام سفیان الثوري ،امام عبدالله بن المبارک او امام ترمذي رحمهم الله هم دا قید ذکر کړی دی، ترمذي ص ۲۹،باب المسح علی الجوربین والنعلین. (مصنف ابن ابی شیبه ج۱ ص ۱۸۸).

لکن هیچا ددوي په خلاف اواز پورته نکړو او دا شرط دې محدثینو دخپلې رائې څخه ندی لګولی، بلکه هغه متواتر احادیث چې دموزو د مسح په باره کې راغلي دي هغه ئې په خپل مخ کې ایښي دي او دا شرط ئې ترینه رااخستی دی، ځکه چې په متواترو احادیثو کې په موزوباندې د مسح ذکر دی او موزې ثخینې وي، نو په جرابو به هلته مسحه جائزه وي، چې دا هم دموزو په شان ثخینې وي او که نرۍ وي بیا دموزو په شان ندي نو دموزو د متواترو احادیثو لاندې نه راځي او زیادت په کتاب الله باندې د متواتر حدیث په وجه جایز دی ،د خبر واحد په وجه د قراني حکم تغیر ندی جایز.

**دریمه وسوسه** :لامذهبه خناس لیکلي چې : (دریم قول دمحدثینو او امام احمد ... دی هغه دا چې په جورابو باندی مطلقا مسح جائزه ده )ج ۲\ص۶۱۶].

**الاخساء:** (لعنة الله علی الکذبین) په نریو جرابو باندې کوم محدث مسح کړی ده ؟ او په کوم ځای کې ئی د جواز فتوی ورکړی ده ؟امام بخاري په کوم ځای کې په نریو جرابو باندی مسح کړی ده؟او امام بخاري په کوم ځای کې په نریو جرابو باندې د مسح د جواز فتوی ورکړی ده؟.

امام ابوداود ،امام ابن ماجه ،امام نسائی، په کوم کوم ځای کې په نریو جرابو باندی مسح کړی ده؟ او په کوم ځای کې ئی په نریو جرابو باندې د مسح د جواز فتوی ورکړی ده؟ امام احمد بن حنبل (رحمه الله) په کوم ځای کې په نریو جرابو باندی مسحه کړې ده ؟ او په کوم ځای کې ئی په نریو جرابو باندی د مسح د جواز فتوی ورکړی ده ؟

داداسې دروغ دي لکه مرزا قادیانی به چې ویل چې په بخاري کې حدیث دی چې د آسمان څخه به اواز راشي چې هذا خلیفة الله المهدي، تاسو مخکې حوالې وکتلې چې په نریو جرابو باندې مسح کول د ټولو محدثینو، فقهاوو او مسلمانانو په نیز حرام ده، امام ترمذي د محدثینو او د فقهاوو او د امام احمد بن حنبل (رحمه الله) قول داسې بیانوي چې: وَهُوَقَوْلُ غَيْرِوَاحِدٍمِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ، وَبِهِ يَقُولُ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَابْنُ الْمُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ رحمهم الله تعالى، قَالُوا: يَمْسَحُ عَلَى الْجَوْرَبَيْنِ وَإِنْ لَمْ تَكُنْ نَعْلَيْنِ إِذَا كَانَا ثَخِينَيْنِ.

یعنې د ېې شمیره محدثینو، فقهاوو او علماوو او د ابن المبارک، شافعی، امام احمد، او اسحق رحمهم الله قول دادی چې په غیر منعلو جرابو باندې په هغه وخت کښې مسح جائزه ده چې کله ټخینې وي، ترمذي ج ۱\ص ۱۲۹\باب فی المسح علی الجوربین والنعلین] مخکې مفصلې حوالې ولیکل شوې.

**دریمه وسوسه : تعریف الجورب** : جورب په لغت کښې څه ته وائي الخ ) ج ۲ ص ۶۱۷].

الاخساء: لامذهبه خناسه! ستا شعار خو دا دی چې (اطیعوالله والرسول) فقط او ستاسو په نیز دامتي د خبرې منل تقلید او شرک دی، نو دا تعریفونه د قران کریم په کوم ایت کې ذکر شوي دي؟ او د رسول الله ﷺ په کوم حدیث کښې ذکر شوي دي؟

آیا د دې امتیانو د تعریفونو منل تقلید ندی؟ ولې د قران کریم او یا د حدیث څخه صراحة د جورب جامع او مانع تعریف نه شي ښودې. ایا احکام په لغوي مغنی باندې بناء وي؟

## د لامذهبو دلایل

په جرابو باندې د مسح په باره کې څلور مرفوع احادیث راغلي دي او نور یو څو آثار دي خو، د دې په باره کې اولا اجمالاً واوره چې علماء فرمایي چې په دوي کې یو هم صحیح حدیث نشته.

۱-حافظ عقیلي رحمه الله فرمایي چې: والاحادیث فی الجوربین والنعلین فیها لین، الضعفاء الکبیر ج ۷ ص ۳۶) په جورابو او په پڼو باندې د مسح احادیث ضعیف دي.

۲-غیر مقلد مبارک پوري لیکي چې: والحاصل انه لیس فی باب المسح علی الجوربین حدیث مرفوع صحیح خال من الکلام هذا ما عندي. (تحفة الاحوذی ج ۱ ص ۲۸۴)

۳-په بل ځای وايي چې: لم يقم على جوازه دليل صحيح وكل ماتمسك به المجوزون ففيه خدشة ظاهرة. (فتاوی ثنائیه ج ۱ صـ ۴۴۳)

۴- دلامذهبو دفرقې باني نذير حسين دهلوي ليکي چې: په جورابو باندې دمسح په باره کې هيڅ صحيح دليل نشته (فتاوی نذیریه ج ۱ صـ ۳۲)

## دحضرت ثوبان ﷺ حدیث

حافظ ابن حجر په درايه کې ليکلي دی چې: الحادی عشر عن ثوبان قال بعث رسول الله سرية فاصابهم البردفامرهم ان يمسحوا على العصايب والتساخين اخرجه احمد وابوداؤد، والحاكم واسناده منقطع ولفظ احمدان النبى تو ضا ومسح على خفيه والخمار والعمامة (درايه).

دحضرت ثوبان څخه روايت دی چې رسول الله يو لښکر وليږلو نو دهغوئ يخني وشوه نو نبي ﷺ هغوئ ته حکم وکړو چې په پګړيو او موزو باندې مسح وکړئ، ددې حديث سند منقطع دی او دامام احمد الفاظ داسې دي چې رسول الله اودس وکړو او په خپلو موزو او خمار او عمامې باندې ئې مسح وکړه.

(۱) پدې حديث کې دجرابو لفظ نه شته او دالتساخين معنی موزې دي، امام زيلعي فرمائي چې تساخين موزوته وائي. (زيلعی ج۱\ص۱۶۵) صاحب دمنجد فرمائي چې تساخين موزوته وائي. (المنجد ص ۳۳۴) صاحب دمصباح اللغات فرمائي چې تساخين موزوته وائي [مصباح اللغات ص ۳۶۷]. تقريباً ديرشو محدثينو او دلغتو امامانو د تساخين معنی په موزو سره کړې ده لاندې کتابونه وګوره:

۱- امام ابو عبيد قاسم بن سلام. [غريب الحديث لابن سلام [ج۱/ ص۱۸۷].

۲- امام خليل ابن احمد الفراهيدي. [کتاب العين ج۶/ ص۲۸۰].

۳- احمد بن حنبل [مسائل احمد بن حنبل ج۱/ ص۳۵].

۴- امام ابو اسحق الحربي [غريب الحديث للحربى ج۳/ ص۱۰۳۴]

۵- امام خطابي . [غريب الحديث للخطابى ج۲/ ص۶۱].

۶- امام بن قتيبة الدينوري [المعاني الكبير ج۱/ ص۱۱۴].

۷- علامہ ابن عباد [المحیط فی اللغة ج۱/ ص۱۱۳].

۸- علامہ ابن درید [جمهرة اللغة ج۱/ ص۳۱۶].

۹- امام ابو منصور الأزهري [تهذیب اللغة ج۲/ ص۸۲].

۱۰- علامہ سرخسي [المبسوط ج۱/ ص۲۸۷].

۱۱- علامہ ماوردي [الحاوي في الفقه الشافعي ج۱/ ص۳۵۶].

۱۲- ابن حزم ظاهري [المحلة ج۱/ ص۵۹۹].

۱۳- زمحشري [الفايق في غريب الحديث ج۲/ ص۲۶۶].

۱۴- علامہ نسفي [طلبة الطلبة ج۱/ ص۱۰۴].

۱۵- ابن الاثير الجذري [النهاية في غريب الحديث ج۱/ص۵۰۱].

۱۶- برهان الدين الخوارزمي [المغرب ج۳/ ص۲۶].

۱۷- علامہ نووي [المجموع شرح المهذب ج۱/ ص۴۰۸].

۱۸- زين الدين محمد ابن ابی بکر الرازی [مختار الصحاح ج۱/ ص۳۲۶].

۱۹- ابن المنظور الأفريقي [لسان العرب ج۳/ صـ۶۷۱۹]

۲۰- حافظ ابن تيمية [مجموعة الفتاوی ج۲۱/ ص۱۷۳].

۲۱- حافظ ابن قيم [احكام أهل الذمة ج۳/ صـ۱۲۷۳].

۲۲- ابو العباس الحموي [المصباح المنير ج۴/ ص۱۸۶].

۲۳- علامہ زيلعي [نصب الراية ج۱/ ص۱۶۵].

۲۴- علامہ فيروز آبادي [قاموس المحيط ج۱/ ص۱۵۵۵].

۲۵- علامہ عيني [شرح ابی داؤد للعيني ج۱/ ص۳۴۶].

۲۶- حافظ ابن حجر [بلوغ المرام ج۱ ص۲۲].

۲۷- مرتضی الزبيدي [تاج العروس ج۱/ ص۸۰۶۴].

۲۸- شوكاني [نيل الأوطار ج۱/ ص۳۴۸].

۲۹- علامه ابن الفارسي . [مقاييس اللغة ج ۳ص ۱۱۳]

۳۰- علامه ابن سيده. [المحكم والمحيط الاعظم ج ۵ ص ۸۱]

۳۱- مشهور غير مقلد مباركفوري ليكي چې: ان التساخين قد فسرها أهل اللغة بالخفاف، [تحفة الأحوذي ج۱/ ص۲۸۷].

غير مقلدينو چې د تساخينو كومه معنا اخيستې ده چې (كل مايسخن به القدم من خف وجورب ونحوه) دا علامه خطابي په (يقال) او په (قال بعضهم) سره ذكر كړې ده. او علامه بغوي په (قيل) سره ذكر كړې ده. [معالم السنن ج ۱/ ص ۵۰] [شرح السنة ج ۱/ ص ۴۵۲] [غريب الحديث ج ۲ ص ۶۱) غير مقلد مباركپوري وروسته ليكي چې: فَلَمَّا ثَبَتَ أَنَّ التَّسَاخِينَ عِنْدَ أَهْلِ اللُّغَةِ وَالْغَرِيبِ هِيَ الْخِفَافُ فَالِاسْتِدْلَالُ بِهٰذَا الْحَدِيثِ عَلَى جَوَازِ الْمَسْحِ عَلَى الْجَوْرَبَيْنِ مُطْلَقًا ثَخِينَيْنِ كَانَا أَوْ رَقِيقَيْنِ غَيْرُ صَحِيحٍ (تحفة الاحوذى ج ۱ ص ۲۸۷)

(۲) دامام احمد په روايت كښې په موزو **(خفيه)** باندې تصريح شوې ده.

(۳) دا حديث انتهائي ضعيفه هم دی.

(۱) ددې حديث اول راوي يحيى بن سعيد دی، امام ذهبي فرمائي چې (كان يفتى براى ابى حنيفه) يعنى دا سره ددې چې لوی محدث وو، دجرح اوتعديل امام وو، لكن ددې سره سره دا امام ابوحنيفه رحمه الله مقلد وو. [تذكرة ج۱ ص۲۸۲ تهذيب التهذيب ج ۱۲ ص ۴۵۰] الجواهر المضيه ج۲ ص۲۰۹ تاريخ بغداد ج ۱۳ ص ۳۵۴] وكتهوري اهلحديث وايي چې مقلدين جاهلان او گمراهان دي. نو دلته ولى ديو مقلد روازې ته ولاړ يئ؟

(۲) ددې حديث دوهم راوي ثوبان بن يزيد دی. دده په باره كښې صاحب دتقريب ليكلي دي چې د تقدير څخه منكر او بدعتي و. امام احمد به طالبان دده د درس څخه منع كول. كله به چې په درس كې دحضرت علي ﷺ ذكر راغلو نو ده به ويل (لااحب الرجل) دا سړې زمانه خوښيږي، ځكه چې دا زما د نيكه سره جنګيدلی دی. (حاشيه خلاصه تهذيب الكمال ص ۵۰)

(۳) ددې حدیث دریم روای راشدبن سعد دی، دا راوي انتهائی ضعیفه دی (تهذیب التهذیب ج ۳ صـ ۲۲۶) میزان الاعتدال ج ۲ \ص ۳۵].

(۴) غیر مقلد مبارکپوري لیکي چې: هٰذَا الْحَدِيثُ لَا يَصْلُحُ لِلْاِسْتِدْلَالِ فَإِنَّهُ مُنْقَطِعٌ فَإِنَّ رَاشِدَ بْنَ سَعْدٍ لَمْ يَسْمَعْ مِنْ ثَوْبَانَ، قَالَ الحافظ بن أَبِي حَاتِمٍ رحمه الله فِي (كِتَابِ الْمَرَاسِيلِ: ص ۲۲) أَنْبَأَ عَبْدُ اللهِ بْنُ أَحْمَدَ بْنِ حَنْبَلٍ رحمه الله فِيمَا كتب إِلَيَّ قال قال أحمد يعني بن حَنْبَلٍ رحمه الله رَاشِدُ بْنُ سَعْدٍ لَمْ يَسْمَعْ مِنْ ثوبان انتهى. وقال الحافظ بن حَجَرٍ رحمه الله فِي تَهْذِيبِ التَّهْذِيبِ قَالَ أَبُو حَاتِمٍ وَالْحَرْبِيُّ رحمهما الله تعالى لَمْ يَسْمَعْ مِنْ ثَوْبَانَ. (تحفة الاحوذی ج ـ ۱ صـ ۲۸۷)

امام احمد بن حنبل، ابو حاتم رحمه الله او حربي رحمه الله فرمايي چې: راشد بن سعد دا روايت د ثوبان څخه نه دې اوريدلی: همدا رنګه فرمايي چې راشد کثير الارسال او مدلس وو او دا روايت ئی په عن سره کړی دی. لامذهبه خناس ليکلي دي چې امام بخاري فرمائی چې د راشد سماع د ثوبان څخه ثابته ده. [الحق الصریح ج ۲ \ص ۶۱۸]. لکن دا په امام بخاري باندې خالص بهتان دی، دروغ، تحريف او کتمان د لامذهبو عادت دی.

**الحاصل :** دا حديث نه متواتر دی چې ددې په وجه په قراني حکم کې د تغير راوستل جايز شي او نه صحيح خبر واحد دی او نه په دې حديث کې د جرابو لفظ شته. ددې حديث په ترجمه کې د جرابو د لفظ ذکر کول او بيا د هغې څخه نری جرابې مراد ول ګمراهي ده او ځان د ضلو فاضلو امصداق ګرزول دي.

(۲) **د مغيرة رضی الله عنه حديث:** أَخْبَرَنَا وَكِيعٌ رحمه الله، قَالَ: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ رحمه الله، عَنْ أَبِي قَيْسٍ رحمه الله، عَنْ هُزَيْلِ بْنِ شُرَحْبِيلَ رحمه الله، عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ رضي الله عنه، أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «تَوَضَّأَ وَمَسَحَ عَلَى الْجَوْرَبَيْنِ وَالنَّعْلَيْنِ.

ترجمه: مغيرة بن شعبه فرماني چې نبي کريم ﷺ اودس وکړو او په جورابو او پڼو باندې ئې مسح وکړه.

الجواب: دا روايت منکر دی ځکه چې ثقه چې د اوثق څخه مخالفت وکړي نو دده روايت شاذ وي او د اوثق روايت معروف وي او ضعيف چې د ثقه څخه مخالفت وکړي نو دده روايت منکر وي او مقابل يې محفوظ وي. دلته ددې حديث دوه راويان ابو قيس او هزيل بن شرحبيل ضعيفان دي او د شپيتو او يا د اويا وو ثقه راويانو څخه يې مخالفت کړی دی. ځکه هغوي ټولو خفين ذکر کړي دي. لهذا دا روايت منکر دی مثلاً:

**(۱) امـام بخـاري:** همدا حديث دبخاري په اول جلد ،ص ۳۳ کې پداسې طريقه راوړی دی چی دموزوذکرئې پکښې کړې دی اودجورابو ذکرئې پکې ندی کړی.

عـن المُغِـيرَةِ بْـنِ شُـعْبَةَ ﷺ، عَـنْ رَسُولِ اللّٰـهِ صَـلَّى اللّٰـهُ عَلَيْـهِ وَسَـلَّمَ: «أَنَّـهُ خَـرَجَ لِحَاجَتِـهِ، فَاتَّبَعَـهُ المُغِيرَةُ ﷺ بِإِدَاوَةٍ فِيهَا مَاءٌ، فَصَبَّ عَلَيْهِ حِينَ فَرَغَ مِنْ حَاجَتِهِ فَتَوَضَّأَ وَمَسَحَ عَلَى الخُفَّيْنِ [بخاری ج ۱ \ص ۳۳ باب المسح علی الخفین].غیر مقلدین وائی چې دبخاري څخه اعراض کونکی بدبخته دی، لکن دلته نرینه پخپله اعراض کوي.

**امام مسلم :** (۲ ) هم همدا حديث په اول جلد ص ۱۳۳ کښې ذکر کړې دی اودجرابو لفظ پکښې نشته (فتوضئا ومسح علی الخفین) مسلم ج۱\ص۱۳۳باب المسح علی الخفین ].

بلکه امام مسلم فيصله کړې ده، چې پدې روايت کې دجراب لفظ ضعيف دی؛ اوفرمايلي يې دي، چی دجرابو لفظ دجليل القدرو محدثينو دروايت څخه مخالف دی ؛او دايي هم فرمايلي يي دي چې موږ ددې روايت له وجهی دقران پاک ظاهر هيڅکله نه شوپرېښودلی.(سنن کبری بيهقي ج ۱\ص۲۸۶)

**(۳) امام ابـوداود :** ددې جديث دنقل کولو څخه وروسته ليکلي دي چې امام عبد الرحمن بن مهدي فرمايلي دي چی :داحديث دبيانولو قابل ندی، ځکه چې دحضرت مغيره په معروف حديث کې دموزوذکر دې دجرابو ذکر پکښې نشته (ابوداودج۱ص۱۶)

**(٤) امـام ابـن ماجـه** رحمه الله: دابن ماجه په بعضو نسخوکښې هم دامخکښې فرمان شته چې عبدالرحمن بن مهدي فرمائي چې داحديث دذکر کولو قابل ندی. (حاشيه ابن ماجه ص ۴۱)

**(۵) امام ابن نسائي** رحمه الله **:** فرمايي چې : مادپوره تفتيش اوتحقيق څخه وروسته دابو قيس هيڅ متابع ونه موندلو اوپدې حديث کې صحيح لفظ دموزو دی (دجرابو ندی )سنن کبری ،نسائی بحواله زيلعي ج۱\۱۸۴].

**(٦) امام عبدالرحمن بن مهدي** رحمه الله: امام عبدالرحمن بن مهدي دصحاح سته وو اجماعي شيخ دی هغه دې ته منکر حديث وائي، بهيقی ج ۱\ص ۲۸۴].

**(۷) امام الجرح والتعدیل** : امام یحیی بن معین فرمائي چې د ابو قیس څخه ماسوی نور ټول محدثین د موزو لفظ ذکر کوي. (بیهقی ج۱\۲۸۴].

**(۸) امام سفیان ثوري** رحمه الله: فرمایي چې دا حدیث ضعیف اوردي دی: (بیهقي ج ۱ص ۲۸۴].

**(۹) امام علي بن المدیني** رحمه الله: فرمائي چې د حضرت مغیرة د مسح حدیث په مدینه، مکه ،کوفه، بصره یعني په مراکزو د اسلام کښې مشهور دی او دوي ټول پدې حدیث کې د موزو لفظ ذکر کوي، صرف هزیل بن شرحبیل د ټولو محدثینو په خلاف د جورابو لفظ ذکر کړې دی (بیهقی ج ۱ ص ۲۸۴).

**(۱۰) امام احمد** رحمه الله: هم د دې حدیث د بیانولو پسې سمدستي د عبد الله بن مهدي قول رانقل کړی دی چې دې حدیث ته ئې منکر ویلي دي. (بیهقي ج ۱ صـ ۲۸۴)

**(۱۱) امام نووي:** فرمائي چې (اتفق الحفاظ علی تضعیفه) ټول حافظان د حدیثو دې حدیث ته ضعیف وائی (زیلعی ج ۱\ص ۱۸۴) والمجموع شرح المهذب ج ۱صـ ۵۰۰)

د غیر مقلدینو اکابر لکه نذیر حسین دهلوي ،شمس الحق عظیم ابادی، مولوی عبد الرحمن، مبارکپوري او میا شرف الدین دهلوي هم دې حدیث ته ضعیف وائي او د قرآني ایات څخه مخالف ورته وایي ،فتاوی نذیریه، ج ۱\ص ۳۲۷ فتاوی ثنائیه ج ۱\ص ۴۲۳].

۱۲-علي بن مدیني دې حدیث ته ضعیف ویلي دي [سُنن الکبری ج ۱/ ص ۲۸۴]

۱۳-عبد الله بن مبارک رحمه الله، فرمایي چې: ( عرضت هذ الحدیث علی الثوري فقال: عسی ان یکون وهماً [ شرح ابن ماجه ج ۱/ ص ٦٦١ ].

۱۴-امام بیهقي رحمه الله فرمایي چې: ( انه حدیث منکر [ سنن الکبری ص ٢٤٤ / تحفة الاحوذی ج ۱/ ص ۲۷۸ ]

۱۵-دار قطني رحمه الله فرمایي چې: دا حدیث ضعیف دی. [ العلل للدار قطني ج ۷/ص ۱۱۲ ]

۱۶-امام عقیلي فرمایي چې: دا حدیث ضعیف دی. [ شرح ابن ماجه لمغلطایی/ج ۱/ص ۶۶۲ ]

۱۷-مغلطایي هم ورته ضعیف ویلي دي. [ شرح ابن ماجه ج ۱/ ص ۶۶۲ ].

۱۸-غیر مقلد مبارکپوري لیکي چې: ( و ضعّفه کثیر من ائمة الحدیث ) [ تحفة الاحوذي/ ج ۱ / ص ۲۷۷].

۱۹-علامه ابن تیمیه فرمایي چې: دا حدیث ضعیف دی. [ اقامة الدلیل علی ابطال التحلیل ج ۲ / ص ۳۲۸ / مجموعة الفتاوی ج ۲۱ / ص ۲۱٤ ].

۲۰-حافظ ابن قیم رحمه الله فرمایي چې: ( ولا یُعتمد علی حدیث ابی قیس ) [ تهذیب سنن ابي داود ج ۱ / ص ۸۷ ]

۲۱-علامه انور شاه کشمیری رحمه الله فرمایي چې: د حضرت مغیره حدیث په شپېتو یا اویاوو طریقو سره ثابت دی، په ټولو کې ذِکر د خُفینو دی یعنې دا حدیث منکر دی. [ العرف الشذي ج ۱ / ص ۱۳۱/ فیض الباری ج ۱ / ص ۳۹۱ ].

**(۱۲) اصول حدیث اولامذهبه:** لامذهبان دخپلو ارباب من دون الله په تقلید کې لیکي چې ددې روایت ټول رجات ثقات دي. [الحق الصریح ج ۲\ص ۶۱۹ ].

**الاخساء:**

۱-لعنة الله علی الکاذبین، ددې حدیث په سند کې یو راوي ابو قیس دی او بل هذیل بن شرحبیل دی چې دا دواړه ضعیفه راویان دي.

۲-لامذهبه دلته دتجاهل عارفانه څخه کار اخلي ځکه چې دحدیث دصحت لپاره یوائې دراویانو ثقه والی ندی کافي، بلکه دشذوذ او دعلت څخه سلامیتا هم ورته شرط ده او ددې حدیث دضعف بنیادي وجهې دوه دي.

**اول:** دا روایت منکر دی، ځکه چې دنورو ثقه روایاتو څخه مخالف دی. دوهم دا روایت معلول دی ځکه چې دقران پاک دظاهر څخه مخالف دی. نو اوس داصول حدیث مطابق ددې حدیث لپاره دوه صورته لټولې شي؛ اول: دا چې دا حدیث منکر والی او دمعلول والي په وجه رد کړې شي. او دوهم دا چې داسې تاویل پکښې وکړې شي چې په معنی کښې دمتواتر واحادیثو سره موافق شي، نو بعضو محدثینو پدې ضعیف حدیث کې دجوربینو سره دثخینینو قید لګولې دی. او ددې قید څخه وروسته اګر چې سندي

نکارت باقي دی، لکن معنوي علت ئی ختم شو، لامذهبه وکټوري اهلحدیث لیکي چې امام ترمذي فرمائي داحدیث حسن صحیح دی (الحق الصریح ج ۲\ص۶۱۹].

**الاخساء:** ۱- ټول محدثین لیکي چې: دلته امام ترمذي تسامح کړې ده، ځکه چې دا حدیث اتفاقاً ضعیف دی. [تقریر ترمذي ج۱/ ص۲۰۰، پښتو]. د وکټوریانو په همدې الح الصریح په حقیقت کې الباطل الصریح په څلورم جلد ص۸۶ کې درفع الیدین په بحث کې لیکلي دي چې هر چې تحسین دترمذي دی نوپه هغې باندې اعتماد نشته نو دلته یې څرنګه وربان دی اعتماد وکړو؟

وکټوریانو په نیز لکه چې دترمذي هغه تحسین ته اعتبار شته چې د دوي خوښ وي او هغه تحسین ته ئې اعتبار نشته چې د دوي نوي خوښ (۲) امام ترمذي رحمه الله چې پدې مسئله کښې تفصیل وکړونوپه اخر کښې ئې وفرمایل چې (اذاکاناثخینین)(ترمذی ج ۱\ص ۲۹باب المسح علی الجوربین ) ددې محدثینو په نیزپه جورابو باندې مسحه په هغه وخت کې جائزه ده چې :ثخینین وي.

(۳) غیر مقلدین په جرابو باندې مسحې کولو ته رخصت وائي او د مسح په باره کښې یې چې کومې رسالې لیکلي دي هغې ته نوم د رخصت سید الثقلین او د رخصت رسول الثقلین لګوي .لامذهبه امین الله پشاوري هم دیته رخصت وائي ځکه چې دې لیکي چې (مقصد او علت د مسح د جورابو په شریعت کې اساني پیدا کول دي) الحق الصریح ج ۲\ص۶۱۷]. او اساني د رخصت لغوي معنی ده ،امام جزري فرمائي چې (معنی الرخصة السهولة) [جزری ص ۱۳۵\ج ۱]. او د رخصت شرعي معنی امام جزري داسې بیانوي چې: (وفی الشرع ماثبت علی خلاف دلیل شرعی بدلیل اخرمعارض) [جزری ص ۱۳۵\ج ۱].

یعنې رخصت په شرع کښې دیته وائي چې: دیو شرعي دلیل په خلاف د بل شرعي دلیل څخه ثابت وي چې :داد وهم دلیل د اول سره معارض وي، نو د رخصت د معنی څخه معلومیږي چې اصلي شرعي حکم د پښو مینځل دي او په جورابو باندې مسح د اصلي شرعي حکم سره معارضه ده، نو اوس که دا معارض متواتر حدیث وي، نو منلې به شي، ځکه چې مقابل ئې متواتر دی او که نه وي نه به شي منلې ځکه چې ضعیفه خبر واحد د متواتر سره مقابله نه شي کولی.

**يوسوال:** مونږ د غير مقلدينو څخه پوښتنه کوو چې د شاذ او د منکر حديث جامع او مانع تعريف څه شې دی ؟ داسي تعريف چې ستاسو د دعوې مطابق په قران او په حديث کې صراحة راغلی وي

**الحاصل:** دا حديث نه صحيح دی ،نه حسن دی او نه متواتر دی او نه پکې د باريکو جرابو قيد شته او پيدې حديث کې په پڼوباندې د مسح ذکر هم راغلې دی او په پڼوباندې مسح خپله غير مقلدين هم نکوي، امام بخاري فرمائي چې لا يمسح على النعلين ص ۲۸ په پڼوباندې مسح نکيږي، نو ايا د داسې روايت په بناد قرآن او د متواترو احاديثو پريښودل جايز دي ؟

بران عقل و دانش ببايد گريست

(۳) (دابوموسی اشعری ﷺ حديث) **عن الضحاك ﷺ عَنْ أَبِى مُوسَى الْأَشْعَرِيّ ﷺ: أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ- صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- تَوَضَّأَ وَمَسَحَ عَلَى الْجَوْرَبَيْنِ وَالنَّعْلَيْنِ.** (اخرجه ابن ماجه ج ۱ \ص ۵٦۰ رقم ٦۰ (الحق الصريح ج ۲\ص ٦۲۱)

**جواب:** دا حديث د دوو وجو څخه ضعيف دی اول :دا چې: د ضحاک سماع دابو موسى اشعري ﷺ څخه نه ده ثابته، چې :ديته منقطع حديث وايي، دوهم: دا چې :ددې حديث يو راوي عيسى بن سنان سخت ضعيف دی.

(۱) امام ابوداود رحمه الله فرمايي چې: وليس بالمتصل ولا بالقوی دا حديث نه متصل دی او نه قوي [ابوداود ج۱ص۱٦].

(۲) امام بيهقي فرمائي چې: دضحاک سماع دابو موسٰی اشعري څخه نده ثابته او عيسى بن سنان دومره ضعيفه دی چې روايت ئې بالکل حجت ندی (سنن کبری ج ۱\ص ۲۸۵).

(۳) ابو حاتم رح هم فرمائي چې: ليس بالقوی. [ميزان الاعتدال ج۳ \ص ۳۱۲] شو کاني هم ورته ضعيف وايي، نيل الاوطار ج ۱ صـ۱۹۹) امام احمد يحی بن معين ، امام ذهبي، يعقوب بن سفيان، ابو ذرعه، امام نسائي، زکريا بن يحی، ابو حفص، عمر بن شاهين، دوي ټول ورته ضعيف ويلي دي. (وګوره الجرح والتعديل ابن ابی حاتم ج ٦ صـ ۲۷۷) المغني فی الضعفاء ج ۲ ضـ۴۹۸) تاريخ دمشق ج ۴۷صـ ۳۰۹) تهذيب التهذيب ج ۸صـ ۱۸۹) الضعفاء للعقيلي ج ۳صـ ۳۸۳) تاريخ اسماء الضعفاء والکذابين ج اصـ ۱۴۵)

يو وکتوري اهلحديث ليکي چې: (امام بخاري ددې حديث نه سکوت کړې دئ نو که دا امام بخاري په نيز دا ضعيف وې نو ضرور به ئې بيان کړی وی . (الحق الصريح ج ٦۲۱/۲ دويم طباعت)

**الجواب:** ټول لامذهبان دې راټول شي او ټوله صحیح بخاري دې لیکه په لیکه وګوري که په صحیح بخاري کې ئې دا روایت اشارة هم پیدا کړو دهغې ورځې څخه به مونږ په نریو جورابو باندې مسحه شروع کړو.

نو چې دا حدیث په بخاري کې نشته، نو بیا پدې حدیث باندې دامام بخارې سکوت دکوم ځای نه راغلو؟ او دامام بخاري د سکوت څه معنی ده؟

**فانقیل:** وابیان وایي چې امام ابو حنیفه رح فرمایلي دي چې: زما په نیز ضعیفه حدیث درائې او دقیاس څخه مقدم دی کما في (رخصة رسول الثقلین ص ۱۷).

قلنا: داغټ فریب دی، ځکه چې امام صاحب فرمایلي دي چې زما په نیز ضعیفه حدیث درائې څخه مقدم دی، او لته ضعیفه حدیث درائې په مقابله کې ندې بلکه دقران پاک او متوترو احادیثو څخه مخالف دی.

فانقیل: چې غیر مقلدین لیکي چې: که دا حدیث مرسل شي نو بیا هم داحنافو په نیز مرسل حدیث حجت دی.

لکن اهل حق پدې پوهیږي چې: دا هم تلبیس ابلیس دی، داحنافو په نیز دقرآن دایت او دمتواترو احادیثو په مقابل کی نه متصل روایت حجت دی او نه مرسل. البته داحنافو په نیز دمراتبو فرق شته پخپله مرتبه کی دمرسل حدیث درجه هم شته

## خلورم حدیث

لامذهبه په الحق الصریح ص ۶۲۲ کښې یو بل روایت هم ذکر کړی دی چې: هغه دنبي علیه السلام حدیث ندی، بلکه دحضرت انس ﷺ فعل دی او همدارنګه دحدیثو په کوم کتاب کی نشته، بلکه دالدولابي دکتاب (الاسماء والکنی) څخه ئې نقل کړی دی او داصل کتاب څخه نه، بلکه دهغه درسالې (المسح علی الجوربین) څخه ئې رانقل کړی دی، چې: حدثنا الازرق بن قیس قال رایت انس بن مالک احدث فغسل وجهه ویدیه ومسح علی جوربین من صوف فقلت اتمسح علیهما فقال هما خفان ولکنهما من صوف او لامذهبه امین الله پکې دا هم ورلیکلي دي چې: حکمهما کحکمهما. (الحق الصریح ۱۲\ص۶۲۲).

ازرق بن قیس فرمائی چی :ماانس بن مالک ﷺ ولیدلو، چی: اودس ئې مات کړویبائې مخ اودواړه لاسونه اووینځل اوپه جورابو باندې ئې مسح اوکړه، چی: دوړی څخه جوړې شوې وی ،ماورته وویل: چی: ته پدې مسح کوی ؟انس بن مالک رض) جواب راکړوچې داموزې دي ،لکن دوړی څخه جوړی شوي دي.

**الجواب :** دحضرت انس ﷺ جورابې څرنګه وی ؟نرۍ وی اوکه ډبلې؟ نوحضرت انس ﷺ دخپلو جورابوپه باره کی فرمائی چی:خفان) یعنې دموزوپه شان دي اوموزې ټخینې وي ،نوداجرابې هم ټخینې شوې ،نری نه شوې، په سنن کبری للبهیقی کې تصریح ده چی: دحضرت انس ﷺ په جورابو باندې څرمن لګیدلې وه.

**عَنْ رَاشِدِ بْنِ نَجِيحٍ** رحمه الله، **قَالَ: رَأَيْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ** ﷺ **دَخَلَ الْخَلَاءَ وَعَلَيْهِ جَوْرَبَانِ أَسْفَلُهُمَا جُلُودٌ وَأَعْلَاهُمَا خَزٌّ فَمَسَحَ عَلَيْهِمَا**[سنن کبری للبهیقی ج ۱\ص ۲۸۵]

نوحضرت انس ﷺ جورابې یاټخینې مجلدې وی اویاټخینې منعلی، نوغیرمقلدین دنریو جورابو حکم ددې روایت دکوم ځای څخه رااوباسې؟

(۲) داخودصحابې عمل دی اوتاسوپه عاموحالاتوکی دصحابي قول اوفعل ته مطلقاحجت نه وائی ،کمافی الحق الصریح ج۱\ص ۴۰دوهم طباعت ،تحت قول صاحب المشکاةفی الخطبة: کانی اسندت الخ اودلته ئې دقران کریم دایت اودمتواتر واحادیثوپه مقابل کښې حجت ګڼې؟ اوچې کله ګیرشئ نوبیاورته پدې شرط حجت وائې چې دنص څخه خلاف نه وي، لامذهبه امین الله په یو ځای کې لیکي چی : دارنګه که دصحابي خبره دنص نه خلاف وي نوبیابه هم دده خبره نامقبوله وي اوحدیث مرفوع ته به رجوع کولې شي . [الحق الصریح ج ۱۱\ص ۴۷۴باب الاعتصام ۲۶۲نمبرحدیث] اودلته قران کریم اومتواترو مرفوعو احادیثوته رجوع نکوي؟ لا مذهبان پدې هم نه پوهیږي چې په نفس فعل کې عموم نه وي ،اصولیان فرمائی چی :(حکایة الفعل لاعموم لها).

## دزنا څخه بد ترین جرم

ددې حدیث په سند کی څلورروایان دي، دوهم راوي پکې عمروبن علی اودریم رواي پکی سهل بن زیاددې ،چی: ددوي عدل اوضبط ندی ثابت اودحدیث په سند کې خیانت کولوته محدثین دزناڅخه هم غټ

جرم وائي، ځکه چی :زناکار صرف خپل ځان خرابوي، لکن داسې مجرم دټول امت دین تباه کوي، لامذهبه خناس لیکي چی: په هر قسم جورابو باندې د مسح کولو په باره کی دشپاړسو ۱٦ اصحابه کرامو عمل موجود دی. [ج۱\ص ٦٢٣].

**الاخساء:** لعنة الله علی الکاذبین. (۱) هر قسم جرابې د یو صحابي په عمل کې هم نه شته.

(۲) لامذهبه خناس صرف دصحابه کرامو نومونه اخلي لکن نه تر کوم صحابې پورې سند نقلوي اونه دصحابي روایت نقلوي اونه ئې صحیح والی اوضعیف والی بیانوي، بلکه خپلو حوارینو ته وائي چې بې دلیله زما تقلید شخصي ومنئ اوبې سنده اوبې دلیله زما ددې خبرې تصدیق وکړئ چی صحابه وو په هر قسم جرابو باندې مسح کړې ده ،دسند پوښتنه مکوئ ،دځانو څخه زما ړانده مقلدین جوړ کړئ او خبردار چې ځانونه دومره ړانده او ګونګیان کړئ چې :زما څخه داپوښتنه هم ونکړئ چې داجورابې څرنګه وی؟ ټخینې وی؟ اوکه رقیقې؟ بس صرف دانومونه لولئ اوځانونو ته وربانډې تسلي ورکوئ چی :ددې صحابه وورضی الله عنهم احادیث به زمونږ شیخ صاحب ته ضرور معلوم وي او همدارنګې به ددې احادیثو صحت زمونږ شیخ صاحب ته ضرور معلوم وي او همدارنګه به زمونږ د شیخ صاحب د وینا مطابق دهر قسم جورابو ذکر هم پدې احادیثو کې وي.

لامذهبان خو همیشه وائې چې بې سنده حدیث لره په دین کې هیڅ اعتبار نه شته، امین الفتاوی ص ۲۸۵] والحق الصریح ج ۴\ص ۲٦۴ سطر ۱٦] اوپه مسلم شریف کې تعلیقا روایت دی چې :سند دین دی ،مسلم ج ۱؛ص۱۲]. نونن څرنګه بې دینه شوی ؟

دکوم ضرورت له وجې نن ،د هغه دصحابه وو بې سنده قول ته محتاج شوئ چی :دشلو رکعتو دتراویحو په باب کې یو اځی ددې شپاړسو بلکه دسلګونو اوزرګونو صحابه وو فعل ته بدعت وائی؟

(۳) دا صحابه چې چالیدلي وو؟ ددې صحابه وو ترجمانانو ،اوددې صحابه وو شاګردانو ،صفا لیکلي دي، چی مسح په ټخینو جرابو باندی کیږی :یمسح علی الجوربین اذکانا صفیقین. [ابن ابی شیبه ج۱\۱۸۸)مسح په هغو جرابو باندی کیږي چی ټخیني وي.

## پنځم دلیل

**دحدیث په معنی کې ډیر غټ خیانت:** لامذهبه په الحق الصریح ص۶۲۴کی لیکلي دي چی حضرت ابراهیم نخعي فرمائی چی (فمن ترک ذلک رغبة عنه فانماهومن الشیطن )ابن ابی شیبه ج۱\۱۸۰]. اوبیاپه ترجمه کې لیکي چی څوک (په جورابوباندې مسح کول) ددې دناخوښئ په وجه پریږدي نویقینادادشیطان ملګرنی دی [الحق الصریح ج۲\ص ۶۲۴].

**الاخساء:** که لامذهبه دلته دجورابو لفظ وښودلو نولس زره روپۍ انعام به هم ورکړم اودده دشیخ الحدیثۍ اقرار به هم وکړم اوکه نه ئی شي خودلې اونه به ئې وښائی نوبیاورته دده د کردار مطابق دکوم بل لقب ترغیب ورکوم.

## شپږم دلیل

**دحضرت بلال حدیث:** کان رسول الله ﷺ یمسح علی الخفین والجوربین معجم کبیر ج ۱صـ ۳۵۱)

دحضرت بلال رضی الله عنه څخه دا حدیث (۱۶) شاګردانو روایت کړی دی.

۱- حضرت اسامه رضی الله عنه [مستدرک حاکم ج ۱صـ۲۵۲]

۲- حضرت براء رضی الله عنه [مسند احمد ج ۱صـ۱۵]

۳- عبدالله بن رواحه[ معجم کبیر ج ۱صـ ۳۷۱]

۴- علی رضی الله عنه معجم کبیر ج ۱صـ۳۴۰]

۵- ابو ادریس الخولانی[ بیهقي ج ۱صـ ۶۲]

۶- شریح بن هانئ[معجم اوسط ج ۳صـ۲۹۹]

۷- ابو الاشعث[ معجم کبیر ج ۱صـ ۵۴] .

۸- نعیم بن زیاد او خمار[معجم کبیر ج۱صـ ۳۵۲]

۹- سوید بن غفله [معجم کبیر ج ۱صـ۳۵۸]

۱۰-حارث [معجم كبير ج ۱ص ۳٦۱]

۱۱-ابو جند معجم كبير ج ۱ص ۳٦۱]

۱۲- ابو عبد الرحمن [مسند احمد ج ٦ص ۱۳]

۱۳-عبد الرحمن بن ابى ليلى [نسائي ج ۱ص ۱۵۱]

۱۴-ابو قلابه [معجم كبير ج ۱ص ۳٦۲]

۱۵-ابو سلمه [معجم الصحابه لابن قانع ج ۱ص ۱۸۹]

دې پنځلس واړو دحضرت بلال ﷺ څخه دخفين او يا موقين روايت كړى دى، شپاړسم شاګرد كعب بن عجره دى، يا دكعب بن عجره شاګرد عبد الرحمن بن ابى ليلى دى، بيا دعبد الرحمن بن ابى ليلى دوه شاګردان دي: يو حكم بن عتيبه او بل يزيد بن ابى زياد، حكم بن عتيبه هم دخفينو او يا دموقين ذكر كوي (مسلم ج ۱ص ۱۳۴)

يوازې يزيد بن ابى زياد دخفينو او دجوربينو ذكر كړې دى، لدې وجې دا روايت هم شاذ دى او همدارنګه همدغه لامذهبه درفع اليدين په باب ک)ی په يزيد بن ابى زياد باندې داسې اعتراضونه كوي چې يزيد بن ابى زياد شيعه دى، رجال الشيعه فى اسانيد السنة ص ۴۵۳ حافظ ابن حجر فرمائي چې :وكان شيعيا،تقريب ج ۲\ص ۳٦۵]. امام محمد بن فضيل وائى چې يزيد دشيعه ګانو لوې امام وو، الكامل لابن عدي ج ۷ ص ۲۸۵]. امام ابن حزم وائي ضعيف دى ،المحلى ۷\۴۸۴].

خلاصه دا چې: همدې امين الله پشاوري دالحق الصريح په څلورم جلد ص ۹۰ تا ص ۹۲ پورې پدې راوي باندې ديرش اعتراضونه كړي دي.



نن ستا په نيز مذكور شعيه لكه چې صرف ديوې دقيقې لپاره دجوربينو دبيان لپاره سني شوى دى اوچې څرنګه ئې دا حديث بيان كړو نو بيا لكه چې بيرته شيعه شو.

(۲) دبلال ﷺ پدې حديث كې د(خفين والجوربين) كلمه ده او (واو )د جمع لپاره دى ،وجمع په درې قسمه ده :جمع على سبيل التقارن ،جمع على سبيل التعاقب ،جمع على سبيل التباعد او پدې حديث كې ديو اودس بيان دى ،نو خامخا پكې جمع على سبيل التقارن ده، يعنې په يو وخت كې ئې په جرابو او په موزو باندې مسح كړى ده

**حاصل:** دا چې دا روایت په صحاح سته وو کی نشته، ددې حدیث په سند کی ستاسو په نیز یزید بن ابی زیاد شیعه دی، پدې حدیث کې دجوربین لفظ شاذ دی، ځکه چې په دې حدیث کې په صحاح سته وو کې لفظ دخفین دی او په دې حدیث کې یوائې جورابی ندي ذکر شوي، بلکه خفین هم ورسره ذکر شوي دي، یعنې په هغو جرابو باندې مسح شوی ده چې دموزو سره اغوستل شوي وي، دموزو دحفاظت لپاره.

نولامذهبو! پدې مسئله کی نه درسره دقران ایت شته، اونه درسره متواتر حدیث شته، اونه درسره صحیح خبرواحد شته، دمغیرة دحدیث په ضعف دټولو محدثینو اتفاق دی، دحضرت ثوبان په ضعیفه حدیث کې دجرابو لفظ نشته، دحضرت انس فعل دصحابي فعل دی اودجورابو سره دنري والي لفظ هم په کې نشته، دحضرت بلال حدیث دضعف سره ستاسو لپاره دلیل نه شو وسواس: لامذهبه خناس لیکي چې: ګویا اجماع دصحابه ووشوه چې مسح په جورابو باندې جائز او سنت ده.

**الاخساء:** لامذهبه خناسه! په هندوستان باندې دانګریزي دورې څخه په کوم مخکینې کتاب کې دالیکل شوي دي چې: په نریو جرابو باندې په مسح کولو صحابه وو اجماع کړی ده.

ماخو دانګریزي دورې څخه په ډیرو مخکنیو کتابونو باندې حوالې ولیکلې چې (فان کان رقیقین یشفان الماء لایجوز المسح علیهما بالاجماع) یعنی په نریو جرابو باندی مسح په اجماع ناجایزه او حرامه ده (البدایع ج۱ ص ۸۳ کتاب الطهارة باب المسح على الجوارب) نورې حوالې مخکې لیکل شوي دي.

## دموق معنی

**اول:** موق موزې ته وایي وګوره: (۱) بیهقي ج ۱ص۲۰۸) (۲) تفسیر غریب ما فی الصحیحین ج ۱ص ۱۵۳) (۳) ابن الجوزی غریب الحدیث لابن الجوزی ج ۲ص۳۷۸) (۴) علامه خطابي، غریب الحدیث للخطابی ج ۲ص۶۱) (۵) ابن قتیبه، غریب الحدیث لابن قتیبه ج ۲ص۳۴۰) (۶) ابو العباس (۷) احمد بن محمد الحموي، المصباح المنیر ج ۹ص۹۹) (۸) ابن درید، جمهرة اللغة ج ۲ص۲۵۹) (۹) محمد بن علی البکری، دلیل الفالحین ج ۲ص۳۷) (۱۰) الهروی، عون المعبود ج ۱ص۷۸) (۱۱) الفراء، البنایه ج ۱ص۶۰۶).

**دوهم:** دموق معنی جرموق ده چې: دڅرمنې څخه وي او دموزو دحفاظت لپاره موزو ته وروا غوستلې شي، لاندې علماء دموق معنی په جرموق سره کوي.

(۱)علامه عینی، عمدة القاري ج ۱٦ص۵۴) (۲) ملاعلي قاري، مرقات ج ۲ص۴۵۹) (۳) ابو الشجاع محمد بن علی ابن الدهان رحمه الله، تقويم النظر (ج ۱ص۲۳۳) (۴) علامه زيلعي، (تبيين الحقايق ج ۱ص۲۴۱) (۵) برهان الدين بخاري (ج ۱ص۲۱۵) (٦) عبدالغني العنيمي، (اللباب فی شرح الكتاب ج ۱ص۲۱)(۷) منصور بن یونس البهوتي رحمه الله، الروض المربع ج ۱ص۳۰)(۸) مصطفی بن سعد مطالب اولی النهی .(ج ۱ص۲۷۰) (۹) ابراهيم بن محمد .(المبدع ج ۱ص۱۰۰) (۱۰) ابن التركماني . الجوهر النقي ج ۱ص۲۸۹) (۱۱) جمال الدين القاسمي . (المسح علی الجوربين ج ۱ص۵۵) (۱۲) علامه ابن نجیم . (البحر الرايق ج ۱ص۱۹۲)(۱۳) علامه زکریا . (اللباب فی الجمع بين الكتاب والسنة ج ۱ص۱۳۵).

**دریم:** موق یا دموزې یو قسم دی او یا همغه جرموق دی چې موزې ته وراغوستلی شي او یا وړې موزې دي.

(۱) زمخشري . الفايق فی غريب الحديث ج ۱ص۲۳۴) (۲) الخطابي .(معالم السنن ج ۱ص۵۱) (۳) الجوهر . (الجوهر النقي ج ۱ص۱۸۹) (۴) محمد بن ابي بكر الرازي . (مختار الصحاح ج ۱ص٦۴۲) (۵) مرتضى الزبيدي تاج العروس ج ۱ص۵۸۹) (٦) ابن منظور . لسان العرب ج ٦ص۴۳۰۰) (۷) الليث. عون المعبود ج ۱ص۱۷۸) (۸) المطرازي، عون المعبود ج ۱ص۱۷۸).

خلاصه دا چې موق یا موزو ته وايي او یا جرموق ته وايي نریو جورابو ته هیڅکله نه وايي.

## دلامذهبو څخه یوڅو سوالونه

په جواب کې شرط دادی چې: ستاسو د دعوې مطابق به وي، یعنی یا به قرآني آیت په جواب کې پیش کوئ او یا به د رسول الله حدیث صحیحه صریحه پیش کوئ، قیاس به په موزو باندې نه کوئ، په موزو باندې مسح په شریعت کې اتفاقاً ثابته ده او د انګریزي دورې څخه مخکې ورباندې عمل کیدلو، لدې وجهې ددې مسحې مکمل مسایل د انګریزي دورې څخه په مخکنیو کتابو نو د حدیثو او د فقهې کې پیدا کیږي مثلاً

(۱) په موزو باندې په هغه وخت کې مسح جائزه ده چې دا او داسه په حالت کې اغوستل شوي وي نو د جرابو په باره کی قران او حدیث څه وائی ؟ حواله د انګریزي دورې څخه په مخکني کتاب ورکړئ !

(۲) په موزو باندې به مسافر درې شپې او درې ورځې مسح کوي او مقیم به یوه شپه او یوه ورځ مسحه کوي نو پدې مسئله کی د جرابو په باره کې قران او حدیث څه وائی؟

(۳) دموزو په ظاهر طرف مسح کیږی، دجرابو څه حکم دی؟ په جواب کی صرف قران او حدیث پیش کړئ او حواله دانګریزي دورې څخه په مخکنې کتاب ورکړئ (۴) دغسل په وخت کی دموزو ایستل ضروري دي دجورابو څه حکم دی؟

(۵) لامذهبه لیکلي دي چی په نریو جرابو باندی مسح سنت ده، الحق الصریح ج۲\ص ۶۲۳].
دسنت لفظ دجرابو دلفظ سره یو ځای درسول الله ﷺ یادکوم صحابي، یا دکوم تابعي، یادکوم تبع تابعي اویادانګریزي دورې څخه دکوم مخکنې شیخ الحدیث اویاعالم دخولې څخه ثابت کړه.

(۶) د سُنت جامع او مانع تعریف صرف دقران اودحدیث څخه وښایه؟

(۷) په نریو جرابو باندې دمسح په باره کې دغیر مقلدینو څلور مذهبه دي اول: غیر مقلد حسین بن محسن انصاري لیکي چې: په مجلدو جرابو باندې هم مسح نه ده جایزه. (فتاوی علماء حدیث ج ۱ص۱۱۸)

دوهم: غیر مقلد شمس الحق عظیم ابادي لیکي چې: په مجلدو جرابو باندې مسح جایزه ده او په غیر مجلدو جرابو باندې نه ده جایزه (عون المعبود ج ۱ص ۱۸۷).

**دریم**: دغیر مقلد مبارکپوري او دابو برکات احمد مذهب دادی چې په ټخینو جرابو باندې مسح جایزه ده او په غیر ټخینو جرابو باندې نه ده جایزه. (تحفة الاحوذي ج ۱ص ۲۸۶) فتاوی برکاتیه ج ۱ص۱۸).

**څلورم**: نواب وحید الزمان، صادق سیالکوټي او دنن زمانې دلامذهبو اهلحدیثو مسلک دادی چې په نریو جرابو باندې دمسح کول جایز دي (کنز الحقایق ص ۱۵صلواة الرسول ص ۱۰۴) نو غیر مقلدین په نورو خلکو باندې اعتراض کوي چې قرآن او حدیث یو دی نو څلور امامان او څلور مذهبه دکومه ځایه راغلل؟ نو دلته به مونږ دغیر مقلدینو څخه همداسي پوښتنه وکړو چې قران او حدیث یو دی نو دجورابو دمسح په باره کې دغیر مقلدینو دا څلور مذهبونه دکوم ځای څخه راغلل؟

(۸) ستاسو په دې څلورو مذهبونو کې څوک په حقه دی او څوک په باطله؟ او دلته دحق او دباطل فیصله په خپله رأیه باندې کوئ او که په وحی باندې یې کوئ؟

(۹) دجوربینو دمسح په کوم حدیث کې ددقیق او باریکو جرابو لفظ دی؟

(۱۰) رسول الله ﷺ او یا کوم صحابي په کوم ځای کې په نریو جرابو باندې مسح کړې ده.

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمدلله وکفی وسلام علی عباده الذین اصطفی.

أمابعد!

کله چې دوه مسلمانان دیو بل سره مخ شي نویو بل ته سلام او مصافحه کوي، چې دا پخپله دامن، محبت اودصلح پیغام دی اوپه مسلمانانو کې په دوولاسونو باندی مصافحه متوارثه ده او د(من تشبه بقوم فهو منهم) مطابق په یو لاس مصافحه واجب الترک دی ،المحدث الکبیر رشید احمد الگنگوهي رحمه الله فرمایي چې: ان المصافحة بید واحدةٍ لما کانت شعار اهل الافرنج وجب ترکه (الکوکب الدری شرح الترمذی، ج ۲صـ ۱۳۲)

داسلام دشروع څخه په هندوستان باندی ترانگریزي دوري پوري په هیڅ کتاب کې په دوو لاسونو باندی مصافحې ته بدعت اودسنتو څخه مخالف ندي ویلی شوی، کله چې انگریزانو هندوستان ونیولونووی لیدل چې مسلمانان پخپلو کې په دوو لاسونو مصافحه کوي او خپله انگریزانو په یو لاس مصافحه کوله، نودوي دد ي خپلو انگریزي سنتو درواجولو لپاره اول کار دنیچریانو څخه واخستلو، نیچریانو په سکولونو او په کالجونو کې په یو لاس مصافحه شروع کړه لکن دا طریقه ئی درسول الله طریقه نه گڼله بلکه د خپلو حاکمانو طریقه ئی گڼله...تجلیات صفدر ج۱۱ص۱۹۵بیا دنیچریانو په تقلید کې وکتوري اهلحدیثو غیرمقلدینو هم دانگریزانو دنورزیات خوشحالولو لپاره په یو لاس مصافحه شروع کړه.

البته یو فرق پکې وواوهغه دا چې نیچریانو په یو لاس مصافحه شروع کړه، لکن په دواړو لاسونو مصافحې ته ئی خلاف سنت اوبدعت نه ویلې اوغیر مقلدینو سره ددینه چې په یو لاس مصافحه ئی شروع کړه په دواړو لاسونو باندې مصافحې ته یې بدعت هم ویلی . اوپه یو لاس مصافحه باندی ئی دسلو شهیدانو داجروعدې ورکړی اوپه عامو مسلمانانو پسې یې داتبلیغات شروع کړه چې دوي دنبی ﷺ مخالفین اودنبی ﷺ دطریقو ختمونکي دي د مشهورې اسلامي طریقې نوم یې داسلام ختمول

کینبـو دل، نـو هغـه سـلام او مصـافحه چې د مسـلمانانو د محبت او د مغفـرت ذريعـه وه، د هغې څخـه ئـې د شقاق ،اختلاف او د جنګونو ذریعه جوړ کړه.

## په يولاس دمصافحې کولو دلايل

د اهل سنت و الجماعت علماوو د دوي څخه پوښتنه وکړه چې ايا ستاسو سره د رسول الله کوم قولي حديث شته چې په هغې کې د رسول الله ﷺ حکم موجود وي چې په يو ښي لاس باندې مصافحه وکړی لکه څرنګه چې د خوراک په باره کې موجود دی، چې په ښي لاس باندې خوراک کوئ او لکه څرنګه چې رسول الله په ښي لاس باندی د استجاء څخه منع کړی ده.

نو ايا همداسې منع په مصافحه کې د چپ لاس په باره کې شته، چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم په مصافحه کې د چپ لاس د لګولو څخه منع کړی وي؟ لکن غير مقلدين د همغې ورځې څخه تر ننه پورې د داسې حديث د پيش کولو څخه عاجز دي هر کله چې دوي قولي حديث پيدا نکړو، نو اهل سنت والجماعت مطالبه وکړه چې بيا داسې يو فعلي حديث وښائی چې رسول الله ﷺ صرف په يو ښي لاس باندی مصافحه کړي وي او چپ لاس يې لرې اوياپه تخرګ کې نيولی وي .

که صحيح حديث نه وي نو حسن حديث پيش کړئ او که حسن حديث هم نه وي نو بيا خير دی ضعيف حديث پيش کړئ، لکن غير مقلدين د دې څخه هم عاجزه شو او انشاالله تعالى چې تر قيامته پورې به عاجز وي اخر اهل سنتو دا مطالبه وکړه چې تاسو کوم تقريري حديث پيش کړئ چې صحابه کرامو د رسول الله په مخکې صرف په ښی لاس مصافحه کړی ده او چپ لاس يې لرې نيولې دی او رسول الله ﷺ پرې سکوت کړی وي که داسې کوم صحيح يا حسن حديث درسره نه وي خير دی په ضعيف سند باندی ئې پيش کړئ، لکن دوي د دې څخه هم عاجزه شول او عاجزه به وې ان شاءالله، اهل سنت و الجماعت و فرمايل چې کله صرف په ښی لاس باندې د مصافحې لپاره هيڅ حديث نشته نو بيا څرنګه ديته سنت وائی؟ د سنتوالي لپاره خو دا شرط دی چې مواظبت به ورباندې راغلې وي او حال دادی چې د لته ستاسو د دعوی لپاره نفس حديث نه شته نو مواظبت د کومه شو ؟

**دلیل پیدا شو:** اخر چې کله د غیر مقلدینو څخه بیا بیا دا مطالبه کیدله چې تاسو څرنګه د مسلمانانو متوارث عمل ته بدعت او خلاف سنت وائی او د انګریزانو او نیچریانو عمل ته نبوي سنت وائی، نو چې غیر مقلدین تنګ شول، نو په دلایلو ئی شروع وکړه، چې په بعضی احادیثوکې د اخذ الید واخذ بیده وغیره الفاظ دي لکه د عبد الله بن مسعود حدیث دی چې (من تمام التحیة الاخذ بالید، فتح الباري ج ۱۱، ص ۶۸) همداسې د أنس رضی الله عنه حدیث دی (ترمذي ص ۹۸) او همدارنګه د حظیفة الیمان رضی الله عنه حدیث دی او همدارنګه د ابن عمر رضی الله عنه حدیث دی، پدې احادیثو کې دید الفاظ دي او ید یو لاس ته وائی، نو ددې څخه معلومیږی چې په یو لاس باندی مصافحه پکار ده.

اول خو دا احادیث ضعیف دي او د وهم دا چې د انسان په جسم کې چې کوم اندامونه دیو څخه زیات دي نو هغې اندامونو ته غالبا د جنس په طریقه د مفرد صیغه استعمالیږی مثلاً:

(۱) «سَمِعْتُهُ بِأُذُنِيْ» ددې دا معنی نده چې په یو ښي غوږ مې واوریدل.

(۲) «اَبْصَرْتُهُ بِعَيْنِيْ» ددې دا معنی نده چې په یوه ښي سترګه مې ولیدلو.

(۳) الله ﷻ فرمائی: «لَا تَجْعَلْ يَدَكَ مَغْلُوْلَةً». دلته صرف یو ښی لاس نه دی مراد.

(۴) رسول الله ﷺ خپله هم داسې دعا کوله او امت ته ئی هم دا دعا ورښودله چې: «اَللّٰهُمَّ اجْعَلْ فِيْ بَصَرِيْ نُوْرًا وَّاجْعَلْ فِيْ سَمْعِيْ نُوْرًا الحدیث: نو دلته هم د بصر او د سمع مفرد صیغو څخه یوه ښی سترګه او یو ښی غوږ نه دی مراد؟

(۵) رسول الله ﷺ فرمائی چې «اَلْمُسْلِمُ مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُوْنَ مِنْ لِّسَانِهٖ وَيَدِهٖ» دلته هم صرف یو ښي لاس ندی مراد که نه په سوک وهل پکار دی چې جایز شي.

(۶) رسول الله فرمائی چې: من رای منکم منکرا فلیغیره بیده.

دلته هم صرف یو ښي لاس نه دی مراد که نه دوهم لاس لګول به د سنتو څخه مخالف و لامذهبه وکتوري اهلحدیث نیاز محمد عرف امین الله د الحق الصریح په اول جلد ص: ۱۹۰ کې داسې لیکي چې (مونږ دا نه منو چې ید جنس دی، ځکه چې بیا به یدین نه ذکر کیدل، همدارنګه د جنس لپاره واحد وي لکه کلم جنس دی کلمة یې واحد دی، نو که ید جنس وي نو ددې واحد راته وښایه)

**الجـواب:** یو جنس دی بل اسم جنس دی ، دجنس تعریف علماء داسې کوي چې ( مـایطلق علی القلیل والکثیر علی السواء کالتراب والماء )

**اسم جنس په دوه قسمه دی :**

(۱) اسم جنس افرادي :

(۲) اسم جنس جمعي:

داسم جنس افرادي تعریف علماء داسې کوي چې : مایصدق علی القلیل والکثیر واللفـظ واحـد کماء وذهب وخل وزیت.

اوداسم جنس جمعي تعریف داسې کوي چې: مایدل علی اکثر من اثنین ویفرق بینه وبین واحـده بالتاء والتاء غالباتکون فی المفرد کبقرة وبقر، وشجرة وشجر ، ومنه ، کلم وکلمة وقدیکون الفـرق بین الواحد والکثیربالیاء کزنج وزنجی ، وروم وروی. (ابن عقیل ج۱ ص: ۹ مکتبه حقانیه)

**نولامذهبه خناسه !**

(۱) ید خو دکلم په شان اسم جنس جمعي نه دی چې په واحد کې یې –تا– راشي .
(۲) داسم جنس جمعي په واحد کې هم –تا– ضروري نه ده کمامر .
(۳) رجل جنس دی مختصر المعاني ص : ۱۰۱ حالانکه رجل ، رجلان ، اورجال درې واړه په کلام دعربو کې بنه ډیر استعمالیږي ، افسوس چې دومره حماقتونو ته هم تحقیق او اجتهاد وایی .

**لامذهبه خناسه !** ماء جنس دی ابن عقیل ص : ۹ددې واحد راته وښایه ؟ خل جنس دی.
(ابن عقیل ص : ۹) ددې واحد راته وښایه ؟ زیت جنس دی . (ابن عقیل ص۹) ددې واحد راته وښایه ؟
(۷) که په طریقه دفرض المحال ومنو چې د(یــد) څخه صرف یـولاس مـراد دی، نو بیـا خولاس دګوتو څخه تر تخر ګونو پورې دی ،(المعجم الوسیط ص : ۱۱۲۲) نو که دوه کسان دستړي مشي په وخت کې صرف یوه یوه ګوته او یا صرف متهې او یا تخر ګونه وجنګوي، نو ایا دا به سنت طریقه ستړي مشي وي او ایا دا به پدغو احادیثو عمل وی چې ید پکې ذکر شوی دی ؟

(۸) پدغو احاديثو کې خو صرف يد راغلی دی او يـد چپ لاس ته هم وائی، نو که يو څوک په چپ لاس مصافحه وکړي ايا ده به هم پدی حديث عمل کړی وي، ځکه چې چپ لاس هم لاس دی، پښه خو نده

(۹) که په طريقې دفرض المحال ومنو چې يد يو لاس ته وائی او هغه هم ښی لاس ته نو بيا مونږ وايو چې ثبوت اليد نه دی مستلزم عدم ثبوت الدين لره ځکه چې دصحيح بخاری په حديث کې په دوو لاسونو دمصافحې ذکردی ج۲\ص ۹۲٦ نو چې په دواړو لاسونو باندی مصافحه وشي، دا په يو لاس باندی پخپله مصافحه راغله، نو په دواړو احاديثو عمل راغلو، لکه په بعضو احاديثو کې چې داند امونو ديو يو ځلی وينځلو ذکردی او په بعضو احاديثو کې داند امونو د دوه دوه ځلو مينځلو ذکر دی او په بعضو احاديثو کې داند امونو د درې درې ځله مينځلو ذکردی، نو کوم سړی چې درې درې ځلی اند امونه ومينځي، هغه په دری واړو احاديثو عمل وکړو او کوم سړی چې صرف يو يو ځلې اند امونه ومينځي هغه يقيناً چې په باقی دوه قسمه احاديثو عمل ونکړو، که دا سړی دا هم وايي چې صرف يو يو ځلې داند امونو مينځل سنت دي او درې درې ځلی داند امونو مينځل بدعت دي، نو دداسې سړي په پوهه او په عقل باندی يقيناً چې ماتم پکاردی.

خلاصه دا چې وکټوري اهلحديثو دټول امت په خلاف او خالص دخپلی رائی مطابق د يـد څخه يو لاس مراد کړی دی، حالانکه ټول امت فرمائی چې يـد جنس دی او په باب مصافحه کې ترينه دواړه لاسونه مراد دي.

(۱۰) - هر کله چې صرف په يو لاس باندی مصافحه نه په کوم قولي حديث کې پيدا شوه او نه په کوم فعلي حديث کې پيدا شوه او نه په کوم تقريري حديث کې پيدا شوه، نو احاديث ئی پريښودل او دا شل لغتو دروازی ته ودريدل چې په لغت کې مصافحه عبارة ده د (الصاق الكف بالكف الخ) څخه، حالانکه دلته هم کف دجنس په طريقه استعمال شوی دی، که دلته هم صرف يو کف مراد شي نو که بيا يو سړی په چپ کف باندی مصافحه وکړی نو ايا دا به عامل بالسنة وي؟

همدا رنګه په دواړو لاسونو سره په مصافحه کې هم الصاق الكف بـالكف راځي، الصـاق ظهـر الكف بظهر الكف خو نه راځي.

(١١) لا مذهبه وكتوريان په محمد انور شاه الكشميري پورې افتراء كوي چې هغه په يو لاس مصافحې ته سنت ويلي دي، حالانكې هغه داسې فرمايلي دي چې: ويكفى هذا العمل بيد واحدة تجزى وباليدين اكمل (عرف الشذى) نو محمد انورشاه صاحب د يد واحد سره تجزي ليكلى ده او د يدينو سره يې اكمل ليكلي دي، د تزجي معنى صرف جايز دى او د اكمل حاصل بهتر والى دى او د ديدينو دبهتروالي لپاره يې د حماد بن زيد قول پيش كړى دى.

(١٢) دعبدالله بن مسعود رضي الله عنهما په حديث كې يحى بن مسلم الطايفى دى امام نسايي ورته منكر الحديث وايي امام احمد ورته مختلط الحديث وايي امام بخاري ورته سيئ الحفظ وايي ابو بشير الدولابي ورته ليس بالقوي وايي امام ابو حاتم ورته لا يحتج به وايي (تهذيب ج ١١ صـ١٩) دحضرت انس رضى الله عنه په حديث كې حنظله السدوسي ضعيف دى، د حذيفة اليمان په حديث كې يعقوب بن محمد الطحلاء ضعيف دى دحضرت انس رضى الله عنه په يو بل حديث كې ميمون بن عجلان دى چې مدلس دى، حافظ ابن حجر فرمايي چې (لا اعرف له حديثا، لسان الميزان ج ٦ صـ ١٤١)

دعبدالله بن عمر رضى الله عنه حديث ته امام ترمذي غريب ويلي دي، همدارنگه يې په سند كې ابراهيم بن عبد الرحمن دى او په ده كې شك دى چې دا عبد الرحمن بن الحارث بن هشام دى او كه ابراهيم بن عبد الرحمن بن يزيد بن أميه دى او شك موجب د ضعف د حديث دى.

دغير مقلدينو سره نه ايت او حديث شته او نه كوم بل دليل، البته صرف يو دليل و رسره شته (تشبه بالكفار) چې هميشه الله تعالى د وكتوري اهلحديثو په قسمت كې ليكلې ده.

**په دواړو لاسونو باندې مصافحه:** اوس تاسو وګورئ چې په دواړو لاسونو باندې مصافحه كول چې دامت متوارث عمل دى ايا واقعي هيڅ نبوت نلري؟

(١) امام بخارى په صحيح البخاري رحمه الله كې باب لګولى دى په نوم د باب المصافحه ج ٢/٩٢٦١ يعنې باب دى په بيان دسترې مشي كې، امام بخاري رحمه الله په دې باب كې د حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه څخه تعليقاً دا روايت راوړى دى چې: علمنى النبي التشهد و كفى بين كفيه. يعنى رسول الله ما ته تشهد را وښودلو په داسې حال كې چې زما لاس د رسول الله ﷺ د دواړو لاسونو په مينځ كې وو.

(۲) بيائى د حضرت عبد الله بن مبارک د مصافحې ذکر کړی دی، چې هغوي په دوو لاسونو مصافحه کوله (وصافح حمادبن زيد عبدلاله بن المبارک بيديه: (بخاری ج ۲\ص ۹۲۶)

(۳) د دی څخه وروسته ئې په دوو لاسونو د مصافحې لپاره د حضرت عبد الله بن مسعود مذکور حديث د پوره سند سره هم ذکر کړی دی، چې زما لاس د رسول الله ﷺ د دواړو لاسونو په مينځ کې وو .(بخاری ج ۲\ص ۹۲۶مسلم ۱\ص ۱۷۳انسائی ج۱\ص ۱۷۵).

علماء په دې پوهيږي چې د امام بخاری غرض د دی باب څخه دا دی چې رسول الله ﷺ هم په دوو لاسونو مصافحه کوله او وروسته هم پدې باندې عمل جاري وو .

(۴) امام بخاری رحمة الله په خپل تاريخ کې فرمائی چې: حدثنی اصحابنا وغيره عن اسماعيل بن ابراهيم قال رايت حمادبن زيد وجاءه ابن المبارک بمكة. فصافحه بكلتايديه (حاشيه بخاری ج ۲\ص ۹۲۶)

اسماعيل بن ابراهيم فرمائی چې ما حمادبن زيد وليدلو، چې عبد الله بن مبارک دده ملاقات ته راغلو، په مکه مکرمه کې، نو ده ورسره په دواړو لاسونو مصافحه وکړه، دا په يادلرئ چې دا دواړه د خپلې زمانې د محدثينو امامان وو، امام عبد الرحمن بن مهدي رحمه الله فرمائی چې: (الائمة اربعة مالک، وسفيان الثوری ،وحمادبن زيد، وابن المبارک) يعنې امامان څلور دي: مالک، سفيان ثوری، حمادبن زيد او عبد الله بن مبارک. (تجليات ج ۱\ص تذکرة ج اص۲۷۵)

(۵) حضرت عايشه رضی الله عنها د ښځو سره د نبي کريم صلی الله عليه وسلم د بيعت د طريقې د بيانولو څخه وروسته قسم کوي او فرمايي چې د بيعت په وخت کې د نبي کريم صلی الله عليه وسلم لاس د کومې ښځې د لاس سره نه دی لګيدلی صرف د ژبې اقرار به يې اخستلو چې: (قد بايعتک، صحيح البخاری صـ ۷۲۶).

د بخاری شارح علامه قسطلانی په ارشاد الساري شرح د صحيح البخاری کې او علامه عيني په عمدة القاری شرح صحيح البخاری کې د دې حديث په تشريح کې فرمائی چې: ای بالكلام لا باليد كما كان يبايع الر جال بالمصافحة باليدين(ارشاد الساری ج ۷صـ ۳۸۰).

یعنې په لاس یې ورسره بیعت ونکړو، لکه څرنګه به یې چې دنارینه وو سره بیعت په دواړو لاسونو باندې دمصافحې سره کولو

(٦) ددې په تائید کې شاولی الله فرمائی چې ماخوب ولیدلو چې رسول الله ﷺ ماته تبسم وکړو .فاخذ صلی الله علیه وسلم یدی بین یدیه فصافح. اوزمالاس یې دخپلو دواړولاسونو په مینځ کې ونیولو او مصافحه یې راسره وکړه (تجلیات ص ۲۰۱\ج ۱ بحواله الدر الثمین)

(۷) مجتهدینو او فقهاوو کرامو هم په داوړو لاسونو باندې مصافحې ته سنت ویلي دي صاحب د مجالس الابرار په صـ ۲۸۹، کې فرمايي چې ( والسنة فیهاان تکون بکلتاالیدین).

علامه ابن عابدین رحمه الله فرمایي چې والسنة ان تکون بکلتا یدیه (ردالمحتار ج ۵صـ ۲۳۳) علامه رشید احمد ګنګوهي رحمه الله فرمایي چې: المصافحة بید واحدةٍ لما کانت شعار اهل الافرنج وجب ترکه (الکوکب الدری شرح الترمذی ج ۲صـ ۱۳۲)

(۸) رسول الله ﷺ فرمائی چې په مصافحه باندې دانسان ګناهونه تویږي (ترمذی . مشکوة) اوظاهره ده چې انسان په دواړولاسونو باندې ګناه کوي، نو چې په دواړولاسونو باندې مصافحه وشي ددواړو لاسونو څخه به یې ګناه تویې شي .

غیرمقلدین چې په یولاس باندې مصافحه کوي نو کیدلی شي چې یولاس ئی دجهنم لپاره وقف کړی وي اود ګناهونوتویدل ترینه نه غواړی

(۹) وکتهوري اهلحدیثو لیکلي دي چې : دبخاری په حدیث کې خویولاس دواړو لاسونو ته ورکړل شوی دی، نبی اکرم ﷺ دوه لاسونه ورکړې دي او ابن مسعود ﷺ یو لاس ورکړی دی ، نو معلومیږي چې مصافحه په یو لاس ده. (الحق الصریح ج ۱\ص ۱۹۰کتاب الایمان ۲۷نمبر حدیث ).

**الجواب: الف** : لامذهبه خناسه ! دلته خودې دنبی ﷺ فعل پرېښودو او بهانه دې ورته پخپل ګمان دصحابي فعل کړو . ته دنبی ﷺ فعل پسې ځې او که دصحابي د فعل پسې ؟ لامذهبه تاخو دهمدی کتاب د همدی جلد ص ۴۷۴ د ۲٦نمبر حدیث په تشریح کې داسې لیکلي دي چې دارنګه

(كه د صحابی قول او فعل د نص نه خلاف وي، نو بيا به هم دده خبره نامقبوله وي او حديث مرفوع ته به رجوع كولى شي. [الحق الصريح ج۱\ص ۴۷۴ دويم طباعت].

با: لامذهبه پدی حدیث کې د حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ د دويم لاس نفی په کوم ځای کې راغلې ده؟ او داد چازره مني چې حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ دی صرف يو لاس ورکړی وي او نبی ﷺ دې دواړه لاسونه ورکړي وي؟ حقيقت دادی چې حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ هم دواړه لاسونه ورکړي وو. او د دواړو طرفونو څخه چې يو بل ته دواړه لاسه ورکړی شي، نو ضرور د هريو نبي لاس د بل د دواړو لاسونو په مينځ کې راځي، نو د حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ يو بنې لاس ته دا نيکمرغي حاصله وه چې دد دې په دواړو طرفونو باندې د رسول الله ﷺ مبارک ورغوي لګيدلي وو، له دې وجهې يې په دې نيکمرغه لاس تصريح وكړه او دوهم لاس ته دا ول لاس په اندازه نيكمرغي نوه حاصله له دې وجهې هغه ئی ندی ذکر کړی او عدم ذکر څخه نفې نه رامعلومېږی، وکتوري اهلحديث بل اعتراض کوي چې: (داباب د تعليم دی نه د مصافحی الخ) ج۱\ص۱۸۹].

الجواب: (۱) امام بخاري رحمه الله همدې حديث ته، باب د مصافحې لګولی دی او د صحيح البخاري مشهورو شارحينو (حافظ ابن حجر رحمه الله، علامه عيني رحمه الله، علامه کرماني رحمه الله، علامه قسطلاني رحمه الله وغيرهم) ورباندې هيڅ اعتراض نه دی کړی، نو د دې ټولو په نيز د امام بخاري استدلال صحيح دی.

(۲) د مصافحة التعليم څخه په مصافحه الملاقات باندې استدلال صحيح دی ځکه چې د تعليم په شان ملاقات هم د محبت موقع وي.

لامذهبه دانګريزي دورې څخه په کوم مخکني کتاب کې ئی ليکلي دي چې داباب د تعليم دی؟

(۳) لامذهبه! په هندوستان کې دانګريزی دورې څخه مخکې په بخاری شريف ډيرې شرحې ليکل شوې دي، په کومه شرحه کې ئی ستاد اخبره ليکلې ده ؟

همدارنګه! د تعليم په وخت کې کوم غير مقلد خپل استاذ ته دواړه لاسونه ورکړي دي؟

بسم الله الرحمن الرحيم

# تقبيل الوجه والیدین والرجلین

## دمخ يا دلاسونو او پښو ښکلول:

دښکلولو دوه مسئلې دي: اول تقبيل الوجه. يعنې دمخ ښکلول، دوهم: تقبيل اليدين والرجلين يعنې دلاسونو او دپښو ښکلول.

## تقبيل الوجه:

دمخ دښکلولو په باره کې دوه قسمه احاديث دي: يو قسم په جوازباندې دلالت کوي، لکه دحضرت عايشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حديث دی چې زيد ابن حارثه مدينې منورې ته راغلو، نبی عليه السلام ډير په منډه ورپاڅيدو (فاعتنقه وقبّله) غاړه يې ورکړه او ښکل يې کړو (مشکوة ج ۲ ص۴۰۲)

رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حضرت جعفر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره ملاقي شو په اکثرو رواياتو کې راځي چې (قبّل مابين عينيه) ددواړو سترګو منځ يې ورته ښکل کړو، او په بعضو حديثونو کې ترېنه منع راغلې ده لکه دحضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په حديث کې راځي چې يو سړي د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څخه پوښتنه وکړه چې په مونږ کې يو کس دخپل ورور سره ملاقي شي ،نو (أفيلتزمه ويقبلُه قال لا) مشکوة ج۲ ص۴۰۱) ايا ښکلوي به يې او مچې کوي به يې پيغمبر صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې نه.

## په أصل کې دتقبيل ډير صورتونه دي :

**(۱) تقبيـل الشـهوة** :نو دا پـه محل دشهوت کې جايز دي لکه دخپلې منکوحې او دخپلې وينزې او په بل ځای کې ناجايز دي.

**(۲)تقبيل التحيـة**: پـه داسې طريقه چې دتحيې جز يې وګڼي دا ناجايز دي ځکه چې تحيه صرف سلام دی.

**(٣) تقبيل تكميل النحية:** دا هم ناجايز دی، ځکه چې د تحيې تکميل په مصافحه باندې راځي (أخرج الترمذي من حديث ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ رفعه " من تمام التحية الأخذ باليد") فتح الباری ج ١١ صـ ٦٦ باب الاخذباليد.

**(٤) تقبيل الشفقة والرحمة:** دا بالاتفاق جايز بلکه مستحسن دی، رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يو ماشوم ښکل کړو (مشکوة ج ٢صـ ٤٠٢) ابو بکر صديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د حضرت عايشې رضى الله عنها په مريضی کې راغلو (وقبّل خدها) او ښکل يې کړه په غومبري.

**(٥) تقبيل السرور اللقاء:** دا هم جايز دی د حضرت زيد ابن حارثه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ښکلول او د حضرت جعفر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ښکلول، په دې قسم کې داخل دي.

**(٦) تقبيل التعظيم والتبرک:** راجح دا دی چې دا هم جايز دی (خلافا لما قاله مولانا ظفر احمد العثماني رحمه الله وسيأتي تفصيله تحت تقبيل اليدين والرجلين).

## تقبيل اليدين والرجلين

دلته هم هغه مخکني اقسام دي، مخکې چې کوم قسمونه جايز وو هغه دلته هم جايز دي او کوم چې هلته ناجايز وو هغه دلته هم ناجايز دي، البته دلاسونو او دپښو ښکلول اکثر دتبرک او دتعظيم لپاره وي، نو دتعظيم او دتبرک لپاره دلاسونو او دپښو په ښکلولو کې اختلاف دی، مفتي محمد شفيع رحمه الله په جواهر الفقه کې په دې موضوع مستقله رساله ليکلې ده، په هغې کې د جواز طرف ته رجحان دی او مولانا ظفر احمد العثماني رحمه الله په اعلاء السنن کې په دې باندې بحث کړی دی چې زيات رجحان يې د عدم جواز طرف ته دی، ليکن په رواياتو کې د نظر څخه وروسته د جواز طرف راجح معلوميږي، حافظ ابن الحجر په فتح الباري کتاب الاستيذان باب الأخذ باليد لاندې ډير احاديث راجمع کړي دي چې د هغوي څخه معلوميږي چې د تعظيم او دتبرک د پاره دلاسونو او د پښو ښکلول جايز دي.

١-دعبد الله ابن عمر رضى الله عنهما په شمول باندې ډيرو صحابه وو درسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاسونه ښکل کړل: لَمَّا رَجَعُوا مِنَ الْغَزْوِ حَيْثُ فَرُّوا، قَالُوا: نَحْنُ الْفَرَّارُونَ، فَأَقْبَلَ إِلَيْنَا، فَقَالَ: «لَا، بَلْ أَنْتُمُ الْعَكَّارُونَ». قَالَ: فَدَنَوْنَا فَقَبَّلْنَا يَدَهُ.

۲- ابو لبابه رضي الله عنه کعب ابن مالک رضي الله عنه او دوه ملګري نور يې چې کله يې توبه قبوله شوه نو د رسول الله صلی الله علیه وسلم لاسونه يې ښکل کړل: وَقَبَّلَ اَبُوْلُبَابَةَ وَكَعْبُ ابْنُ مَالِكٍ وَصَاحِبَاهُ رضي الله عنهم يَدَ النَّبِيِّ صلی الله علیه وسلم حِيْنَ تَابَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ.

۳- ابو عبيده د حضرت عمر رضي الله عنه لاسونه ښکل کړل: وقبل ابو عبيده يد عمر حين قدم.

۴- زيد ابن ثابت رضي الله عنه د عبد الله ابن عباس رضی الله عنهما لاسونه ښکل کړل وَقَبَّلَ زَيْدُ ابْنُ ثَابِتٍ رضي الله عنه يَدَ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا حِيْنَ أَخَذَ ابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا بِرِكَابِهِ

۵- دوه يهوديانو د رسول الله صلی الله علیه وسلم لاسونه او پښې ښکل کړې او رسول الله صلی الله علیه وسلم انکار ونکړو: (ان يهوديين أتيا النبی صلی الله علیه وسلم فسألاه عن تسع ايات (الحديث) وفی اخره فقبلا يده ورجله.

۶- حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې: وَقَدْ جَمَعَ الْحَافِظُ أَبُوْبَكْرِ بْنُ الْمُقْرِءِ رحمة الله عليه جُزْءًا فِي تَقْبِيْلِ الْيَدِ سَمِعْنَاهُ أَوْرَدَ فِيْهِ أَحَادِيْثَ كَثِيْرَةً وَآثَارًا فَمِنْ جَيِّدِهَا حَدِيْثُ الزَّارِعِ الْعَبْدِيِّ رضي الله عنه وَكَانَ فِي وَفْدِ عَبْدِ الْقَيْسِ، قَالَ فَجَعَلْنَا نَتَبَادَرُ مِنْ رَوَاحِلِنَا فَنُقَبِّلُ يَدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرِجْلَهُ.

وفد د عبد القيس د رسول الله صلی الله علیه وسلم لاسونه او پښې ښکل کړې.

۷- وَمِنْ حَدِيْثِ أُسَامَةَ بْنِ شَرِيْكٍ رضي الله عنه قَالَ قُمْنَا إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَبَّلْنَا يَدَهُ وَسَنَدُهُ قَوِيٌّ.

۸- وَمِنْ حَدِيْثِ جَابِرٍ رضي الله عنه أَنَّ عُمَرَ رضي الله عنه قَامَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَبَّلَ يَدَهُ.

۹- وَمِنْ حَدِيْثِ بُرَيْدَةَ رضي الله عنه فِي قِصَّةِ الْأَعْرَابِيِّ وَالشَّجَرَةِ، فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ! ائْذَنْ لِي أَنْ أُقَبِّلَ رَأْسَكَ وَرِجْلَيْكَ فَأَذِنَ لَهُ.

۱۰- مِنْ رِوَايَةِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ رَزِيْنٍ رحمة الله عليه قَالَ أَخْرَجَ لَنَا سَلَمَةُ بْنُ الْأَكْوَعِ رضي الله عنه كَفًّا لَهُ ضَخْمَةً كَأَنَّهَا كَفُّ بَعِيْرٍ فَقُمْنَا إِلَيْهَا فَقَبَّلْنَاهَا.

۱۱- وَعَنْ ثَابِتٍ رضي الله عنه أَنَّهُ قَبَّلَ يَدَ أَنَسٍ رضي الله عنه.

۱۲- أَنَّ عَلِيًّا رضي الله عنه قَبَّلَ يَدَ الْعَبَّاسِ رضي الله عنه وَرِجْلَهُ.

۱۳- أَبِي مَالِكٍ الْأَشْجَعِيِّ رضي الله عنه قَالَ قُلْتُ لِابْنِ أَبِي أَوْفَى رضي الله عنه نَاوِلْنِي يَدَكَ الَّتِي بَايَعْتَ بِهَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَاوَلَنِيْهَا فَقَبَّلْتُهَا. (فتح الباری: ج ۱۱ ص ۶۶ - ۶۷)

۱۴- په مجمع الزوائد کې د واثله رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ حدیث دی چې شاګرد یې هغه لاس ښکل کړو په کوم یې چې د رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره بیعت کړی وو.

۱۵- د حضرت فاطمې رضی الله عنها په باره کې راځي چې: كَانَتْ إِذَا دَخَلَتْ عَلَيْهِ قَامَ إِلَيْهَا فَأَخَذَ بِيَدِهَا فَقَبَّلَهَا وَأَجْلَسَهَا فِي مَجْلِسِهِ وَكَانَ إِذَا دَخَلَ عَلَيْهَا قَامَتْ إِلَيْهِ فَأَخَذَتْ بِيَدِهِ فَقَبَّلَتْهُ وَأَجْلَسَتْهُ فِي مجلسها. (مشکوة ج ۲ص ۴۰۲.

۱۶- حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې: إِنَّمَا كَرِهَهَا مَالِكٌ رحمه الله إِذَا كَانَ عَلَى وَجْهِ التَّكَبُّرِ وَالتَّعَظُّمِ (فتح الباری ج ۱۱ص ۶۷)

۱۷-قال العلامه الحصکفی رحمه الله: إِنَّمَا كَرِهَهَا مَالِكٌ رحمه الله إِذَا كَانَ عَلَى وَجْهِ التَّكَبُّرِ وَالتَّعَظُّمِ (الدر المختار، کتاب الحظر والاباحة، فصل فی الاستبراء وغیرها)

۱۸- امام نووي رحمه الله فرمايي چې: تَقْبِيلُ يَدِ الرَّجُلِ لِزُهْدِهِ وَصَلَاحِهِ أَوْ عِلْمِهِ أَوْ شَرَفِهِ أَوْ صِيَانَتِهِ أَوْ نَحْوِ ذٰلِكَ مِنَ الْأُمُورِ الدِّينِيَّةِ لَا يُكْرَهُ بَلْ يُسْتَحَبُّ فَإِنْ كَانَ لِغِنَاهُ أَوْ شَوْكَتِهِ أَوْ جَاهِهِ عِنْدَ أَهْلِ الدُّنْيَا فَمَكْرُوهٌ شَدِيدُ الْكَرَاهَةِ وَقَالَ أَبُو سَعِيدٍ الْمُتَوَلِّي لَا يجوز (فتح الباری ۲۸ باب الأخذ باليد ج ۱۱ص ۶۷)

لکن دلاسونو او پښو ښکلول په خیر القرون کې همیشني معمول نه وو، بلکې هغوي کله کله دلاسونو او پښو ښکلول کول، مناسبه دا ده چې معمول نه کړی شي ځکه چې اکثر مفاسد په هغه وخت کې پیدا کیږي کله چې دا معمول او عادت جوړ کړی شي، بیا یې چې څوک لاس نه ښکل نه کړي نو خفه کیږي.

## دمصافحی په وخت کې انحناء

دمصافحې په وخت کې ټیټیدل حرام دي: یکره الانحناء عند التحیة وبه ورد النهی، الفتاوی الهندیه، الباب الثامن والعشرون فی ملاقات الملوک ج ۵ص ۳۶۹، ویکره لانه یشبه فعل المجوس، مجمع الأنهر، کتاب الکراهیة فصل فی البیع ج ۲ص ۵۴۲) له الله تعالی څخه پرته بل چا ته داسې تعظیم او احترام چې په هغه کې د رکوع غوندې هیئت مینځ ته راځي ممنوع دی (فتاوی حقانیه ج ۲ص ۲۴۱)

او چې مقصود دلاسونو او دپښو ښکلول وي او ضمنا یکې ټیټیدل راشي نو بیا یکې حرج نشته، ځکه چې قاعده داده چې: (الأمور بمقاصدها) قاله مولانا اشرف علی تهانوي رحمه الله اشرف التوضیح شرح مشکوة ج ۴ص ۴۶۸)

مفتي محمد شفيع رحمه الله فرمايي: كومه اذكار چې مقصوداً وي هغه ناجايزه ده او كومه چې د تنبيه د ضرورت په خاطر وشي هغه په حكم كې د تقيد تابع ده (جواهر الفقه ج ١ ص ٥٦)

## دمصافحې څخه وروسته دخپلو لاسونو مکلول مکروه دي

قال العلامة الحصكفي رحمه الله وكذا ما يفعله الجهال تقبيل يد نفسها اذا لقى غيره فهو مكروه فلا رخصت فيه (در المختار كتاب الكراهية ج ٥ص ٢٤٥)

## ديو چا د راتلو په وخت کې قيام

**قيام په يو څو قسمه دي:**

**١-قيام التعاون:** چې يو دچا سره دکومک دپاره اودريږي، مثلاً د سورلۍ څخه يې راکوز وي او يا يې سورلۍ ته پورته کوي، دا بالاتفاق جايز دی.

**٢- قيام المثول:** چې يو سړی ناست وي او نور ورته ولاړ وي لکه مخکې به چې دعجمي بادشاهانو په دربارونو کې خلک لاس په نام ورته ولاړ وو، دا بالاتفاق ناجايز دی.

**٣- القيام عليه:** يعنې ديو چا دحفاظت دپاره اودريدل، لکه باډيګارډ دا بالاتفاق جايز دی.

**٤- قيام المحبة وقيام السرور:** لکه رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې حضرت فاطمې رضی الله عنها ته دريدلو او فاطمه رضی الله عنها به رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته دريدله (مشکوة ج ٢ص ٤٠٢) دا هم بالاتفاق جايز دی.

**٥- قيام التحية وقيام تكميل التحية:** دا ناجايز دی ځکه چې تحيه صرف سلام دی او تکميل يې مصافحه ده.

**٦- قيام التعظيم والاحترام:** يعنې داحترام لپاره ديو چا دراتللو په وخت کې دريدل، لکه دمدرسو طالبان چې داستاذ دراتللو په وخت کې داحترام دپاره دريږي، په دې کې اختلاف دی بعضې علماء ورته مکروه وايي، لکن اکثر علماء ورته جايز وايي، څوک چې ورته مکروه وايي هغوي دحضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حديث څخه استدلال کوي چې: لم يكن شخص أحب اليهم من رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وكانوا اذا رأوه لم يقوموا لما يعلمون من كراهيته لذلك (مشكوة ج ٢ص ٤٠٣) لکن مجوزين علماء فرمايي چې دنبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کراهت شرعي نه وو بلکې طبعي وو،

همدارنګه دا حديث چې : (مَنْ سَرَّهُ أَنْ يَتَمَثَّلَ لَهُ الرِّجَالُ قِيَامًا فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ) مشكوة ج ۲ صـ ۴۰۳)
د قيام مثول سره تعلق لري او زموږ بحث په قيام للتعظيم کښې دی، د جوزينو د پاره هم ډير دلايل دي لکن اکثر يې د قيام التعظيم سره تعلق نه لري د دې مسلک د پاره صريح حديث د حضرت سعد ابن معاذ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د واقعې حديث دی

وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: لَمَّا نَزَلَتْ بَنُو قُرَيْظَةَ عَلَى حُكْمِ سَعْدِ بْنِ مُعَاذٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بَعَثَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَيْهِ فَجَاءَ عَلَى حِمَارٍ فَلَمَّا دَنَا قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «قُومُوا إِلَى سَيِّدِكُمْ (متفق عليه مشكوة ج ۲ صـ ۴۰۲)

څوک چې قيام التعظيم ته مکروه وايي نو د دې حديث جواب کوي چې دا قيام التعظيم نه وو بلکې قيام التعاون وو، يعنې دد دې د پاره وو چې ده له خيرې چې د سورلی نه يې راکوز کړي. لکن دا خبره د تحقيق نه مخالفه ده . (۱) ځکه چې حضرت سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يو طرف ته د خپل قوم سردار وو او بل طرف ته مريض هم وو نو دا بعيده ده چې د دې ځای ته د دې بغير د خپلو خادمانو څخه راغلی وي، لهذا د خادمانو څخه بغير بل چا ته د تعاون ضرورت نه وو.

(۱) رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې : (قوموا الى سيدكم) که دا قيام د تعاون وی نو رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به فرمايلي وي چې (قوموا الى مريضكم) نو دا د ريدل د سيادت له وجې څخه وو او د سيادت له وجې څخه قيام قيام التعظيم وي.

(۳) د واقدي په روايت کې راغلي دي چې رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د انصارو څخه دوه قطاره جوړ کړل او حضرت سعد بن معاذ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د دوي په منځ کې تيريدو دا خبره دد دې د پاره دليل دی چې دا قيام التعظيم دی نو تمام التعظيم في نفسه مباح دی، البته دا د صحابه وو عام معمول او عادت نه وو، بلکې د هغوي ماحول ډير د بې تکلفی ماحول وو، البته کله کله په قيام التعظيم کې مصلحت وي لکه د شاګردانو د ادب سره عادت کول، په طبعيت کې چستي پيدا کول، دراتلونکي ميلمه خوشحالول وغيره.

وصلى الله تعالى على خير خلقه محمد وأله واصحابه اجمعين.

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمدلله وحده والصلوة والسلام علي من لانبي بعده.

أمابعد!

## ۱-مسئلة الصفات اجمالاً

امام بيهقي رحمه الله فرمايي چې د الله ﷻ صفات په دوه قسمه دي:

**اول:** صفات عقليه .دوهم: صفات خبريه،دصفات عقليه وو تعريف امام بيهقي،داسې کوي چې :ماكان طريق اثباته ادلة العقول مع ورودالسمع به، يعني داهغه صفات دي چې په عقل او په نقل دواړو باندې ثابت وي لکه: (۱) علم. (۲) سمع.(۳) بصر.(۴) قدرة. (۵) اراده.(۶) حيوة. (۷) كلام (۸) او دماتريديه وو په نيز تكوين.

داصفات كمال محض دي، چې كله يې نسبت الله ﷻ ته وشي نو بيا بندگانو ته ددې صفاتو مفاهيم كليه معلوم وي، چې ادراک المعلومات ،ادراک المبصرات وغيره دی، لکن مصداق يې يوائې الله ﷻ ته معلوم دی بندگانو ته ندی معلوم او كله يې چې انسان ته نسبت وشي نو بيا يې مفهوم او مصداق دواړه معلوم وي چې ادراک المعلومات بواسطة الحواس ،وادراک المبصرات بواسطة الحواس وهكذا دی.

يا داسې ووايه چې يو د صفاتو مفهوم دی او بل يې مصداق دی، بعضې صفات داسې دي چې په اعتبار د مفهوم سره محكم دي تجسيم ترينه نه لازميږي او په اعتبار د مصداق سره متشابه وي، لكه علم وغيره او بعضې صفات داسې دي چې په اعتبار د مفهوم او مصداق دواړو سره ترينه تجسيم لازميږي لکه ذ يد مفهوم جارحه ده او مصداق يې مثلا يد زيد دی، نو ددې اطلاق په اعتبار د مفهومي معنی سره هم په الله تعالى ناجايز دی او په اعتبار د مصداقي معنی سره هم ناجايز دي ، اول قسم صفات محكمات او صفات ذاتيه ويلی شي او دوهم قسم صفاتو ته متشابهات ويلی شي.

امام بيهقي رحمه الله دصفاتو خبريه ووتعريف داسې کوي چې : مَاكَانَ طَرِيقُ إِثْبَاتِهِ الْكِتَابَ وَالسُّنَّةَ فَقَطْ، كَالْوَجْهِ وَالْيَدَيْنِ وَالْعَيْنِ وَالْغَضَبِ، وَالرِّضَا، وَالْمَحَبَّةِ، وَالنِّسْيَانِ، وَالْمَرَضِ، وَالْجُوْعِ، وَالْعَطَشِ وَغَيْرِهِمْ.

نو داهغه صفات دي چې صرف په نقل ثابت دي، بيا دا صفات خبريه په دوه قسمه دي يو قسم هغه دي، چې نقص محض دي لکه جوع ،عطش ،مرض نسيان وغيره الله ﷻ فرمايي. چې :فاليوم ننساهم،همدارنګه په حديث قدسي کې راځي الله ﷻ فرمايي چې: جعت فلم تطعمنى، وعطشت ،همدارنګه عبدى، مرضت فلم تعدنى.

نوپه داسې صفاتو کې به قطعًا تاويل کيږي، تفويض پکې نه دی جايز،دوهم قسم هغه دي چې په اعتبار دحقيقي اوظاهري معنى سره موهم دنقص وي، لکه يد ،عين،غضب ،رضا ،وغيره،نوپداسې قسم صفاتو کې ډير مذاهب دي لکن ددې ټولو مذاهبو رجعه دريو مذهبو نوته کيږي ،يو مذهب دمعطله وو دی، دوهم مذهب دمشبهه وو دی او دريم مذهب داهل سنت والجماعت دی .

معطله چې کله ددې صفاتو کنهې ته ونه رسيدل نوانکارېې ترينه وکړو او مشبهه وو دا صفات په ظاهر پرېښودل او حقيقي متبادرى معناګانى يې ترينه واخستلې، چې ددې زمانې غير مقلدين هم همدا ظاهري او حقيقي معناګانې ترينه مرادوي، ابن تيميه رحمه الله هم په دې مسئله کې داهل سنتو څخه مخالفت کوي اوليکي چې :ان التفويض من شراقوال اهل البدع والالحاد. [درء تعارض العقل والنقل ج۱ ص۲۰۵]. الشيخ الدکتور يوسف القرضاوي حفظ الله فرمايي چې دازهر يو عالم الشيخ منصور محمد عويس يو کتاب وليکلو په نوم د(ابن تيميه ليس سلفيا)يريدانه خالف السلف فى انكاره ان مذهبهم هو التفويض. لکن بيا دډاره چادا کتاب دوهم ځل چاپ نکړی شو. القول التمام باثبات التفويض ص۱۳].

العلامه محمد تقي العثماني مدظله فرمايي چې :فماقاله ابن تيميه فى اصحاب التفويض فى مسئالة الصفات زلة واضحة منه،القول التمام ص ٢٤].

داهل سنت والجماعة مقصد نفى دنقص او دتشبيه ده،داهل سنت والجماعت لپاره پداسې قسم صفاتو کې څلور قوله دي اول قول دجمهور وسلفو دی وهو التفويض،دوي فرمايي چې دداسې قسمه

صفاتو نصوص دمتشابهاتو څخه دي، لایعلم معناها الا الله تعالی، امام بیهقی په خپل سند باندې دسفیان بن عینیه رحمه الله څخه نقلوي چې: كُلُّ مَا وَصَفَ اللّٰهُ مِنْ نَفْسِهِ فِي كِتَابِهِ فَتَفْسِيرُهُ تِلَاوَتُهُ وَالسُّكُوتُ عَلَيْهِ قَالَ الشَّيْخُ: وَإِنَّمَا أَرَادَ بِهِ وَاللّٰهُ أَعْلَمُ فِيمَا تَفْسِيرُهُ يُؤَدِّي إِلَى تَكْيِيفٍ، وَتَكْيِيفُهُ يَقْتَضِي تَشْبِيهًا لَهُ بِخَلْقِهِ فِي أَوْصَافِ الْحَدَثِ(الاعتقاد والهدایة ص۱۱۸ والقول التمام ص۱۱۲ نو بیهقي رحمه الله دسفیان بن عینیه رحمه الله دقول تفسیر وکړو، چې دسفیان بن عیینه رحمه الله مراد مطلق صفات نه دي، بلکه صفات خبریه دي، ددې مذهب خلاصه درې خبرې دي (۱) اثباة مادرد الشرع به (۲) رد العلم بمعاینه الی الله تعالی (۳) نفی الظاهر، نو دوي داول څخه علم په تعین دمعنی باندې نفې کوي.

ددوي دقول خلاصه داسې هم بیانولی شي چې دلته درې خبرې اتفاقي دي اول: ددې صفاتو ثبوت دی، دا اتفاقا په قران او په حدیث کې شته، دوهم: ددې صفاتو لغوي او عرفي معناګانې دي دا هم په اتفاق سره ثابتې دي، دریم ددې صفاتو ترجمې دي، لکه د ید ترجمه لاس دی، لکه پښتو وایو چې دا هر څه دالله تعالی په لاس کې دي، دا هم اتفاقا شته، ترجمه نقل اللغلة الی لغة اخری ته وایي، څلورمه: خبره داهل سنتو او داهل بدعتو مجسمه وه په منځ کې اختلافي ده او هغه معنی مراده ده، اهل سنت وایي چې معنی مراده یې یوائې الله تعالی ته معلومه ده، د ید چې کومې لغوي معنی ګانې دلغتو په کتابونو کې راغلي دي، او کومې چې دمخلوق په مابین کې متعارفې دي هغه یوه هم نده مراده او اهل بدعت مجسمه دالله تعالی په جانب کې همدغه لغوي ظاهري، حقیقي او عرفي معناګانې مراده وي او معنی مراده یې مونږ ته ځکه ندي معلومې چې مونږ دالله تعالی ید نه دی لیدلی او داشیاوو معنی په اضافت سره بدلیږي، وجه (مخ) دانسان مخ جدا دی، دکتاب مخ جدا دی، دموټر مخ جدا دی، دجهاز مخ جدا دی اوس چې یو سړي جهاز نوي لیدلی هغه به یې په معنی مراده څرنګه پوه شي؟ همدرانګه دانسان جدا دی، دکوټې سر جدا دی وغیره.

**دوهم قول:** دبعضې سلفو دی ددوي مذهب دادی چې دداسې قسم صفاتو حقیقي معناګانی شته دی لکن ددوي حقیقي معناګانې دهغو حقیقي معناګانو سره مغایرې دي، چې مخلوقاتو ته یې نسبت کیږي، نو دالله ﷻ لپاره ید بالمعنی الحقیقي کمایلیق بشانه دی، چې انسانانو ته نه دی معلوم، نو دوي هم مألامتعارفې معناګانې نفې کړی، نو ددې مذهب رجعه هم اول مذهب ته شوه.

**دریم قول:** دبعضې سلفو او متاخرینو دی، نو دوي پداسې صفاتو کې تاویل کوي، مثلاً دید څخه قدرت مرادوي....

**څلورم قول** دبعضې متاخرینو دی: دوي فرمایې چې کوم نصوص چې تاویل قبلوي په هغوي کې تاویل دی او کوم نصوص چې تاویل نه قبلوي په هغوی کې تفویض دی.

فانقیل: چې امام صاحب رحمه الله په فقه اکبر کې فرمایلي دي چې: ولا یقال ان یده قدرته لان فیه ابطال الصفة؟

قلنا: امام صاحب د معتزله وو په تاویل رد کوي، قرینه ورته داده چې امام صاحب مخکې پخپله لیکي چې وهو قول اهل القدر والاعتزال، یعنې داسې تاویل چې اصل کلمات پکې معطل شي د معتزله وو او قدریه وو قول دی.

فانقیل: چې د معتزله وو او د اهل سنتو په تاویل کې څخه فرق دی؟

قلنا: معتزله چې کوم تاویل کوي نو د قطع او د جزم په مرتبه کې یې کوي او حقیقت بالکل متعذر کوي ، مثلا د استوی څخه غلبه مرادوي او حقیقي معنی بالکل متعذره ګڼي او اهل سنت چې کوم تاویل کوي نو هغه د ظن او د احتمال په مرتبه کې دی او چې کله د احتمال په مرتبه کې شو نو حقیقي معنی متعذره نه شوه، یعنې د استوی چې کومه معنی مراده الله تعالی ته معلومه ده هغه الله تعالی ته ثابته ده لکن احتمال د غلبې هم لري، علامه ابن الهمام رحمه الله فرمایي چې: وهذا التاویل لهذه الالفاظ لما ذکرنا من صرف فهم العامة عن الجسمیة وهو ممکن ان یراد ولا یجزم بارادته (المسایرة مع المسامرة صـ ۶۲)

حسین احمد المدني رحمه الله فرمایي چې: اشاعرہ اور ماتریدیہ تاویلات پر جزم نہیں کرتے بر خلاف معتزلہ وغیرہ کے کہ تاویلات کرتے ہیں اوان کے متعلق کہتی ہیں کہ بس یہاں یہی معنی مراد ہے، (معارف مدینہ ص ۴۷)

او متاخرین ځکه تایل کوي چې د متقدمینو په زمانه کې مجسمه نه وو بلکې د متاخیرنو په زمانه کې را پیدا شو هغوي به صفات په ظاهري معنی ګڼو پریښود ل عوام به یې ګمراه کول نو متاخیرنو د عوامو د حفاظت لپاره تاویل شروع کړو.

داهل سنتو لپاره ډیر دلایل دي، دهغوی څخه یو دلیل دا قول دالله ﷻ دی چې لیس کمثله شيء نو دید وجه غضب، او رضا، وغیره صفاتو کومې معناګانې چې مونږته معلومې دي، او کومې چې دلغتو په کتابونو کې ذکر شوي دي، هغه که الله ﷻ ته ثابتې کړو نو مخلوق دخالق سره مشابه شو، ځکه چې هغه ټولې معناګانې دمخلوق صفات دي، او ددې معناګانو څخه ماسوی بله معنی هیڅ ته هم نه ده معلومه، مونږ لا مذهبو مجسمه ووته وایو چې تاسو وایې چې دید معنی معلومه ده، نو بیان یې کړئ، که هغه وایي چې دید معنی لاس دی، نو مونږ وایو چې لاس څه معنی ده، که وي ویل چې دلاس معنی دغه مخصوصه عضوه ده چې مونږته ښکاري نو بیا خو دالله ﷻ لپاره عضوا و جزءراغلو، نو الله ﷻ مرکب او جسم شو، خالق دمخلوق سره مشابه شو او که وی ویل چې دالله ﷻ په جانب کې مونږته معنی نه ده معلومه نو بیا خو دا بعینه تفویض شو.

دید لپاره دلغتو په کتابونو کې تقریبًا ۲۵ معناګانې راغلی دی:

(۱) جارحه (۲) قوة (۳) المُلک (ان الفضل بیدالله) (٤) المِلک (ماحوته الید) (٥) العهد (یدالله فوق ایدیهم) (٦) الانقیاد (۷) نعمة (۸) الدل (۹) التصرف (بیده عقدة النکاح (۱۰) السلطان (۱۱) الجماعة (۱۲) الطریق (۱۳) الطاعة (١٤) التفرق (۱٥) الحفظ (١٦) العلق (۱۷) المقبضه (یدالسیف) (۱۸) عودالقابض (یدالرحی) (۱۹) جناح الطریر (۲۰) المدة (۲۱) الابتداء (۲۲) یدالثوب مافضل منه (۲۳) یدالشی امه (۲٤) الطاقة (۲٥) النقد نحو بعته یداً بیدٍ).

پدې کې څه معناګانې حقیقي دي او څه مجازی، که ددې مجازی، معناګانې مرادوئ نو دا تاویل شو، او که حقیقي مرادوی، نو دا تشبیه شوه او که نه حقیقي مرادوئ او نه مجازی نو دا تفویض شو.

## دبلاکیف او دالکیف مجهول تحقیق

کیف دا قسامو دعرض او دممکن څخه دی او ددی لپاره په لغت کې څلور معناګانی دي

(۱) الاستفهام عن الاحوال، لکه کیف زید؟ فیقال فی الجواب صالحٌ (۲) القطع مثل کیّف الأدیم تکییفا اذا قطعه (۳) التعجب والتوبیخ، مثل قوله تعالی کیف تکفرون بالله (٤) الجزاء، مثل کیفما تفعل أفعل.

اود الله ﷻ په صفاتو کې دوه معناګاني لري (۱) التشخص (۲) حقیقة الصفات وکنهها، نو که اوله معنی واخستې شي نو بیا به وایو چې ید بلا کیف یعنی چې ذات د کیف نه شته، لکه د امام مالک رحمه الله څخه چې په صحیح روایت کې راغلي دي چې: الاستواء غیر مجهول والکیف غیر معقول، (الاعتقاد والهدایة الی سبیل الرشاد علی مذهب السلف واصحاب الحدیث صـ ۱۱۶) ځکه چې تشخص د جسم لپاره وي او که دوهمه معنی واخستې شي نو بیا به وایو چې والکیف مجهول یعنی چې کیف شته خو علم د کیف نه شته لکه د امام مالک رحمه الله څخه چې په یو غیر صحیح روایت کې راځي چې: الاستواء معلوم (ای معلوم ثبوته) والکیف مجهول (ای حقیقته وکنهه مجهول - نو نفی د کیف یې ونه کړه بلکه د علم علی الکیف نفي یې وکړه.

## دکما یلیق بشأنه معنی

اهل سنت والجماعت فرمایي چې دا متشابه صفات الله تعالی ته ثابت دي معنی یې الله تعالی ته معلومه ده او کیف منتفي دی او غیر مقلدین مجسمه وایي چې دا صفات الله تعالی ته ثابت دي معنی یې معلومه ده او کیف یې مجهول دی، اهل السنت والجماعت امرار علی الظاهر کوي معنی مراده یې الله تعالی ته حواله کوي او مجسمه یې معنی علی الظاهر کوي او کیف یې مجهول ګڼي.

**مسئلة الاستوی علی العرش:** اهل السنت والجماعت فرمایي چې د استوی لفظ د متشابهاتو څخه دی معنی او حقیقت یې الله تعالی ته معلوم دی او کیفیت یې منتفي دی او د وکتوري اهلحدیثو یعنې مجسمه وو مسلک دا دی چې د استوی لفظ د محکماتو څخه دی او په اعتبار د حقیقي او عرفي معنی سره د الله تعالی صفت دی، البته په خارج کې یې موږ ته کیفیت نه دی معلوم، د وکتوریانو د مسلک مطابق الله تعالی ته حسي فوقیت ثابتیږي، حالانکې الله تعالی د جهاتو څخه پاک دی، ځکه چې جهات حادث دی او الله تعالی قدیم دی، وکتوریان وایي چې الله تعالی چې په یو جهت کې هم نه شو نو معدوم شو.

قلنا: چې جهات مخلوق او حادث دی نو جهات نه وو او الله تعالی وو نو چې جهات نه وو، نو الله تعالی په یو جهت کې هم نه وو خو بیا هم موجود وو نو همدارنګه چې اوس جهات موجود دي نو بیا هم

الله تعالی په يو جهت کې هم نه دی خو بيا هم موجود دی او جهات ځکه حادث دي چې په حديث کې راځي چې كان الله ولم يكن شئ غيره او شئ غيره جهات هم دي.

**فانقيل:** د الرحمن على العرش استوى په تشريح کې بعضې تفسيرونو ليکلې دي چې (علی و رفع)

**قلنا:** ددې ځخه علو حسي نه ده مراده، بلکه علو معنوی ترینه مراده ده، ځکه که چیرته علو حسي مراده شي نو بيا مونږ پوښتنه کوو چې علو مخلوق ده او که غير مخلوق ده؟ على الاول لزم حلول الله فى المخلوق، وعلى الثانى لزم المنافات لقوله تعالى خالق كل شى،فانقيل العلوجهة عدميه لاوجودية قلنافلزم وجود موجودفى معدومٍ ويلزم منه نفى وجودالله تعالى.

او کمال علوه معنوي ده مثلا يو لس چته بلډنګ دی په اول چت کې مالک ناست دی او په لسم چت کې یې مزدوران دي نو ځوک داسې نه شي ويلي چې دمزدورانو کمال دمالک ځخه زيات دی.

فانقيل: چې الله تعالى په جهت د فوق کې نه دی نو بيا د دعا په وخت کې ولې لاسونه وچتوئ؟

قلنا: د دعا قبله اسمان دی ځکه لاسونه وچتولی شي، لکه د لمانځه قبله چې کعبه ده، نو لکه په لمانځه کې چې قبلې ته د مخ کولو ځخه دانه لازميږي چې الله (جل جلاله) په جهت د کعبې کې دي، نو همدارنګه په دعا کې دلاسونو داوچتولو ځخه دانه لازميږي چې الله (جل جلاله) په جهت دفوق کې دی.

علامه شهاب الدين الخرايطي (رحمه الله) فرمايي چې: الفصل الثالث فى هيئات الدعاء وهي عشرة: التوجه نحوالسماء فى حالة الدعاء فان الله جعل السماء قبلة الدعاء وتعبد نا بها كما جعل الكعبة قبلة الصلوة وجعل الارض متوجه السجود، لا لانه فى جهة السماء. كتاب المنجيات والموبقات فى الادعيه صفحه(۱۹۰)

فانقيل: چې الله (جل جلاله) په جهت دفوق کې نه دی، نو رسول الله (صلى الله عليه وسلم) دمعراج په شپه ولې اسمانونو ته تللو؟

قلنا: په احاديثو کښې دپورته تللو وجه بيان شوې ده چې (ليريه العجائب) دی، نور الله (جل جلاله) ته فوق او تحت يو برابر دی دموسی (عليه السلام) سره ئې په کوه طور کښې کلام کړې وو.

فانقيل: چې امام صاحب فرمايي ځوک چې الله په عرش نه مني هغه کافر دی.

قلنا: (١) د امام صاحب د دې قول راوي ابو مطيع بلخي دی، چې په ١٩٩ هجري کښې وفات شوی دی، غیرمقلد ریس ندوي دده په باره کښې ليکي چې ابو مطيع بلخي غير ثقه او مرجئي وو (اللمحات ج ٣ صفحه ١١٧)

غيرمقلد زبير علي زئي هم ورباندې اعتراضات کړی دی. (اضواء المصابيح صفحه ١٢٨)

غيرمقلد حافظ شاهد محمود ليکي چې: امام ابو حنیفه (رحمه الله) سے یہ قول نقل کرنے والا ابو مطیع البلخی ہے جو سخت ضعیف اور متروک ہے. دفاع صحیح البخاری حاشیہ صفحہ ١٩٢

غيرمقلد طالب الرحمن ليکي چې: محدثین کے نظر میں ابو مطیع البلخی کذاب اور وضاع یعنی حدیث گرنے والا ہے, تبلیغی جماعت کے عقاید صفحہ ٥٢

(٢): پدې قول کښې دتکفير سبب نه دی ذکر شوې. بيا علماء دتکفير سبب بيانوي، امام عزالدين فرمايي: چې دتکفير سبب دادی چې ددې قول څخه دا وهم پيدا کيږي چې دالله (جل جلاله) لپاره مکان شته او دچاچې داګمان وي هغه مشبه دی، امام بياضي (رحمه الله) فرمايي: چې دتکفير سبب دادی چې ددې قول څخه دالله (جل جلاله) لپاره جهت ثابتيږي، ملاعلي القاري (رحمه الله) په شرح دفقه اکبر (رحمه الله) کښې دعبد السلام (رحمه الله) دقول درانقل کولو څخه وروسته فرمايي: چې په دې باندې اعتماد زيات صحيح دی. الشيخ احمد الرفاعي الشافعي (رحمه الله) فرمايي: چې ددې قول څخه دا وهم پيدا کيدلو چې دالله (جل جلاله) لپاره مکان شته او دچاچې داګمان وي نو هغه مشبه دی.

امام ابو الليث السمرقندي فرمايي: چې ددې قول څخه دا وهم پيدا کيدلو چې دالله لپاره مکان دی، نو ددې تصريحاتو څخه دا معلومه شوه چې امام صاحب په هغه چا رد کوي چې الله تعالی په يو خاص جهت کې مني.

## د أين الله تحقيق:

وکتموري اهلحديث يو سوال ليکي چې: أين الله؟ او بيا پخپله جواب ليکي چې: (الله فوق العرش) او بيا فوقيت حسي مرادوي، غيرمقلد زبير علی زئی ليکي چې: (اہل سنت والجماعت اللہ تعالی کے لئے [ ید] کے حقیقی لغوی وعرفی معنی کی اثبات کرتی ہیں (ماہنامہ محدث ص- ١١ مارچ ٢٠١١ )

غیر مقلد وحید الزمان لیکي چې : اہلحدیث نے استواء کے یہی معنی لے ہیں کہ عرش پر بلند ہوا یا بیٹھا یا چڑھ گیا جما... اس کی ظاہری معنی بلا تاویل مراد ہے (تفسیر وحیدی، سورۃ الاعراف ایت ۵۴)

په بل ځای کې لیکي چې: وکذلک الاستواء ای العلو والجلوس والاستقرار علی العرش (هدیة المهدی صـ ۱۰،) همدارنګه لیکي چې ومکانه العرش صـ (۹)

اهل اسنت والجماعت فرمایي چې: أين الله ؟ ویل ناجایز دي، ځکه چې : أين دمکان په باره کې داستفهام لپاره مستعملیږي نو د أين الله معنی داده چې الله تعالی په کوم مکان کې دی؟ حالانکې الله تعالی د مکانیاتو او د زمانیاتو څخه پاک دی، ځکه چې مکان دا جسامو خاصه ده او اجسام حادث دي نو د (أین) په زریعې سره سوال کول ملزوم دحدوث دی، نو د این الله :؟ څخه د الله تعالی حدوث لازمیږي، (کان الله ولم یکن این) الله تعالی د این ؟ څخه مخکې موجود وو.

فانقیل: چې په یو حدیث کې راځي چې: حَدَّثَنَا أَبُو جَعْفَرٍ مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ، وَأَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ رَحِمَهُمَاللَّهُ- وَتَقَارَبَا فِي لَفْظِ الْحَدِيثِ- قَالَا: حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ حَجَّاجٍ الصَّوَّافِ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ هِلَالِ بْنِ أَبِي مَيْمُونَةَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ رَحِمَهُمَااللَّهُ، عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ الْحَكَمِ السُّلَمِيِّ ﷺ قَالَ:.. قَالَ: وَكَانَتْ لِي جَارِيَةٌ تَرْعَى غَنَمًا لِي قِبَلَ أُحُدٍ وَالْجَوَّانِيَّةِ، فَاطَّلَعْتُ ذَاتَ يَوْمٍ فَإِذَا الذِّيبُ قَدْ ذَهَبَ بِشَاةٍ مِنْ غَنَمِهَا، وَأَنَا رَجُلٌ مِنْ بَنِي آدَمَ، آسَفُ كَمَا يَأْسَفُونَ، لَكِنِّي صَكَكْتُهَا صَكَّةً، فَأَتَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَعَظَّمَ ذَلِكَ عَلَيَّ، قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! أَفَلَا أُعْتِقُهَا؟ قَالَ: «ائْتِنِي بِهَا» فَأَتَيْتُهُ بِهَا، فَقَالَ لَهَا: «أَيْنَ اللَّهُ؟» قَالَتْ: فِي السَّمَاءِ، قَالَ: «مَنْ أَنَا؟» قَالَتْ: أَنْتَ رَسُولُ اللَّهِ، قَالَ: «أَعْتِقْهَا، فَإِنَّهَا مُؤْمِنَةٌ» (صحیح مسلم ج ۱ صـ ۲۰۳)

قلنا: دا روایت معلول او شاذ دی.

۱- امام بیهقي رحمه الله فرمایي: دا حدیث مضطرب دی (کتاب الاسماء الصفات صـ ۴۲۲)

۲- امام بزار رحمه الله ورته مضطرب ویلي دي (کشف الاستار ج ۱ صـ ۱۴)

۳- حافظ ابن حجر رحمه الله فرمایي چې: وفی اللفظ مخالفة کثیرة (التلخیص الحبیر ج ۳ صـ ۲۲۳)

۴- الحافظ العراقي ورته شاذ ویلي دي (تنقیح المفهوم الجاریه صـ ۳۵۰ ضمن مجموع رسایل للسقاف)

**وجوه الاضطراب:** دا روايت د اين الله؟ من ربک؟ او د اتشهدين؟ وغيره مختلفو الفاظو باندې مروي دی، دا حديث ابن حبان رحمه الله المتوفى (۳۵۴ھ) په خپل صحيح کې درج کړی دی او هلته دا الفاظ دی چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم ترينه تپوس وکړو چې فَقَالَ: "مَنْ رَبُّكِ؟" قَالَتِ: اللّٰهُ! قَالَ: "مَنْ أَنَا؟" قَالَتْ: رَسُولُ اللّٰهِ (صحيح ابن حبان ج ۱صـ ۲۰۶) تحت ذِكْرِ خَبَرٍ آخَرَ يُصَرِّحُ بِصِحَّةِ مَا ذَكَرْنَا.

امام بيهقي رحمه الله المتوفى ۴۵۸ھ په خپل سنن کې په دې الفاظو سره نقل کړی دی چې: مَنْ رَبُّكِ؟" قَالَتْ: اَللّٰهُ رَبِّي (السنن الكبرى ج ۷صـ صـ ۸۸، باب اعتاق الخرساء اذا أشارت بالايمان وحلت)

امام مالک رحمه الله په دې الفاظو نقل کړي دي فَقَالَ لَهَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰه عليه وسلم: «أَتَشْهَدِينَ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ؟» فَقَالَتْ: نَعَمْ. قَالَ: «أَفَتَشْهَدِينَ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللّٰهِ؟» قَالَتْ: نَعَمْ.) (مؤطا مالك: تحت مَا يَجُوزُ مِنَ الْعِتْقِ فِي الرِّقَابِ الْوَاجِبَةِ.

نو په دې روياتو کې اضطراب راغلو نو ترجيح به هغه رواياتو ته ورکولی شي چې هغه د منلې شوي قواعدو مطابق وي.

او منلې شوې قاعده داده چې يو کس تر هغه وخته پورې نشي مؤمن کيدی تر څو پورې چې دا ګواهي ورنکړي چې (اشهد أن لا اله الا الله واشهد أن محمد رسول الله) او تر څو چې يقين په بعث بعد الموت ونکړي، نو د موطا مالک حديث د اصولو مطابق دی او د مسلم حديث د اصولو مطابق نه دی، يو کس صرف په دې سره نشي مسلمان کيدلی چې هغه دا ووايي چې الله تعالى په اسمانونو کې دی، کنه نو بيا خو به ډير کفار مسلمان ومنلی شي.

دوهم جواب: هر سړی د خپل عقل په مقدار مکلف وي، نو د وينزې جواب د واقعې مطابق صحيح وو ليکن په هغې کې عقل هم دومره وو، نو چې جواب د هغې د عقل په مقدار وو نو ځکه يې ايمان ومنلی شو، لهذا د دينه د الله في السماء کيدلو باندې استدلال نشي کيدی، لکه څنګه چې د حذيفه رضی الله عنه څخه روايت دی چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي چې يو کس ته مرګ راغی نو کله چې يې د زندګي څخه اميد ختم شو نو هغه د خپل کور والا ته نصيحت وکړو (بخاري ج ۱صـ۴۹۵) نو په دې روايت کې د دې کس د الله د ويرې له وجې د داسې خلاف شريعت وصيت کولو، بيا د ده د کور والا په هغه باندې عمل کولو ده لره د الله مخې ته د حاضرې څخه بچ نه کړی شو، ليکن چونکه په ده کې عقل هم

د ومره وو، لهذا دده دا عمل چونکې دده د عقل په مقدار وو، ومنلی شو او بښنه ورته وشوه، نو لکه څرنګه چې ددې واقعې څخه د خلاف شریعت وصیت جواز نه ثابتیږي نو دغه رنګه د جاریه د روایت څخه استدلال نه صحیح کیږي، همدغه توجیه شاه ولي الله هم کړې ده، چنانچه شاه ولی الله المتوفي ۱۱۷۶ هـ) فرمايي: وَقومٌ نقصت عُقُولهمْ كأكثر الصّبيان والمعتوهين والفلاحين والأرقاء، وكثير يزعمهم النّاس أنهم لَا بَأْس بهم، وَإِذا نقح حَالهم عَن الرسوم بقوا لَا عقل لَهُم، فَأُولَئِك يُكْتَفى من إِيمَانهم بِمثل مَا اكتفى رَسُول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ من الْجَارِيَة السَّوْدَاء سَأَلَهَا "أَيْن الله" فَأَشَارَتْ إِلَى السَّمَاء، إِنَّمَا يُرَاد مِنْهُم أَن يتشبهوا بِالْمُسْلِمين لِئَلَّا تتفرق الْكَلِمَة (حجة الله البالغة صـ ۲۰۵، باب طبقات الامة باعتبار الخروج الى الكمال المطلوب او ضده)

یعنې فرمايي چې بعض خلک کم عقل دي لکه اکثر ماشومان او کم عقل خلق او زمیداران او وينزې غلامان خو چې کله دهغوي حال د رسم او رواج څخه صفا کړی شي، نو معلومه به شي چې د رسوم او د رواج څخه بغیر د عقل نه بالکل خالي دي، نو دهغوي په ایمان باندې داسې اکتفاء کولی کیږي لکه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم چې د حبشې وينزې څخه تپوس وکړو چې (این الله) نو رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغې په جواب (فی السماء) باندې اکتفاء وکړه.

(۳) امام ابو العباس القرطبي رحمه الله د حديث د جاريې په تشريح کې فرمايي أن قول الجارية (فی السماء) ليس على ظاهره باتفاق المسلمين فيتعين أن يعتقد فيه أنه معرض التأويل المتأولين وأن من حمله على ظاهره فهو ضال من الضالين (المفهم لما اشكل من تلخيص كتاب مسلم ج ۲صـ ۱٤۵) چې د جاریه جواب (فی السماء) اتفاقا په ظاهر نه دی حمل، پس اعتقاد به ددې په تاویلي معنی باندې کیږي او چا چې دا په ظاهر باندې حمل کړو نو هغه د ګمرهانو څخه یو ګمراه دی

(۴) د غیر مقلدينو دعوه خو د فوق العرش ده او عرش خو د اسمان نه ډیر وچت دی او تاویل کول د دوي په نیز کفر دی. (تحفة السجن صـ ۲۷، لعبد السلام رستمي) نو دا حديث خو د دوي د دعوې څخه مخالف دی.

(۵) ددې حديث په سند کې وکيع بن عُدس مجهول راوي دی او دده څخه په روايت کولو کې يعلی بن عطاء متفرد دی، (تقريب ضمن التحرير ج ٤صـ ٦١)

همدرانګه ددې حدیث په سند کې حماد بن سلمه راوي دی او دده خبره په مسئله د صفاتو کې بالکل حجت نده، د حماد بن سلمه په زمانه کې عبدالکريم بن أبي العوجاء او المدعو بابن حماد دده په احادیثو کې تدسیس او دروغ داخل کړي دي، (وګوره مقدمه الاسماء والصفات، همدارنګه تهذیب التهذیب)

(۳) که تنزلاً، د (أين) په ذريعه سوال کول جايز ومنو نو بيا به (أين) د مکان لپاره نه وي بلکې د مکانت او مرتبې لپاره به وي، چې زمونږ د رب مرتبه کومه ده؟ په جواب کې د (فی السماء) څخه د الله عالي شان ته اشاره ده، لکه عربان چې وايي چې فلان في السماء. د زيات تفصيل لپاره شرح المسلم للنووي ته رجوع وکړئ.

(۴) که کوم غير مقلد د اهل سنت والجماعت څخه پوښتنه وکړي چې أين الله ؟ نو اهل سنت والجماعت دی ورته په جواب کې ووايي چې الله موجود بلامکان.

## دمعيت علمي او معيت ذاتي مسئله:

اهل السنت والجماعت فرمايي چې الله تعالى په اعتبار د ذات سره بلامکانه موجود دی (اَللّٰهُ مَوْجُوْدٌ بِلَامَکَانٍ) او په اعتبار د علم سره په هر ځای کې موجود دی.

جهميه وايي چې الله تعالى مع الکيف په هر ځای کې موجود دی حالانکې دا قول مستلزم دی حلول د الله تعالى لره په هر ځای کې او دا د حلوليه وو مسلک دی او حلوليه د دايرې د اسلام څخه خارج دي.

فانقيل: چې الله تعالى په اعتبار دعلم سره په هر ځای کې موجود دی نو ددې څخه خو دا لازميږي چې دالله تعالى علم په هر ځای کې حلول کړی دی.

قلنا: دا اعتراض ابن العربي رحمه الله په عارضة الاحوذي کې ذکر کړی دی او بيا يې په جواب کې فرمايلي دي چې دالله تعالى په اعتبار دعلم سره په هر ځای کې کيدلو معنی داده چې: لَا يَعْزُبُ عَنْ عِلْمِهٖ مِثْقَالُ ذَرَّةٍ..

ابو حيان الاندلسي رحمه الله فرمايي چې: وَهُوَ مَعَكُمْ أَيْنَمَا كُنْتُمْ اى بالعلم والقدرة، قال الثورى رحمه الله: المعنى علمه معكم، هٰذه آية اجمعت الامة على هٰذا التأويل فيها وانها لاتحمل على ظاهرها من المعية بالذات).

امام بیهقي رحمه الله فرمايي چې: **مَعْدَانُ الْعَابِدُ رحمة الله عليه، قَالَ: سَأَلْتُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيَّ رحمة الله عليه عَنْ قَوْلِ اللهِ عَزَّوَجَلَّ: {وَهُوَمَعَكُمْ} [الحديد: ۴] قَالَ: عِلْمُهُ** (كتاب الاسماء والصفات صـ ۳۹۸)

علامه الوسي رحمه الله فرمايي چې: تمثيل لاحاطة علمه تعالى بهم (روح المعانى تحت هذه الاية)

۲- معيت ذاتي په دوه قسمه دي ۱- ذات مع الكيف، ۲- ذات بلاكيف، حلوليه وايي چې الله تعالى په اعتبار د ذات مع الكيف په هر ځای کې دی او بعضې صوفيه کرام فرمايي چې الله تعالى په اعتبار د ذات بلا کيف په هر ځای کې دی دا د صوفيه کرامو ذوقي مسلک دی، حضرت تهانوي رحمه الله يې په بوادر النوادر صـ ۵۱، کې تفصيل کړی دی.

د اهل السنت والجماعت مسلک دادی چې معيت علمي ثابت دی او معيت ذاتي بلاکيف يې د بعضې صوفياء کرامو څخه رانقل کړي دي.

**د سُني او دغير مقلد مختصر مباحثه :**

**غيرمقلد:** دالله ﷻ ديد معنی مراده معلومه ده

**اهل سنت:** چې معلومه ده مهرباني وکړئ بيان ئې کړه؟

**غيرمقلد:** د يد معنی لاس ده،

**اهل سنت:** داخو دی دعربي څخه په پښتو تعبير وکړو چې ترجمه ورته وايي پدې کې خو اختلاف نشته معنی مراده کنه او حقيقت دی بيان نه کړو ځکه چې که يو عربي چې په بله ژبه نه پوهيږي هغه درته ووايي چې يد څخه معنی ده ؟ نو هغه ته خو ته داسې نه شې ويلی چې يد لاس ته وايي مهرباني وکړه دالله تعالى د يد او دلاس کنه او معنی مراده راته بيان کړه ، دالله ﷻ ديد او دلاس کنه او معنی مراده څه ده؟

**غيرمقلـد:** دلغتو په کتابونو کې ديد او دلاس معنی جارحه مخصوصه راغلی ده، چې دهډوکو، دويني، اودغوښې او درګونو څخه مرکب دی.

**اهل سنت** :که دادکتبو دلغتو معنی مراد وي نو بيا خو ته دمجسمو څخه هم بدترشوی، الله ﷻ دې مرکب کړو او مرکب محتاج وي

**غيرمقلد:** څه وايم چې دالله لپاره يد او لاس بلاکيف دی

**اهل سنت:**(۱) دا دبلاكيف قيد په كوم ايت او يا په كوم حديث كې راغلى دى؟ دأمتي قول به په جواب كې نه پيش كوئ.

(۲) دلغتوپه كتابونو كې خوبلاكيف يدنه دى ذكرشوى او نه يد بلاكيف ديد حقيقي لغوي معنى ده اونه دأدم ﷺ څخه تر دې دمه پورې چاته يدبلاكيف معلوم دى نوتاڅرنګه په اول كې ويلي ووچې ددې معنى مراده معلومه ده؟ چې هغه ظاهري ،لغوي او حقيقي معنى ده نو د يد حقيقي او لغوي معنى جارحه مخصوصه ده او يد بلاكيف ديد لپاره معنى موضوع له عند العرب نه ده، نو دبلاكيف په صورت كې يد په خپله حيقي معنى باندې پاتې نشو (۳) بلاكيف څه معنى؟

**غيرمقلد:** په بلاكيف كې دكيف اوله معنى مراده ده يعنى بلاتشخصه

**اهل سنت:** داخوئى بيا معنى معلومه نه شوه بلاتشخصه يد چاته معلوم دى؟او په كوم كتاب دلغتو كې راغلي دي ؟

**غيرمقلد:** سهوه شوم په بلاكيف كې دكيف دوهمه معنى مراده ده يعنى بلاحقيقته.

**اهل سنت:** (۱) مخكې دى وويل چې معنى يې معلومه ده او اوس وائى چې معنى او حقيقت بالكل نه لري نوداڅرنګه دليونيانو خبرې كوى؟ چې حقيقت او معنى نه لري نو معلوم څرنګه شو؟

(۲) همدارنګه امام مالک رحمه الله فرمايي چې والكيف مجهول، نو ددې څخه خو معلوميږي چې كيف شته خو معلوم نه دى او ته وايې چې كيف نشته.

**غيرمقلد:** مونږ ديد ، دوجهې، او دساق څخه حقيقي او لغوي معناګانې مراده وو او ددې سره سره نفې دتجسيم كوو او دتجسيم قايل ته ګمراه وايو.

**سني:** ديد حقيقي معنى جارحه مخصوصه ده چې دغوښو، هډوكو، رګونو وغيره څخه مركبه ده، نو چې دا معنى مراده شوه ضرور قول په جسميت راغلو.

**غيرمقلد:** كله چې ديد او دوجهې نسبت مخلوق ته وشي نو بيا يې معنى جارحه مخصوصه ده، چې دغوښو، رګونو ،هډوكو او دوينې څخه مركبه ده ، ليكن چې نسبت يې خالق ته وشي نو بيا يې معنى جارحه مخصوصه نه ده .

**سني:** بیا خو دلفظ د «ید» دخپلې معنی موضوع له عند العرب څخه واړولو او ستاسو مسلک دادی چې دنصوصو دصفاتو خبریهٔ څخه معاني حقیقیه فی لغة العرب مرادې دي او معنی حقیقي فی لغة العرب جارحه ده، حاصل دا چې لفظ د «ید، د «وجهې «او د «ساق «دې په خپله حقیقي معنی باندې پرینښودلو، ځکه چې علامة الحقیقة التبادر او د «ید «متبادره معنی جارحه ده.

**غیرمقلد:** زه الله تعالی ته جارحه نه ثابته وم.

**سني:** فَنَقَضْتُ ما ابرمت كَالَّتِي نَقَضَتْ غَزْلَهَا أَنْكَاثًا، ځکه چې یو طرف ته وایې چې زه الله تعالی ید بالمعنی الحقیقي الظاهري ثابته وم او بیا وایې چې جارحه نه ثابته وم، یعنې دید معنی حقیقي نه ثابته وم.

## قرآن مخلوق نه دی

د اهل سنت والجماعت په نیز قرآن مخلوق نه دی، ځکه چې قرآن د لفظ او دمعنی څخه عبارت دی (القران مجموع اللفظ والمعنی) لفظ یې مخلوق دی او معنی یې غیر مخلوق ده، فلهذا قرآن غیر مخلوق شو.

فانقیل: کومه معنی؟ هغه چې د الله تعالی پورې قایمه ده او که هغه معنی چې زمونږ سره ده؟

قلنا: معنی ګاني دوه نه دي، بلکې معنی یوه ده، هغه چې الله تعالی اراده کړې وه چې پدې الفاظو وربانديې دلالت وکړي، ځکه چې معنی عبارت ده عن المدلول الذی یقصده المتکلم، وقد یکون قطعیاً.

فانقیل: چې بیا خو قرآنونه دوه شو یو لفظ او بل معنی؟

قلنا: قرآن یو دی چې لفظ او معنی لري یعنې، مجموع اللفظ والمعنی؟

فانقیل: معاني د الفاظو پورې قایم دي، نو چې الفاظ حادث دي معاني هم حادث شو؟

قلنا: المعاني لیس جوهراً هو محل، ولیس عرضاً یقوم فی محل، بل هی مدلولات نفسیة ای اعتباریة.

قلنا: چې قرآن ټول مخلوق دی؟ او که یو شی یکې غیر مخلوق دی؟

قلنا: قرآن مجموعه د دال او مدلول ده، دال حادث او مدلول قدیم او غیر مخلوق دی او د قران دوه اطلاقه دي، که الفاظ عربیه مراد شي نو حادث دی او که هغه معاني مراد شي چې مدلولات د الفاظو دي نو قدیم دی.

فانقیل: چې بیا خو نیم قرآن حادث شو او نیم قدیم شو ؟

قلنا: قرآن کل نه دی چې دوه أجزاء ولري، الفاظ+ معاني، بلکې کلي دی دوه جزئیات لري الفاظ او معاني او یا داسې ووایه چې مشترک دی کله ترینه الفاظ مرادیږي او کله معاني.

فانقیل: چې د الله تعالی پورې کلام لفظي قایم نه شو نو بیا خو اخرس شو (معاذ الله)

قلنا: خرسٌ او نطقٌ د ناطق صفات دي، د متکلم نه دي او د الله تعالی صفت کلام دی نطق نه دی، ګوره حجر(کانړی) ته، نه اخرس دی او نه ناطق بلکې متکلم دی، لانه یسبح والتسبیح کلام.

نطق چې کله په مدلول نفسي دلالت وکړي نو بیا کلام شي، نو د نطق او کلام په مابین کې عموم او خصوص من وجه دی، تسبیح الحجر کلام دی نطق نه دی او صورت الطبل نطق دی کلام نه دی او تسبیح لفظي د انسان نطق هم دی او کلام هم دی.

## ۲-په صفونوکې د اوږو لګول سنت دي نه د پښو او فاصله بین القدمین:

(۱) الله تعالی فرمایي: واتخذوا من مقام ابراهیم مصلی، نو اصل دا دی چې په مقام ابراهیم کې ودریږي او لمونځ وکړئ او که ازدحام وي نو بیا د مقام ابراهیم سره نږدې دا لمونځ اداکیږي او په مقام ابراهیم چې د ریږي نو د اهل سنت والجماعت په شان به دې د پښو په مابین کې څلور خورې ګوتې او زیات نه زیات یو ه لویشت فاصله راځي.

(۲) عن ابن عمر رضي الله عنهما- أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «أَقِيمُوا الصُّفُوفَ وَحَاذُوا بَيْنَ الْمَنَاكِبِ. (هـ ابوداود ج ۱ ص ۱۰۴).

د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه څخه روایت دی، چې رسول الله ﷺ فرمائي چې صفونه برابر کړئ او اوږې سره برابرې کړئ.

(۳) عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ رضي الله عنه، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَخَلَّلُ الصَّفَّ مِنْ نَاحِيَةٍ إِلَى نَاحِيَةٍ يَمْسَحُ صُدُورَنَا وَمَنَاكِبَنَا (ابوداود ج ۱ ص ۱۰۴).

د حضرت براء بن عازب رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ به په صفونو کې راننوتلو د یو طرف او بل طرف څخه او زمونږ سینې او اوږې به یې برابرولې.

(۴) عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ ﷛، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «أَقِيمُوا صُفُوفَكُمْ، فَإِنِّي أَرَاكُمْ مِنْ وَرَاءِ ظَهْرِي، وَكَانَ أَحَدُنَا يُلْزِقُ مَنْكِبَهُ بِمَنْكِبِ صَاحِبِهِ، وَقَدَمَهُ بِقَدَمِهِ. (بخاری ج۱ص ۱۰۰).

حضرت انس بن مالک ﷛ فرمائي چې دلمانځه لپاره تکبیروشو، نورسول الله ﷺ زمونږ طرفته متوجه شواووی فرمایل چې صفونه موبرابرکړئ، اونښتي ودرېږئ، بې شکه چې زه تاسو دشاله طرف گورم اود حضرت انس ﷛ څخه په بل روایت کې دي چې مونږ به په صفونو کې اوګه داوګې دخپل ملګري سره اوقدم دقدم سره لګولو.

(۵) عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ ﷛، عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «رُصُّوا صُفُوفَكُمْ وَقَارِبُوا بَيْنَهَا وَحَاذُوا بِالْأَعْنَاقِ.(ھ ابوداود ج ۱ص ۱۰٤).

حضرت انس ﷛ درسول الله ﷺ څخه روایت کوي چې صفونه ونښلوئ او خپل څټونه یو دبل سره برابر کړئ.

(۶) عَنْ أَبِي الْقَاسِمِ الْجُدَلِيِّ رحمه الله، قَالَ: سَمِعْتُ النُّعْمَانَ بْنَ بَشِيرٍ ﷛، يَقُولُ: أَقْبَلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى النَّاسِ بِوَجْهِهِ، فَقَالَ: «أَقِيمُوا صُفُوفَكُمْ» ثَلَاثًا، «وَاللهِ لَتُقِيمُنَّ صُفُوفَكُمْ أَوْ لَيُخَالِفَنَّ اللهُ بَيْنَ قُلُوبِكُمْ» قَالَ: فَرَأَيْتُ الرَّجُلَ يَلْزَقُ مَنْكِبَهُ بِمَنْكِبِ صَاحِبِهِ وَرُكْبَتَهُ بِرُكْبَةِ صَاحِبِهِ وَكَعْبَهُ بِكَعْبِهِ. (ابوداود ج ۱ص ۱۰٤).باب تسوية الصفوف.

حضرت ابو القاسم الجدلی فرمائي چې ما دنعمان بن بشیر څخه واوریدل چې فرمایلی یې چې رسول الله ﷺ مونږته متوجه شو، نودرې ځلې یې وفرمایل چې خپل صفونه برابرکړئ، په الله ﷻ قسم دی چې تاسو به یاصفونه برابر وئ اویابه الله ﷻ ستاسو زړونه مخالف کړي.

حضرت نعمان بن بشیر رحمه الله فرمائي چې ددینه وروسته ما ولیدل چې خلکو به اوږه دخپل ملګري سره له اوږې سره لګوله او د ملګري د زنګون سره به یې خپل زنګون لګولو او د ملګري دخنګري سره به یې خپل خنګري لګولو.

(۷) عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ ﷛، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُسَوِّي صُفُوفَنَا، فَخَرَجَ يَوْمًا فَرَأَى رَجُلًا خَارِجًا صَدْرُهُ عَنِ الْقَوْمِ، فَقَالَ: لَتُسَوُّنَّ صُفُوفَكُمْ أَوْ لَيُخَالِفَنَّ اللهُ بَيْنَ وُجُوهِكُمْ.(ھ ترمذی ج ۱ص ۵۳).

دحضرت نعمان بن بشير ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ به زمونږ صفونه برابرول، يوه ورځ راووتلو نويو سړي يې وليدلو چې سينه يې دصف څخه وتلې وه، نو رسول الله ﷺ وفرمايل چې خامخا به تاسو ياصفونه برابروئ او که نه الله ﷻ به ستاسو په مخونو کې مخالفت واچوي.

(٨) عَنْ مَالِكِ بْنِ أَبِي عَامِرٍ الْأَنْصَارِيِّ ﷺ، أَنَّ عُثْمَانَ بْنَ عَفَّانَ ﷺ، كَانَ يَقُولُ فِي خُطْبَتِهِ: «إِذَا قَامَتِ الصَّلَاةُ، فَاعْدِلُوا الصُّفُوفَ، وَحَاذُوا بِالْمَنَاكِبِ (اه موطاء امام محمد ص ٨٨). حضرت عثمان بن عفان به پخپله خطبه کې فرمايل چې کله چې دلمانځه لپاره اقامت وکړی شي، نو صفونه برابر کړئ او اوګې سره سيده کړئ.

(٩) عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ ﷺ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَلَا تَصُفُّونَ كَمَا تَصُفُّ الْمَلَائِكَةُ عِنْدَ رَبِّهِمْ جَلَّ وَعَزَّ»، قُلْنَا وَكَيْفَ تَصُفُّ الْمَلَائِكَةُ عِنْدَ رَبِّهِمْ؟ قَالَ: «يُتِمُّونَ الصُّفُوفَ الْمُقَدَّمَةَ وَيَتَرَاصُّونَ فِي الصَّفِّ» (ابوداؤد ج ١ص ١٠٤) باب تسوية الصف.

رسول الله ﷺ مونږ ته وفرمايل چې ايا تاسو دملايکو په شان صفونه نه جوړه وئ؟.

مونږ عرض وکړو چې يارسول الله ﷺ ملايکې څرنګه صفونه جوړه وي؟

نبي کريم ﷺ وفرمايل چې مخکيني صفونه ډکوي او په صفونو کې يو دبل سره ننښتې درېږي.

نو په حديثونو کې درې قسمه الفاظ استعمال شول: اول (تراص): ددې معنا ننښلول. دوهم (التصاق). دريم (الزاق) ددې معنا هم ننښلول او لګول دي. اود څلورو شيانو ننښلول ذکر شوي دي: د قدم، ښنګري، زنګون اود اوږې. اود دې څلورو واړو لګول ممکن نه دي. که څوک يې د امکان دعوه کوي، نو په مشاهده دې يې وښايي. لا مذهبان صِرف د پښو يوه يوه ګوته سره ننښلوي اود ګوتو د ننښلولو ذِکر په حديث کې نشته.

هر کله چې لغوي معني ممکنه نه ده، نو د حديثو شارحان رحمهم الله ليکي چې: دلته د دې الفاظو څخه قرب او محاذات مراد دي. محمد انورشاه کشميري رحمه الله فرمائي چې: قال الحافظ المراد بذالك المبالغة فى تعديل الصف و سد خلله قلت وهو مراده عند الفقهاء الاربعة اي ان لا يترک فى البين فرجة تسع فيها ثالث. فيض الباري ج ١ صـ ٢٣٦ يعني د څلورو واړو فقهاؤ په نيز معني دا

ده چې د دوُو کسانو په مینځ کي به دومره فاصله نه وي چې دريم کس پکي ځائ شي، محمد بن صالح عثيمين فرمايي چې: ليس المراد بالمراصة، المراصة التي تشوش على الاخرين وانما المراد منه ان لايكون بينك وبينه فرجة. (شرح رياض الصاليحن ج ا صـ ۱۲۴۸)

**فقه حنفي :** وينبغي ان يكون بين قدميه اربع اصابع في قيامه. [فتاوي عالمگيري ج ۱ صـ ۷۳ الفصل الثالث في سنن الصلوة رد المختار ج ۱ صـ ٦٣].

**فقه شافعي:** و يسن ان يفرق بين قدميه بشبر. [اعانة الطالبين ج ۱ صـ ۱۳٥ حاشيه الجمل ج ۱ صـ ۲٤۷ تحفة المحتاج في شرح المنهاج ج ٥ صـ ۳۲۱ نهاية المحتاج ج ٤ صـ ۸٥].

**فقه مالكي:** يندب تفريج القدمين بان يكون المصلي بحالة متوسطة في القيام بحيث لا يضمهما ولا يفرجهما كثيراً، [فقه العبادات مالكي ج ۱ صـ ۱٦۱].شرح خليل للخرشي ج ۳صـ ٤٥٥، منح الجليل ج ۲صـ ۹٦)

**فقه حنبلي:** وَكَانَ ابْنُ عُمَرَ رضي الله عنه لَا يُفَرِّجُ بَيْنَ قَدَمَيْهِ، وَلَا يَمَسُّ إِحْدَاهُمَا بِالْأُخْرَى، وَلَكِنْ بَيْنَ ذَلِكَ، لَا يُقَارِبُ وَلَا يُبَاعِدُ.( المغني لابن قدامه ج ۳ صـ ۱۲۱ والقول الراجح مع الدليل ج ۲ صـ ۸٥].

نو د حنفي فقهې مطابق د خپو په مینځ کي کم از کم ځلور گوتې او زيات نه زيات يوه وليشت فاصله پکار ده. او د شافعي فقهې مطابق يوه وليشت فاصله پکار ده، او د فقهې مالکي او د فقه حنبلي مطابق طبعي فاصله پکار ده. په فقه حنفي کي د ځلورو گوتو د فاصلې ذکر د اقل مقدار بيان دی. اکثر يوه وليشت دی. نو تقريباً د ځلورو واړو فقهو مطابق د پښو په مینځ کي د فاصلې مقدار کم از کم ځلور گوتې، او زيات نه زيات يوه وليشت شوه، د لا مذهبو فاصله بالکل دومره وي لکه د گنج دروازه او په دې کې دا لاندې نقصانات دي.

۱) د پښو د دومره آزادولو سره د اوگو په مینځ کي فاصله زياتيږي.

۲) غير مقلدين په قيام کي پښې ازادوي او په سجده او تشهد کې يې راټولوي، چې دا د مونځ خشوع ته نقصان رسوي.

۳) په صفونو کي د دومره پراخه دريدلو سره د لسو کسانو ځائ په پنځو کسانو ډکيږي.

۴) دومره ازاديدل او د څنګ ملګري سره د پښو لګول د خشوع د ختميدلو سبب دی.

۵) دومره پراخه دريدل د کبر او د بي ادبۍ علامه ده لا مذهبان د يو بادشاه او د افسر په مخکي داسي دريدل بي ادبي ګڼي، او د رب العالمين په مخکي دا بي ادبي کوي.

۶) په دومره پراخه دريدلو باندي خپله د لامذهبانو بعضي مشرانو هم رد کړي دي، مولوي عبدالله روپړي ليکي چي: پښې ډيري پراخه ږدي او دريږئ چي اوږئ يې نه لږيږي دوي غلطي کوی ځکه چي په دې حديث کي لکه څرنګه چي د قدم دلګولو ذکر دی نو همدارنګه پکې د اوږو دلګولو ذکر هم دی.[ وګوره فتاوي علماء حديث. ج ۱ ص ۲۱ و ج ۴ ص ۲۶۵]

۷) محمد انورشاه رحمه الله فرمائي چي: د صحابه ؤ او د تابعينو او د جمهورو سلفو څخه هيڅ داسې روايت نشته چي په هغي کې راغلي وي. چې د جماعت په مانځه کي د پښو په مابين کي زياته فاصله راولئ. او په انفرادي مونځ کي کمه فاصله راولئ. د فاصلې په اعتبار د جماعت د مونځ او د انفرادي مونځ په مينځ کي فرق د لامذهبو ايجاد دی، فيض الباري ج ۲ ص ۲۳۷

## ۳-دلمانځه څخه وروسته په اجتماعي طريقه باندې دعا اود لاسونو اوچتول مستحب دي:

(۱) أَبِي أُمَامَةَ ﷺ، قَالَ: قِيلَ يَا رَسُولَ اللهِ! أَيُّ الدُّعَاءِ أَسْمَعُ؟ قَالَ: جَوْفَ اللَّيْلِ الآخِرِ، وَدُبُرَ الصَّلَوَاتِ الْمَكْتُوبَاتِ.( ترمذی ج ۲ص ۱۸۷).

د حضرت ابو امامة ﷺ څخه روايت دی، فرمائي چي: يو چا له رسول الله ﷺ څخه سوال وکړو چي الله ﷻ کومه دعا ښه قبلوي ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل چي دشپې په اخره حصه کي اود فرض لمانځه څخه وروسته.

(۲) عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ ﷺ، قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَلَّمَ مِنَ الصَّلَاةِ، قَالَ: «اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي مَا قَدَّمْتُ وَمَا أَخَّرْتُ، وَمَا أَسْرَرْتُ وَمَا أَعْلَنْتُ، وَمَا أَسْرَفْتُ وَمَا أَنْتَ أَعْلَمُ بِهِ مِنِّي، أَنْتَ الْمُقَدِّمُ وَأَنْتَ الْمُؤَخِّرُ، لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ». (ابوداود ج ۱ص ۲۱۹).

دحضرت علی ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به چي د لمانځه څخه فارغ شو نو دا دعا به يې کوله چي اللّٰهُمَّ اغفرلي... الي اخر الحديث.

(۳) عن الْبَرَآءِ رضي الله عنه «أَنَّهُ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ يَقُولُ بَعْدَ الصَّلَاةِ: رَبِّ قِنِي عَذَابَكَ يَوْمَ تَبْعَثُ عِبَادَكَ» (مسلم بحواله نيل الاوطار ج ۲ ص۳۱۵) .

حضرت براء بن عازب رضي الله عنه فرمائي چې رسول الله ﷺ به دلمانځه څخه وروسته داسې دعاکوله چې رَبِّی قنی عذابک . . .

(۴) وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رضي الله عنها أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ يَقُولُ «إِذَا صَلَّى الصُّبْحَ حِينَ يُسَلِّمُ: اللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ عِلْمًا نَافِعًا، وَرِزْقًا طَيِّبًا، وَعَمَلًا مُتَقَبَّلًا» (ابن ماجه ص١٦٦/ مسند احمد/ ج ٦/ ص ٣٠٥)

رسول الله ﷺ به چې دسهارلمونځ وکړونوداسې دعابه يې کوله چې اللّٰهُمَّ اني اسئلک . . . .

(۵) عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ رضي الله عنه، أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . . . وَقَالَ: «يَا مُعَاذُ! . . . "أُوصِيكَ يَا مُعَاذُ لَا تَدَعَنَّ فِي دُبُرِ كُلِّ صَلَاةٍ تَقُولُ: اللّٰهُمَّ أَعِنِّي عَلَى ذِكْرِكَ، وَشُكْرِكَ، وَحُسْنِ عِبَادَتِكَ. (ابوداود /ج/١ /ص ٢٢٠/ نسائی /ج ١ص ١٩٢/ مسند احمد/ ج/٥/ ص٢٤٧).

رسول الله ﷺ حضرت معاذ رضی الله تعالی عنه ته وفرمايل چې ای معاذه زه تاته وصيت کوم چې دهرلمانځه څخه وروسته دادعامه پريږده چې اللّٰهُمَّ اعني . . .

(٦ ) عَنْ سَلْمَانَ رضي الله عنه، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ رَبَّكُمْ تَبَارَكَ وَتَعَالَى حَيِيٌّ كَرِيمٌ، يَسْتَحْيِي مِنْ عَبْدِهِ إِذَا رَفَعَ يَدَيْهِ إِلَيْهِ، أَنْ يَرُدَّهُمَا صِفْرًا». ( ترمذی ج۲ص ١٩٦ اوابوداوذج ١ص ٢١٦) .وابن ماجه ص ٢٧٥).

رسول الله ﷺ فرمائي چې الله تعالی ډيرحياداراو جواد دی، د خپل بنده څخه حياکوي، چې کله ورته لاسونه اوچت کړي اوبيرته يې خالي ورته واپس کړي.

(۷) وَعَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا رَفَعَ يَدَيْهِ فِي الدُّعَاءِ لَمْ يَحُطَّهُمَا حَتَّى يَمْسَحَ بِهِمَا وَجْهَهُ. (ترمذی ج۲ص ١٧٦). رسول الله ﷺ به چې په دعاء کې لاسونه اوچت کړل، نوبيرته به يې ترهغې پورې نه راواپس کول ترڅو به يې چې په مخ نه وو راکاږلي.

(۸) وَعَنِ الْفَضْلِ بْنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنهما قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «الصَّلَاةُ مَثْنٰى مَثْنٰى - تشهد فِي كل رَكْعَتَيْنِ وَتَخَشُّعٌ وَتَضَرُّعٌ وَتَمَسْكُنٌ ثُمَّ تُقْنِعُ يَدَيْكَ يَقُول: تَرْفَعُهُمَا إِلٰى رَبِّكَ مُسْتَقْبِلًا بِبُطُونِهِمَا وَجْهَكَ وَتَقُولُ: يَا رَبِّ يَا رَبِّ وَمَنْ لَمْ يَفْعَلْ ذٰلِكَ فَهُوَ كَذَا وَكَذَا». (ترمذی ج ۱ ص ۸۷).

رسول الله ﷺ فرمائي چې دهر دوو رکعتونو څخه وروسته التحيات ده او دعاجزۍ او دمسکينۍ ظاهرول دي او دلاسونو پورته کول دي.

حضرت فضل رحمه الله فرمائي چې ددې مطلب دا دي چې دالله ﷻ په حضور کې داسې لاسونه اوچت کړئ چې ورغوي يې ځانته مخامخ کړئ او په دعا کې ووائي چې يارب! يارب! چاچې داسې ونکړه نو هغه دی داسې داسې وي.

۹- رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي چې: ( لا يجتمع ملأ فيدعوَ بعضُهم و يؤمِّنُ بعضُهم الآ اجابهُمُ اللهُ [كنزالعمّال/ رقم ۳۳٦٤ كتاب الاذكار ج ۲/ص۴۷ ] وهو دليل للدّعاء بالهيئة الاجتماعيةِ.

## دمتعددو محدثينو او فقهاؤ څخه دمانځه وروسته ددعا ثبوت

۱۰- امام البخاري په صحيح البخاري ج ۲ص ۷۲ ) کې باب قائم کړی دی په نوم د (باب الدعاء بعد الصلوة) ددې په تشريح کې حافظ ابن حجر فرمايي: قَوْلُهُ بَابُ الدُّعَاءِ بَعْدَ الصَّلَاةِ) أَيِ الْمَكْتُوبَةِ وَفِي هٰذِهِ التَّرْجَمَةِ رَدٌّ عَلٰى مَنْ زَعَمَ أَنَّ الدُّعَاءَ بَعْدَ الصَّلَاةِ لَا يُشْرَعُ. (فتح البارى ج۱۱ص ۱۳۳، كتاب الدعوات، دارالمعرفة ، بيرت)

۱۱- امام نسائي په خپل كتاب السّنن الكبرى کې باب قائم کړی دی په نوم د( مايستحب من الدعاء دبر الصلوة المكتوبات (السنن الكبرى للنسائى ج ۹ص ۴۷، كتاب عمل اليوم والليـة ، مؤسسة الرسالة، بيروت)

۱۲- امام عبدالرزاق په خپل مصنف کې باب قائم کړی دی په نوم د( باب مسح الرجل وجهه بيده اذا دعا (مصنف عبدالرزاق ج ۲ص ۲۵۲ ، كتاب الصلوة، المتكتبة الاسلامى بيروت)

۱۳- امام ابن حبان په صحیح ابن حبان کتاب الصلوة باب صفة الصلوة کښ باب قائم کړی دی په نوم د (ذکر ما یستحب للمرء ان یسأل الله جل وعلا فی عقیب الصلوة التفضل علیه بمغفرة ماتقدم من ذنبه ، ج ۵صـ ۳۷۲،)

امام ابن خزیمه په خپل کتاب صحیح ابن خزیمه کښ باب قائم کړی دی په نوم د(باب جامع ا لدعاء بعد السلام فی دبر الصلواة ( صحیح ابن خزیمه ج ۲صـ ۳۶۶، کتاب الصلوة قبل رقم الحدیث ۷۴۳)

۱۵- امام ابن منذر په خپل کتاب ،الاوسط فی السنن والاجماع والاختلاف ، کښ باب قائم کړی دی په نوم د( ذکر جامع الدعاء بعد التسلیم(الاوسط للامام ابن منذر ج ۳صـ ۲۲۵، کتاب الصفة الصلوة )

۱۶- امام بیهقی په خپل کتاب الدعوات الکبیر کښ باب قائم کړی دی په نوم د ( باب القول والدعاء والتسبیح فی دبر ا لصلواة المکتوبة بعد السلام (الدعوات الکبیر للبیهقی ج ۱صـ ۱۸۰)

او په خپل بل کتاب شعب الایمان کښ فرمایی چښ : وَمِنْهَا: أَنْ يَرْفَعَ الْيَدَيْنِ حَتَّى يُحَاذِيَ بِهِمَا الْمَنْكِبَيْنِ إِذَا دَعَا. وَمِنْهَا: أَنْ يَخْفِضَ صَوْتَهُ بِالدُّعَاءِ. وَمِنْهَا: أَنْ يَمْسَحَ وَجْهَهُ بِيَدَيْهِ إِذَا فَرَغَ مِنَ الدُّعَاءِ (شعب الایمان ج ۲صـ ۳۷۵، ذکر فصول فی الدعاء یحتاج الی معرفتها)

۱۷- امام بوصیري په خپل کتاب ، اتحاف الخیرة المهرة، کښ باب قائم کړی دی په نوم د( باب فی الذکر والتسبیح بعدالصلوة (اتحاف الخیرة المهرة ج ۲صـ ۲۲۵، کتاب افتتاح الصلوة)

۱۸- علامه هیثمی رَحِمَهُ اللَّهُ په خپل کتاب مجمع الزوائد کښ باب قائم کړی دی په نوم د (باب الدعاء عقیب الصلواة ،مجمع الزوائد ج ۱۰صـ ۱۶۷، کتاب الادعیه)

۱۹- امام شافعي رَحِمَهُ اللَّهُ کښ په خپل کتاب (الأم) کښ لیکلي دي چښ : وَأَسْتَحِبُّ لِلْمُصَلِّي مُنْفَرِدًا وَلِلْمَأْمُومِ أَنْ يُطِيلَ الذِّكْرَ بَعْدَ الصَّلَاةِ وَيُكْثِرَ الدُّعَاءَ رَجَاءَ الْإِجَابَةِ بَعْدَ الْمَكْتُوبَةِ (کتاب الأم ج ۱صـ ۱۵۱، باب کلام الامام وجلوسه بعدالسلام)

۲۰- امام نووی رَحِمَهُ اللَّهُ فرمایي : اتَّفَقَ الشَّافِعِيُّ وَالْأَصْحَابُ وَغَيْرُهُمْ رَحِمَهُمُ اللَّهُ عَلَى أَنَّهُ يُسْتَحَبُّ ذِكْرُ اللَّهِ تَعَالَى بَعْدَ السَّلَامِ وَيُسْتَحَبُّ ذَلِكَ لِلْإِمَامِ وَالْمَأْمُومِ وَالْمُنْفَرِدِ وَالرَّجُلِ وَالْمَرْأَةِ وَالْمُسَافِرِ وَغَيْرِهِ وَيُسْتَحَبُّ أَنْ يَدْعُوَ أَيْضًا

بَعْدَ السَّلَامِ بِالِاتِّفَاقِ وَجَاءَتْ فِي هَذِهِ الْمَوَاضِعِ أَحَادِيثُ كَثِيرَةٌ صَحِيحَةٌ فِي الذِّكْرِ وَالدُّعَاءِ قَدْ جَمَعْتُهَا فِي كِتَابِ الْأَذْكَارِ. (المجموع شرح المهذب للامام النووی ج ٣صـ ٤٨٤، كتاب الصلوة)

همدارنګه فرمايي چې: قَدْ ذَكَرْنَا اسْتِحْبَابَ الذِّكْرِ وَالدُّعَاءِ لِلْإِمَامِ وَالْمَأْمُومِ وَالْمُنْفَرِدِ وَهُوَ مُسْتَحَبٌّ عَقِبَ كُلِّ الصَّلَوَاتِ بِلَا خلاف. (المجموع شرح المهذب للامام النووی ج ٣صـ ٤٨٨، كتاب الصلوة)

٢١- علامه ابن الحجر هيتمي الشافعي رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمايي چې: وَيُسَنُّ الدُّعَاءُ وَالذِّكْرُ سِرًّا، وَيَجْهَرُ بِهِمَا بَعْدَ السَّلَامِ الْإِمَامُ لِتَعْلِيمِ الْمَأْمُومِينَ، فَإِذَا تَعَلَّمُوا أَسَرُّوا. (الفتاوی الفقهية الكبرى ، كتاب الصلوة باب شروط الصلوة ج ١صـ ١٥٨)

٢٢- علامه ابن رجب حنبلی رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمايي چې: واستحب ايضا اصحابنا وأصحاب الشافعي رَحِمَهُ اللّٰهُ الدعاء عقب الصلواة وذكره بعض الشافعية اتفاقا ( فتح الباری لابن رجب ج ١صـ ٢٠٩، كتاب الصلوة باب التوجه للقبلة فی الصلوة)

٢٣- علامه موسى ابن احمد حجاوي مقدسی حنبلی رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمايي چې: (وَيَدْعُو الْإِمَامُ (بَعْدَ فَجْرٍ وَعَصْرٍ لِحُضُورِ الْمَلَائِكَةِ) أَيْ مَلَائِكَةِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ (فِيهِمَا فَيُؤَمِّنُونَ) عَلَى الدُّعَاءِ فَيَكُونُ أَقْرَبَ لِلْإِجَابَةِ (وَكَذَا) يَدْعُو بَعْدَ (غَيْرِهِمَا مِنَ الصَّلَوَاتِ) لِأَنَّ مِنْ أَوْقَاتِ الْإِجَابَةِ: أَدْبَارَ الْمَكْتُوبَاتِ (وَيَبْدَأُ) الدُّعَاءَ (بِالْحَمْدِ لِلّٰهِ وَالثَّنَاءِ عَلَيْهِ)... ثُمَّ يُصَلِّي عَلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أوّله وأخره ... (وَيَسْتَقْبِلُ) الدَّاعِي (غَيْرَ إِمَامٍ هُنَا الْقِبْلَةَ) لِأَنَّ خَيْرَ الْمَجَالِسِ: مَا اُسْتُقْبِلَ بِهِ الْقِبْلَةُ. (وَيُكْرَهُ لِلْإِمَامِ) اسْتِقْبَالُ الْقِبْلَةِ (بَلْ يَسْتَقْبِلُ) (الْمَأْمُومِينَ) (وَيُلِحُّ) الدَّاعِي فِي الدُّعَاءِ لِحَدِيثِ... (وَيُكَرِّرُهُ) أَيْ الدُّعَاءَ (ثَلَاثًا) لِأَنَّهُ نَوْعٌ مِنَ الْإِلْحَاحِ (وَ) الدُّعَاءُ (سِرًّا أَفْضَلُ) مِنْهُ جَهْرًا... (وَيَعُمُّ بِهِ) أَيْ بِالدُّعَاءِ...(وَمِنْ آدَابِ الدُّعَاءِ: بَسْطُ يَدَيْهِ وَرَفْعُهُمَا إِلَى صَدْرِهِ) (الاقناع فی فقه الامام احمد بن حنبل، ج ١صـ ١٢٦، كتاب الصلوة ، باب صفة الصلوة ،)

٢٤- علامه منصور ابن يونس بهوتی حنبلی رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمايي چې: (وَيَدْعُو الْإِمَامُ) اسْتِحْبَابًا (بَعْدَ كُلِّ صَلَاةٍ مَكْتُوبَةٍ): لِقَوْلِهِ تَعَالَى {فَإِذَا فَرَغْتَ فَانْصَبْ} [انشراح:٧] خُصُوصًا بَعْدَ الْفَجْرِ وَالْعَصْرِ لِحُضُورِ الْمَلَائِكَةِ فِيهِمَا فَيُؤَمِّنُونَ. وَمِنْ آدَابِ الدُّعَاءِ: بَسْطُ يَدَيْهِ وَرَفْعُهُمَا إِلَى صَدْرِهِ. (شرح منتهی الارادات، ج ١صـ ٢٠٦، كتاب الصلوة باب النية فی الصلوة)

۲۵–امام مالک رَحِمَہُ اللّٰہ فرمایي چي: وكان عامر بن عد الله يرفع يديه بعد لاصلوة يدعوا ولا بأس به اذا لم يرفع جدا (الموطأ للإمام مالک، ج ١صـ ٢٦٣، رقم الحديث ٥٠، رفع اليدين فى الدعاء.

۲٦علامه ابن حاج مالکی رَحِمَہُ اللّٰہ فرمايي چي: وَالسُّنَّةُ الْمَا: بَةُ أَنْ لَا يَـتْرُكَ الـذِّكْرَ وَالـدُّعَاءَ عَقِبَ الصَّلَاةِ. وَمِنْ آدَابِ الدُّعَاءِ أَنْ يُثْنِيَ عَلَى اللَّهِ تَعَالَى بِمَا هُوَ أَهْلُهُ بِمَا تَيَسَّرَ لَهُ وَيُصَلِّي عَلَى النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- وَيَدْعُو لِنَفْسِهِ أَوَّلًا وَلِمَنْ حَضَرَهُ مِنْ إخْوَانِهِ الْمُسْلِمِينَ سِرًّا فِي نَفْسِهِ. وَلْيَحْذَرْ أَنْ يَخُصَّ نَفْسَهُ بِالـدُّعَاءِ دُونَهُـمْ إذَا كَـانَ إمَامًا فِي الصَّلَاةِ وَبَعْدَهَا فَإِنْ فَعَلَ فَقَدْ خَانَهُمْ. هَكَذَا وَرَدَ فِي الْحَدِيثِ عَلَى مَا رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَالتِّرْمِـذِيُّ رحمهما الله تعالى. وَكَذَلِكَ يُسْتَحَبُّ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْ الْمُصَلِّينَ أَنْ يَدْعُوَ لِنَفْسِهِ وَلِمَنْ حَضَرَهُ مِنْ إخْوَانِهِ الْمُسْلِمِينَ مِنْ إمَامٍ وَمَأْمُومٍ وَلْيَحْذَرُوا جَمِيعًا مِنْ الْجَهْرِ بِالذِّكْرِ وَالدُّعَاءِ وَبَسْطِ الْأَيْدِي عِنْدَهُ أَعْنِي عِنْدَ الْفَرَاغِ مِنْ الصَّلَاةِ إنْ كَانَ فِي جَمَاعَةٍ فَـإِنَّ ذَلِكَ مِنْ الْبِدَعِ لِمَا تَقَدَّمَ ذِكْرُهُ اللَّهُمَّ إلَّا أَنْ يُرِيدَ الْإِمَامُ بِذَلِكَ تَعْلِيمَ الْمَأْمُومِينَ بِأَنَّ الـدُّعَاءَ مَشْرُوعٌ بَعْدَ الصَّلَاةِ فَيَجْهَرُ بِذَلِكَ وَيَبْسُطُ يَدَيْهِ عَلَى مَا قَالَهُ الشَّافِعِيُّ -رَحِمَهُ اللَّهُ تَعَالَى- حَتَّى إذَا رَأَى أَنَّهُمْ قَدْ تَعَلَّمُوا أَمْسَكَ (المدخل لابن الحاج ج ٢صـ ٢٨٠، التنفل فى المساجد بتوابع الفرائض)

۲۷– علامه حصكفى الحنفى رَحِمَہُ اللّٰہ فرمايي چي: ويكره تأخير السنة الا بقدر اللّٰهُمَّ انت السلام الخ قال الحلوانى لا بأس بالفصل بالاوراد واختاره الكمال ، قال الحلبى ، ان أريد بالكراهة التنزيهية ارتفع الخلاف قلت: وفى حفظى حمله على القليلة ويستحب اأن يستغفر ثلاثا ويقرأ اية الكرسى والمعوذات ويسبح ويحمد ويكبر ثلاثا وثلاثين ، ويهلل تمام المائة ويديعو ويختم بسبحان ربك( الدر المختار مع شرح رد المحتار ج ١صـ ٥٣٠، كتاب الصلوة باب صفة الصلوة )

۲۸–علامه ابن نجيم الحنفى رَحِمَہُ اللّٰہ فرمايي چي: رفع الأيدى وقت الدعاء مستحب كما عليه المسلمون فى سائر البلاد (البحر الرائق ج ١صـ ٣٤١، كتاب الصلوة باب صفة الصلوة)

۲۹–علامه حسن بن عمار شرنبلالى حنفى رَحِمَہُ اللّٰہ فرمايي چي: وترفع فى دعاء الاستسقاء ونحوه لان رفع اليد فى الدعآء سنة وكذلک عند دعائه بعد فراغه من التسبيح والتحميد والتكبير الذى سنذكره عقب الصلوات كما عليه المسلمون فى سائر البلدان. ( مراقى الفلاح شرح نور الايضاح صـ١٠٧، فصل فى كيفية تركيب الصلوة)

۳۰-علامه ظفراحمد العثماني رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې: واعلم أنه قد وقع العرف فى ديارنا أنا الامام والقوم يدعون مستقبل القبلة رافعى ايديهم عقيب السلام معا فى الظهر والمغرب والعشاء ولاينحرف الامام فى هذه الاوقات عن القبلة وبعدالعصر والفجر ينحرف يمينا وشمالا ويقرأ شيئا من الورد جالسا وكذا القوم معه ثم يدعون، فانكر بعض الناس على ذلک بوجهين اما اولاً فلعدم انحراف الامام يمينا وشمالا فى الظهر والمغرب و العشاء ودعائه مستدبر للمأمومين، و قد ثبت أنه صلى الله عليه وسلم كان ينحرف دائما واما ثانيا فلان الدعاء بعد السلام من الصلوة لم يثبت عنه صلى الله عليه وسلم بل عامة الادعية المتعلقة بالصلوة انما فعلها فيها وأمر بها فيها. والجواب عن الأول بأنه قد ثبت عنه صلى الله عليه وسلم أنه دعا فى بعض الأحيان مستقبل القبلة مستدبر للقوم، كما سنبينه ان شاء الله تعالى واستنبط منه المحققون أن استقبال القبلة من آداب الدعاء، وعن الثانى بأن الدعاء بعد السلام ثبت عنه صلى الله عليه وسلم قولا وفعلا، وانكار ذلک مكابرة كما سيظهر لک ان شاء الله تعالى (اعلاء السنن ج ۳صـ ۱۹۳، كتاب الصلوة باب الانحراف بعدالسلام وكيفيته)

## بهتره داده چې دعا دسنتو څخه ورسته وکړی شي

**د ديوبند سرخيل:** مولانا نصير الدين الغورغوشتوي رحمه الله فرمائي چې: واماما ورد من الاحاديث في الاذكار عقيب الصلوة فلا دلا لة فيها علي الا تيان بها قبل السنة، بل يحمل علي الا تيان بها بعدها لان السنة من لواحق الفريضة وتوابعها و مكملا تها، فلم تكن اجنبية عنها، فما يفعل بعدها يطلق عليه انه بعد الفريضة، وفي فتح القدير السنة ان يفصل بين الفريضة و السنن بذكر قدر اللّهُمَّ انت السلام اه وذالك يكون تقريباً فقد يزيد قليلاً وقد ينقص قليلاً . مولانا نصير الدين. [حاشية على المشكوة ج ۱ ص ۹٤ حاشية للعـ كتاب الصلوة فى الذكر بعد الصلوة]

مفتي اعظم محمّد فريد رحمه الله فرمايي چې: د فرضو اود سنتو څخه وروسته اجتماعي دُعا د قولي حديث په بنا باندې مسنونه ده اود فعلي حديث په بنا باندې غير معمول ده. [فتاوى فريديه/ج ۲/ص ۲۵۷].

په بل ځای کې ليکي چې: د جمهورو احنافو مثلاً د ابن الهمام، ابن العابدين، ابن نُجيم، حلبي او صاحب د (عقايد السنية) په رايه باندې د سنتو څخه وروسته دعا بهتره ده. [فتاوى فريديه ج ۲/ص۲۵۹/

غُنية المستلمی ص ۳۳۱ / قُبَيل فصل فی المكروهات / نووی شرح مسلم ج ۱ / ص ۲۱۸ / باب استحباب ذِکر بعد الصلوة / رد المحتار ج ۱ / ص ۳۹۱ / مطلب فی ما لو زاد علی العدد الوارد فی التسبیح ]

صاحب د (تعليق الكوكب الدری / ج ۲ / ص ۲۹۱) فرمایي چې: ( الاشتغال بالسنة عقيب الفرض افضل من الدعاء ) [ بحرالرائق / ج ۸ / ص ۳۰٤ / طحطاوی / ص ۲۵۳ الی ص ۲۵۷ / خلاصة الفتاوی / ج ۱ / ص ۹۵ / ارشاد الساری / ج ۲ / ص ۱٤٤ ].

مولانا عبدالحق (رحمه الله) او دحقاني دمدرسې مفتیان فرمایي: چې له سنتو وروسته په اجتماعي توګه باندې دعا یوه معرکة الاراء مسئله ګرځیدلې ده ،ځینې ددې دعا په پرېښودلو کې سختي او افراط اودومره غلو کوي چې دا عمل مطلقا بدعت بولي او ځینې بیا په برعکس دومره غلو کوي چې ددعا بعد السنت بالالتزام مرتکب کیږي، پداسې حال کې چې حقیقت دادی چې دا دواړه دلې داعتدال له لارې څخه وتلې دي ، أصل مسئله داده چې مقدس شریعت ددعا لپاره کوم خاص وقت نه دی مقرر کړی ، له رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او له صحابه کرامو څخه په اجتماعي او انفرادي هیئت سره دواړه قسمه دعا ثابته ده ، همدارنګه په مبارکو احادیثو کې له رسول الله څخه د دُبر صلوة (تر لمونځونو وروسته) ددعا کولو ترغیب هم ورکړی شوی دی ، په داسې حال کې چې ددبر اطلاق لکه څرنګه چې دمکتوباتو په متصل وخت باندې کیږي نو همدارنګه په منفصل وخت (یعنې وروسته له سنتونو ) باندې کیږي ، لهذا کچیرته وروسته دسنتو څخه په اجتماعي هئیت سره له التزام پرته دعا وغوښتل شي ، نو په دې کې شرعا څه قباحت نشته ، لکن دا خبره یاد ساتئ چې دا مسئله دفتنې او فساد ذریعه مه ګرځوئ. (کما قال العلامه یوسف البنوری رحمه الله :الدعاء للامام والمأموم والمنفرد مستحب عقب كل صلوة بلا خلاف ويقول ويستحب أن يقبل على الناس فيدعوا (معارف السنن ، ج ۳ص ۱۲۳، فتاوی حقانیه بشتو ج۱ص۵۲۷)

حضرت عایشه رضی الله عنها فرمایي چې: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَلَّمَ لَمْ يَقْعُدْ إِلَّا مِقْدَارَ مَا يَقُولُ: «اللّٰهُمَّ أَنْتَ السَّلَامُ وَمِنْكَ السَّلَامُ، تَبَارَكْتَ ذَا الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ» وَفِي رِوَايَةِ ابْنِ نُمَيْرٍ رحمه الله «يَا ذَا الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ» (مسلم رقم الحديث ١٣٦، ٥٩٢ كتاب المساجد ومواضع الصلوة ، باب استحباب الذكر بعد

الصلوة وبيان صفته ، داراحياء التراث العربي ، بيروت، واللفظ له ، سنن الترمذى ، رقم الحديث ٢٩٨، سنن ابن ماجه رقم الحديث ٩٢٤)

او دحضرت عايشې رضى الله عنها په يو بل روايت كې الفاظ داسې دي:

مَاكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَجْلِسُ بَعْدَ صَلَاتِهِ إِلَّا قَدْرَمَا يَقُولُ: «اَللّٰهُمَّ أَنْتَ السَّلَامُ، وَمِنْكَ السَّلَامُ تَبَارَكْتَ يَاذَاالْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ» (مسند احمد ،رقم الحديث ٢٥٩٧٩، مؤسسة الرسالة ، بيروت)

رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به دلمانځه څخه وروسته صرف دومره كيناستلو چې دا كلمات به يې په كې ولوستل(اللهم انت السلام، ومنک السلام تبارکت یاذاالجلال والاکرام)

علامه ظفراحمد العثماني رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمايي چې: والأحاديث التى ورد فيها الذكر الطويل دبر الصلوة محمولة عندنا على فرض ليس بعده سنة راتبة وان كان بعده سنة فبعد الفراغ منها ،وبهذا تجتمع أحاديث ا لباب بأسرها ووجه الفرق ان الرواتب من توابع الفرائض ، فينبغى أداؤها متصلة بها كما هو مقتضى التبعية ، ولما ثبت من الأمر بالتعجيل فى بعض الرواتب كما سيأتى فالتطبيق (بين احاديث الباب) بالوجه الذى ذكرنا هو الاولى (اعلاء السنن ج ٣صــ ١٨٨، تحت رقم الحديث ٩١٠، باب الانحراف بعد السلام وكيفية وسنية الدعاء والذكر بعد الصلوة ، ادارة القرآن ،كراتشى)

په كومو احاديثو كې چې دفرضو څخه وروسته اوږد ذكر راغلى دى دهغې څخه هغه فرض مراد دي چې دهغې څخه وروسته سنت نه وي او دكومو فرضو څخه چې وروسته سنت وي بيا دسنتو څخه وروسته ددې اذكار كول پكار دي، ځكه چې سنن دفرضو تابع دي ،لهذا دسنت دفرضو پسې متصل پكار دي ، لكه څرنګه چې دتابعوالي تقاضى ده . له دې وجې څخه په بعضو سنتو كې دتعجيل امر راغلى دى ،لكه څرنګه چې به لږ وروسته بيان شي په دې طريقه داحاديثو په مابين كې تطبيق راغلو.

علامه ابن الهمام فرمايي چې: فَأَمَّامَا يَكُونُ زِيَادَةً غَيْرَمُقَارِبَةٍ مِثْلَ الْعَدَدِ السَّابِقِ مِنَ التَّسْبِيحَاتِ وَالتَّحْمِيدَاتِ وَالتَّكْبِيرَاتِ فَيَنْبَغِي اسْتِنَانُ تَأْخِيرِهِ عَنِ السُّنَّةِ أَلْبَتَّةَ، وَكَذَاآيَةُ الْكُرْسِيِّ. (فتح القدير ج ١صـــ ٤٤٠، كتاب الصلوة باب النوافل ، دار الفكر بيروت)

علامه حسن بن عمار بن على الشرنبلالي رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي چې: فصل فى الاذكار الواردة بعدالفرض القيام الى السنة متصلا بالفرض مسنون وعن شمس الائمة الحلوانى، لا بأس بقراءة الأوراد بين الفريضة والسنة ويستحب للامام بعد سلامه أن يتحوّل الى يساره لتطوع بعد الفرض وان يستقبل بعده النّاس ويستغفرون الله ويقرءون اية الكرسى والمعوذات ويسبحون الله ثلاثا وثلاثين ويحمدونه كذلک ويکبّرونه کذلک ثم يقولون لا اله الا الله وحده لاشريک له له الملک وله الحمد وهو على كل شىء قدير ثم يدعون لانفسهم وللمسلمين رافعي ايديهم ثم يمسحون بها ووهھم فى اخره .(نورالايضاح صـ ۸۰، فصل فى الاذكارالواردة)

خلاصه دا ده چې ذکرونه او دعاګانې د سنتو څخه وروسته کول بهتر دي، او کوم شئ چې د سنتو څخه وروسته وشي، هغه د فرضو څخه هم وروسته شو، ځکه چې سنت تابع او مکمل د فرضو دي.

## ۴-په سفر کې که دسنتوکول ممکن وو نوکول يې پکاردي:

(۱) عن البراء بن عازب ﷺ قال صحبت رسول الله ﷺ ثمانية عشرسفرافمارايته ترک الرکعتين اذا زاغت الشمس قبل الظهر. (المدونة الکبرى ج۱ص ۱۲۱). حضرت براء بن عازب ﷺ فرمائي چې زه په اتلسو سفرونو کې د رسول الله ﷺ سره ووم، نو ما په هيڅ سفر کې هم ندي ليدلي چې د زوال څخه وروسته يې دوه رکعته پريښي وي، د ماسپښين څخه مخکې.

(۲) عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا أَنَّهُ قَالَ: "صَلَّيْتُ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرْبَعًا وَلَيْسَ بَعْدَهَا شَيْءٌ وَصَلَّى الْمَغْرِبَ ثَلَاثًا وَبَعْدَهَا رَكْعَتَيْنِ، وَقَالَ: هِيَ وِتْرُ النَّهَارِ، وَلَا تَنْقُصُ فِي سَفَرٍ وَلَا حَضَرٍ، وَصَلَّى الْعِشَاءَ أَرْبَعًا، وَصَلَّى بَعْدَهَا رَكْعَتَيْنِ، قَالَ: وَصَلَّى فِي السَّفَرِ الظُّهْرَ رَكْعَتَيْنِ، وَصَلَّى بَعْدَهَا رَكْعَتَيْنِ، وَصَلَّى الْعَصْرَ رَكْعَتَيْنِ، وَلَيْسَ بَعْدَهَا شَيْءٌ وَصَلَّى الْمَغْرِبَ ثَلَاثًا وَبَعْدَهَا رَكْعَتَيْنِ، وَصَلَّى الْعِشَاءَ رَكْعَتَيْنِ، وَبَعْدَهَا رَكْعَتَيْنِ (طحاوى ج۱ص ۲۴۳).

حضرت عبد الله بن عمر ﷺ فرمائي چې ما د رسول الله ﷺ سره (په حضر کې د ما زيګر) څلور رکعته لمونځ وکړو او د دينه وروسته هيڅ نه وو او د ماښام لمونځ يې درې رکعته وکړو او د دينه وروسته يې دوه رکعته (سنت) وکړل او بيا يې وفرمايل چې دا د ورځې وتردي چې په سفر کې او حضر کې نه کميږي ،او د ماخوستن يې څلور رکعته لمونځ وکړو او د هغې څخه وروسته يې دوه رکعته سنت وکړل.

حضرت عبد الله بن عمر ﷺ فرمائي چې رسول الله ﷺ په سفر کې دوه رکعته لمونځ وکړو او دهغې څخه وروسته يې هم دوه رکعته (سنت) وکړل او د مازيګر يې صرف دوه رکعته (فرض) وکړل او د ماښام يې درې رکعته (فرض) وکړل او دهغې څخه وروسته يې دوه رکعته (سنت) وکړل او د ماخوستن يې دوه رکعته (فرض) وکړل او دهغې څخه وروسته يې دوه رکعته (سنت) وکړل.

عَنِ ابْنِ عُمَرَ رضي الله عنهما، قَالَ: صَلَّيْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْحَضَرِ وَالسَّفَرِ، فَصَلَّيْتُ مَعَهُ فِي الْحَضَرِ الظُّهْرَ أَرْبَعًا وَبَعْدَهَا رَكْعَتَيْنِ، وَصَلَّيْتُ مَعَهُ فِي السَّفَرِ الظُّهْرَ رَكْعَتَيْنِ وَبَعْدَهَا رَكْعَتَيْنِ، وَالْعَصْرَ رَكْعَتَيْنِ وَلَمْ يُصَلِّ بَعْدَهَا شَيْئًا، وَالْمَغْرِبَ فِي الْحَضَرِ وَالسَّفَرِ سَوَاءً، ثَلَاثَ رَكَعَاتٍ، لَا يَنْقُصُ فِي حَضَرٍ وَلَا سَفَرٍ، وَهِيَ وِتْرُ النَّهَارِ، وَبَعْدَهَا رَكْعَتَيْنِ) [ ترمذی/ ج ۱/ ص ۱۲۳].

يعنې عبد الله بن عمر ﷺ فرمايي چې ما دنبي ﷺ سره په سفر او په حضر کې لمونځ کړی دی، نو په حضر کې به يې څلور رکعته (فرض) وکړه او دهغې پسې به يې دوه رکعته (سنت) وکړل او په سفر کې به يې دوه رکعته (فرض) وکړه او دهغې پسې به يې دوه رکعته (سنت) وکړل د مازديګر يې صرف دوه رکعته (فرض) وکړل او د ماښام (فرض) به په سفر او په حضر کې د درېو نه نه کميدل او ورپسې به يې دوه رکعته (سنت) وکړل.

(۳) عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا تَدَعُوا رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ وَإِنْ طَرَدَتْكُمُ الْخَيْلُ». (ابوداود ج۱ص۱۸٦) يعنې د سهر سنت په هيڅ حال کې (سفروي او که حضروي) مه پرېږدئ.

(۴) عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ رَبَاحٍ الْأَنْصَارِيِّ رحمه الله، حَدَّثَنَا أَبُو قَتَادَةَ رضي الله عنه، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ فِي سَفَرٍ لَهُ فَمَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمِلْتُ مَعَهُ، قَالَ: «انْظُرْ»، فَقُلْتُ: هَذَا رَاكِبٌ، هَذَانِ رَاكِبَانِ، هَؤُلَاءِ ثَلَاثَةٌ، حَتَّى صِرْنَا سَبْعَةً، فَقَالَ: «احْفَظُوا عَلَيْنَا صَلَاتَنَا» - يَعْنِي صَلَاةَ الْفَجْرِ - فَضُرِبَ عَلَى آذَانِهِمْ فَمَا أَيْقَظَهُمْ إِلَّا حَرُّ الشَّمْسِ فَقَامُوا فَسَارُوا هُنَيَّةً ثُمَّ نَزَلُوا فَتَوَضَّئُوا وَأَذَّنَ بِلَالٌ رضي الله عنه فَصَلَّوْا رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ، ثُمَّ صَلَّوُا الْفَجْرَ وَرَكِبُوا، فَقَالَ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ: قَدْ فَرَّطْنَا فِي صَلَاتِنَا، فَقَالَ النَّبِيُّ ﷺ: «إِنَّهُ لَا تَفْرِيطَ فِي النَّوْمِ، إِنَّمَا التَّفْرِيطُ فِي الْيَقَظَةِ. الحديث (ابوداود ج۱ص ٦۹).

**ترجمه** :حضرت عبد الله بن رباح الانصاری فرمائي چې مونږته ابو قتادة حديث بيان کړی دی، چې مونږ د رسول الله ﷺ سره په يو سفر کې وو، نو رسول الله ﷺ دلارې څخه يو طرفته شو، زه هم ورسره يو

طرفته شوم، رسول الله ﷺ ماته وفرمايل چې ګوره! ماورته وويل دا يو راکب دی، دادوه دي او دا دري دي، تردې چې مونږ اوه کسان شو، نو رسول الله ﷺ وفرمايل چې: زمونږ د سهار نګراني وکړئ! يعنې دسهار دلمانځه، نو د دوي په غوږونو باندې پرده واچول شوه، تردې چې په لمرباندې راويښ شول، نوخلک راپورته شول، لږ مخکې لاړل، بيا په يو ځای کې راکوز شول اودسونه يې وکړل، حضرت بلال ﷺ اذان وکړو، بيا ټولو خلکو دسهار دوه رکعته سنت وکړل، بيا يې فرض وکړل، بيا په سورليو باندې سواره شول، بيا دوي يو بل ته وويل چې زمونږ څخه دلمانځه په باره کې کوتاهي وشوه، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل چې: په خوب کې تقصير نشته، تقصير دا دی چې ويښ وې او لمونځ درڅخه پاتې شي.

(٥) عن عامر بن ربيعة ﷺ أَنَّهُ «رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى السُّبْحَةَ بِاللَّيْلِ فِي السَّفَرِ عَلَى ظَهْرِ رَاحِلَتِهِ حَيْثُ تَوَجَّهَتْ بِهِ» [بخاري ج١ص١٤٩ / مسلم/ ج/١ ص٤٤]

**ترجمه:** د حضرت عامر بن ربيعه ﷺ څخه روايت دی چې ده رسول الله ﷺ په سفر کې وليده، چې په سورلۍ باندې يې (نفل) لمونځ کولو، هر طرفته به چې د سورلۍ مخه شوه.

(٦) وَعَنْ أُمِّ هَانِئٍ ﷺ قَالَتْ: «لَمَّا كَانَ يَوْمُ فَتْحِ مَكَّةَ دَعَا رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- بِمَاءٍ وَسَتَرَتْ أُمُّ هَانِئٍ وَأُمُّ سُلَيْمٍ أُمُّ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ ﷺ بِمِلْحَفَةٍ» ثُمَّ دَخَلَ بَيْتَ أُمِّ هَانِئٍ ﷺ فَصَلَّى الضُّحَى أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ (مجمع الزوايد ج ٢ص ٤٩٦).

حضرت ام هانئ رضی الله تعالى عنها فرمائي چې: رسول د مکې مکرمې د فتحې (په سفر کې) د څاښت څلور رکعته وکړل.

(٧) قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا: «قَدْ فُرِضَ لِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الصَّلَاةُ فِي الْحَضَرِ أَرْبَعًا، وَفِي السَّفَرِ رَكْعَتَيْنِ، فَكَمَا يُتَطَوَّعُ هَاهُنَا قَبْلَهَا وَمِنْ بَعْدِهَا، فَكَذٰلِكَ يُصَلِّي فِي السَّفَرِ قَبْلَهَا وَبَعْدَهَا. (طحاوی ج ١ص ٢٤٧).

رسول الله ﷺ په حضر کې څلور او په سفر کې دوه رکعته (فرض) کول او په سفر او په حضر کې به يې مخکني او وروستني سنت کول.

(۸) عَنْ قَتَادَةَ رحمه الله أَنَّ ابْنَ مَسْعُودٍ وَعَائِشَةَ رضي الله عنهما كَانَا يَتَطَوَّعَانِ فِي السَّفَرِ قَبْلَ الصَّلَاةِ وَبَعْدَهَا (مجمع الزوايد ج۲/ ص۳۷۱). عبد الله بن مسعود ﷺ او حضرت عايشي رضى الله تعالى عنها به په سفر كې د فرضو څخه مخكني او وروستني سنتونه كول.

(۹) قال الامام الترمذی رحمه الله: ثُمَّ اخْتَلَفَ أَهْلُ العِلْمِ بَعْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: فَرَأَى بَعْضُ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنْ يَتَطَوَّعَ الرَّجُلُ فِي السَّفَرِ. وَبِهِ يَقُولُ أَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ رحمهما الله تعالى. وَلَمْ تَرَ طَائِفَةٌ مِنْ أَهْلِ العِلْمِ أَنْ يُصَلِّيَ قَبْلَهَا وَلَا بَعْدَهَا. وَمَعْنَى مَنْ لَمْ يَتَطَوَّعْ فِي السَّفَرِ قَبُولُ الرُّخْصَةِ، وَمَنْ تَطَوَّعَ فَلَهُ فِي ذٰلِكَ فَضْلٌ كَثِيرٌ. وَهُوَ قَوْلُ أَكْثَرِ أَهْلِ العِلْمِ يَخْتَارُونَ التَّطَوُّعَ فِي السَّفَرِ (ترمذی ج ۱ص ۱۲٤).

د رسول الله ﷺ څخه وروسته د اهل علمو په دې كې اختلاف راغلو، د رسول الله ﷺ د بعضې صحابه وو رضى الله عنهم په نيز به په سفر كې نوافل كولې شي او دا مذهب د احمد او د اسحق دي او بعضې علماء وائي چې د (فرضي) لمونځ څخه مخكې او وروسته نوافل نه دي پكار، د دوي د خبرې معنى داده چې نه كول يې رخصت دى او كه چاوكړل نو دهغوئ لپاره غټ ثواب دى او دا قول د اكثرو علماوو دى، چې په سفر كې د نوافلو كول پكار دي.

(۱۰) قال الامام النووی رحمه الله: وَقَدِ اتَّفَقَ العُلَمَاءُ عَلَى اسْتِحْبَابِ النَّوَافِلِ الْمُطْلَقَةِ فِي السَّفَرِ وَاخْتَلَفُوا فِي اسْتِحْبَابِ النَّوَافِلِ الرَّاتِبَةِ فكرهها بن عُمَرَ رضي الله عنهما وَآخَرُونَ وَاسْتَحَبَّهَا الشَّافِعِيُّ وَأَصْحَابُهُ وَالْجُمْهُورُ رحمهم الله تعالى...الخ

امام نووى فرمائي چې په دې د ټولو علماوو اتفاق دى چې مطلق نفل په سفر كې مستحب دي، البته د سنتو په باره كې اختلاف دى، حضرت عبد الله بن عمر ﷺ او نورو پرې بښي دي او امام شافعى رحمه الله او د ده د اصحابو او د جمهور وعلماوو په نزد د دې كول مستحب دي. (نووى شرح مسلم ج ۱ص ۲۴۲)

(۱۱) : وَسُئِلَ الإِمَامُ أَحْمَدُ رَحِمَهُ اللّٰهُ عَنِ التَّطَوُّعِ فِي السَّفَرِ؟ فَقَالَ: أَرْجُو أَنْ لَا يَكُونَ بِالتَّطَوُّعِ فِي السَّفَرِ بَأْسٌ، وَرُوِيَ عَنِ الحسن رحمه الله قَالَ: كَانَ أَصْحَابُ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُسَافِرُونَ فَيَتَطَوَّعُونَ قَبْلَ الْمَكْتُوبَةِ وَبَعْدَهَا، وَرُوِيَ هٰذَا عَنْ عمر، وعلي، وَابْنِ مَسْعُودٍ، وجابر، وأنس، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وأبي ذر رضي الله تعالى عنهم [ زاد المعاد فی هدی خیر العبادر/ ج ۱ / ص ۱۳۱]

امام احمد رحمه الله فرمایي چې: په سفر کې سنت کول باک نه لري. حسن بصري رحمه الله فرمایي چې: د رسول الله صلی الله علیه وسلم صحابه وو به په سفر کې مخکښي او وروستني سنونه کول. او دا د حضرت عمر رضي الله عنه حضرت علي رضي الله عنه حضرت ابن مسعود رضي الله عنه حضرت جابر رضي الله عنه حضرت انس رضي الله عنه حضرت ابو ذر رضي الله عنه او حضرت ابن عباس رضي الله عنه ځخه روایت شوي دي.

## ۵-مسافة القصر: چې د څومره سفر اراده دې کړي وي قصر به کوي؟

۱- عَنْ شُرَيْحِ بْنِ هَانِئٍ رضي الله عنه قَالَ: أَتَيْتُ عَائِشَةَ رضي الله عنها أَسْأَلُهَا عَنِ الْمَسْحِ عَلَى الْخُفَّيْنِ، فَقَالَتْ: عَلَيْكَ بِابْنِ أَبِي طَالِبٍ رضي الله عنه، فَسَلْهُ فَإِنَّهُ كَانَ يُسَافِرُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَأَلْنَاهُ فَقَالَ: «جَعَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ وَلَيَالِيَهُنَّ لِلْمُسَافِرِ، وَيَوْمًا وَلَيْلَةً لِلْمُقِيمِ. [مسلم ج۱/ص ۱۳۵]

حضرت شریح بن هانئ رحمه الله فرمایي چې: زه حضرت عایشې رضی الله عنها ته ورغلم او په موزو باندې د مسح په باره کې مې ترینه پوښتنه وکړه، هغې راته وفرمایل چې: د ابو طالب ځوی (حضرت علی رضي الله عنه) ته ورشه ځکه چې هغه به د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره سفر ته تللو، نو مونږ د حضرت علی رضي الله عنه ځخه پوښتنه وکړه، نو هغه وفرمایل چې رسول الله صلی الله علیه وسلم درې شپې او درې ورځې د مسافر لپاره او یوه شپه او یوه ورځ د مقیم لپاره مقرر کړې وه.

۲- عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي بَكْرَةَ رحمه الله عَنْ أَبِيهِ رضي الله عنه: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَّتَ فِي الْمَسْحِ عَلَى الْخُفَّيْنِ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ وَلَيَالِيَهُنَّ لِلْمُسَافِرِ وَلِلْمُقِيمِ يوم وليلة. [صحيح ابن خبان ج۱/ص۳۱۱].

عبد الرحمن بن ابی بکرة رضي الله عنه د خپل پلار ابوبکرة رضي الله عنه ځخه روایت کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم په موزو باندې د مسحې موده د مسافر لپاره درې شپې او درې ورځې مقرر کړې ده او د مقیم لپاره یې یوه شپه او یوه ورځ مقرر کړې ده.

۳- عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «لَا تُسَافِرِ الْمَرْأَةُ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ إِلَّا مَعَ ذِي مَحْرَمٍ». [بخاری ج۱/ ص۱۴۷] عبد الله بن عمر رضي الله عنه فرمایي چې: رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې: ښځه دې درې ورځې سفر بې محرمه نه کوي.

٤- عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا يَحِلُّ لِامْرَأَةٍ أَنْ تُسَافِرَ ثَلَاثًا إِلَّا وَمَعَهَا ذُو مَحْرَمٍ مِنْهَا». [مسلم ج١/ ص٤٣٤]. ابو هريرة ﷺ فرمايي چې: رسول الله ﷺ وفرمايل چې: د هيڅ ښځې لپاره نه دې حلال چې بې محرمه درې ورځې سفر وكړي.

٥- عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا يَحِلُّ لِامْرَأَةٍ تُؤْمِنُ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ، أَنْ تُسَافِرَ سَفَرًا يَكُونُ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ فَصَاعِدًا، إِلَّا وَمَعَهَا أَبُوهَا، أَوِ ابْنُهَا، أَوْ زَوْجُهَا، أَوْ أَخُوهَا، أَوْ ذُو مَحْرَمٍ مِنْهَا»، [مسلم ج١/ ص٤٣٤].

د ابو سعيد الخدرى ﷺ څخه روايت دى چې رسول الله ﷺ وفرمايل چې: هيڅ داسې ښځې ته چې په الله ﷻ او په ورځ د آخرت ايمان لري نه دى جايز چې درې ورځې او يا ددې څخه زيات سفر وكړي، مګر په هغه صورت كې يې كولى شي، چې پلار، يا ځوى، يا ميړه، يا ورور او يا بل محرم ورسره وي، ددې احاديثو څخه معلومه شوه چې د درې ورځو، شپو لپاره په سفر كې دخل شته او د مسافر ويلو مستحق هغه څوک دى چې د دريو ورځو او شپو په اراده باندې روان وي، په راروانو احاديثو كې بالكل په تصريح سره د مسافر لپاره د دريو شپو او ورځو تعين شوى دى.

٦- عَنْ عَلِيِّ بْنِ رَبِيعَةَ الْوَالِبِيِّ رحمه الله -الولبة بطن من بني أسد بن خزيمة- قَالَ: سَأَلْتُ عَبْدَ اللهِ بْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا إِلَى كَمْ تُقْصَرُ الصَّلَاةُ؟ فَقَالَ: "أَتَعْرِفُ السُّوَيْدَاءَ؟" قَالَ: قُلْتُ: لَا! وَلَكِنِّي قَدْ سَمِعْتُ بِهَا، قَالَ: هِيَ ثَلَاثُ لَيَالٍ قَوَاصِدُ، فَإِذَا خَرَجْنَا إِلَيْهَا قَصَرْنَا الصَّلَاةَ [كتاب الآثار للامام أبي حنيفة برواية الامام محمد ص٣٩].

د على بن ربيعة الوالبى رحمه الله څخه روايت دى چې: ما د عبدالله بن عمر ﷺ څخه پوښتنه وكړه چې د څومره مزل اراده دې كړي وي قصر به كوئ؟ هغه ﷺ راته وفرمايل چې: سويداء مقام پيژنئ؟ ما ورته وويل چې: نوم مې اوريدلى دى لكن پيژنم يې نه، نو هغه ﷺ وفرمايل چې: سويداء د دريو شپو درميانه مزل په فاصله باندې يو ځاى دى، چې كله مونږ ددې ځاى په اراده باندې ووځو نو بيا به قصر كوو.

٧- وَبِهِ قَالَ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ عَبْدِ الْأَعْلَى رحمه الله قَالَ: سَمِعْتُ سويد بن غفلة الجعفى رحمه الله يَقُولُ: إِذَا سَافَرْتَ [illegible] فَاقْصِرْ. [كتاب الحجة ص١٦٨ ج١]. سويد بن غفلة الجعفى رحمه الله فرمايي چې كله دى د [illegible] ځې سفر (عزم) وكړو نو بيا قصر كوه.

۸- عن عمر ﷺ قال: تقصر الصلوة فی مسیرة ثلاث لیالٍ. [کنزالعمال ج۸ ص۲۳٤] حضرت عمر ﷺ فرمایي چې: د دري ورځو د فاصلې په سفر کې به په مانځه کې قصر کوي.

۹- عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ، عَنْ أَبِيهِ ﷺ، أَنَّهُ «رَكِبَ إِلَى رِيمٍ، فَقَصَرَ الصَّلَاةَ فِي مَسِيرِهِ ذٰلِكَ»، قَالَ مَالِكٌ رحمه الله: «وَذٰلِكَ نَحْوٌ مِنْ أَرْبَعَةِ بُرُدٍ». [مؤطأ امام مالک ج/۱ ص۱۳۰] سالم رحمه الله فرمایي چې زما پلار عبدالله بن عمر ﷺ فرمایی چې ما رِیم مقام ته سفر کړی وو او د سفر په وخت کې مې قصر کولو، یحیی رحمه الله فرمایي چې: امام مالک رحمه الله فرمایل چې: ریم مقام د مدینې منورې څخه تقریباً په څلور بریده فاصله کې دی. (چې ۴۸ میله کیږي).

۱۰- عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ ﷺ، أَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ ﷺ رَكِبَ إِلَى ذَاتِ النُّصُبِ, فَقَصَرَ الصَّلَاةَ فِي مَسِيرِهِ ذٰلِكَ. قَالَ مَالِكٌ رحمه الله: وَبَيْنَ ذَاتِ النُّصُبِ وَبَيْنَ الْمَدِينَةِ أَرْبَعَةُ بُرُدٍ. [مؤطا امام مالک ج/۱ ص۱۳۰].

سالم رحمه الله فرمایي چې: زما پلار عبدالله بن عمر ﷺ ذات النَصَب مقام ته لاړو او قصر مونځ یې کولو، یحیی فرمایی چې امام مالک رحمه الله به فرمایل چې: د مدینې منورې او د ذات النصب مقام په مینځ کې ۴ بریده (۴۸ میله) فاصله وه.

۱۱- عَنْ سَالِمٍ رحمه الله «أَنَّ ابْنَ عُمَرَ ﷺ خَرَجَ إِلَى أَرْضٍ لَهُ بِذَاتِ النُّصُبِ فَقَصَرَ وَهِيَ سِتَّةَ عَشَرَ فَرْسَخًا». [مصنف ابن ابی شیبة ج/۱ ص٤٣٤].

عبدالله ابن عمر ﷺ خپلې ځمکې ته لاړو چې په ذات النصب کې وه، نو قصر مونځ به یې وکړو او ذات النصب شپاړس فرسخه د مدینې منورې څخه لرې وه. (چې دا هم ۴۸ میله کیږي).

۱۲- عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي رَبَاحٍ رحمه الله، "أَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ، وَعَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ كَانَا يُصَلِّيَانِ رَكْعَتَيْنِ رَكْعَتَيْنِ، وَيُفْطِرَانِ فِي أَرْبَعَةِ بُرُدٍ فَمَا فَوْقَ ذٰلِكَ. [بیهقی ج/۳ ص۱۳۷].

عطاء بن ابی رباح رحمه الله فرمایی چې: عبدالله بن عمر ﷺ او عبدالله بن عباس ﷺ به دوه رکعته مونځ کولو او افطار به یې کولو په څلورو بریدو کې او ددې څخه په زیاتو کې.

۱۳- كَانَ ابْنُ عُمَرَ، وَابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ، يَقْصُرَانِ، وَيُفْطِرَانِ فِي أَرْبَعَةِ بُرُدٍ وَهِيَ سِتَّةَ عَشَرَ فَرْسَخًا.
[بخاری ج۱/ ص۱٤۷]. عبدالله بن عمر ﷺ او عبدالله بن عباس ﷺ به قصر کولو او افطار به یې کولو په څلورو بریدو کې چې شپاړس فرسخه کیږي.

۱٤- عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي رَبَاحٍ رحمه الله، قَالَ: قُلْتُ لِابْنِ عَبَّاسٍ ﷺ: أَقْصُرُ إِلَى عَرَفَةَ؟ فَقَالَ: «لَا»، قُلْتُ: أَقْصُرُ إِلَى مَرٍّ؟ قَالَ: «لَا»، قُلْتُ: أَقْصُرُ إِلَى الطَّائِفِ وَإِلَى عُسْفَانَ؟ قَالَ: «نَعَمْ، وَذَلِكَ ثَمَانِيَةٌ وَأَرْبَعُونَ مِيلًا» وَعَقَدَ بِيَدِهِ.
[مصنف ابن ابی شیبة ج۲/ ص٤٤٥، ومسند الامام الشافعی ج۱/ ص۱۸۵]. عطاء بن ابی رباح رحمه الله فرمایي چې: ما د عبدالله بن عباس ﷺ څخه پوښتنه وکړه چې: زه عرفې ته ځم، نو قصر به کوم؟ هغه راته وفرمایل چې: نه! ، بیا مې ورته وویل چې د مُر مقام په اندازه فاصله باندې قصر کولی شم؟ هغه راته وفرمایل چې: نه، بیا مې ورته وویل چې: د طایف او د عسفان په اندازه فاصله باندې قصر کولی شم؟ هغه ﷺ راته وویل چې: هو، ددې فاصله اته څلویښت میله ده او د ګوتو په عقد یې راته حساب ولګولو.

۱۵- عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ ﷺ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ- صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "«يَا أَهْلَ مَكَّةَ! لَا تَقْصُرُوا الصَّلَاةَ فِي أَدْنَى مِنْ أَرْبَعَةِ بُرُدٍ مِنْ مَكَّةَ إِلَى عُسْفَانَ». [معجم الکبیر للطبرانی بحواله مجمع الزواید ج۲/ ص۱۵۷]

عبدالله بن عباس ﷺ فرمایي چې: رسول الله ﷺ فرمایلي دي چې: اې اهل مکه وو د څلورو بریدو څخه په کمو کې قصر مه کوئ، څلور بریده د مکې څخه تر عسفان پورې راځي. ددې احادیثو په خلاف لامذهبان وایي چې: د سفر مسافه درې میله ده. [فتاوی ثنائیه ج۱/ ص۶۳۰] کله وایي چې: درې میله او یا نه میله ده؟ [فتاوی ستاریه ج۳/ ص۵۷].

## ۶-مسافر چې ترڅو د پنځلسو ورځو د اقامت نیت نوي کړی ترهغې پورې دې قصر کوي:

۱- عَنْ مُجَاهِدٍ رحمه الله قَالَ: «كَانَ ابْنُ عُمَرَ ﷺ إِذَا أَجْمَعَ عَلَى إِقَامَةِ خَمْسَ عَشْرَةَ، سَرَّحَ ظَهْرَهُ، وَصَلَّى أَرْبَعًا».
[مصنف ابن ابی شیبة ج۲/ ص٤۵۵] امام مجاهد رحمه الله فرمایي چې: عبدالله بن عمر ﷺ به چې کله د پنځلسو ورځو پخه اراده وکړه نو د سورلۍ څخه به یې زین راکوز کړو او څلور رکعته مونځ به شروع کړو.

۲- عَنْ مُجَاهِدٍ رحمه الله قَالَ كَانَ ابْن عمر ﷺ اذا اجمع على اقامة خمسة عشر يوما سرح ظهره فاتم الصَّلَاة.

. [كتاب الحجة ج۱/ ص۱۷۰] عبدالله بن عمر رضي الله عنه به چې په مكه كې د پنځلسو ورځو د اقامت نیت وكړو نو د سورلۍ څخه به یې زین كوز كړو او څلور ركعته لمونځ به یې كولو.

۳- عَن مُجَاهِد رحمه الله عَن ابن عمر رضي الله عنهما قَالَ اذاكنت مُسَافِرًا فوطنت نَفسك علىٰ اقامة خَمْسَة عشر يَوْمًا فاتمم الصَّلَاة وان كَانَت لَا تَدْرِي فاقصر. [كتاب الآثار برواية امام محمد ص۳۹].

د امام مجاهد رحمه الله څخه روايت دی چې: حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه وفرمايل چې: كله مسافر وې او په يو ځای كې درې د پنځلسو ورځو د پاتې كيدلو اراده وكړه نو بيا مونځ پوره كوه، او كه پدې نه پوهيدلې چې څومره ورځې به دلته پاتې كيږم نو بيا قصر كوه.

٤- عَنْ مُجَاهِدٍ رحمه الله عَنِ ابْنِ عُمَرَ رضي الله عنهما وَابْنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنهما قَالَ: إِذَا هَمَمْتَ بِإِقَامَةِ خَمْسَةَ عَشَرَ يَوْمًا فَأَتِمِ الصَّلٰوةَ. [جامع الاسانيد ج۱/ ص٤٠٤].

امام مجاهد رحمه الله د عبدالله بن عمر رضي الله عنه او عبدالله بن عباس رضي الله عنه څخه روايت كوی چې: كله دې د پنځلسو ورځو د پاتې كيدو اراده وكړه نو مونځ پوره كوه.

٥- عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ رحمه الله قَالَ: إِذَا قَدِمْتَ بَلْدَةً فَأَقَمْتَ خَمْسَةَ عَشَرَ (يَوْمًا) فَأَتِمِ الصَّلٰوةَ. [كتاب الحجة ج۱/ ص۱۷۱].

سعيد بن المسيب رحمه الله فرمايي چې: كله كوم ښار ته لاړې او هلته پنځلس ورځې پاتې شوې نو پوره لمونځ كوه، د صحابه وو رضي الله عنهم او د تابعينو ددې اثارو څخه صراحة معلومه شوه چې كه مسافر په يو ځای كې د پنځلسو ورځو د پاتې كيدو اراده وكړه نو هلته به مونځ پوره كوي. او د داسې شی دی چې د عقل لپاره پكې دخل نشته، نو دا تحديد دوی د ځان څخه نه دی كړی، بلكې ضروري يې د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه اوريدلی دی او يايې د رسول الله صلى الله عليه وسلم عمل ليدلی دی، لهذا د دوی دا فتوی د مرفوع حديث په حكم كې ده، لكن ددې اثارو په خلاف غير مقلدين ليكي چې: كه چيرې يو مسافر په يو ځای كې د څلورو ورځو د پاتې كيدو اراده كړي وه نو پوره مونځ به كوي. [فتاوی ثنائيه ج۱/ ص۴۰۱].

## ۷-په سفر کې قصر واجب دی

## او پوره څلور رکعته فرض لمونځ کول مکروه تحریمي دي

۱- عَنْ عِيسَى بْنِ حَفْصِ بْنِ عَاصِمٍ رَحِمَهُمُ اللهُ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبِي: أَنَّهُ سَمِعَ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا يَقُولُ: «صَحِبْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَانَ لَا يَزِيدُ فِي السَّفَرِ عَلَى رَكْعَتَيْنِ، وَأَبَا بَكْرٍ، وَعُمَرَ، وَعُثْمَانَ كَذٰلِكَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ». [بخاری ج۱/ ص۱۲۹].

عبدالله بن عمر رضی الله عنه فرمایي چې زه د رسول الله ﷺ سره په سفر کې ملګری شوی یم، نو رسول الله ﷺ به په سفر کې د دوو رکعاتو څخه زیات (فرض مونځ) نه کولو او زه د ابوبکر، عمر او عثمان رضی الله عنهم سره هم یوځای شوی یم، هغوی همداسې کول.

۲- عن عبدالله بن عمر رضی الله عنه (فی حدیث طویل) انی صحبت رسول الله ﷺ فی السفر فلم یزد علی الرکعتین حتی قبضه الله، وصحبت ابابکر فلم یزد علی رکعتین حتی قبضه الله، ثم صحبت عثمان فلم یزد علی رکعتین حتی قبضه الله، وقد قال الله تعالی: لقد کان لکم فی رسول الله ﷺ اسوة حسنة. [مسلم ج۱/ ص۲٤۲].

عبدالله بن عمر رضی الله عنه فرمایي چې: زه د رسول الله ﷺ په سفر کې ملګری شوی یم، نو رسول الله ﷺ تر وفاته پورې د دوو رکعاتو څخه زیات نه دي کړي، د ابوبکر صدیق رضی الله عنه سره ملګری شوی یم، هغه رضی الله عنه تر وفاته پورې د دوو رکعتونو څخه زیات (فرض) نه دي کړي، د حضرت عمر رضی الله عنه سره یوځای شوی یم، هغه تر وفاته پورې د دوو رکعتونو څخه زیات (فرض) نه دي کړي، د حضرت عثمان رضی الله عنه سره ملګری شوی یم، هغه رضی الله عنه تر وفاته پورې د دوو رکعتونو څخه زیات (فرض) نه دي کړي او په تحقیق سره الله جل جلاله فرمایلي دي چې: خامخا په تحقیق سره ستاسو لپاره په ژوند د رسول الله ﷺ کې ښایسته نمونه.

۳- عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ: صَلٰوةُ السَّفَرِ رَكْعَتَانِ مَنْ تَرَكَ السُّنَّةَ فَقَدْ كَفَرَ. [رواه ابن حزم بسند صحیح عمدة القاری ج۷/ ص۱۳۳].

عبد الله بن عمر رضي الله عنه فرمايي چې: رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې: د سفر مونځ دوه رکعته دی چاچې (دا سنت طريقه) پريښنود له نو په تحقيق سره هغه کافر شو.

٤- عَنِ ابْنِ عُمَرَ رضي الله عنهما قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ: صَلٰوةُ السَّفَرِ رَكْعَتَانِ مَنْ تَرَكَ السُّنَّةَ فَقَدْ كَفَرَ.. [مجمع الزوايد ج٢/ ص١٥٤].

حضرت مورق رحمه الله فرمايي چې: ما د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه څخه د سفر د مانځه په باره کې پوښتنه وکړه، هغه رضي الله عنه راته وفرمايل چې: د سفر مونځ دوه دوه رکعته دی، چاچې د دې طريقې څخه مخالفت وکړو نو په تحقيق سره هغهٔ کافر شو.

٥- وَعَنْ أَبِي الْكَنُوْدِ رحمه الله قَالَ: سَأَلْتُ ابْنَ عُمَرَ رضي الله عنهما عَنْ صَلَاةِ السَّفَرِ، فَقَالَ: رَكْعَتَانِ نَزَلَتَا مِنَ السَّمَآءِ إِنْ شِئْتُمْ فَرُدُّوْهُمَا [مجمع الزوايد ج٢/ ص١٥٤]. حضرت ابو الکنود رحمه الله فرمايي چې: ما د عبد الله بن عمر رضي الله عنه څخه د سفر د مانځه په باره کې پوښتنه وکړه، هغه راته وويل چې: دوه دوه رکعته دی، چې د اسمان څخه نازل شوي دي که ستاسو اراده وي نو واپس يې کړئ.

٦- عَنِ السَّآئِبِ بْنِ يَزِيْدَ الْكِنْدِيِّ ابْنِ أُخْتِ النَّمِرِ رضي الله عنه قَالَ: «فُرِضَتِ الصَّلَاةُ رَكْعَتَيْنِ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ زِيْدَ فِي صَلَاةِ الْحَضَرِ وَأُقِرَّتْ صَلَاةُ السَّفَرِ» [مجمع الزوايد ج٢/ ص١٥٤] د نمر خورئی حضرت سائب بن يزيد الکندی رضي الله عنه فرمايي چې مونځ دوه دوه رکعته فرض شوی وو، بيا د حضر په مونځ کې اضافه وشوه او د سفر مونځ په خپل حال باندې برقرار پاتې شو.

٧- عَنْ عَآئِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: «الصَّلَاةُ أَوَّلُ مَا فُرِضَتْ رَكْعَتَيْنِ، فَأُقِرَّتْ صَلَاةُ السَّفَرِ، وَأُتِمَّتْ صَلَاةُ الْحَضَرِ». [الحديث بخاری ج١/ ص١٤٨]. حضرت عايشة رضي الله عنها فرمايي چې: په اول کې دوه دوه رکعته مونځ فرض شوی وو، بيا د سفر د مونځ په خپل حال پاتې شو او د حضر مونځ پوره کړی شو.

٨- عَنْ عُمَرَ رضي الله عنه قَالَ: صَلَاةُ السَّفَرِ رَكْعَتَانِ، وَالْجُمُعَةُ رَكْعَتَانِ، وَالْعِيدُ رَكْعَتَانِ، تَمَامٌ غَيْرُ قَصْرٍ، عَلٰى لِسَانِ مُحَمَّدٍ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [ابن ماجة ص٧٦/ نسائی ج١ ص١٦٢].

حضرت عمر رضي الله عنه فرمايي چې: د سفر دوه رکعته دي، د جمعې مونځ دوه رکعته دی، د وړوکي لوی اختر مونځ دوه رکعته دی، چې پوره دي، قصر نه دی په ژبه د محمد ﷺ.

۹- عَنْ يَعْلَى بْنِ أُمَيَّةَ رضي الله عنه، قَالَ: قُلْتُ لِعُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رضي الله عنه: {لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَقْصُرُوا مِنَ الصَّلَاةِ، إِنْ خِفْتُمْ أَنْ يَفْتِنَكُمُ الَّذِينَ كَفَرُوا...} فَقَدْ أَمِنَ النَّاسُ، فَقَالَ: عَجِبْتُ مِمَّا عَجِبْتَ مِنْهُ، فَسَأَلْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ذٰلِكَ، فَقَالَ «صَدَقَةٌ تَصَدَّقَ اللهُ بِهَا عَلَيْكُمْ، فَاقْبَلُوا صَدَقَتَهُ» [مسلم ج١/ ص٢٤١].

حضرت يعلى بن امية رضي الله عنه فرمايي چې: ما عمر بن الخطاب رضي الله عنه ته د [ليس عليكم جناح] آيت په باره کې وويلې چې اوس خو خلک په أمن دى (او په دې کې د قصر لپاره شرط د ويرې ذکر شوى دى). نو حضرت عمر رضي الله عنه وفرمايل چې: په ما باندې هم هغه خبره عجيبه ولګيدله کومه چې: په تا باندې عجيبه لګيدلې ده، بيا ما د رسول الله ﷺ څخه ددې په باره کې پوښتنه وکړه نو رسول الله ﷺ راته وفرمايل چې: دا دوه رکعته د الله جل جلاله له طرفه په تاسو باندې صدقه ده لهذا تاسو د الله جل جلاله صدقه قبوله کړئ.

١٠- عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنهما، قَالَ: «فَرَضَ اللهُ الصَّلَاةَ عَلَى لِسَانِ نَبِيِّكُمْ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْحَضَرِ أَرْبَعًا، وَفِي السَّفَرِ رَكْعَتَيْنِ، وَفِي الْخَوْفِ رَكْعَةً» [مسلم ج١/ ص٢٤١] عبد الله بن عباس رضي الله عنه فرمايي چې: الله جل جلاله د پيغمبر په ژبه باندې په حضر کې څلور، په سفر کې دوه او د خوف په حالت کې يو رکعت مقرر کړى دى.

١١- وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنهما قَالَ: «صَلَّى رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- حِينَ سَافَرَ رَكْعَتَيْنِ رَكْعَتَيْنِ وَحِينَ أَقَامَ أَرْبَعًا، قَالَ: وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ رضي الله عنهما: فَمَنْ صَلَّى فِي السَّفَرِ أَرْبَعًا كَمَنْ صَلَّى فِي الْحَضَرِ رَكْعَتَيْنِ» [مجمع الزوايد ج٢/ ص١٥٥].

عبد الله بن عباس رضي الله عنه فرمايي چې: رسول الله ﷺ په سفر کې دوه دوه رکعته مونځ کولو او په حضر کې يې څلور رکعته مونځ کولو، راوي فرمايي چې: عبد الله بن عباس رضي الله عنه وفرمايل چې: چا چې په سفر کې څلور رکعته وکړل هغه د هغه چا په شان دى چې په حضر کې دوه رکعته کوي.

١٢- عَنْ مُوسَى بْنِ سَلَمَةَ الْهُذَلِيِّ رحمه الله قَالَ: سَأَلْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ رضي الله عنهما: كَيْفَ أُصَلِّي إِذَا كُنْتُ بِمَكَّةَ، إِذَا لَمْ أُصَلِّ مَعَ الْإِمَامِ؟ فَقَالَ: «رَكْعَتَيْنِ سُنَّةَ أَبِي الْقَاسِمِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ» [مسلم ج١/ ص٢٤١].

موسى بن سلمة الهذلى رحمه الله فرمايي چې: ما د عبد الله بن عباس رضي الله عنه څخه پوښتنه وکړه چې کله زه په مکه کې يم او يوازې مونځ کوم نو څو رکعته مونځ وکړم؟ هغه رضي الله عنه راته وفرمايل چې: دوه رکعته کوه. دا سنة د ابو القاسم محمد ﷺ دى.

١٣- عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنهما أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ مِنَ الْمَدِينَةِ إِلَى مَكَّةَ لَا يَخَافُ إِلَّا رَبَّ الْعَالَمِينَ، فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ [ترمذی ج۱/ص۱۳۲].

عبدالله بن عباس رضي الله عنه فرمايي چې: نبی ﷺ د مدينې منورې څخه مکې مکرمې ته لاړو، په داسې حالت کې چې د الله جل جلاله څخه داريدلو او د بل هيچا څخه يې دارنه وو نو دوه رکعته مونځ يې وکړو.

١٤- وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه قَالَ: «سَافَرْتُ مَعَ رَسُولِ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- وَمَعَ أَبِي بَكْرٍ وَعُمَرَ رضي الله عنهما، كُلُّهُمْ صَلَّى مِنْ حِينِ يَخْرُجُ مِنَ الْمَدِينَةِ إِلَى أَنْ يَرْجِعَ إِلَيْهَا رَكْعَتَيْنِ فِي الْمَسِيرِ وَالْمُقَامِ بِمَكَّةَ. [مجمع الزوايد ج۲ ص۱۵۶].

ابو هريرة رضي الله عنه فرمايي چې: ما د رسول الله ﷺ، د ابوبکر رضي الله عنه او د عمر رضي الله عنه سره (د مکې) سفرونه کړي دي، دوی ټول به چې د مدينې څخه ووتل، نو په لاره او په مکه کې د قيام په حالت کې به يې دوه دوه رکعته مونځ کولو تردې چې بېرته به مدينې منورې ته راغلل.

١٥- عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ رحمه الله قَالَ: «إِنَّ نَاسًا قَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ! كُنَّا مَعَ فُلَانٍ فِي سَفَرٍ فَأَبَى إِلَّا أَنْ يُصَلِّيَ لَنَا أَرْبَعًا أَرْبَعًا، فَقَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: إِذًا وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ تُضِلُّونَ». [المدونة الکبری ج۱/ ص۱۲۱].

حضرت عطاء بن يسار رحمه الله فرمايي چې: يو څه خلکو عرض وکړو چې يا رسول الله ﷺ مونږ د فلاني سړي سره په سفر کې وو، هغه سوا د څلورو رکعتو څخه د بل مونځ څخه انکار کولو. رسول الله ﷺ وفرمايل چې: په هغه ذات مې دې قسم وي چې زما روح د هغه په قبضه کې دی چې په دغه وخت کې به تاسې بې لارې شئ.

١٦- عَنْ إِبْرَاهِيمَ رحمه الله، أَنَّ ابْنَ مَسْعُودٍ رضي الله عنه قَالَ: «مَنْ صَلَّى فِي السَّفَرِ أَرْبَعًا أَعَادَ الصَّلَاةَ» [معجم طبراني کبير ج۹/ ص۲۸۹]. ابراهيم نخعی رحمه الله فرمايي چې: عبدالله بن مسعود رضي الله عنه وفرمايل چې: چا په سفر کې څلور رکعته وکړل نو مونځ دې واپس راوګرځوي.

١٧- وَعَنْ خَلَفِ بْنِ حَفْصٍ رحمه الله عَنْ أَنَسٍ رضي الله عنه قَالَ: «انْطَلَقَ بِنَا إِلَى الشَّامِ إِلَى عَبْدِ الْمَلِكِ وَنَحْنُ أَرْبَعُونَ رَجُلًا مِنَ الْأَنْصَارِ رضي الله عنهم لِيَفْرِضَ لَنَا، فَلَمَّا رَجَعَ وَكُنَّا بِفَجِّ النَّاقَةِ صَلَّى بِنَا الظُّهْرَ رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ دَخَلَ فُسْطَاطَهُ وَقَامَ الْقَوْمُ يُضِيفُونَ إِلَى رَكْعَتَيْهِمْ رَكْعَتَيْنِ أُخْرَيَيْنِ فَقَالَ: قَبَّحَ اللهُ الْوُجُوهَ فَوَاللهِ مَا أَصَابَتِ السُّنَّةَ وَلَا قَبِلَتِ الرُّخْصَةَ، فَأَشْهَدُ لَسَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: "إِنَّ قَوْمًا يَتَعَمَّقُونَ فِي الدِّينِ يَمْرُقُونَ كَمَا يَمْرُقُ السَّهْمُ مِنَ الرَّمِيَّةِ» [مجمع الزوايد ج۲/ ص۱۵۵].

خلف بن حفص رحمة الله عليه د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت کوي چې: مونږ څلوېښت انصار شام ته لاړو چې عبد الملک مونږ ته څه وظيفه مقرره کړي کله چې مونږ راواپس شو او د فج الناقی مقام ته راورسيدلو نو حضرت انس رضي الله عنه مونږ ته دوه رکعته د ماسپښين مونځ راکړو او بيا خپلې خيمې ته لاړو او خلک پاڅيدل او دوه رکعتونو سره يې دوه نور اضافه کول، نو حضرت انس رضي الله عنه وفرمايل چې: الله جل جلاله دې د دوي مخونه خراب کړي، په الله جل جلاله قسم چې دوي نه سنتو ته ورسيدل او نه يې رخصت قبول کړو، شاهدان اوسئ چې ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه اوريدلي دي چې يو قوم به په دين کې تعمق کوي لکن دوي به د دين څخه داسې وزي لکن غشی چې د ښکار څخه ووزي.

ددې احاديثو څخه معلومه شوه چې په سفر کې قصر يواځې افضل نه بلکې واجب او ضروري دی، لکن ددې په خلاف لامذهبان ليکي چې قصر صرف افضل دی نور څلور رکعته هم صحيح دي. [نزل الابرار ج۱/ ص۱۴۸] کنز الحقايق ص۳۴] صلوة النبی صلى الله عليه وسلم ص۲۸۷].

## ۸-أقل الحيض وأكثره، د حيض کمه او زياته موده

۱- عَنْ أَبِي أُمَامَةَ رضي الله عنه، عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: " «أَقَلُّ الْحَيْضِ ثَلَاثٌ، وَأَكْثَرُهُ عَشْرٌ» [رواه الطبرانی فی الكبير والاوسط مجمع الزوايد ج۱/ ص۲۸۰]. حضرت ابو امامة رضي الله عنه د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه روايت کوي چې: اقله موده د حيض درې ورځې ده او اکثره موده د حيض لس ورځې ده.

۲- عَنْ وَاثِلَةَ بْنِ الْأَسْقَعِ رضي الله عنه، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَقَلُّ الْحَيْضِ ثَلَاثَةُ أَيَّامٍ وَأَكْثَرُهُ عَشَرَةُ أَيَّامٍ». [دار قطني ج۱/ ص۲۱۹]. واثلة بن الاسقع رضي الله عنه د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه روايت کوي چې: اقله موده د حيض درې ورځې ده او اکثره يې لس ورځې ده.

۳- عَنْ أَنَسٍ رضي الله عنه قَالَ: أَدْنَى الْحَيْضِ ثَلَاثَةٌ. [رواه الدارمی ج۱/ ص۱۷۲] قلت رجاله رجال مسلم اعلاء السنن ج۱/ ص۲٤۷].

٤- عَنْ أَنَسٍ رضي الله عنه، قَالَ: «أَدْنَى الْحَيْضِ ثَلَاثَةٌ، وَأَقْصَاهُ عَشَرَةٌ» [دارقطنی ج۱/ ص۲۰۹]. يعنې کمه موده د حيض درې ورځې ده او زياته يې لس ورځې ده.

۵- عَنِ الْحَسَنِ رحمه الله، أَنَّ عُثْمَانَ بْنَ أَبِي الْعَاصِ الثَّقَفِيَّ رضي الله عنه، قَالَ: «الْحَائِضُ إِذَا جَاوَزَتْ عَشَرَةَ أَيَّامٍ فَهِيَ بِمَنْزِلَةِ الْمُسْتَحَاضَةِ تَغْتَسِلُ وَتُصَلِّي». [دارقطنی ج۱/ ص۲۱۰]. عثمان بن ابی العاص رضي الله عنه فرمايي چې: د حايضې وينه چې د لسو ورځو څخه واوښته نو دا د مستحاضې په شان ده غسل به کوي او مونځ به کوي.

٦- عَنْ سُفْيَانَ رحمه الله، قَالَ: «أَقَلُّ الْحَيْضِ ثَلَاثٌ وَأَكْثَرُهُ عَشْرٌ». [دار قطنی ج۱/ ص۲۱۰].

حضرت سفيان رحمه الله فرمايي چې اقله موده د حيض درې ورځې ده او اکثره موده يې لس ورځې ده.

ددې احاديثو او اثارو څخه معلومه شوه چې کمه موده د حيض درې ورځې ده او زياته موده يې لس ورځې ده لکن ددې احاديثو او اثارو په خلاف غير مقلدين ليکي چې: د حيض د اقلې او اکثرې مودې تعين په هيڅ حديث کې نشته. [بدور الأهلة ص۳۵ عرف الجادی ص۱۶ نزل الابرار ج۱/ ص۴۵ تيسير الباری ج۱/ ۲۳۰].

## ۹-د بې اودسۍ په حالت کې قرآن ته لاس وروړل ناجايز دي

۱- الله جل جلاله فرمايي چې لايمسه الا المطهرون. قرآن ته دې لاس نه وروړي مګر پاک خلک.

۲- عَنْ حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ رضي الله عنه، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا بَعَثَهُ وَالِيًا إِلَى الْيَمَنِ قَالَ: «لَا تَمَسَّ الْقُرْآنَ إِلَّا وَأَنْتَ طَاهِرٌ». [مستدرک حاکم ج۳/ ص۴۸۵] دارقطنی ج۱/ ص۱۲۲]. رسول الله صلی الله علیه وسلم چې کله حکيم بن حزام رضي الله عنه د يمن والی کړو نو يو نصيحت يې دا ورته وکړو چې قرآن ته صرف د پاکۍ په حالت کې لاس وروړه.

۳- عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ رضي الله عنهما أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: " «لَا يَمَسَّ الْقُرْآنَ إِلَّا طَاهِرٌ» "رَوَاهُ الطَّبَرَانِيُّ فِي الْكَبِيرِ وَالصَّغِيرِ، وَرِجَالُهُ مُوَثَّقُونَ. [مجمع الزوايد ج۱/ ص۲۷٦]. د عبدالله بن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل چې: قرآن ته دې صرف پاک خلک لاس وروړي.

۳- عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بَكْرِ بن محمد بن عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ رضي الله عنه، أَنَّ فِي الْكِتَابِ الَّذِي كَتَبَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِعَمْرِو بْنِ حَزْمٍ: أَنْ لَا يَمَسَّ الْقُرْآنَ إِلَّا طَاهِرٌ. [مؤطأ امام مالک ص۱۵۸].

حضرت عبدالله بن ابی بکر بن حزم رضي الله عنه فرمايي چې: هغه خط چې رسول الله صلی الله علیه وسلم عمرو بن حزم رضي الله عنه ته ليکلی وو په هغې کې دا وو چې قرآن ته به صرف پاک انسان لاس وروړي.

۴-د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی حضرت عمر رضي الله عنه چا خبر کړو چې ستا خور او اوښی مسلمانان شوي دي، حضرت عمر رضي الله عنه د خپلې خور او اوښي پسې راغلو د دوي سره يو بل مهاجر

صحابي وو چې حضرت خباب نوميدلو او دوي سورة طه لوستلو، حضرت عمر ﷺ ورته وويل چې: دا تاسو چې کوم کتاب لوستلو، ما ته يې راکړه نو خوريې ورته وويل چې: ته ناپاکه يې او دې کتاب ته ناپاکان لاس نه شي وروړلى نو پاڅيږه غسل او يا اودس وکړ! نو حضرت عمر ﷺ پاڅيدلو، اودس يې وکړو، بيا يې کتاب را واخيستلو او د طه سورة يې ولوستلو، فقام عمر ﷺ فتوضأ ثم أخذ الكتاب فقرأ طه. [دار قطنی ج۱/ ص۱۲۳].

۵- وَكَانَ أَبُو وَائِلٍ رحمه الله: «يُرْسِلُ خَادِمَهُ وَهِيَ حَائِضٌ إِلَى أَبِي رَزِينٍ رحمه الله، فَتَأْتِيهِ بِالْمُصْحَفِ، فَتُمْسِكُهُ بِعِلَاقَتِهِ. [بخاری ج۱/ ص۴۳].

حضرت ابو وايل رحمه الله به خپله خادمه ابی رزين رحمه الله ته ورليږله، په داسې حالت چې دا به حايضه وه، نو دې به قرآن را واخيستلو نو د کړۍ څخه به يې ونيولو.

۶- عبد الرحمن الشافعی رحمه الله فرمايي چې: وَلَا يَجُوزُ مَسُّ الْمُصْحَفِ وَلَا حَمْلُهُ لِمُحْدِثٍ بِالْإِجْمَاعِ. [رحمة الامة ص۱۵].

په اجماع سره بې اودسه سړی قرآن ته لاس نه شي وروړلى او نه يې را اخيستى شي، لکن د دې آيت او د احاديثو او د آثارو او د امت د اجماع په خلاف باندې غير مقلدين ليکي چې بې اودسه انسان قرآن ته لاس ور وړلى شي. [نزل الابرار ج۱/ ص۹، عرف الجادی ص۱۵].

## ۱۰- د سهوې سجدې له سلام څخه وروسته دې او وروسته د تشهد لوستل پکار دي

عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رضي الله عنه مَرْفُوعًا وَإِذَا شَكَّ أَحَدُكُمْ فِي صَلَاتِهِ، فَلْيَتَحَرَّ الصَّوَابَ فَلْيُتِمَّ عَلَيْهِ، ثُمَّ لِيُسَلِّمْ، ثُمَّ يَسْجُدُ سَجْدَتَيْنِ». [بخاری ج۱/ ص۵۸]

رسول الله ﷺ فرمايي چې: کله کوم يو نفر ستاسې په مانځه کې شکي شي نو د صحيح لپاره دې سوچ وکړي او په هغې باندې خپل مونځ پوره کړي، بيا دې سلام وګرځوي، بيا دې دوه سجدې د سهوې لپاره وکړي.

۲- عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ جَعْفَرٍ رضي الله عنه، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «مَنْ شَكَّ فِي صَلَاتِهِ، فَلْيَسْجُدْ سَجْدَتَيْنِ بَعْدَ مَا يُسَلِّمُ» [مسند أحمد ج۱/ ص۲۰۵، نسائی ج۱/ ص۱۴۰، ابوداؤد ج۱/ ص۱۴۸] رسول الله ﷺ فرمايي چې څوک شکي شي په مانځه کې نو د سلام څخه دې وروسته دوه سجدې وکړي.

٣- عَنْ ثَوْبَانَ ﷺ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «لِكُلِّ سَهْوٍ سَجْدَتَانِ بَعْدَ مَا يُسَلِّمُ».. [ابوداؤد ج١/ ص١٤٩].

رسول الله ﷺ فرمايي چې: د هرې سهوې لپاره دوه سجدې دي د سلام څخه وروسته.

٤- عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ، «أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَلَّمَ، ثُمَّ سَجَدَ سَجْدَتَي السَّهْوِ وَهُوَ جَالِسٌ، ثُمَّ سَلَّمَ».. [نسائي ج١/ ص١٤٩]. رسول الله ﷺ سلام وګرځولو، بيا يې د سهوې لپاره په ناسته باندې دوه سجدې وکړې، بيا يې سلام وګرځولو.

٥- عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ ﷺ، «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى ثَلَاثًا، ثُمَّ سَلَّمَ»، فَقَالَ الْخِرْبَاقُ: إِنَّكَ صَلَّيْتَ ثَلَاثًا، «فَصَلَّى بِهِمُ الرَّكْعَةَ الْبَاقِيَةَ، ثُمَّ سَلَّمَ، ثُمَّ سَجَدَ سَجْدَتَي السَّهْوِ، ثُمَّ سَلَّمَ. [نسائي ج١/ ص١٤١].

نبي ﷺ يوه ورځ په سهوه درې رکعته مونځ وکړو او سلام يې وګرځولو، نو حضرت خرباق ﷺ ورته وفرمايل چې تا خو درې رکعته مونځ وکړو، نو رسول الله ﷺ پاتې رکعت لمونځ هم وکړو، بيا يې سلام وګرځولو، بيا يې د سهوې لپاره دوه سجدې وکړې، بيا يې سلام وګرځولو.

٦- عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ ﷺ، «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى بِهِمْ فَسَهَا، فَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ، ثُمَّ تَشَهَّدَ، ثُمَّ سَلَّمَ» [ابوداؤد ج١/ ص١٤٩، ترمذي ج١/ ص٩٠].

نبي ﷺ يوه ورځ د جماعت په مانځه کې سهوه شو، نو دوه سجدې يې وکړې، بيا يې تشهد وويلو او سلام يې وګرځولو.

٧- عَنْ زِيَادِ بْنِ عِلَاقَةَ رحمه الله، قَالَ: صَلَّى بِنَا الْمُغِيرَةُ بْنُ شُعْبَةَ ﷺ فَنَهَضَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ، قُلْنَا: سُبْحَانَ اللهِ، قَالَ: سُبْحَانَ اللهِ وَمَضَى، فَلَمَّا أَتَمَّ صَلَاتَهُ وَسَلَّمَ، سَجَدَ سَجْدَتَي السَّهْوِ، فَلَمَّا انْصَرَفَ، قَالَ: «رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصْنَعُ كَمَا صَنَعْتُ [ابوداؤد ج١/ ص١٤٨، ترمذي ج١/ ص٨٣ ، مسند أحمد ج١/ ص٢٤٧].

زياد بن علاقة رحمه الله فرمايي چې: يوه ورځ مغيرة بن شعبة ﷺ مونږ ته مونځ راکولو، نو د دوو رکعتونو څخه وروسته نيغ پاڅيده، (اوله قعده يې ونکړه) مونږ ورته د سبحان الله سبحان الله اوازونه وکړل، نو حضرت مغيرة ﷺ هم سبحان الله وويلې، نو کله يې چې مونځ پوره کړو او سلام يې وګرځولو، نو د سهوې لپاره يې دوه سجدې وکړې، نو کله چې د مانځه څخه راوګرځيدلو نو وې فرمايل چې: ما رسول الله ﷺ ليدلي دي چې همداسې يې کړي وو لکه څرنګه چې ما وکړل.

۸- عَنْ عَلْقَمَةَ رحمة الله عليه أَنَّ ابْنَ مَسْعُودٍ رضي الله عنه سَجَدَ سَجْدَتَيِ السَّهْوِ بَعْدَ السَّلَامِ، وَذَكَرَ أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَعَلَ ذٰلِكَ. [ابن ماجة ص٨٦]. حضرت علقمة رحمه الله فرمايي چې: عبد الله بن مسعود رضي الله عنه د سهوې لپاره د سلام څخه وروسته دوه سجدې وکړې او بيا يې وفرمايل چې رسول الله ﷺ همداسې کول.

۹- عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ رحمة الله عليه قَالَ قَالَ عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْعُودٍ رضي الله عنه: إِذَا قَامَ أَحَدُكُمْ فِي قُعُودٍ أَوْ قَعَدَ فِي قِيَامٍ أَوْ سَلَّمَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ فَلْيُتِمَّ ثُمَّ لِيُسَلِّمْ، ثُمَّ لِيَسْجُدْ سَجْدَتَيْنِ يَتَشَهَّدُ فِيهِمَا وَيُسَلِّمُ. [المدونة الكبرى ج/١ ص١٣٦]. عبد الله بن مسعود رضي الله عنه فرمايلي دي چې په تاسو کې چې چا د قعود په ځای قيام وکړو او يا يې د قيام په ځای قعود وکړو او يا يې د دوو رکعتونو څخه وروسته سلام وګرځولو، نو دا دې مونځ پوره کړي او د سلام څخه دې وروسته دوه سجدې وکړي. بيا دې التحيات ولولي او سلام دې وګرځوي.

۱۰- عَبْدُ اللهِ بْنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنهما قَالَ: سَجْدَتَا السَّهْوِ بَعْدَ السَّلَامِ. [طحاوی ج/١ ص٢٩٩] عبد الله بن عباس رضي الله عنه فرمايي چې د سهوې دوه سجدې د سلام څخه وروسته دي.

۱۱- عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي رَبَاحٍ رحمه الله تعالى، قَالَ: صَلَّيْتُ خَلْفَ ابْنِ الزُّبَيْرِ رضي الله عنهما، فَسَلَّمَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ، فَسَبَّحَ الْقَوْمُ فَقَامَ فَأَتَمَّ الصَّلَاةَ، فَلَمَّا سَلَّمَ سَجَدَ سَجْدَتَيْنِ بَعْدَ السَّلَامِ، قَالَ عَطَاءٌ رحمة الله عليه: فَانْطَلَقْتُ إِلَى ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، فَذَكَرْتُ لَهُ مَا فَعَلَ ابْنُ الزُّبَيْرِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، فَقَالَ: «أَحْسَنَ وَأَصَابَ» [طحاوی ج/١ ص٢٩٩].

عبد الله بن الزبير رضي الله عنه يوه ورځ د امامتی په حالت کې په دوو رکعتونو کې سلام وګرځولو، نو خلکو د فتح لپاره سبحان الله وويلې، نو عبد الله بن زبير رضي الله عنه پاځيدلو مونځ يې پوره کړو کله يې چې سلام وګرځولو نو د سلام څخه وروسته يې دوه سجدې وکړې، حضرت عطاء رحمه الله فرمايي چې: زه ابن عباس رضي الله عنه ته ورغلم او د عبد الله بن زبير رضي الله عنه فعل مې ورته ذکر کړو، هغه وفرمايل چې: ښه يې کړي او حق ته رسيدلي دي.

۱۲- عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ رحمه الله تعالى بْنِ حَنْظَلَةَ رضي الله عنه بْنِ الرَّاهِبِ: «أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ، رَضِيَ اللهُ عَنْهُ صَلَّى صَلَاةَ الْمَغْرِبِ، فَلَمْ يَقْرَأْ فِي الرَّكْعَةِ الْأُولَى شَيْئًا. فَلَمَّا كَانَتِ الثَّانِيَةُ قَرَأَ فِيهَا بِفَاتِحَةِ الْقُرْآنِ، وَسُورَةٍ مَرَّتَيْنِ، فَلَمَّا سَلَّمَ، سَجَدَ سَجْدَتَيِ السَّهْوِ» [طحاوی ج/١ ص٢٩٨] حضرت عمر رضي الله عنه د ماښام مونځ وکړو نو په اول رکعت کې يې قراءت ونکړو بيا يې په دوهم رکعت کې سورة فاتحه او د وهم سورة دوه ځلې ولوستلو، بيا يې د سلام څخه وروسته د سهوې لپاره دوه سجدې وکړې.

۱۳- عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ رضي الله عنه، قَالَ: «فِي سَجْدَتَيِ السَّهْوِ، يُسَلِّمُ ثُمَّ يَسْجُدُ ثُمَّ يُسَلِّمُ [طحاوی ج/١ ص٢٩٩].

حضرت عمران بن حصين ﷺ به د سجدو د سهوې په باره کې فرمايل چې سلام به ګرځوي بيا به سجده کوی بيا به سلام ګرځوي.

١٤- عَنْ أَنَسٍ، رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّهُ قَالَ فِي الرَّجُلِ يَهِمُ فِي صَلَاتِهِ, لَايَدْرِي أَزَادَ أَمْ نَقَصَ؟ قَالَ: «يَسْجُدُ سَجْدَتَيْنِ بَعْدَمَا يُسَلِّمُ». [طحاوی ج/١ ص٢٩٩] حضرت أنس ﷺ د هغه سړي په باره کې وفرمايل کوم ته چې په مانځه کې وهم شوی وي او پدې نه پوهيږي چې زياتوالی يې کړی دی او که کم والی؟ نو دا سړی دې د سلام څخه وروسته دوه سجدې وکړي.

١٥- عَنْ قَيْسِ بْنِ أَبِي حَازِمٍ رحمه الله، قَالَ: "صَلَّى بِنَا سَعْدُ بْنُ مَالِكٍ ﷺ, فَقَامَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ الْأُولَيَيْنِ, فَقَالُوا: سُبْحَانَ اللهِ فَقَالَ: سُبْحَانَ اللهِ فَمَضَى, فَلَمَّا سَلَّمَ, سَجَدَ سَجْدَتَيِ السَّهْوِ".. [طحاوی ج/١ ص٢٩٨].

سعد بن مالک ﷺ يوه ورځ د جماعت مونځ ورکولو، نو په سهوه د اولو دوو رکعتونو څخه وروسته پاڅيدلو يعني اوله قعده يې ونکړه، خلکو د فتحې لپاره سبحان الله سبحان الله وويلې، نو حضرت سعد بن مالک ﷺ هم سبحان الله وويله او په مانځه کې مخکې لاړو، بيا يې د سلام څخه وروسته د سهوې لپاره دوه سجدې وکړې، ددې تمامو احاديثو په خلاف لامذهبان وايي چې: سجدې د سهوې د سلام څخه وروسته کول نه دي پکار. [صلوة الرسول ص٣١٣ صلوة النبی ص٣٥ وص٣٥٢].

## ١١-مقتدي چې سهوه شي نو سجده سهوه به نه کوي

١- عَنْ عُمَرَ ﷺ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «لَيْسَ عَلَى مَنْ خَلْفَ الْإِمَامِ سَهْوٌ, فَإِنْ سَهَا الْإِمَامُ فَعَلَيْهِ وَعَلَى مَنْ خَلْفَهُ السَّهْوُ, وَإِنْ سَهَا مَنْ خَلْفَ الْإِمَامِ فَلَيْسَ عَلَيْهِ سَهْوٌ وَالْإِمَامُ كَافِيهِ» [دار قطنی ج/١ ص٣٧٧]. رسول الله ﷺ فرمايي چې په مقتدي باندې سجده سهوه نشته، که امام سهوه شو نو بيا په امام او مقتدی دواړو باندې سجده سهوه ده او که مقتدي سهوه شو نو په ده باندې سجده سهوه نشته، دده لپاره امام کافي دی.

٢- عَنْ إِبْرَاهِيمَ رحمه الله، أَنَّهُ قَالَ: «إِذَا سَهَوْتَ خَلْفَ الْإِمَامِ, وَحَفِظَ الْإِمَامُ, فَلَيْسَ عَلَيْكَ سَهْوٌ, وَإِنْ سَهَا وَحَفِظْتَ فَعَلَيْكَ السَّهْوُ, وَإِنْ لَمْ يَسْجُدِ الْإِمَامُ فَلَا تَسْجُدْ, وَكَذَلِكَ إِذَا سَهَا جَمِيعُ مَنْ مَعَ الْإِمَامِ أَوْ سَهَا الْإِمَامُ» [كتاب برواية الامام ابی يوسف ص٣٧].

ابراهيم نخعی رحمه الله فرمايي چې: کله چې ته د امام پسې سهوه شې او امام نه وي سهوه شوی، نو په تا باندې سجده سهوه نشته. او که امام سهوه شو او ته نه وې سهوه شوی نو بيا په تا باندې سجده

سهوه ده، که امام سجده ونه کړه نو ته یې هم مه کوه. همدارنګه که ټول مقتدیان سهوه شول نو په یو باندې هم سجده نه شته او که امام سهوه شو نو په ټولو باندې سجده سهوه ده.

۳- علامه محمد بن عبد الرحمن الشافعي رحمه الله لیکي چې: ولو سها خلف الامام لم یسجد بالاتفاق. [رحمة الامة فی اختلاف الایمة ص۴۳]. یعنې په اتفاق د ټول امت په مقتدیانو باندې چې کله سهوه شي، سجده سهوه نه شته.

ددې احادیثو او د اجماع په خلاف لامذهبان وایي چې: کله چې مقتدی سهوه شي نو سجده سهوه به کوي. [بدور الاهلة ص۶۸].

## ۱۲- د سجدې د تلاوت لپاره اودس شرط دی

۱- عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: لَا تُقْبَلُ صَلَاةٌ بِغَيْرِ طُهُورٍ [ترمذی ج۱/ ص۱۳].
رسول الله ﷺ فرمایي چې: بې اودسه مونځ نه قبلیږي. او سجده د تلاوت د مانځه د جملې څخه ده، ځکه چې د سجدې د تلاوت لپاره د مانځه په شان نیت، ستر عورت او استقبال القبلة شرط دي او د مانځه په شان تسبیح او تکبیر هم پکې شته، له همدې وجې عبد الله بن عمر رضی الله عنه لاندې فتوی ورکوي.

۲- عَنْ نَافِعٍ رحمه الله عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، أَنَّهُ قَالَ: "لَا يَسْجُدُ الرَّجُلُ (سَجْدَةَ التِّلَاوَةِ) إِلَّا وَهُوَ طَاهِرٌ" [بیهقی ج۲/ ص۳۲۵] یعنې هیڅوک دې بې اودسه سجده د تلاوت نه کوي، لکن ددې په خلاف لامذهبان بې اودسه سجدې د تلاوت ته جایز وایي. [نزل الابرار ج۱/ ص۱۴۶].

## ۱۳- د وینې د وتلو په وجه اودس ماتیږي

۱- عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "مَنْ أَصَابَهُ قَيْءٌ أَوْ رُعَافٌ أَوْ قَلَسٌ أَوْ مَذْيٌ، فَلْيَنْصَرِفْ، فَلْيَتَوَضَّأْ، ثُمَّ لِيَبْنِ عَلَى صَلَاتِهِ، وَهُوَ فِي ذَلِكَ لَا يَتَكَلَّمُ" [ابن ماجة ص۸۷].

حضرت عایشة رضی الله عنها فرمایي چې: رسول الله ﷺ فرمایلي دي چې چا د مانځه په وخت کې قئ وکړه یا یې د پوزو څخه وینې لاړې، یا ترینه مذي لاړه، نو لاړ دې شي اودس دې وکړي او د همغه ځای څخه دې مونځ شروع کړي، ترکوم ځای پورې یې چې رسولی وو، پدې شرط چې خبرې یې نه وي کړي.

۲- فاطمې بنت ابی حبیش رضی الله عنها رسول الله ﷺ ته وویلې چې یا رسول الله ﷺ (انی لا أطهر أفأدع الصلوة) یعنې زه نه پاکیږم آیا مونځ پریږدم؟ نو رسول الله ﷺ ورته وفرمایل چې: دا د رګ وینه ده

حیض نه دی، نو کله چې د حیض وینه راغله نو مونځ پریږده او چې کله د اندازې مطابق هغه ورځې تیرې شوې نو وینه وینځه او مونځ وکړه. [بخاری ج۱/ ص۴۴].

۳- عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ رضي الله عنه قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ: اَلْوُضُوْءُ مِنْ كُلِّ دَمٍ سَائِلٍ. [کامل ابن عدی ج۱/ ص۱۹۳]. رسول الله ﷺ فرمایي چې د هرې روانې وینې څخه وروسته اودس لازمیږي.

٤- عَنْ عُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيْزِ رحمه الله قَالَ: قَالَ تَمِيْمُ الدَّارِيُّ رضي الله عنه: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «اَلْوُضُوْءُ مِنْ كُلِّ دَمٍ سَائِلٍ».. [دار قطنی ج۱/ ص۱۵۷].

رسول الله ﷺ فرمایي چې: د هرې روانې وینې څخه وروسته اودس لازمیږي، د تمیم داری رضي الله عنه په حدیث باندې دوه اعتراضه شوی دی، اول دا چې پدې روایت کې دوه راویان مجهول دي، یو یزید بن خالد او دوهم یزید بن محمد. دوهم دا چې د عمر بن عبد العزیز سماع د تمیم الداری رضي الله عنه څخه نه ده ثابته، لکن ظفر أحمد عثماني په اعلاء السنن ج۱/ ص۱۵۲ کې جواب ورکړی دی چې:

قَالَ فِي السِّعَايَةِ: يَزِيْدُ بْنُ خَالِدٍ وَيَزِيْدُ بْنُ مُحَمَّدٍ قَدِ اخْتُلِفَ فِيْهِمَا، وَقَدْ أُوْثِقُوْهُ، كَمَا فِي الْكَاشِفِ لِلذَّهَبِيْ (جامع للآثار لشیخنا: ص۱۱) قُلْتُ: وَهُوَ مُعْتَضَدٌ بِالَّذِيْ قَبْلَهُ، وَارْتَفَعَ قَوْلُ الدَّارَقُطْنِيْ بِالْجَهَالَةِ بِتَوْثِيْقِ غَيْرِهِ فَإِنَّ الْمَجْهُوْلَ لَا يُوْثَقُ، وَعَدَمُ سِمَاعِ عُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيْزِ رحمه الله الْخَلِيْفَةِ الرَّاشِدِ مِنْ تَمِيْمٍ رضي الله عنه لَا يَضُرُّنَا فَإِنَّ الْإِنْقِطَاعَ فِي الْقَرْنِ الثَّانِيْ وَالثَّالِثِ لَيْسَ بِعِلَّةٍ عِنْدَنَا لَا سِيَمَا إِرْسَالُ مِثْلِ عُمَرَ رَحِمَهُ اللّٰهُ.

٥- عَنْ مَعْمَرٍ رحمه الله، عَنْ أَيُّوْبَ رحمه الله، عَنِ ابْنِ سِيْرِيْنَ رحمه الله فِي الرَّجُلِ يَبْصُقُ دَمًا، قَالَ: «إِنْ كَانَ الْغَالِبُ عَلَيْهِ الدَّمُ تَوَضَّأَ». [مصنف عبد الرزاق ج۱/ ص۱٤۸]. ابن سیرین رحمه الله د هغه چا په باره کې چې په لاړو کې یې وینې راشي فرمایي چې کله په لاړو باندې وینه غالبه وي نو اودس دې وکړي.

فان قیل: چې په غزوة د ذات الرقاع کې په حضرت عیاذ بن بشر رضي الله عنه باندې د مانځه په حالت کې غشي لګیدل وینې ترې بهیدلې او هغه رضي الله عنه خپل مونځ کولو. قلنا: ۱- دا نده ثابته چې ددې واقعې څخه رسول الله ﷺ خبر شوی دی او کنه؟ او که خبر شوی وي نو څه یې ویلي دي؟ ۲- دا وینې چې په دې صحابي باندې روانې وې نو وینې خو نجسې دي نو په نجسو جامو کې دده رضي الله عنه مونځ څرنګه جایز وو؟ فما هو جوابکم عن نجاسة الدم فهو جوابنا عن انتقاض الوضوء. ۳- عیاذ بن بشر د قرآن د تلاوت په لذت کې دومره مستغرق وو چې مونځ یې نه پریښودلو نو د وینو پته هم ورته ونه لګیده، نو دا د

استغراق کیفیت دی، چې فقهی مسئله ترینه نه شی مستنبط کیدلی. ۴- په وینه باندې د اودس د ماتیدلو احادیث قواعد کلیه دي او دا یوه جزئی واقعه ده چې د قاعدې کلیې سره معارضه نه شي کیدلی ۵- ددې حدیث په سند کې د عقیل په نوم راوي مجهول دی او محمد بن اسحاق ته علماء دجرحې اوتعدیل دجال من الدجاجله وایي.

فان قیل: چې په بخاری ج۱/ ص۲۹ کتاب الوضوء، باب من لم یر الوضوء الا من المخرجین ... الخ کې یې د حسن بصری رحمة الله علیه د ابن ابی اوفی رضی الله عنه، د ابن عمر رضی الله عنه او د طاوس رحمة الله علیه آثار هم تعلیقاً ذکر کړی دي چې په وینه باندې د اودس نه ماتیدل ترینه معلومیږي.

قلنا: ۱- دا اثار سندونه نه لري او لامذهبان وایي چې بې سنده حدیث لره اعتبار نه شته. ۲- د صحابه وو او تابعینو اثارو د دواړو طرفونو ته شته، د امام بخاری استاذ ابن ابی شیبة په خپل مصنف (باب اذا سال الدم او قطر او برز ففیه الوضوء) کې ډیر اثار راوړي دي، چې د صحابه وو رضی الله عنهم او د تابعینو په نیز ترینه د اودس ماتیدل رامعلومیږي. ۳- کوم اثار چې په وینه باندې د اودس په نه ماتیدلو دلالت کوي په هغه ټولو کې دا تاویل هم کیږی چې د هغه د عذر په حالت باندې ور حمل دي. ۴- په وینه باندې د اودس د ماتیدلو په باره کې ډیر مرفوع احادیث دي کما مر. لهذا اثار د مرفوعو احادیثو مقابله نه شي کولای، بلکې ترجیح به مرفوع حدیث ته وي او یا به د تطبیق لپاره په اثارو کې تاویل کیږي.

فان قیل: چې په بخاری ج۱/ ص۲۹ (باب من لم یر الوضوء الا من المخرجین ...الخ کې د حسن بصری رحمة الله علیه دا قول ذکر شوی دی (مازال المسلمون یصلون فی جراحاتهم) یعني همیشه وو مسلمانان چې په زخمونو کې به یې مونځونه کول. قلنا: د حسن بصری رحمة الله علیه ددې قول څخه هغه زخمونه مراد دي چې وینه ترینه نه وي روانه او ددې دلیل دادی چې د امام بخاری رحمة الله علیه استاذ په مصنف ابن ابی شیبة کې په صحیح سند باندې د حسن بصری رحمة الله علیه دا قول رانقل کړی دی، چې: انه کان لایری الوضوء من الدم الا ما کان سائلاً.

د حسن بصری رحمة الله علیه په نیز په وینه باندې اودس نه شته مگر په هغه وینه باندې شته دی چې روانه وي. [مصنف ابن ابی شیبة / باب اذا سال الدم او قطر او برز ففیه الوضوء].

## ۱۴-نجاسة المني

وکتوری اهل حدیث وایي چې مني پاکه ده( نزل الابرار ص۴۹ ج۱کنزالحقایق ص ۱۶ عرف الجادي ص ۱۹/بدور الاهله ص۱۵/ فتاوی نذیریه ج۱ ص۳۳۵)او داحنافو په نیز نجسه ده (هدایه ص۷۳)

**نتيجة الاختلاف:**

۱-که په یو ګیلاس اوبو کې یو څاڅکی مني وغورزیدله، نو دوکتوري اهل حدیثو په نیز دا اوبه پاکې دي څښل یې جایز دي ځکه دواړه پاک شیان یو ځای شول، او داحنافو په نیز ناجایز دي.

۲-په منی باندی په لړلو جامو کې دوکتوري اهل حدیثو په نیز لمونځ جایز دی او داحنافو په نیز ناجایز دی.

**دلایل النجاسة:**

۱عَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ عَبَّاسٍ رضی الله عنه عَنِ النَّبِيِّ ﷺ: اَلْمَنِيُّ وَالْمَذِيُّ وَالْوَدِيُّ وَدَمُ الْحَيْضَةِ وَدَمُ النِّفَاسِ نَجَسٌ لَايصلي بثوب وقع فيه شيئ من ذٰلك حتي يغسل (الجامع الصحيح للامام الربيع ص ۳۲ ج۲.

حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنه فرمایي چې: رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي چې: مني،مذي،ودي، دحیض وینه اودنفاس وینه(ټول) نجس دي په کوموجامو چې په دوي کې څه لګیدلي وي نو په هغو جامو کې لمونځ ندی جایز، ترڅو چې ونه وینځلی شي، په دی صحیح حدیث کې په دریو طریقو دمنی نجاست بیان شو.

اول: رسول الله صلی الله علیه وسلم صراحةً منی ته نجس وویلې.

دوهم: مني یې دمذی، ودی،دحیض دویني، اودنفاس دوینې سره یو ځای ذکر کړه نو مني ددی اتفاقي نجاساتو په شان نجسه ده.

دریم: نبي صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې په منی باندې لړلو جامو کې تر هغه پورې لمونځ نه کیږي ترڅو چې ونه وینځلی شي.

۲-حضرت میمونه رضی الله عنها فرمایي چې ما رسول الله صلی الله علیه وسلم ته د جنابت څخه دغسل لپاره اوبه کیښودلې، رسول الله صلی الله علیه وسلم دوه یا درې ځلې لاسونه ووینځل بیا یې په لپه کې اوبه راواخستلې او په مخصوصه (په منۍ لړلې حصه) یې اوبه واچولې هغه یې په چپ لاس ووینځلو، بیا یې همدا چپ لاس په ځمکه وسولولو او ښه یې ووینځلو (صحیح البخاري ج ۱ ص ۴۰)

رسول الله صلی الله علیه وسلم د لاس په وینځلو کې ځکه مبالغه وکړه چې مني نجسه ده لکه نن صباخلک د غټې استنجا څخه وروسته لاس په صابون وینځي ځکه چې په نجاست کې استعمال شوی وي.

۳- د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه نده ثابته چې په منۍ باندې لړلو جامو کې یې صرف یو ځل لمونځ کړی وي نو که مني پاکه وی رسول الله صلی الله علیه وسلم خو به د بیان د جواز لپاره صرف یو ځل په منۍ باندې په لړلو جامو کې لمونځ کړی وو همدارنګه د هیڅ صحابي، تابعي او تبع تابعي څخه ندي ثابت چې په منۍ باندې لړلو جامو کې یې لمونځ کړی وي.

۴- الله جل جلاله منۍ ته ماء مهین یعنی ذلیله اوبه ویلي دي الم نخلقکم من ماء مهین نو که مني پاکه وی نو الله جل جلاله به ورته ذلیله اوبه نه ویلې؟

۱-عَنْ يَحْيَى بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ حَاطِبٍ رحمهم الله تعالى، أَنَّهُ اعْتَمَرَ مَعَ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رضي الله عنه، فِي رَكْبٍ فِيهِمْ عَمْرُو بْنُ الْعَاصِ رضي الله عنه وَأَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رضي الله عنه عَرَّسَ بِبَعْضِ الطَّرِيقِ، قَرِيباً مِنْ بَعْضِ الْمِيَاهِ. فَاحْتَلَمَ عُمَرُ رضي الله عنه، وَقَدْ كَادَ أَنْ يُصْبِحَ، فَلَمْ يَجِدْ مَعَ الرَّكْبِ مَاءً. فَرَكِبَ، حَتّٰى جَاءَ الْمَاءَ، فَجَعَلَ يَغْسِلُ مَا رَأَى مِنْ ذٰلِكَ الْاِحْتِلَامِ، حَتّٰى أَسْفَرَ، فَقَالَ لَهُ عَمْرُو بْنُ الْعَاصِ رضي الله عنه: أَصْبَحْتَ وَمَعَنَا ثِيَابٌ، فَدَعْ ثَوْبَكَ يُغْسَلُ، فَقَالَ لَهُ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رضي الله عنه: وَا عَجَباً لَكَ يَا ابْنَ الْعَاصِ! لَئِنْ كُنْتَ تَجِدُ ثِيَاباً أَفَكُلُّ النَّاسِ يَجِدُ ثِيَاباً؟ وَاللّٰهِ لَوْ فَعَلْتُهَا لَكَانَتْ سُنَّةً. بَلْ أَغْسِلُ مَا رَأَيْتُ، وَأَنْضَحُ مَا لَمْ أَرَ) (مؤطا امام مالك: ۳۶).

ترجمه: د حضرت عمر رضی الله عنه احتلام وشو او سهر نزدې شو نو په قافله کې یې اوبه پیدا نکړې نو اوبو ته لاړو بیا یې په منۍ باندې ککړ ځایونه وینځل تردې چې ښه رڼا شوه نو عمرو بن العاص رضی الله عنه ورته وفرمایل: چې تا سهر کړو مونږ سره پاکې جامې شته هغه واغونده (او مونږ ته امامت وکړه) نو حضرت عمر ورته وفرمایل چې تعجب ده چې که تاسو سره پاکې جامې وي نو هر چا سره خو نشته که زه داسې وکړم نو دا به یوه طریقه جوړه شي، زه چې مني وګورم هغه وینځم او چې وې نه ګورم هلته اوبه شیندم.

۲-عَنْ أَفْلَحَ بْنِ حُمَيْدٍ عَنْ أَبِيهِ رحمهم الله تعالى قَالَ: عَرَّسْنَا مَعَ ابْنِ عُمَرَ رضي الله عنهما بِالْأَبْوَاءِ ثُمَّ سِرْنَا حِينَ صَلَّيْنَا الْفَجْرَ حَتَّى ارْتَفَعَ النَّهَارُ فَقُلْتُ لِابْنِ عُمَرَ رضي الله عنهما: إِنِّي صَلَّيْتُ فِي إِزَارِي وَفِيهِ احْتِلَامٌ وَلَمْ أَغْسِلْهُ، فَوَقَفَ عَلَيَّ ابْنُ عُمَرَ رضي الله عنهما فَقَالَ: انْزِلْ فَاطْرَحْ إِزَارَكَ وَصَلِّ رَكْعَتَيْنِ وَأَقِمِ الصَّلَاةَ ثُمَّ صَلِّ الْفَجْرَ فَفَعَلْتُ (المدونة الكبرى ج ۱ صـ ۲۲)

ترجمه: حضرت جبیر حضرت عبد الله ابن عمر ته وفرمایل: ما په داسې لنګ کې لمونځ وکړو چې هغه کې زما احتلام شوی وو او وینځلې مې نه وو، نو حضرت عمر زما د وجې نه ودرېدو او وې فرمایل چې کوز شه جامې دې بدلې کړه او دوه رکعت سنت وکړه او بیا اقامت وکړه او بیا دسهار لمونځ وکړه حضرت جبیر فرمایي چې ما همداسې وکړه.

۳-عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ رضي الله عنه قَالَ: سَأَلَ رَجُلٌ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم-: أُصَلِّي فِي الثَّوْبِ الَّذِي آتِي فِيهِ أَهْلِي؟ قَالَ: "نَعَمْ، إِلَّا أَنْ تَرَى فِيهِ شَيْئًا فَتَغْسِلَهُ. (موارد الظمأن ج ۱صـ ۸۲)

ترجمه: یو سړي د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه پوښتنه وکړه چې ایا په هغه جامو کې لمونځ کولی شم چې په هغه کې مې دخپلې بي بي سره جماع کړې وي رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل چې هو مګر دا چې مني وربانديې پرته وي نو هغه ووینځه.

٤-عَنْ خَالِدِ بْنِ أَبِي عَزَّةَ رحمهما الله تعالى قَالَ: سَأَلَ رَجُلٌ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رضي الله عنه، فَقَالَ: إِنِّي احْتَلَمْتُ عَلَى طِنْفِسَةٍ، فَقَالَ: «إِنْ كَانَ رَطْبًا فَاغْسِلْهُ، وَإِنْ كَانَ يَابِسًا فَاحْكُكْهُ، وَإِنْ خَفِيَ عَلَيْكَ فَارْشُشْهُ» (مصنف ابن ابی شیبه ج ۱صـ ۸۵)

ترجمه: یو سړي د حضرت عمر نه پوښتنه وکړه چې زما په خپلو جامو کې احتلام وشو حضرت عمر ورته وفرمایل چې که لمده وي، نو وې مینځه او که وچه وي نو وې ګروه او که مشکوکه وي نو اوبه پرې وپاشه.

٥-عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا أَنَّهَا قَالَتْ فِي الْمَنِيِّ إِذَا أَصَابَ الثَّوْبَ: «إِذَا رَأَيْتَهُ فَاغْسِلْهُ وَإِنْ لَمْ تَرَهُ فَانْضَحْهُ (طحاوي ج ۱صـ ٤۳)

حضرت عائشه رضی الله عنها فرمایي چې کله په جامو باندې مني لګېدلي وي نو که ښکارېده نو وې مینځه او که نه ښکارېده نو اوبه وربانديې پاش کړه.

٦- عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ أَبِي سُفْيَانَ رضي الله عنهما، أَنَّهُ سَأَلَ أُخْتَهُ أُمَّ حَبِيبَةَ رضي الله عنها زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلْ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي فِي الثَّوْبِ الَّذِي يُجَامِعُهَا فِيهِ؟ فَقَالَتْ: (نَعَمْ إِذَا لَمْ يَرَ فِيهِ أَذًى (ابوداود ج ١صـ ٥٣)

حضرت معاويه رضی الله عنه د خپلې خور ام المؤمنين ام حبيبه رضی الله عنه څخه پوښتنه وکړه چې ايا رسول الله صلی الله په هغه جامو کې لمونځ کولو چې جماع به يې په کې کړې وه ؟ نو ام حبيبې رضی الله عنه وفرمايل هو مګر دا چې مني به پرې لګيدلې وه .

٧-عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه، قَالَ: فِي الْمَنِيِّ يُصِيبُ الثَّوْبَ «إِنْ رَأَيْتَهُ فَاغْسِلْهُ, وَإِلَّا فَاغْسِلِ الثَّوْبَ كُلَّهُ (طحاوي ج ١صـ ٤٣)

ترجمه: په جامو به چې مني لګيدلې وه نو ابو هريرة رضی الله عنه به فرمايل چې که د مني ځای درته ښکاريدو نو صرف هغه ومينځه او که نه ښکاريدو نو ټولې جامې ووينځه.

٨-عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ عُمَيْرٍ رضي الله عنه، قَالَ: سُئِلَ جَابِرُ بْنُ سَمُرَةَ رضي الله عنه وَأَنَا عِنْدَهُ، عَنِ الرَّجُلِ يُصَلِّي فِي الثَّوْبِ الَّذِي يُجَامِعُ فِيهِ أَهْلَهُ, قَالَ: «صَلِّ فِيهِ, إِلَّا أَنْ تَرَى فِيهِ شَيْئًا فَتَغْسِلُهُ وَلَا تَنْضَحْهُ, فَإِنَّ النَّضْحَ لَا يَزِيدُهُ إِلَّا شَرًّا (طحاوي ج ١صـ ٤٤)

ترجمه: حضرت جابر بن سمرة رضی الله عنه فرمايي چې د جماع په جامو کې لمونځ کولی شئ مګر دا چې مني ورباندې لګيدلې وي نو وې مينځه او به پرې مه پاشه ځکه چې هغه يې نور هم ګنده کوي.

٩-عَنْ عَبْدِ الْكَرِيمِ بْنِ رَشِيدٍ رحمه الله عليه، قَالَ: سُئِلَ أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ رضي الله عنه عَنْ قَطِيفَةٍ، أَصَابَتْهَا جَنَابَةٌ لَا يَدْرِي أَيْنَ مَوْضِعُهَا, قَالَ: «اغْسِلْهَا (طحاوي ج ١صـ ٤٤)

ترجمه: يو څادر چې مني ورباندې لګيدلې وي لکن ځای يې ورک وي نو حضرت انس رضی الله عنه فرمايي چې بيا ټول څادر ووينځه.

١٠-عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: «كُنْتُ أَفْرُكُ الْمَنِيَّ مِنْ ثَوْبِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ, إِذَا كَانَ يَابِسًا, وَأَغْسِلُهُ أَوْ أَمْسَحُهُ, إِذَا كَانَ رَطْبًا (طحاوي ج ١صـ ٤١)

حضرت عايئشه رضی الله عنها فرمايي چې ما به د رسول الله صلی الله عليه وسلم د جامو څخه لمده مني وينځله او وچه به مې ګروله .

۱۱- عَنْ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ ... قَالَ: اَتٰى عَلَىَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا عَلٰى بِئْرٍ أَدْلُو مَاءً فِي رَكْوَتِي، فَقَالَ: «يَا عَمَّارُ! مَا تَصْنَعُ؟»، قُلْتُ: يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ! بِأَبِي وَأُمِّي، أَغْسِلُ ثَوْبِي مِنْ نُخَامَةٍ أَصَابَتْهُ. فَقَالَ: "يَا عَمَّارُ! إِنَّمَا يُغْسَلُ الثَّوْبُ مِنْ خَمْسٍ: مِنَ الْغَائِطِ وَالْبَوْلِ وَالْقَيْءِ وَالدَّمِ وَالْمَنِيِّ. يَا عَمَّارُ، مَا نُخَامَتُكَ وَدُمُوعُ عَيْنَيْكَ وَالْمَاءُ الَّذِي فِي رَكْوَتِكَ إِلَّا سَوَاءٌ"(دارقطنی ج ۱صـ ۱۲۷)

ترجمه: حضرت عمار بن یاسر رضی الله عنه یو ورځ د خپلو جامو څخه لاړې وینځلې نو رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل چې لاړې او د سترګو او ښکې او بوشکې اوبه په پاکۍ کې یو برابر دي جامې د پنځو شیانو څخه وینځلی شي چې غائط دي، بول دي، قی دی، وینه ده او مني ده.

فانقیل: چې وچه مني د جامو څخه کرولی شي او په کرولو باندې نه زایلیږي نو که مني نجس وای نو کرول به پکې کافي نه وو؟

قلنا: د وچې مني کرول د طهارت دلیل ندی. کنه بیا پکار دی چې بول او غائط هم پاک شي. ځکه دا هم د بوټانو او څپلیو څخه کرول کیږي. حالانکې د بولو او غائطو د طهارت په باره کې هیچا قول ندی کړی.

فانقیل: چې په یو حدیث کې راغلي چې مني د بلغمو په شان ده؟

قلنا: دغه تشبیه په لزوجت، سلیخناک والي کې ده یعنې لکه بلغم چې سلیخناک دی دا هم داسې ده او په وجه ددې نه پاکیږي بلکې پکار دی چې اول یې په ذکي جامو نه لرې کړي او بیا ... 

خلاصه: دا ټول احادیث په دې دلالت کوي چې مني نجسه ده ځکه چې د جامو صفایي د نجس شي څخه کیږي. لکن د دې ټولو احادیثو په خلاف غیر مقلد نواب صدیق حسن خان لیکي چې (درنجاست منی ادمی دلیل نیامد) بدور الاهله صـ ۱۵) غیر مقلد نواب نور الحسن لیکي چې: منی هر چند پاک است (عرف الجادی صـ ۱۰) نواب وحید الزمان لیکي چې: والمنی طاهر سواء کان رطبا او یابسا مغلظا او غیر مغلظا (کنز الحقائق صـ ۱۶، نزل الابرار ج ۱صـ ۴۹)

## ۱۵- نجاسة الخمر والدم

۱- قال الله تعالٰی: ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْأَنْصَابُ وَالْأَزْلَامُ رِجْسٌ مِنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ فَاجْتَنِبُوهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ.﴾ (۹۰ المائدة)

۲- وقال الله تعالٰی: ﴿قُلْ لَا أَجِدُ فِي مَا أُوحِيَ إِلَيَّ مُحَرَّمًا عَلٰى طَاعِمٍ يَطْعَمُهُ إِلَّا أَنْ يَكُونَ مَيْتَةً أَوْ دَمًا مَسْفُوحًا أَوْ لَحْمَ خِنْزِيرٍ فَإِنَّهُ رِجْسٌ﴾ (الاعراف: ۱۴۵)

۳-عَنْ أَبِي ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيِّ رضي الله عنه، أَنَّهُ سَأَلَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: إِنَّا نُجَاوِرُ أَهْلَ الْكِتَابِ وَهُمْ يَطْبُخُونَ فِي قُدُورِهِمُ الْخِنْزِيرَ وَيَشْرَبُونَ فِي آنِيَتِهِمُ الْخَمْرَ، فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنْ وَجَدْتُمْ غَيْرَهَا فَكُلُوا فِيهَا وَاشْرَبُوا، وَإِنْ لَمْ تَجِدُوا غَيْرَهَا فَارْحَضُوهَا بِالْمَاءِ وَكُلُوا وَاشْرَبُوا». (ابوداود ج ۲ صـ ۱۷۱)

ترجمه: ابی ثعلبه رضی الله عنه فرمايي چې ما د رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه پوښتنه وکړه چې مونږ د يهودو سره ګاونډيان يوو هغوي په کټوو کې د خنزير غوښې پخوي او په خپلو لوښو کې شراب څکي رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته وفرمايل چې که نور لوښي وه نو هغوي کې خوراو څښاک کوئ او که نه وه نو هم دغه وينځئ او خوراک او څښاک په کې کوئ.

٤-عن عثمان رضي الله عنه قال: اجتنبوا الخمر، فإن رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سماها أم الخبائث). (المقاصد الحسنه صـ ۲۰۲)

حضرت عثمان فرمايي چې د شرابو څخه ځان ساتئ ځکه چې رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته د ګندګۍ مور ويلې ده.

٤-عَنْ أَبِيهِ وَائِلِ الْحَضْرَمِيِّ رضي الله عنه، أَنَّ طَارِقَ بْنَ سُوَيْدٍ الْجُعْفِيَّ رضي الله عنه، سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْخَمْرِ، فَنَهَاهُ-أَوْ كَرِهَ-أَنْ يَصْنَعَهَا، فَقَالَ: إِنَّمَا أَصْنَعُهَا لِلدَّوَاءِ، فَقَالَ: «إِنَّهُ لَيْسَ بِدَوَاءٍ، وَلَكِنَّهُ دَاءٌ» (مسلم ج ۲ صـ ۱۶۳)

ترجمه: حضرت طارق د شرابو په باره کې د رسول الله صلی لله عليه وسلم څخه پوښتنه وکړه نو رسول الله منعه کړو او وې فرمايل چې دا دوا نه ده بلکې مرض دی.

۵-عن سليمان بن موسى رضي الله عنه قال: "لما افتتح خالد بن الوليد رضي الله عنه الشام نزل آمد، فأعد له من بها من الأعاجم الحمام ودلوكا عجن بالخمر، وكان لعمر رضي الله عنه عيونا من جيوشه يكتبون إليه بالأخبار، فكتبوا إليه بذلك، فكتب إليه عمر رضي الله عنه: إن الله حرم الخمر على بطونكم وأشعاركم وأبشاركم. (كنز العمال ج ۹ صـ ۵۲۳)

ترجمه: خالد بن وليد رضی الله عنه چې کله شام فتحه کړو نو د امد په ښار کې قيام و کړو نو دهغه ځای عجمو خلکو ورته حمام او د شرابو سره خلط شوې خوشبويي تياره کړه، حضرت عمر رضی الله عنه خبر شو نو خط روته وليږلو چې الله تعالى شراب ستاسو په ګيډو او ستاسو په پوستکو او ستاسو په ويختو حرام کړي دي.

٦-عن ابی عثمان والربیع وابی حارثة قال بلغ عمر ان خالد بن الولید دخل الحمام فتدلک بعد النورة بخبر عصفر معجون بخمر فکتب الیه بلغنی انک تدلک بخمر وانه قد حرم ظاهر الخمر وباطنها وقد حرم مس الخمر کما حرم شربها فلا تمسوها اجسامکم فانها نجس. (کنز العمال ج ۹۱ـ ۵۲۲)

ترجمه: حضرت عمر رضی الله عنه چا خبر کړو چې خالد بن ولید داسې خوشبویي استعمال کړې ده چې شراب په کې خلط شوي دي، نو حضرت عمر رضی الله عنه ورته وفرمايل چې الله تعالی ظاهر او باطن دشرابو حرام کړی دی او لاس وروړل یې داسې حرام کړي دي لکه څکل یې چې حرام کړي دي نو شراب په بدن مه لګوئ ځکه دا نجس دي.

٧-عَنْ مُجَاهِدٍ رَحِمَهُ اللهُ عَلَيْهِ قَالَ: «إِذَا أَصَابَ ثَوْبَكَ خَمْرٌ فَاغْسِلْهُ هُوَ أَشَدُّ مِنَ الدَّمِ (منصنف ابن ابی شيبه ج ١صـ ١٩٣)

ترجمه: مجاهد فرمايي چې په جامو دې شراب ولګيده نو وې مينځه ځکه دا دوينې څخه زيات نجس دی.

٨-حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، عَنْ هِشَامٍ، عَنِ الْحَسَنِ رَحِمَهُمُ اللهُ، فِي الْجُبِّ يَقْطُرُ فِيهِ الْقَطْرُ مِنَ الْخَمْرِ أَوِ الدَّمِ قَالَ: يُهْرَاقُ (مصنف ابن ابی شيبه ج ١صـ ١٦٧)

ترجمه: په کوم منګي کې چې شراب يا وينه يو څاڅکی وغورزيږي نو حسن بصري رحمه الله فرمايي چې ټول منګي واړه وئ.

٩-عَنْ نَافِعٍ رَحِمَهُ اللهُ عَلَيْهِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا «أَنَّهُ رَأَى فِي ثَوْبِهِ دَمًا فَغَسَلَهُ، فَبَقِيَ أَثَرُهُ أَسْوَدَ، وَدَعَا بِمِقَصٍّ فَقَصَّهُ فَقَرَضَهُ (مصنف ابن ابی شيبه ج ١صـ ١٩٨)

ترجمه: حضرت عبد الله ابن عمر دخپلو جامو څخه وينه ومينځله خو بيا يې هم تور والی پاتې وه نو بيا يې هغه ځای قينچي کړو.

١٠-حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي عَدِيٍّ، عَنْ أَشْعَثَ، عَنِ الْحَسَنِ رَحِمَهُمُ اللهُ، قَالَ: «الْقَيْءُ وَالْخَمْرُ وَالدَّمُ بِمَنْزِلَةٍ» يَعْنِي: فِي الثَّوْبِ. (مصنف ابن ابی شيبه ج ١ص ١٩٣)

ترجمه: حسن بصري رحمه الله فرمايي چې: شراب وينه او قی دجامو په ناپاکی کې يو برابر دي.

۱۱-عَنْ عَائِشَةَ رضي الله عنها أَنَّهَا قَالَتْ: قَالَتْ فَاطِمَةُ بِنْتُ أَبِي حُبَيْشٍ رضي الله عنها لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَا رَسُولَ اللهِ! إِنِّي لَا أَطْهُرُ أَفَأَدَعُ الصَّلَاةَ، فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّمَا ذٰلِكِ عِرْقٌ وَلَيْسَ بِالْحَيْضَةِ، فَإِذَا أَقْبَلَتِ الْحَيْضَةُ فَاتْرُكِي الصَّلَاةَ، فَإِذَا ذَهَبَ قَدْرُهَا، فَاغْسِلِي عَنْكِ الدَّمَ وَصَلِّي. (بخاری ج ۱ صـ ٤٤)

حضرت عایشه رضی الله عنه فرمایي چې: د فاطمې بنت حبیش د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه پوښتنه وکړه چې زما وینه نه دریږي ایا زه لمونځ پرېږدم؟ نو رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل چې دا د رګ وینه ده د حیض نه ده، چې کله د حیض ورځې راغلې نو لمونځ پرېږده او چې کله د عادت مطابق هغه ورځې تېرې شوې نو وینه وینځه او لمونځ وکړه.

دا این، احادیث او اثر په دې دلالت کوي چې شراب او وینه نجسه ده لئکن ددې په خلاف غیر مقدین لیکي چې شراب او وینه دواړه پاک دي (الروضة الندی ج ۱ صـ ۲۱، عرف الجادی صـ ۲۳۷، بدور الاهله صـ ۱۵)

## ۱٦-د سهار سُنت د فرضو څخه وروسته د لمر د راختلو څخه مخکې مکروه دي:

(۱) عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ صَلَاتَيْنِ: بَعْدَ الْفَجْرِ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ، وَبَعْدَ الْعَصْرِ حَتَّى تَغْرُبَ الشَّمْسُ (بخاری ج۱ص ۸۲/ مسلم ج ۱ص ۲۷۵)

**ترجمه**: د حضرت ابوهریره رضی الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ د مازیګر څخه وروسته تر غروبه پورې د لمانځه څخه منع کړی ده او د سهار د فرضو څخه وروسته یې تر لمر پریوتلو پورې د لمانځه څخه منع کړی ده.

(۲) عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنهما، قَالَ: سَمِعْتُ غَيْرَ وَاحِدٍ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مِنْهُمْ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رضي الله عنه وَكَانَ أَحَبَّهُمْ إِلَيَّ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «نَهَى عَنِ الصَّلَاةِ بَعْدَ الْفَجْرِ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ، وَبَعْدَ الْعَصْرِ حَتَّى تَغْرُبَ الشَّمْسُ (بخاری ج۱ص ۸۲ مسلم ج۱ ص۲۷۵). یعنې رسول الله ﷺ د سهر د فرضو څخه وروسته تر لمر ختلو پورې د لمانځه څخه منه کړی ده او د مازیګر څخه وروسته تر لمر پریوتلو پورې یې د لمانځه څخه منع کړی ده.

(۳)عن عطاء بن يزيد الليثي رحمه الله، أنه سمع أبا سعيد الخدري رضي الله عنه، يقول: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: «لا صلاة بعد صلاة العصر حتى تغرب الشمس، ولا صلاة بعد صلاة الفجر حتى تطلع الشمس» (بخاری ج۱ص ۸۲ مسلم ج ۱ص ۲۷۵) ترجمه یې مخکې تیره شوه.

(٤)عن أبي هريرة رضي الله عنه، قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: من لم يصل ركعتي الفجر فليصلهما بعد ما تطلع الشمس (ترمذي ج۱ص ۹٦).

**ترجمه :** رسول الله ﷺ فرمائي چې دچا څخه چې د سهار سنت پاتې شول نو د لمر ختلو څخه دې يې وروسته وکړي.

(٥)عن ابن سيرين رحمه الله عن ابن عمر رضي الله عنه أنه صلاهما بعد أضحى. (مصنف ابن ابي شيبه ج ۲ص ۱۵۷)
عبد الله بن عمر رضي الله عنه به د سهار سنت د څاښت څخه وروسته کول.

(٦)عن يحيى بن سعيد رحمه الله، قال: سمعت القاسم رحمه الله، يقول: «لو لم أصلهما حتى أصلي الفجر، صليتهما بعد طلوع الشمس» (مصنف ابن ابي شيبه ج ۲ص ۲۵۵)

**ترجمه :** يحيى بن سعيد رحمه الله فرمائي چې ما د قاسم بن محمد رحمه الله څخه اوريدلي دي چې فرمايلي يې دي چې کله چې د سهار سنت را څخه پاتې شي نو بيا يې د لمر د راختلو څخه وروسته کوم.

(۷) مالك رحمه الله، أنه بلغه أن عبد الله بن عمر رضي الله عنه فاتته ركعتا الفجر، فقضاهما بعد أن طلعت الشمس، [موطا امام مالک/ ص۱۱۲]. د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه د سهار سنت پاتې و، نو د سهار د لمر تر راختلو څخه يې وروسته وکړل.

## ۱۷-دسهار دسنتو څخه وروسته څملاستل سنت نه دي

(۱)عن عائشة رضي الله عنها، «أن رسول الله صلى الله عليه وسلم كان يصلي بالليل إحدى عشرة ركعة، يوتر منها بواحدة، فإذا فرغ منها اضطجع على شقه الأيمن، حتى يأتيه المؤذن فيصلي ركعتين خفيفتين». (مسلم، ج ۱ص ۲۵۳)

رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د شپې يو ولس رکعته لمونځ کولو چې په يو رکعت به يې طاق کړل، نو کله به چې فارغ شو په ښي اړخ باندې به څملاستلو، تر دې چې مؤذن به راغلو نو رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به لنډ دوه رکعته وکړل.

(۲) عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: «كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا صَلَّى رَكْعَتَيِ الفَجْرِ اضْطَجَعَ عَلَى شِقِّهِ الأَيْمَنِ» (بخاری، ج ۱ صـ ۱۵۵)

رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به چې کله دسهار دوه رکعته سنت وکړل، نو بیا به په ښي اړخ څملاستلو.

(۳) عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا: «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا صَلَّى، فَإِنْ كُنْتُ مُسْتَيْقِظَةً حَدَّثَنِي، وَإِلَّا اضْطَجَعَ حَتَّى يُؤْذَنَ بِالصَّلَاةِ (بخاری، ج ۱ صـ ۱۵۵)

رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به چې دسهار سنت وکړل، نو حضرت عایشه رضی الله عنها فرمایي چې که زه ویښه وم نو ما سره به يې خبرې کولې او که نه، نو څملاستو به.

(٤) عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ رحمه الله قَالَ: أَخْبَرَنِي مَنْ أُصَدِّقُ: أَنَّ عَائِشَةَ رضي الله عنها قَالَتْ: «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا طَلَعَ الْفَجْرُ يُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ خَفِيفَتَيْنِ، ثُمَّ يَضْطَجِعُ عَلَى شِقِّهِ الأَيْمَنِ حَتَّى يَأْتِيَهُ الْمُؤَذِّنُ فَيُؤْذِنَهُ بِالصَّلَاةِ، لَمْ يَضْطَجِعْ لِسُنَّةٍ وَلَكِنَّهُ كَانَ يَدْأَبُ لَيْلَةً فَيَسْتَرِيحُ» قَالَ: فَكَانَ ابْنُ عُمَرَ رضي الله عنهما يَحْصِبُهُمْ إِذَا رَآهُمْ يَضْطَجِعُونَ عَلَى أَيْمَانِهِمْ (مصنف عبد الرزاق، ج ۳ صـ ٤۳)

حضرت ابن جریج رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمایي: چې ماته داسې سړي خبر راکړی دی چې زه يې تصدیق کوم چې حضرت عایشې رضی الله عنها فرمایلي دي چې رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د صبح صادق څخه وروسته دوه لنډ رکعتونه وکړل، بیا به په ښي اړخ څملاستلو، تر دې چې مؤذن به راغلو او دلمانځه خبر به يې ورکړو، رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د دې وجې څخه نه څملاستلو چې دا سنت دي، بلکې د دې وجې څخه به څملاستلو چې رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د شپې ستړی شوی وو، نو لږ ارام به يې کولو، ابن جریج رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمایي: چې عبد الله ابن عمر رضی الله عنهما په دې څملاستلو ولیدلو نو په وړو تیګو به يې ویشتلو.

(۵) عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ رحمه الله، قَالَ: رَأَى ابن عُمَرَ رضي الله عنهما رَجُلًا اضْطَجَعَ بَعْدَ الرَّكْعَتَيْنِ، فَقَالَ: «احْصِبُوهُ».
(مصنف ابن ابی شیبه، ج ۲ صـ ۲٤۸)

یو سړی د سهار د سنتو څخه وروسته څملاستلو نو عبد الله ابن عمر رضی الله عنهما وفرمایل: چې په وړه تیګه يې وولئ.

(٦)عَنْ أَبِي الصِّدِّيقِ النَّاجِي رحمه الله، قَالَ: رَأَى ابْنُ عُمَرَ رضي الله عنهما قَوْمًا اضْطَجَعُوا بَعْدَ رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ، فَأَرْسَلَ إِلَيْهِمْ فَنَهَاهُمْ، فَقَالُوا: نُرِيدُ بِذَلِكَ السُّنَّةَ، فَقَالَ ابْنُ عُمَرَ رضي الله عنهما: «ارْجِعْ إِلَيْهِمْ فَأَخْبِرْهُمْ أَنَّهَا بِدْعَةٌ (مصنف ابن ابی شیبه، ج ۲صـ ۲۴۹)

يو څه خلک وو چې دسهار دسنتو څخه وروسته څملاستلو عبد الله ابن عمر رضی الله عنهما ورپسې خبر وليږلو چې دا کار مه کوئ، هغوي وويل چې مونږ په سنتو باندې عمل کوو، عبد الله ابن عمر رضی الله عنهما بيا ورپسې خبر وليږلو چې دا بدعت دی.

(٧)عَنْ عَبْدِ اللهِ ابْنِ عُمَرَ رضي الله عنهما، أَنَّهُ "رَأَى رَجُلًا رَكَعَ رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ، ثُمَّ اضْطَجَعَ فَقَالَ ابْنُ عُمَرَ رضي الله عنهما: مَا شَأْنُهُ؟ فَقَالَ نَافِعٌ رحمه الله: فَقُلْتُ: يَفْصِلُ بَيْنَ صَلَاتِهِ، قَالَ ابْنُ عُمَرَ رضي الله عنهما: وَأَيُّ فَصْلٍ أَفْضَلُ مِنَ السَّلَامِ (مؤطا امام محمد صـ ۱۴۲)

عبد الله ابن رضی الله عنهما يو سړی وليدلو چې دسهار دسنتو څخه وروسته څملاستلو عبد الله بن عمر رضی الله عنهما وفرمايل: چې ده څه وکړل؟ حضرت نافع رَحِمَهُ اللَّهُ چې ما ورته وفرمايل چې دا دسهار دسنتو او دفرضو په مابين کې فاصله راولي، عبد الله بن عمر رضی الله عنهما وفرمايل چې دسلام څخه بهتره بله فاصله کومه ده؟

(٨)عَنْ إِبْرَاهِيمَ رحمه الله، قَالَ: قَالَ عَبْدُ اللهِ رضي الله عنه: «مَا بَالُ الرَّجُلِ إِذَا صَلَّى الرَّكْعَتَيْنِ يَتَمَعَّكُ كَمَا تَتَمَعَّكُ الدَّابَّةُ وَالْحِمَارُ إِذَا سَلَّمَ فَقَدْ فَصَلَ».. (مصنف ابن ابی شیبه، ج ۲صـ ۲۴۸)

عبد الله ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل: چې ولې دسهار دسنتو څخه وروسته بعضې خلک داسې څملي لکه دحيوان او دخره په شان، کله مو چې دسهار سنت وکړل نو کښينئ او لمونځ وکړئ.

(٩)عَنْ مُجَاهِدٍ رحمه الله، قَالَ: «صَحِبْتُ ابْنَ عُمَرَ رضي الله عنهما فِي السَّفَرِ وَالْحَضَرِ، فَمَا رَأَيْتُهُ اضْطَجَعَ بَعْدَ رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ. (مصنف ابن ابی شیبه، ج ۲صـ ۲۴۸)

عبد الله ابن عمر رضی الله عنهما به په حضر او په سفر کې دسهار دسنتو څخه وروسته نه څملاستلو.

(١٠)عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ رحمه الله، قَالَ: «لَا تَضْطَجِعْ بَعْدَ الرَّكْعَتَيْنِ قَبْلَ الْفَجْرِ، وَاضْطَجِعْ بَعْدَ الْوِتْرِ» (مصنف ابن ابی شیبه، ج ۲صـ ۲۴۸)

سعید ابن جبیر رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمایي: چې د سهار د سنتو څخه وروسته مه څملئ او د وترو څخه وروسته څملئ.

## ۱۸-دلمانځه په اخری رکعتونو کې د سورة فاتحې لوستل، چپ ودریدل اود تسبیح لوستل دري واړه جایز دي

عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِي رَافِعٍ رحمه الله، عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ أَنَّهُ كَانَ يَقْرَأُ فِي الرَّكْعَتَيْنِ الْأُولَيَيْنِ مِنَ الظُّهْرِ بِأُمِّ الْقُرْآنِ, وَقُرْآنٍ, وَفِي الْعَصْرِ مِثْلَ ذٰلِكَ, وَفِي الْأُخْرَيَيْنِ مِنْهُمَا بِأُمِّ الْقُرْآنِ, وَفِي الْمَغْرِبِ فِي الْأُولَيَيْنِ بِأُمِّ الْقُرْآنِ, وَقُرْآنٍ, وَفِي الثَّالِثَةِ بِأُمِّ الْقُرْآنِ" قَالَ عُبَيْدُ اللّٰهِ رحمه الله: وَأُرَاهُ قَدْ رَفَعَهُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (طحاوی ص۱٤۲/ ج۱).

دحضرت عبد الله بن ابی رافع رحمه الله څخه روایت دی چې حضرت علی ﷺ به په اولنیو دوو رکعاتونو دماسپښین کې سورة فاتحه او یو بل سورة دقران لوستلو، همدارنګه به یې دمازیګر دلمانځه په اولنیو دوه رکعتونو کې کوڼ او په وروستیو دوو رکعتونو کې به یې سورة فاتحه لوستله اودماښام په لمانځه کې به یې هم په اولنیو دوه رکعتونو کې سورة فاتحة او ورسره یو سورة دقران لوستلو او په اخري رکعت کې به یې صرف سورة فاتحه لوستله. حضرت عبد الله رحمه الله فرمایي چې زما خیال دی چې حضرت علی ﷺ دا عمل د رسول الله ﷺ څخه نقل کړی دی.

(۲) عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ ﷺ، قَالَ: شَكَا أَهْلُ الْكُوفَةِ سَعْدًا ﷺ إِلَى عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، فَعَزَلَهُ، وَاسْتَعْمَلَ عَلَيْهِمْ عَمَّارًا ﷺ، فَشَكَوْا حَتَّى ذَكَرُوا أَنَّهُ لَا يُحْسِنُ يُصَلِّي، فَأَرْسَلَ إِلَيْهِ، فَقَالَ: يَا أَبَا إِسْحَاقَ! إِنَّ هٰؤُلَاءِ يَزْعُمُونَ أَنَّكَ لَا تُحْسِنُ تُصَلِّي، قَالَ أَبُو إِسْحَاقَ رحمه الله: أَمَّا أَنَا وَاللّٰهِ «فَإِنِّي كُنْتُ أُصَلِّي بِهِمْ صَلَاةَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا أَخْرِمُ عَنْهَا، أُصَلِّي صَلَاةَ الْعِشَاءِ، فَأَرْكُدُ فِي الْأُولَيَيْنِ وَأُخِفُّ فِي الْأُخْرَيَيْنِ»، قَالَ: ذَاكَ الظَّنُّ بِكَ يَا أَبَا إِسْحَاقَ! الحديث.

[بخاری، ج۱ ص۱۰٤]

د جابر بن سمرة ﷺ څخه روایت دی چې اهل الکوفه وو د سعد ﷺ څخه حضرت عمر ﷺ ته شکایة وکړ، هغه حضرت سعد ﷺ معزول کړو او د هغه پر ځای عمار بن یاسر ﷺ مقرر کړو او د دوي شکایت تر دې پورې وو چې دا یې هم یاده کړه چې هغه مونږ ته ښه لمونځ هم نه راکوي. حضرت عمر ﷺ حضرت سعد ﷺ ته پیغام ورولیږلو او ورته یې وفرمایل چې: دا خلق په تا دا ګمان کوي چې ته دوي ته ښه لمونځ نه ورکوي! هغه ورته ووېل چې قسم په الله چې زه دوی ته هغسې لمونځ کوم لکه د رسول الله ﷺ او هیڅ کمی او نقصان

پکې نه کوم، زه ورته د ماسخوتن دوه اولني رکعتونه اوږدوم او وروستي رکعتونه ورته مختصر کوم، حضرت عمر ﷛ ورته وفرمایل چې: ای اباا سحاقه زما هم په تاهمدا ګمان و.

(۳) عَنْ أَبِي عَوْنٍ مُحَمَّدِ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ الثَّقَفِيِّ رحمه الله، قَالَ: سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ سَمُرَةَ ﷛، قَالَ: قَالَ عُمَرُ ﷛ لِسَعْدٍ ﷛: لَقَدْ شَكَوْكَ فِي كُلِّ شَيْءٍ حَتَّى الصَّلَاةِ، قَالَ: «أَمَّا أَنَا، فَأَمُدُّ فِي الأُولَيَيْنِ وَأَحْذِفُ فِي الأُخْرَيَيْنِ، وَلَا آلُو مَا اقْتَدَيْتُ بِهِ مِنْ صَلَاةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ» قَالَ: صَدَقْتَ ذَاكَ الظَّنُّ بِكَ أَوْ ظَنِّي بِكَ ( بخاری ج ۱ص ۱۰۶).

د ابو عون رحمه الله څخه روایت دی، فرمائي ما اوریدلي د حضرت جابر بن سمرة ﷛ څخه، هغه به فرمایل چې حضرت عمر ﷛ حضرت سعد ﷛ ته وفرمایل چې دغه خلک ستا څخه شکایت کوي، په هر شي کې، تردې چې په لمونځ کې هم شکایت کوي. سعد ﷛ وفرمایل چې زه په اولنیو دوه رکعاتونو کې اوږده قرائت کرم او په وروستنیو رکعتونو کې مختصر قرائت کوم. حضرت عمر رضی الله تعالی عنه وفرمایل چې رشتیا دې وویل! هم داسې ګمان مې په تاباندې دی

(۴) عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي رَافِعٍ رحمه الله قَالَ: «كَانَ - يَعْنِي عَلِيًّا ﷛ - يَقْرَأُ فِي الْأُولَيَيْنِ مِنَ الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ بِأُمِّ الْقُرْآنِ وَسُورَةٍ، وَلَا يَقْرَأُ فِي الْأُخْرَيَيْنِ (مصنف عبدالرزاق ج۲ص ۱۰۰].

حضرت عبدالله بن ابی رافع رحمه الله فرمائي چې: حضرت علی ﷛ به د ماسپښین او مازیګر په اولنیو دوه رکعاتونو کې سورة فاتحه او یو بل سورة د قران لوستلو او په دوه وروستیو رکعاتونو کې یې قرائت نه کولو.

(۵) عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ رحمه الله، عَنْ عَلِيٍّ وَعَبْدِ اللَّهِ ﷛، أَنَّهُمَا قَالَا: «اقْرَأْ فِي الْأُولَيَيْنِ، وَسَبِّحْ فِي الْأُخْرَيَيْنِ»، (مصنف ابن ابی شیبه ج ۱ص ۴۰۸].

د حضرت ابو اسحاق رحمه الله څخه روایت دی چې حضرت علی ﷛ او عبد الله بن مسعود ﷛ دواړو به فرمایل چې په اولنیو دوه رکعتونو کې قرائت وکړئ او په وروستیو کې تسبیحات ولولئ!

(۶) عَنْ عَلِيٍّ ﷛ قَالَ: «يُسَبِّحُ وَيُكَبِّرُ فِي الْأُخْرَيَيْنِ. ( مصنف ابن ابی شیبه ج ۱ص ۴۰۹) حضرت علی ﷛ فرمایي چې په وروستیو دوه رکعتونو کې به تسبیحات او تکبیرات لوستلی شي.

(۷) عَنْ إِبْرَاهِيمَ رحمه الله قَالَ: «مَا قَرَأَ عَلْقَمَةُ رحمه الله فِي الرَّكْعَتَيْنِ الْأُخْرَيَيْنِ حَرْفًا قَطُّ». (مصنف عبدالرزاق ج ۲ص ۱۰۱) حضرت ابراهیم نخعی رحمه الله فرمائي چې حضرت علقمه رحمه الله په وروستیو رکعاتونو کې یو حرف قرائت هم ندی کړی.

(۸) عَنْ إِبْرَاهِيمَ رحمه الله عليه قَالَ: «اقْرَأْ فِي الْأُولَيَيْنِ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ وَسُورَةٍ، وَفِي الْأُخْرَيَيْنِ سَبِّحْ» (مصنف عبدالرزاق ج ۲ص ۱۰۱]. حضرت ابراهيم نخعي رحمه الله فرمائي چې په اولنيو دوه رکعتونو کې سورة فاتحه او يو بل سورة ولوله او په وروستيو دوه رکعتونو کې تسبيحات کوه!

## ۱۹-اكثار في العبادة: ډير عبادت كول جايز دي

بعضې خلک په ډيرو ذکرونو، تلاوتونو، روژو او نوافلو باندې اعتراض کوي چې دا بدعت دی، ځکه چې رسول الله ﷺ نه دي کړي، حالانکه د ډير عبادت ترغيب په قران او په احاديثو او د صحابه وو په واقعاتو کې شته چې د ټولو د رانقلولو ځخه يو غټ کتاب جوړيږي، دلته به د ډير اختصار سره يو څو دلايل وليکو، د زيات تفصيل له پاره د مولانا عبدالحی رحمه الله رساله وګورئ په نوم د (اقامة الحجة على ان الاكثار فی العبادة ليس ببدعة).

او په يو ځای کې فرمايي چې: (ان الاخبار فی ذلک مختلفة بعضها يهدی الى الاجتهاد و بعضها يرشد الى الاقتصاد . و کلها واردة فی محلها واقعة فی موقعها . فأخبار الاجتهاد محمولة على من قدر ذلک . و اخبار الا قتصاد محمولة على من عجز عن ذلک و على هذا وجدت کلمات العلماء الاعلام و الا ئمة الکرام . [اقامة الحجة /ص۶] .

(۱) الله ﷻ فرمائي چې (وَمَنْ تَطَوَّعَ خَيْرًا فَهُوَ خَيْرٌ لَّهُ). او څوک چې زيادت کوي په نيکيو کې نو دا بهتر دی دده لپاره.

(۲) الله ﷻ فرمائي چې (وَالَّذِينَ يَبِيتُونَ لِرَبِّهِمْ سُجَّدًا وَّقِيَامًا) د الله اولياء هغه خلک دي چې ټوله شپه الله ﷻ ته په سجده او په ولاړه تيروي.

(۳) ام المومنين حضرت صفيې رضی الله تعالى عنها به په څلورو زرو دانو باندې د الله ﷻ تسبيح ويله. [مستدرک .ج۱ص ۵۴۷]

(۴) رسول الله ﷺ به د رمضان په اخری عشره کې ټوله شپه په عبادت تيروله او خپل اهل به يې هم راويښولو ، (بخاری ج ۱ص ۲۷۱ و مسلم ج ۱ص ۳۷۲).

(۵) حضرت عايشه رضی الله تعالی عنها فرمائي چې کله به د رمضان مياشت راغله، نو رسول الله ﷺ به د همت ملا وتړله او ترڅو به چې د رمضان مياشت نه وه تيره شوی، بستري ته به يې تشريف نه راوړلو. (شعب الايمان للبيهقی ج ۲ص ۳۱۰)

(٦) حضرت عثمان ﷺ به دوتروپه يو رکعت کې ټول قران ختمولو. اقامة الحجة / ص ۲۱ ترمذی ج ۲ص ۱۱۸ قيام الليل ص ٦١ ،طبقات ابن سعد ج ۳ص ۵۳ و ذيل الجواهر ج ۲ص ۴۹۳ ].

همدارنګه به يې ټول عمر روژه نيوله او ټوله شپه به يې په عبادت باندې ويښه تېروله. [اقامة الحجة / ص ۲۱ ]. همدارنګه به حضرت عمر رضی الله تعالی عنه ټوله شپه تر سهاره پورې نفل کول. [اقامة الحجة / ص۲۱]. بحواله البداية والنهاية ]. همدارنګه به عبدالله بن عمر رضی الله تعالی عنهما تر پېشمنې پورې لمونځ کاوه او بيا به يې تر سهاره پورې دعا او استغفار کاوه. [اقامة الحجة / ص ۲۲ / بحواله حلية الاولياء ].

همدارنګه به حضرت شداد بن اوس انصاری رضی الله تعالی عنه ټوله شپه لمونځ کاوه.[اقامة الحجة/ص ۲۲/ بحواله حلية الاولياء]. همدارنګه به حضرت علي رضی الله تعالی عنه هره ورځ اته ختمونه کول. [اقامة الحجة / ص ۲۲ ].

(۷) حضرت تميم الداری به په يوه شپه کې قران ختمولو (طحاوی ج ۱ص ۲۰۵ )تهذيب التهذيب ج۱ص ۵۱۱)

(۸) حضرت عبدالله بن زبير ﷺ به په يوه شپه کې قران ختمولو. (طحاوی ج ۱ص ۲۰۵ قيام الليل ص ٦٣).

(۹) په تابعينو کې به حضرت سعيد بن جبير رحمه الله په يوه شپه کې قران ختمولو .ترمذی ج ۱ص ۱۱۸ .طحاوی ج ۱ص ۲۰۵ وذيل الجواهر ج۲ص ۴۹۳ ،وتذکرة الحفاظ ج۱ص ۷۳ ).

حضرت سعيد بن مسيب رحمه الله پنځوس کاله د ماخوستن په اودس د ځابنت لمونځ کړی دی. [ اقامة الحجة / ص ۲۳ ].

(۱۰) امام ابو حنيفه رحمه الله څلويښت کاله د ماخوستن په اودس د سهار لمونځ کړی دی او د صحيح روايت مطابق په کوم ځای کې چې وفات شو ،يعنې د کور د کومې حصې څخه چې زندان ته

بو تللی شو په همدی ځای کې یې اوه زره ختمونه کړي وو. [بغدادی / ج ۱۳ / ض ۳۵۴ / مفتاح السعاد / ج ۲/ ص ۷۸ و ذیل الجواهر / ج ۲/ ص ۴۹۳ ].

(۱۱) امام نووی رحمه الله فرمائی چې دامام بخاری رحمه الله شیخ امام ابوبکربن عیاش رحمه الله یحیل کو، کې څلیرښت زره ختمه کړي وو. [شرح مسلم ج۱ص ۱۰]. اوعلامه ذهبي رحمه الله ليکي چې د کو ره یو کونج کې یې اتلس زره ختمونه کړي وو. [تذکره ج۱ص ۲۴۵].

(۱۲) امام وکیع بن الجراح رحمه الله به په یوه شپه کې قران ختمولو [تاریخ بغداد ج ۱۳ص ۴۷۰].

(۱۳) امام الجرح والتعدیل یحیی بن سعید القطان رحمه الله به په څلیریشتو ساعتونو کې یو ځل قران ختمولو. [بغداد ج ۱۴ ص ۱۴۱ وتهذیب الاسماء واللغات ج ۲ص ۱۵۴ ].

(۱۴) امام شافعي رحمه الله به په رمضان کې ۶۰ ختمونه کول. [تذکرة الحفاظ ج ۱ص ۳۲۹ ].

(۱۵) امام نووي رحمه الله فرمايي چې د جمهورو علماوو په نزد ټول عمر روژه کيدل جايزدي، چې په ايام منهيه ووک ي يې ونه نيسئ. (مسلم ج۱ص ۳۵٦ وکذاقال الحافظ ابن حجر.فتح الباری ج ۵ص۱۲٦).

(۱٦) حضرت عبدالله بن عمر ﷺ، حضرت ابو طلحه ﷺ، حضرت عایشة رضی الله تعالی عنها و خلایق من السلف (یعني اود اسلام بی شمیره خلک) ټول عُمر روژه وو. [مسلم ج ۱ص ۳٦۵ ].

(۱۷) امام شعبه بن الحجاج رحمه الله صایم الدهر و. [مقدمه تحفة الاحوذی ص ۲۲۲ ].

(۱۸) امام وکیع بن الجراح رحمه الله صایم الدهر و. [بغدادی ج ۱۳ص ۴۷۰ ].

(۱۹) امام بخاری رحمه الله صایم الدهر و. [میزانَ الکبری ج ۱ص ۵۰ ].

(۱۹) امام زین العابدین رحمه الله به په یوه شپه اوورځ کې زر رکعته نفل کول. [تهذیب التهذیب ج ۷ص ۳۰٦ وتذکرة الحفاظ ج ۱ص ۷۱ ].

(۲۰) امام میمون بن مهران رحمه الله به کله کله په یوه شپه اوورځ کې زرر کعته نفل کول او یو ځل یې په اولسو ورځو کې اولس زره رکعته لمونځ وکړو. [تهذیب التهذیب ج ۱۰ص ۳۹۲ ].

(۲۱) حضرت مرة بن شراحیل رحمه الله المتوفی (۵۴ھ) به په یوه شپه اوورځ کې زرر کعته لمونځ کولو. [تهذیب التهذیب ج ۷ ص ۳۵۸ ].

(۲۲) حضرت عمیر بن هانی رحمه الله به روزانه زرر کعته لمونځ او یو لک ځلې تسبیح ویلې . [ ترمذی ج۲ص ۱۷۷ابواب الدعاء، تهذیب ج ۸ ص ۱۵۱ و فیض الباری ج ۴ص ۱۹۸ ].

(۲۳) امام بخاری رحمه الله صایم الدهر وو او روزانه به یې دروژه ماتي په وخت کې قران ختمولو . [طبقات شافعیه الکبری ج ۲ص ۹ والحط ص ۲۲ ]

(۲۴) امام یزید بن هارون رحمه الله المتوفی (۲۰٦) د ځلویښتو کالو څخه زیات د ماخوستن په اودس دسهار لمونځ کړی دی. [ تذکرة الحفاظ ج ۱ص ۲۹۲،وبغدادی ج ۱ص ۳۳۷ ]. دا لوی محدث بلکه د محدثینو استاد و.

( ۲۵ ) امام سلیمان بن طحان المتوفی ۱۴۳ ھ به د ماخوستن به اودس دسهار لمونځ کولو . [ طبقات ابن سعد ج ۷ص ۱۸ ].

(۲٦) امام ابو حنیفه رح په یو رمضان کې یو سلو شل عمرې کړې وې. [ ذیل الجواهر،ج۲ص ۱۲۴۹۵].

## د غیر مقلد او داهل سنت والجماعة مختصره مُکالمه

**غیر مُقلد:** امام صیب رحمه الله څرنګه ټوله شپه لمونځ کاوه ؟

**سُنّي:** امام صیب رحمه الله په دې آیت باندې عمل کړی وو چې: ﴿وَالَّذِينَ يَبِيتُونَ لِرَبِّهِمْ سُجَّدًا وَقِيَامًا﴾[دالله اولیاء هغه خلک دي چې ټوله شپه خپل رب ته په ولاړه او په سجده باندې تېر وي. همدارنګه الله پاک فرمایي چې: ﴿فَمَنْ تَطَوَّعَ خَيْرًا فَهُوَ خَيْرٌ لَّهُ﴾څوک چې په نوافلو کې زیادت کوي هغه د ده له پاره خیر دی، نو آیا په دغو آیاتونو باندې عمل کول ناروا دي ؟

**غیر مقلد:** په دغه آیتونو باندې صحابه کرامو ولې عمل نه کاوه ؟

**سُنّي:** تا د صحابه کرامو تاریخ نه دی کتلی! که ته د اسماء الرجال کتابونه وګورئ نو د صحابه وو او د تابعینو کرامو په شمول به ډېر داسې مشایخ درته په نظر درشي چې هغوي ټوله شپه عبادت کاوه لکه منځکې چې یو څو حوالې ولیکل شوې.

**غیر مقلد:** چې ټوله شپه یې لمونځ کولو نو آیا په امام صیب باندې د خپلې مېرمنې حق نه و ؟

**سُنّي:**

١-ته د امام صيب ښځه يې او که د امام صيب د ښځې له طرفه وکيل يې؟

٢-په امام صيب باندې خپلې بي بي شکايت نه دی کړی، نو ستا پکې څه کار دی؟

٣-د ښځې حقوق يواځې د شپې پوره کيږي او که د ورځې هم پوره کيدای شي؟ امام صيب د خپلې بي بي حق پوره کړی دی، خو اعلان ورباندې لازم نه دی. کنه غير مقلدين دې په هره جُمعه کې دا اعلانونه کوي چې دوی د خپلو ښځو حقوق څنګه او په کوم وخت کې او په کوم کيفيت باندې پوره کوي؟

**غير مقلد:** ټوله شپه لمونځ بدعت دی، پيغمبر عليه السلام نه دی کړی.

**سُنّي:**

١-دا مخکې چې مونږ د کومو صحابه وو او د تابعينو او د محدثينو د ټولې شپې د عبادت کول رانقل کړل، آيا دا بدعتيان وو؟

٢-تا احاديث مبارکه نه دي لوستلي! په احاديثو کې راځي چې: (صلی رسول الله صلی الله عليه وسلم حتی تورّمت قدماه). همدارنګه (اذا دخل العشر الاواخر من رمضان احيا ليله و ايقظ اهله).
همدارنګه: عن عَطآء رحمه الله قال: دخلت عَلٰى عَائِشَة رَضِيَ اللّٰهُ عَنهَا فقلت لهَا: أَخبِرِينَا بِأَعجَب مَا رَأَيت من رَسُول اللّٰه صَلَّى اللّٰه عَلَيهِ وَسلم فبَكَت وَقَالَت: وَأَي شَأنه لم يكن عجبا؟ أَتَانِي لَيلَة فدخل معي فِي فِرَاشِي -أَو قَالَت فِي لِحَافِي- حَتّٰى مس جلدي جلده ثمَّ قَالَ «يَا ابنة أبي بكر! ذَرِينِي أَتَعبد لرَبِّي» فَقَالَت: قلت إِنِّي أحب قربك لكني أوثر هَوَاك فَأَذنت لَهُ، فَقَامَ إِلَى قربَة مَآء فَتَوَضَّأ فلم يكثر صب المَآء، ثمَّ قَامَ يُصَلِّي فَبَكٰى حَتّٰى سَالَت دُمُوعه عَلٰى صَدره ثمَّ ركع فَبَكٰى ثمَّ سجد فَبَكٰى ثمَّ رفع رَأسه فَبَكٰى فَلم يزل كَذٰلِك يبكي حَتّٰى جَآءَ بِلَال رضي الله عنه فآذنه بِالصَّلَاة.

٣-د صحابه کرامو، تابعينو او تبع تابعينو په زمانه کې چې کوم کار وشي او هيڅوک ورباندې انکار او اعتراض ونه کړي نو هغه بدعت نه وي. مخکې مونږ د خير القرون د يو څو صحابه وو او د تابعينو و غيرهم نومونه وليکل، چې هغوی د ټر عبادت کړی دی. او په هندوستان باندې د انګريزانو له دورې څخه مخکې هيچا هم ورباندې اعتراض نه دی کړی.

٤-البدعة ما لم يكن فى القرون الثلاثة ولا يوجد له اصل من الاصول الاربعة.

**غیر مقلد:** په یو حدیث کې راځي چې: لَمْ يَقُمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةً يُتِمُّهَا اِلَى الصَّبَاحِ وَلَمْ يَقْرَأِ الْقُرْآنَ فِيْ لَيْلَةٍ قَطُّ.

**سُني:** ۱-مخکې ما درې حدیثونه ولیکل چې پیغمبر علیه الصلاة والسلام ټوله شپه لمونځ کړی دی، نو د تطبیق د احادیثو له وجهې به دا حدیث په غالبو حالاتو حملوو.

۲-او په غالبو حالاتو کې یې ولې داسې کول؟ نو دا له وجهې د شفقت څخه په امت باندې. حضرت عایشة رضی الله تعالی عنها فرمایي چې: ان كان رسول الله صلى الله عليه وسلم ليدع العمل وهو يحب ان يعمل خشية ان يعمل به الناس فيُفرض عليهم.

**غیر مقلد:** نبي علیه السلام چا خبر کړو چې حضرت حولاء رضی الله تعالی عنها ټوله شپه لمونځ کوي نو نبي علیه السلام منعه کړه.

**سُني:** د نبي علیه السلام الفاظ داسې و: (خذوا من العمل ما تطيقون). نو له ډېر لمانځه څخه یې منعه نه کړه، بلکې تر هغې پورې یې د لمونځ د کولو اجازه ورکړه تر څو پورې یې چې طاقت رسیږي. همدا رنګه په ځینو نورو احادیثو کې راغلي دي چې: نبي علیه السلام ځینې صحابه له ډېر عبادت کولو څخه منعه کړل، نو هغه یا:

۱-له دې وجهې و چې نبي علیه السلام پوهېده چې دوی یې د کولو طاقت نه لري.

۲-او یا هم له دې وجهې چې د هغوي څخه د ډېرو نوافلو په وجهه واجب حقوق پاتې کېدل. نبي علیه السلام ورته فرمایلي وو چې: (ان لنفسک عليک حقًا وان لزوجک عليک حقًا.)

۳-او یا هم له دې وجهې چې: دوی په ځان باندې هغه څه واجب کړي وو چې الله پاک ورباندې نه و واجب کړي. او هغه څه یې په ځان باندې حرام کړي و چې الله پاک نه وو حرام کړي.

## ۲۰-د تکبیر په وخت کې د لاسونو اوچتول تر غوږونو پورې سنت دي

(۱) عَنِ الْبَرَآءِ بْنِ عَازِبٍ رضی الله عنه، قَالَ: «رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ قَامَ اِلَى الصَّلَاةِ فَكَبَّرَ وَرَفَعَ يَدَيْهِ حَتّٰى سَاوٰى بِهِمَا أُذُنَيْهِ ثُمَّ لَمْ يَعُدْ. (دارقطنی: ج ۱/ص۲۹۴ وطحاوی: ج ۱/ص۱۳۵) حضرت براء بن عازب رضی الله عنه فرمائی چی ما ولیدلو رسول الله ﷺ چی صرف د تکبیر تحریمه سره ئی لاسونه تر غوږونو پورې اوچت کړل.

(۲) عَنِ الْبَرَآءِ بْنِ عَازِبٍ رضی الله عنه قَالَ: «كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَبَّرَ لِافْتِتَاحِ الصَّلَاةِ، رَفَعَ يَدَيْهِ، حَتَّى يَكُونَ إِبْهَامَاهُ قَرِيبًا مِنْ شَحْمَتَيْ أُذُنَيْهِ». (طحاوی: ج ۱/ص ۱۳۲ وص ۱۱۰ دارقطنی: ج ۱/ص ۳۰۰ وابوداود: ج ۱/ص ۱۰۹ باب من لم یذکر الرفع)

یعنی رسول الله ﷺ به د اول تکبیر سره لاسونه د غوږونو ترنرمیو پوری اوچتول.

(۳) وَعَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ رضی الله عنه: أَنَّهُ أَبْصَرَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ رَفَعَ يَدَيْهِ حَتَّى كَانَتَا بِحِيَالِ مَنْكِبَيْهِ وحاذى بإبهاميه أُذُنَيْهِ ثُمَّ كَبَّرَ. (مشكوة باب صفة الصلوة الفصل الثاني: ج ۱/ص ۷۶/ ابوداود/ رقم / ۷۲۴ ).

حضرت وائل رضی الله عنه فرمائی چی ما رسول الله ﷺ ولیدلو چی د تکبیر تحریمه په وخت کی یې لاسونه د اوږو او غتې ګوتې د غوږونو پورې پورته کړې.

(٤) عَنْ عَبْدِ الْجَبَّارِ بْنِ وَائِلٍ، عَنْ أَبِيهِ رضی الله عنه أَنَّهُ، «رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلَاةَ رَفَعَ يَدَيْهِ حَتَّى تَكَادَ إِبْهَامَاهُ تُحَاذِي شَحْمَةَ أُذُنَيْهِ (نسائی: ج ۱/ص ۱٤۱/ رقم ۸۷۹ ).

یعنی رسول الله ﷺ د اول تکبیر سره لاسونه د غوږونو تر نرمیو پورې پورته کړل.

(۵) عن وایل بن حجر رضی الله عنه قال: ... فَقَالَ لِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «يَا وَائِلَ بْنَ حُجْرٍ! إِذَا صَلَّيْتَ فَاجْعَلْ يَدَيْكَ حِذَاءَ أُذُنَيْكَ، وَالْمَرْأَةُ تَجْعَلُ يَدَيْهَا حِذَاءَ ثَدْيَيْهَا. (معجم طبرانی: ج ۱/ص ۱۸)

رسول الله ﷺ وفرمایل چی سړی به د غوږونو پوری او ښځه به د تیونو پورې لاسونه پورته کوي.

(٦) عن وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ رضی الله عنه: أَنَّهُ "رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَفَعَ يَدَيْهِ حِينَ دَخَلَ فِي الصَّلَاةِ كَبَّرَ، - وَصَفَ هَمَّامٌ رضی الله عنه حِيَالَ أُذُنَيْهِ. (مسلم: ج ۱/ص ۱۷۳)

حضرت وایل رضی الله عنه فرمائی چی ما رسول الله ﷺ ولیدلو چی د اول تکبیر سره ئی لاسونه اوچت کړل او الله اکبرئی وویلو. د حدیث راوي همام بیان دی چی رسول الله ﷺ تر غوږونو پوری لاسونه اوچت کړل.

(۷) عَنْ عَامِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ الزُّبَيْرِ رضی الله عنهما، عَنْ أَبِيهِ رضی الله عنه، قَالَ: «رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ افْتَتَحَ الصَّلَاةَ، فَرَفَعَ يَدَيْهِ حَتَّى جَاوَزَ بِهِمَا أُذُنَيْهِ. ( مسند احمد / رقم ۱۵۶۶۷ ).

د حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله تعالی عنهما څخه روایت دی چې ده رسول الله صلی الله علیه وسلم ولیدلو چې: د لمانځه د شروع کولو په وخت کې یې لاسونه له غوږونو څخه واړول.

(٨)عَنْ مَالِكِ بْنِ الْحُوَيْرِثِ رضي الله عنه: «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا كَبَّرَ رَفَعَ يَدَيْهِ حَتّٰى يُحَاذِيَ بِهِمَا أُذُنَيْهِ، وَفِيْ رِوَايَةٍ عَنْهُ حَتّٰى يُحَاذِيَ بِهِمَا فُرُوْعَ أُذُنَيْهِ. الحديث. (بخاری /ج ١/ص١-٢٠ومسلم:ج ١/ص١٦٧)

مالک بن حویرث رضی الله عنه فرمائی چی رسول الله ﷺ به د الله اکبر په وخت کی لاسونه دغوږونو سره برابرول او په یو روایت کی راځی چی تر او چتې حصې دغوږونو پورې به یې او چتول.

(٩) عَنْ قَتَادَةَ رحمه الله، بِهٰذَا الْإِسْنَادِ أَنَّهُ رَأٰى نَبِيَّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالَ: حَتّٰى يُحَاذِيَ بِهِمَا فُرُوْعَ أُذُنَيْهِ..(مسلم:ج ١/ص١٦٨)

یعنی رسول الله ﷺ لاسونه دغوږونو تر پاسنی حصی پورې او چت کړل.

(١٠) حضرت انس رضی الله عنه فرمائی چی رسول الله ﷺ به دغوږونو پوری لاسونه پورته کول. (بهیقی:ج٢ص/٩٩ و دار قطنی ج ١/ص٣٤٥)

(١١) امام بخاری/ په جزء رفع الیدین کی روایت راوړی دی فرمائی چې: عَنْ حُمَيْدِ بْنِ هِلَالٍ رحمه الله قَالَ: «كَانَ أَصْحَابُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا صَلُّوْا كَأَنَّ أَيْدِيَهُمْ حِيَالَ آذَانِهِمْ.(ص:٣٢)

حمید بن هلال فرمائی رحمه الله چی د رسول الله ﷺ صحابه وو رضی الله تعالی عنهم به په مانځه کی لاسونه تر غوږونو پورې او چتول.

(١٢) عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ حَكِيمٍ رحمه الله، قَالَ: «رَأَيْتُ ابْنَ عُمَرَ رضي الله عنهما يَرْفَعُ يَدَيْهِ حِذَاءَ أُذُنَيْهِ فِي أَوَّلِ تَكْبِيرَةِ افْتِتَاحِ الصَّلَاةِ، وَلَمْ يَرْفَعْهُمَا فِيمَا سِوٰى ذٰلِكَ.(موطاامام محمد:ص٩) یعنی عبد الله بن عمر رضی الله تعالی عنهما به صرف د اول تکبیر سره لاسونه دغوږونو پورې او چتول.

(١٣) أَنَّ وَائِلَ بْنَ حُجْرٍ رضي الله عنه، أَخْبَرَهُ قَالَ: قُلْتُ: لَأَنْظُرَنَّ إِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَيْفَ يُصَلِّي قَالَ: فَنَظَرْتُ إِلَيْهِ "قَامَ وَكَبَّرَ وَرَفَعَ يَدَيْهِ حَتّٰى حَاذَتَا بِأُذُنَيْهِ. (الحديث ).

وایل بن حجر رضی الله تعالی عنه فرمایي چې: ما وویل چې زه به رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ګورم چې دی څرنګه لمونځ کوي؟ نو ما ورته وکتل چې ودرېدلو او الله اکبر یې وویل او لاسونه یې تر غوږونو پورې او چت کړل. [ السنن الکبری للبیهقی/ کتاب الصلاة/ باب وضع الید الیمنی علی الیسری فی الصلاة و صحیح ابن حبان / حدیث : ١٨٦٠ ].

(١٤) وَذَكَرَ الطِّيْبِيُّ رحمه الله أَنَّ الشَّافِعِيَّ رحمه الله حِينَ دَخَلَ مِصْرَ سُئِلَ عَنْ كَيْفِيَّةِ رَفْعِ الْيَدَيْنِ عِنْدَ التَّكْبِيرِ؟ قَالَ: يَرْفَعُ الْمُصَلِّي يَدَيْهِ بِحَيْثُ يَكُونُ كَفَّاهُ حِذَاءَ مَنْكِبَيْهِ، وَإِبْهَامُهُ حِذَاءَ شَحْمَتَيْ أُذُنَيْهِ، وَأَطْرَافُ أَصَابِعِهِ حِذَاءَ فَرْعِ أُذُنَيْهِ، لِأَنَّهُ جَاءَ فِي رِوَايَةٍ: يَرْفَعُ الْيَدَيْنِ إِلَى الْمَنْكِبَيْنِ، وَفِي رِوَايَةٍ إِلَى الْأُذُنَيْنِ، وَفِي رِوَايَةٍ إِلَى فُرُوعِ الْأُذُنَيْنِ، فَعَمِلَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله بِمَا ذَكَرْنَا فِي رَفْعِ الْيَدَيْنِ جَمْعًا بَيْنَ الرِّوَايَاتِ الثَّلَاثِ. (مرقات المفاتيح: ج۲/ص۲۵۴)

علامه طيبي رحمه الله فرمائي چي کله چي امام شافعي رحمه الله مصرته راغلو، نو دده څخه پوښتنه وشوه چي دتکبيرپه وخت کی به لاسونه ترکوم ځای پورې اوچتيږي؟

هغه رحمه الله ورته جواب ورکړو چې: ورغوي به تر اوږو او غټې ګوتې به ترنرميو دغوږونو او دګوتوسرونه به ترپاسنۍ حصې د غوږونو پورې پورته کوئ! ځکه چی په بعضی احاديثوکی د لاسونو اوچتول تر اوږو پورې راغلی دي اوپه بعضوکی تر نرميو د غوږونو پورې راغلي دي اوپه بعضوکی تر پاسنيو حصو د غوږونو پوری راغلی دي. نو امام شافعی رحمه الله په دريو واړو روايتونو عمل وکړو، چی ورغوي تر اوږو پورې، غټی ګوتې تر نرميو دغوږونوپورې اودګوتوسرونه ترپاسنۍ حصې د غوږونو پورې اوچتې شي، نوپه درې واړو احاديثوعمل راځي.

(۱۵) امام نووی الشافعی رحمه الله فرمايي چی: وَأَمَّا صِفَةُ الرَّفْعِ فَالْمَشْهُورُ مِنْ مَذْهَبِنَا وَمَذْهَبِ الْجَمَاهِيرِ أَنَّهُ يَرْفَعُ يَدَيْهِ حَذْوَ مَنْكِبَيْهِ بِحَيْثُ تُحَاذِي أَطْرَافُ أَصَابِعِهِ فُرُوعَ أُذُنَيْهِ أَيْ أَعْلَى أُذُنَيْهِ وَإِبْهَامَاهُ شَحْمَتَيْ أُذُنَيْهِ وَرَاحَتَاهُ مَنْكِبَيْهِ فَهٰذَا مَعْنَى قَوْلِهِمْ حَذْوَ مَنْكِبَيْهِ وَبِهٰذَا جَمَعَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله تعالى بَيْنَ رِوَايَاتِ الْأَحَادِيثِ فَاسْتَحْسَنَ النَّاسُ ذٰلِكَ مِنْهُ. (المجموع: ج۳/ص۳۰۷، نووی شرح مسلم: ج۱/ص۱۶۸)

يعنی زمونږ او د جمهورو طريقه دلاسونو د أوچتولو داده، چی تر اوګو پورې يې پداسې طريقه اوچت کړئ چی دګوتوسرونه د غوږونو د پاسنۍ حصی سره برابرشي اوغټې ګوتې دغوږونو له نرميو سره برابری شي او ورغوي داوګو سره برابرشي اوهمدغه مطلب دهغوخلکو دی چی هغوي وايي چی لاسونه به د اوږو سره برابروئ اوپه دې طريقه امام شافعي رحمه الله داحاديثوپه مابين کی تطبيق راوستلو اوټولو خلکو خوښ کړ.

## ۲۱-د تکبیر تحریمه څخه وروسته سبحٰنك أللهم ویل سنت دي

(۱) عَنْ أَبِي سَعِيْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلٰوةَ قَالَ: سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالٰى جَدُّكَ وَلَاۤ إِلٰهَ غَيْرُكَ. (نسائی:ج ۱/ص۱۴۳) حضرت ابو سعید رضی الله عنه فرمائی چی رسول الله ﷺ به چی کله مونځ شروع کړو نو سبحانک أللهم به ئی لوستله.

(۲) عَنْ أَبِي سَعِيْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ قَالَ: كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلَاةَ قَالَ: «سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ، وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالٰى جَدُّكَ وَلَاۤ إِلٰهَ غَيْرُكَ» (نسائی:ج ۱/ص۱۴۳) حضرت ابوسعید رضی الله عنه فرمائی چی رسول الله ﷺ به چی کله مونځ شروع کړو نو سبحانک اللهم الخ بهٔئی لوستله.

(۳) عَنْ عَائِشَةَ رضی الله عنها قَالَتْ: كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلٰوةَ قَالَ: سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ. (مستدرك حاكم:ج ۱/ص۲۳۵، ابوداود : ج۲/ص:۱۲۰) حضرت عایشه رضی الله عنها فرمائی چی رسول الله ﷺ به چی کله مونځ شروع کولو نو سبحنک اللهم الخ به یې لوستله.

(٤) عَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ أَنَّهُ كَانَ إِذَا كَبَّرَ الصَّلٰوةَ، قَالَ: سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالٰى جَدُّكَ وَلَاۤ إِلٰهَ غَيْرُكَ (داقطنی:ج ۱/ص۲۹۹) حضرت عمر رضی الله عنه به چی الله اکبر وویلو، نو سبحنک اللهم الخ به یې لوستلو.

(۵) عَنْ عَبْدَةَ رحمة الله علیه، أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ، كَانَ يَجْهَرُ بِهٰؤُلَاۤءِ الْكَلِمَاتِ يَقُوْلُ: «سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ، تَبَارَكَ اسْمُكَ، وَتَعَالٰى جَدُّكَ، وَلَاۤ إِلٰهَ غَيْرُكَ. (مسلم:ج ۱/ص۱۷۲) حضرت عمر رضی الله عنه به په اوچت اواز سبحانک اللهم الخ لوستله.

(٦) عَنْ أَبِي وَائِلٍ رحمة الله علیه قَالَ: كَانَ عُثْمَانُ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلٰوةَ يَقُوْلُ: سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ الخ. (دارقطنی:ج ۱/ص۳۰۲)

حضرت ابو وائل رحمه الله فرمائی چی حضرت عثمان رضی الله عنه به چی کله مونځ شروع کړو نو سبحانک اللهم به ئی لوستله.

## ۲۲-په کلیوالو مساجدو کې دوهمه جمعه مکروه ده

(۱) عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالَى عَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَدَ نَاسًا فِي بَعْضِ الصَّلَوَاتِ، فَقَالَ: «لَقَدْ هَمَمْتُ أَنْ آمُرَ رَجُلًا يُصَلِّي بِالنَّاسِ، ثُمَّ أُخَالِفَ إِلَى رِجَالٍ يَتَخَلَّفُونَ عَنْهَا، فَآمُرَ بِهِمْ فَيُحَرِّقُوا عَلَيْهِمْ، بِحُزَمِ الْحَطَبِ بُيُوتَهُمْ (بخاري: ج ۱/ص۸۹، مسلم: ج ۱/ص۲۳۲).

حضرت ابوهريرة ﷺ فرمائي چې يو څه کسان جماعت ته نه وو حاضر شوي، نو رسول الله ﷺ وفرمايل چې ما اراده کړې ده چې يو تن ته ووايم چې خلکو ته امامتي ورکړي او زه په هغو خلکو پسې ورشم چې جماعت ته ندي راغلي او دهغوی کورونه وسوزوم الخ.

(۲) وَعَنْ أَبِي بَكْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالَى عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «أَقْبَلَ مِنْ نَوَاحِي الْمَدِينَةِ يُرِيدُ الصَّلَاةَ، فَوَجَدَ النَّاسَ قَدْ صَلَّوْا، فَمَالَ إِلَى مَنْزِلِهِ، فَجَمَعَ أَهْلَهُ، فَصَلَّى بِهِمْ. (معجم طبراني: ج۵/ص۳۰٤)

حضرت ابوبکرة ﷺ فرمائي چې رسول الله ﷺ دمدینې داطرافو څخه دمانځه په اراده راغلو، لکن چې وی کتل خلکو مونځ کړی وو، نو رسول الله ﷺ کورته لاړو او د کور والاوو ته یې لمونځ ورکړو.

(۳) عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ رحمة الله عليه يَعْنِي مَوْلَى مَيْمُونَةَ ﷺ، قَالَ: أَتَيْتُ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالَى عَنْهُمَا عَلَى الْبَلَاطِ وَهُمْ يُصَلُّونَ، فَقُلْتُ: أَلَا تُصَلِّي مَعَهُمْ، قَالَ: قَدْ صَلَّيْتُ، إِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: «لَا تُصَلُّوا صَلَاةً فِي يَوْمٍ مَرَّتَيْنِ. (ابوداود: ج ۱/ص۹۳)

دحضرت ام المؤمنين ميموني رضی الله تعالی عنها ازاد کړی غلام حضرت سليمان ﷺ فرمايي چې: زه دمدينې منورې دبلاط په نوم باندی ځای څخه راغلم، ما وليدل چې خلک مونځ کوي، نو ما حضرت عبدالله بن عمر ﷺ ته وفرمايل چې تاسو ولې ددوي سره لمونځ نه کوئ؟ هغه ﷺ وفرمايل چې ما لمونځ کړی دی او ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چې يو لمونځ د ورځې دوه ځلې مه کوئ!

(٤) عَنْ إِبْرَاهِيمَ رحمة الله عليه: «أَنَّ عَلْقَمَةَ، وَالْأَسْوَدَ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ، أَقْبَلَا مَعَ ابْنِ مَسْعُودٍ ﷺ إِلَى مَسْجِدٍ، فَاسْتَقْبَلَهُمُ النَّاسُ قَدْ صَلَّوْا، فَرَفَعَ بِهِمَا إِلَى الْبَيْتِ، فَجَعَلَ أَحَدَهُمَا عَنْ يَمِينِهِ، وَالْآخَرَ عَنْ شِمَالِهِ، ثُمَّ صَلَّى بِهِمَا (مصنف عبدالرزاق: ج ۱/ص٤٠٩)

عبد الله بن مسعود ﷺ دخپلو دوو شاګردانو علقمه او اسود سره مسجد ته راغلو، خو خلکو مونځ په جماعت باندې کړې و او بهر ته راوتلي وو، نو عبد الله بن مسعود ﷺ خپل دواړو شاګردان دخپل ځان سره کورته بوتلل او پدا اسې طريقه يې جمعه وکړه چې يو يې ښي او بل يې چپ طرفته ودرول.

(٥) عَنِ الْحَسَنِ رحمه الله، قَالَ: «كَانَ أَصْحَابُ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، إِذَا دَخَلُوا الْمَسْجِدَ وَقَدْ صُلِّيَ فِيهِ صَلَّوْا فُرَادٰى. (مصنف ابن شيبه: ج ١/ص٣٢٣) درسول الله ﷺ صحابه به چې کله مسجدته راغلل او جماعت به شوی وو نو دوی به ځان ځان ته مونځ کولو.

(٦) عَنْ أَبِي قِلَابَةَ رحمه الله، قَالَ: «يُصَلُّونَ فُرَادٰى. (مصنف ابن أبي شيبه: ج٢/ص٣٢٣) ابو قلابه رحمه الله فرمائي چې دجماعت ذتيريدو په صورت کې به خلکو ځان ځان ته مونځ کولو.

(٧) عَنْ أَفْلَحَ رحمه الله، قَالَ: دَخَلْنَا مَعَ الْقَاسِمِ رحمه الله الْمَسْجِدَ وَقَدْ صُلِّيَ فِيهِ، قَالَ: «فَصَلَّى الْقَاسِمُ رحمه الله وَحْدَهُ (ايضا).

## ٢٣-دماښام دلمانځه څخه مخکې نفل کول سنت نه دي او سنت ويل ورته مکروه دي

(١) عَنْ طَاوُسٍ رحمه الله، قَالَ: سُئِلَ ابْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُمَا، عَنِ الرَّكْعَتَيْنِ قَبْلَ الْمَغْرِبِ، فَقَالَ: «مَا رَأَيْتُ أَحَدًا عَلٰى عَهْدِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيهِمَا، وَرَخَّصَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْعَصْرِ» (ابو داؤد ج ١صـ ١٨٢)

دعبد الله ابن عمر رضی الله عنهما څخه دماښام دلمانځه څخه مخکې ددوو رکعتونو نفلو په باره کې پوښتنه وشوه هغه وفرمايل چې: ما درسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې هيڅوک ددې دوو رکعتونو نفلو په کولو باندې نه دي ليدلي او پدې مې هم څوک نه دي ليدلي چې دمازديګر دلمانځه څخه وروسته يې دوه رکعتونو ته اجازت ورکړی وي.

(٢) عَنْ حَمَّادٍ رحمه الله، قَالَ: سَأَلْتُ إِبْرَاهِيمَ رحمه الله عَنِ الصَّلَاةِ قَبْلَ الْمَغْرِبِ فَنَهَانِي عَنْهَا، وَقَالَ: «إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبَا بَكْرٍ وَعُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا لَمْ يُصَلُّوهَا. (کتاب الأثار للامام ابی حنيفة بروايت الامام محمد صـ ٣٢)

حضرت حماد رَحِمَهُ اَللَّهُ فرمايي چې دابراهيم نخعي رَحِمَهُ اَللَّهُ څخه دمابنام دمانځه څخهددوو ركعتونو په باره کې پوښتنه وکړه، نو هغه زه منع کړم او وېفرمايل چې: رسول الله صَلَّى اَللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او ابوبكر رَضِيَ اَللَّهُ عَنْهُ او حضرت عمر رَضِيَ اَللَّهُ عَنْهُ دا لمونځ نه دی کړی.

(٣) عَنْ إِبْرَاهِيمَ رَحِمَهُ اللهُ قَالَ: «لَمْ يُصَلِّ أَبُوبَكْرٍ، وَلَا عُمَرُ، وَلَا عُثْمَانُ رَضِيَ اللَّهُ تَعَالَى عَنْهُمُ الرَّكْعَتَيْنِ قَبْلَ الْمَغْرِبِ (مصنف عبدالرزاق ج ٢صـ ٤٣٥)

حضرت ابراهيم نخعي رَحِمَهُ اَللَّهُ فرمايي چې: ابو بكر رَضِيَ اَللَّهُ عَنْهُ، عمر رَضِيَ اَللَّهُ عَنْهُ عثمان او رَضِيَ اَللَّهُ عَنْهُ دمابنام دلمانځه څخه مخکې دوه رکعته نه دي کړي.

(٤) عَنِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ رَحِمَهُ اللهُ قَالَ: «كَانَ الْمُهَاجِرُونَ لَا يَرْكَعُونَ الرَّكْعَتَيْنِ قَبْلَ الْمَغْرِبِ، وَكَانَتِ الْأَنْصَارُ تَرْكَعُ بِهِمَا (مصنف عبدالرزاق ج٢صـ ٤٣٥)

حضرت سعيد بن مسيب رَحِمَهُ اَللَّهُ فرمايي چې مهاجرينو به دوه رکعته نفل مخکې دمابنام څخه نه کول او انصارو به کول.

(٥) عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «بَيْنَ كُلِّ أَذَانَيْنِ صَلَاةٌ إِلَّا الْمَغْرِبَ» (كشف الاستار عن زوائد مسند البزار، ج ١ صـ٣٣٤)

رسول الله صَلَّى اَللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي چې: دهر دوو أذانونو (اذان او اقامة) په مابين کې لمونځ دی غير دمابنام څخه.

(٦) عَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللَّهُ تَعَالَى عَنْهُ، قَالَ: سَأَلْنَا نِسَاءَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، هَلْ رَأَيْتُنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يصلي الركعتين قَبْلَ الْمَغْرِبِ؟ فَقُلْنَ: لَا، غَيْرَ أَنَّ أُمَّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللَّهُ تَعَالَى عَنْهَا، قَالَتْ: صَلَّاهُمَا عِنْدِي مَرَّةً، فَسَأَلْتُهُ مَا هٰذِهِ الصَّلَاةُ؟ فَقَالَ: "نَسِيتُ الرَّكْعَتَيْنِ قَبْلَ الْعَصْرِ، فَصَلَّيْتُهُمَا الْآنَ. (رواه الطبراني فی كتاب مسند الشاميين، بحواله نصب الرأيه، ج ٢صـ ١٤١)

حضرت جابر رَضِيَ اَللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې: درسول الله صَلَّى اَللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دبيبيانو (أمهات المؤمنين) څخه پوښتنه وکړه چې رسول الله صَلَّى اَللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به دمابنام دلمانځه څخه مخکې دوه رکعته کول او که نه؟ نو ټولو بيبيانو وويل چې نه يې کول، يوازې أم سلمة رضى الله عنها وفرمايل چې: صرف يوه ورځې زما سره وکړل او بيا ترې پوښتنه وکړه چې دا کوم لمونځ دی؟ نو رسول الله صَلَّى اَللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ راته وفرمايل چې: دمازديگر څخه وروستني نفل را څخه هير شوي وو، هغه مې وکړل.

(٧)عَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ بُرَيْدَةَ رحمہ اللہ، قَالَ: حَدَّثَنِي عَبْدُاللّٰهِ الْمُزَنِيُّ رحمہ اللہ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «صَلُّوا قَبْلَ صَلاَةِ الْمَغْرِبِ»، قَالَ: «فِي الثَّالِثَةِ لِمَنْ شَاءَ كَرَاهِيَةَ أَنْ يَتَّخِذَهَا النَّاسُ سُنَّةً (بخاري ج ١ صـ ١٥٧)

رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې: دمابنام دمانځه څخه مخکې لمونځ کوئ، په دريم ځل يې وفرمايل چې دچا خوښه وي (نو هغه دې كوي او كه دچا خوښه وي نه دې كوي) دا خبره ځکه وکړه چې رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دې دوه رکعتونو ته سنت ويل نه خوښه ول.

(٨)عَنْ مَرْثَدِ بْنِ عَبْدِاللّٰهِ الْيَزَنِيِّ رحمہ اللہ، قَالَ: أَتَيْتُ عُقْبَةَ بْنَ عَامِرٍ الْجُهَنِيَّ رحمہ اللہ، فَقُلْتُ: أَلاَ أُعْجِبُكَ مِنْ أَبِي تَمِيمٍ يَرْكَعُ رَكْعَتَيْنِ قَبْلَ صَلاَةِ الْمَغْرِبِ؟ فَقَالَ عُقْبَةُ رضي الله عنه: «إِنَّا كُنَّا نَفْعَلُهُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ»، قُلْتُ: فَمَا يَمْنَعُكَ الآنَ؟ قَالَ: «الشُّغْلُ» (بخاري ج ١ صـ ١٥٨)

ابو تميم رَحِمَهُ اللّٰهُ دمابنام دلمانځه څخه مخکې دوه رکعته نفل وکړل، مرثد بن عبد الله تعجب وکړو، نو عقبه ابن عامر الجهني ته ورغلو او دخپل تعجب ذکر يې ورته وکړو، هغه ورته وفرمايل چې: مونږ دنبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې دا دوه رکعته کول، نو مرثد بن عبد الله رَحِمَهُ اللّٰهُ ورته وفرمايل چې اوس يې ولې نه کوئ؟ هغه وفرمايل: چې اوس مونږ مصروف يو.

ددې حديث څخه معلوميږي چې په ابتداء کې به دا دوه رکعته کيدل او وروسته بيا دصحابه وو او دتابعينو په زمانه کې بالکل متروک شول، که متروک نه واى، نو مرثد بن عبد الله به تعجب نه کولو.

(٩)وَعَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالَى عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: "«لاَ تَزَالُ أُمَّتِي عَلَى الْفِطْرَةِ مَا صَلَّوُا الْمَغْرِبَ قَبْلَ طُلُوعِ النُّجُومِ» (مجمع الزوائد ج ١ صـ ٣١٠)

رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي: چې زما أمت به تر هغه پورې په فطرت باندې وي ترڅو چې دمابنام لمونځ دستور د راختلو څخه مخکې کوي.

(١٠)وَعَنْ أَبِي أَيُّوبَ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالَى عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "«صَلُّوا الْمَغْرِبَ لِفِطْرِ الصَّائِمِ، وَبَادِرُوا طُلُوعَ النُّجُومِ»". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَلَفْظُهُ عِنْدَ الطَّبَرَانِيِّ: "«صَلُّوا صَلاَةَ الْمَغْرِبِ مَعَ سُقُوطِ الشَّمْسِ»، (مجمع الزوائد ج ١ صـ ٣١٠)

رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي: چې روژه دار دروژه ماتي په وخت کې دمابنام لمونځ کوئ او دستورو دراختلو څخه يې مخکې کوئ

په دې دوو حديثونو کې راغلل چې د ماښام په لمونځ کې تعجيل پکار دی او دا دوه رکعته نفل د تعجيل سره منافي دي.

## ۲۴- قصدا يا بلاقصده دپاتې شوو لمونځونو قضايي ضروري ده

(۱) عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَنْ نَسِيَ صَلَاةً فَلْيُصَلِّ إِذَا ذَكَرَهَا، لَا كَفَّارَةَ لَهَا إِلَّا ذٰلِكَ {وَأَقِمِ الصَّلَاةَ لِذِكْرِي} (بخاری ج ۱ صـ ۸٤، مسلم ج ۱ صـ ۲٤۱، واللفظ للمسلم)

رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي: چې چا لمونځ هير کړو او يا ترې ويده شو، نو چې ورته ياد شي نو اداء دې کړي ددې بله کفاره بغير ددې څخه نشته، په دې حديث کې حضرت قتادة الفاظ هم ذکر کړو چې: (اقم الصلوة لذکری)

(۲) عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ، قَالَ: قَالَ نَبِيُّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ نَسِيَ صَلَاةً، أَوْ نَامَ عَنْهَا، فَكَفَّارَتُهَا أَنْ يُصَلِّيَهَا إِذَا ذَكَرَهَا (مسلم ج ۱ صـ ۲٤۱)

رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي: چې چا لمونځ هير کړو او يا ترې ويده شو، نو کفاره يې داده چې ورته ياد شي نو اداء دې کړي.

(۳) عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا رَقَدَ أَحَدُكُمْ عَنِ الصَّلَاةِ، أَوْ غَفَلَ عَنْهَا، فَلْيُصَلِّهَا إِذَا ذَكَرَهَا»، فَإِنَّ اللّٰهَ يَقُولُ: {أَقِمِ الصَّلَاةَ لِذِكْرِي} (مسلم ج ۱ صـ ۲٤۱)

رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي: چې کله يو کس ستاسو د لمونځ څخه ويده شوه او يا ترې غافله شوه نو چې ورته ياد شو نو اداء دې کړي، بيشکه الله تعالى فرمايي: اقم الصلوة لذکری.

(۴) عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُمَا، أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ، جَاءَ يَوْمَ الْخَنْدَقِ، بَعْدَ مَا غَرَبَتِ الشَّمْسُ فَجَعَلَ يَسُبُّ كُفَّارَ قُرَيْشٍ، قَالَ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! مَا كِدْتُ أُصَلِّي الْعَصْرَ، حَتَّى كَادَتِ الشَّمْسُ تَغْرُبُ، قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «وَاللّٰهِ مَا صَلَّيْتُهَا» فَقُمْنَا إِلَى بُطْحَانَ، فَتَوَضَّأَ لِلصَّلَاةِ وَتَوَضَّأْنَا لَهَا، فَصَلَّى الْعَصْرَ بَعْدَ مَا غَرَبَتِ الشَّمْسُ، ثُمَّ صَلَّى بَعْدَهَا الْمَغْرِبَ. (بخاری ج ۱ صـ ۸۳، مسلم ج ۱ صـ ۲۲۷)

د حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ څخه د خندق په غزوه کې د مازديګر لمونځ قضاء شو نو قريشو ته يې ددې په وجې کنځلې کولې بيا يې رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته و فرمايل چې زما څخه د مازديګر لمونځ قضاء شوی دی، رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته و فرمايل چې زما څخه هم قضاء شوی دی، بيا مونږ بطحان

مقام ته لاړو او دس مو وکړو نو رسول الله صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ د ماز دیگر د لمر پریوتو څخه وروسته د ماز دیگر لمونځ وکړو، بیا يې د ماښام لمونځ وکړو.

(۵) عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ تَعَالَى عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ عَبْدُ اللهِ رَضِيَ اللهُ تَعَالَى عَنْهُ: إِنَّ الْمُشْرِكِينَ شَغَلُوا رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ أَرْبَعِ صَلَوَاتٍ يَوْمَ الْخَنْدَقِ، حَتَّى ذَهَبَ مِنَ اللَّيْلِ مَا شَاءَ اللهُ، فَأَمَرَ بِلَالًا رَضِيَ اللهُ تَعَالَى عَنْهُ فَأَذَّنَ، ثُمَّ أَقَامَ فَصَلَّى الظُّهْرَ، ثُمَّ أَقَامَ فَصَلَّى الْعَصْرَ، ثُمَّ أَقَامَ فَصَلَّى الْمَغْرِبَ، ثُمَّ أَقَامَ فَصَلَّى الْعِشَاءَ (ترمذی ج ۱صـ ۴۳)

د خندق په غزوه کې د رسول الله صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ څخه څلور لمونځونه قضاء شوه، بیا يې حضرت بلال رَضِیَ اللّٰہُ عَنْہُ ته امر وکړو چې اذان وکړي، نو اول يې د ماسپښین قضايي راوړه او بیا يې د ماز دیگر، او بیا يې د ماښام او بیا يې د ماخوستن قضايي راوړه.

(۶) عن عَبْدَ اللهِ بْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ تَعَالَى عَنْهُمَا أنه كَانَ يَقُولُ: مَنْ نَسِيَ صَلَاتَه فَلَمْ يَذْكُرْهَا إِلَّا وَهُوَ مَعَ الإِمَامِ، فَإِذَا سَلَّمَ، فَلْيُصَلِّ الصَّلَاةَ الَّتِي نَسِيَ، ثُمَّ لِيُصَلِّ بَعْدَهَا الصلاة الأُخْرٰى. (مؤطا امام مالک صـ ۱۵۵)

حضرت عبد الله ابن عمر رضی الله عنهما فرمایي چې د چا څخه چې لمونځ هیر شوی وي او بیا د امام سره په بل لمونځ ولاړ وي نو کله چې امام سلام وګرزوي نو ده ته پکار ده چې اول هغه هیر شوی لمونځ اداء کړي او بیا د امام سره ادا کړی لمونځ را وګرزوي.

امام نووی رَحِمَہُ اللّٰہُ فرمایي چې: فِيهِ وُجُوبُ قَضَاءِ الْفَرِيضَةِ الْفَائِتَةِ سَوَاءٌ تَرَكَهَا بِعُذْرٍ كَنَوْمٍ وَنِسْيَانٍ أَمْ بِغَيْرِ عُذْرٍ وَإِنَّمَا قَيَّدَ فِي الْحَدِيثِ بِالنِّسْيَانِ لِخُرُوجِهِ عَلَى سَبَبٍ لِأَنَّهُ إِذَا وَجَبَ الْقَضَاءُ عَلَى الْمَعْذُورِ فَغَيْرُهُ أَوْلَى بِالْوُجُوبِ وَهُوَ مِنْ بَابِ التَّنْبِيهِ بِالْأَدْنَى عَلَى الْأَعْلَى وَأَمَّا قَوْلُهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلْيُصَلِّهَا إِذَا ذَكَرَهَا فَمَحْمُولٌ عَلَى الِاسْتِحْبَابِ فَإِنَّهُ يَجُوزُ تَأْخِيرُ قَضَاءِ الْفَائِتَةِ بِعُذْرٍ عَلَى الصَّحِيحِ وَقَدْ سَبَقَ بَيَانُهُ وَدَلِيلُهُ وَشَذَّ بَعْضُ أَهْلِ الظَّاهِرِ فَقَالَ لَا يَجِبُ قَضَاءُ الْفَائِتَةِ بِغَيْرِ عُذْرٍ وَزَعَمَ أَنَّهَا أَعْظَمُ مِنْ أَنْ يَخْرُجَ مِنْ وَبَالِ مَعْصِيَتِهَا بِالْقَضَاءِ وَهَذَا خَطَأٌ مِنْ قَائِلِهِ وَجَهَالَةٌ وَاللهُ أَعْلَمُ (نووی ج ۱صـ ۲۳۸)

په دې حدیث کې د دې خبرې د پاره دلیل دی چې کله چې فرض لمونځ قضاء شي د هغې قضايي ضروري ده برابره خبره ده چې بلاعذره قضاء شوی وي او یا سره د عذره قضاء شوی وي او په حدیث کې د نسیان قید له وجې د شان نزول څخه دی او لدې وجې څخه هم غیر معذور باندې قضايي لازمه ده نو کله چې په معذور قضايي واجبه وه نو غیر معذور په طریقه اولی واجب ده او دا له باب د تنبیه بالادنی علی الاعلی څخه ده او د رسول الله صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ دا فرمان چې فلیصلها اذا ذکرها دا په استحباب حمل دی،

ځکه چې د قضائي لمونځونو داداء تأخیر جائز دی او بعضې اهل ظواهرو شذوذ کړی دی او ویلي دي چې بلا عذر دفوت شوو لمونځونو قضائی واجبه نه ده او دا ګمان یې کړی دی چې دفوت شوو لمونځونو ګناه ډیره زیاته ده او ددې ګناه ځخه وتل ډیره غټه خبره ده، لکن دا داهل ظواهرو خطائي او جهالت دی.

## ۲۵ مسئله: استمناء بالید حرامه ده

استمناء په لغت کې: داستفعال دباب ځخه دی د(مني) ځخه دی. معنی یې :دمنی دراویستلو غوښتل دي، استمناء ته په عربی کښې :الخَضخَضَه هم وا یې، په عربانو کښې نن سبا په العادة السرية سره او په پښتو کې په موټک سره شهرت لري، د استمناء حکم دادی چې ;دفقهاءو په نیز استمناء دنارینه وو او زنانه وو دواړو لپاره حرامه ده.

قال ابن عابدین(( فِي الْجَوْهَرَةِ: الِاسْتِمْنَاءُ حَرَامٌ، وَفِيهِ التَّعْزِيرُ. وَلَوْ مَكَّنَ امْرَأَتَهُ أَوْ أَمَتَهُ مِنْ الْعَبَثِ بِذَكَرِهِ فَأَنْزَلَ كُرِهَ وَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ )) ج٤ص٢٨

په استمناء کې تعزیر دی او دخپلې ښځې په لاس استمناء مکروه ده لکن تعزیر پکې نه شته حافظ ابن تیمیه رحمه الله فرمایلي دي چې ((أَمَّا الِاسْتِمْنَاء بِالْيَدِ فَهُوَ حَرَامٌ عِنْدَ جُمْهُورِ الْعُلَمَاءِ وَهُوَ أَصَحُّ الْقَوْلَيْنِ فِي مَذْهَبِ أَحْمَد وَكَذَلِكَ يُعَزَّرُ مَنْ فَعَلَهُ)) (مجموع الفتاوی /٢٢٩/٣٥ )

دجمهور علماءو په نیز استمناء حرامه ده او همدا د امام احمد رحمه الله په دوو قولونو کې صحیح قول دی، او د استمناء بالید کونکی ته به تعزیر ورکولی شي، همدارنګه یې فرمایلی دي چې:

و الِاسْتِمْنَاءُ لَا يُبَاحُ عِنْدَ أَكْثَرِ الْعُلَمَاءِ سَلَفًا وَخَلَفًا سَوَاءٌ خُشِيَ الْعَنَتُ أَوْ لَمْ يُخْشَ ذَلِكَ. وَكَلَامُ ابْنِ عَبَّاسٍ وَمَا رُوِيَ عَنْ أَحْمَد فِيهِ إنَّمَا هُوَ لِمَنْ خَشِيَ " الْعَنَتَ " وَهُوَ الزِّنَا وَاللِّوَاطُ خَشْيَةً شَدِيدَةً خَافَ عَلَى نَفْسِهِ مِنْ الْوُقُوعِ فِي ذَلِكَ فَأُبِيحَ لَهُ ذَلِكَ لِتَكْسِيرِ شِدَّةِ عَنَتِهِ وَشَهْوَتِهِ. وَأَمَّا مَنْ فَعَلَ ذَلِكَ تَلَذُّذًا أَوْ تَذَكُّرًا أَوْ عَادَةً؛ بِأَنْ يَتَذَكَّرَ فِي حَالِ اسْتِمْنَائِهِ صُورَةً كَأَنَّهُ يُجَامِعُهَا فَهَذَا كُلُّهُ مُحَرَّمٌ لَا يَقُولُ بِهِ أَحْمَد وَلَا غَيْرُهُ وَقَدْ أَوْجَبَ فِيهِ بَعْضُهُمْ الْحَدَّ، وَالصَّبْرُ عَنْ هَذَا مِنْ الْوَاجِبَاتِ لَا مِنْ الْمُسْتَحَبَّاتِ.)) (مجموع الفتاوی) (٥٤٧/١١)

استمناء په هر صورت کې حرامه ده، ویره دزنا وي او که نه، البته که په لواطت یا په زنا کې د واقع کیدلو سخته خطره وه نو بیا دابن عباس رضی الله عنه او د امام احمد رحمه الله ځخه اباحت مروي دي او د خوند او

د عادت او د جماع دتصور په صورت کې اتفاقاً حرامه ده، حتی چې بعضو پکې دحد قول کړی دی، ځان ساتل تري واجب دي، په فقه حنفي کې عند خوف الزنا ورته لفظ د رجاء استعمال شوی دی چې هغه هم په جواز دلالت نکوي.

**دلایل:**

اول: امام شافعي او امام مالک او امام زیلعي (حنفي) رحمهم الله داستمناء بالید د حرمت لپاره ددې ایت څخه استدلال کړی دی چې (وَالَّذِينَ هُمْ لِفُرُوجِهِمْ حَافِظُونَ إِلَّا عَلَى أَزْوَاجِهِمْ أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُمْ فَإِنَّهُمْ غَيْرُ مَلُومِينَ فَمَنِ ابْتَغَى وَرَاءَ ذَلِكَ فَأُولَئِكَ هُمُ الْعَادُونَ) المومنون

الله جل جلاله هغو مومنانوته دکامیابۍ او د اوور څخه دنجات زیرې ورکړی دی چې دحرامو ځایونو څخه د خپلو شرمګاهونو حفاظت کوي

حرام ځایونه کوم دي؟نو پدې ایت کښې بیان شو چې دخپلې منکوحې ښځې او دخپلې مملوکې ښځې څخه علاوه نور ټول حرام دي او استمناء دمنکوحې او د مملوکې څخه علاوه دی لهذا استمناء حرامه ده الله جل جلاله یو ځلی دحصر صیغه ذکر کړه چې(إِلَّا عَلَى أَزْوَاجِهِمْ أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُمْ) یعني دذکر استعمال یوائې دخپلې منکوحې ښځې او دخپلې مملوکې ښځې سره جایز دی او بیا یې ددې تایید په ﴿فَمَنِ ابْتَغَى وَرَاءَ ذَلِكَ﴾ باندي وکړو.

فایده:ابن حزم الظاهري رحمه الله فرمایي چې استمناء مکروهه ده.فرمایې چې (نكرهه لانه ليس من مكارم الاخلاق) حالانکي دا دنص په مقابله کښې قیاس دی، د چارپایي سره جماع ته ابن حزم رحمه الله هم حرام وایي او استدلال پدې ایت باندي کوي چې بهیمه دزوجې او د چارپایې څخه علاوه ده ځکه حرامه ده نو همدارنګه مونږ هم وایو چې استمناء دزوجې او د چارپایې څخه علاوه ده ځکه حرامه ده.

دوهم: الله جل جلاله فرمایي چې( وَلْيَسْتَعْفِفِ الَّذِينَ لَا يَجِدُونَ نِكَاحًا حَتَّى يُغْنِيَهُمُ اللَّهُ مِنْ فَضْلِهِ) (النور٣٣)

الله دنکاح څخه په ماسوا کښې دعفاف امر کړی دی او استمناء هم دنکاح څخه په ماسوا کښې ده

دريم:رسول الله فرمايلي دي چې ( يَا مَعْشَرَ الشَّبَابِ مَنِ اسْتَطَاعَ مِنْكُمُ الْبَاءَةَ(تكاليف الزواج)، فَلْيَتَزَوَّجْ، فَإِنَّهُ أَغَضُّ لِلْبَصَرِ وَأَحْصَنُ لِلْفَرْجِ، وَمَنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَعَلَيْهِ بِالصَّوْمِ، فَإِنَّ الصَّوْمَ لَهُ وِجَاءٌ حماية عن الوقوع في الحرام)( إسناده صحيح والحديث متفق عليه))

ځوک چې دواده قدرت لري نو واده دې وکړي ځکه چې واده دسترګو لپاره ښه ټيټونکی دی او د شرمګاه لپاره ښه ساتونکی دی او د چاچې دواده طاقت نوي هغه دې روژه ونيسي ځکه چې روژه دده لپاره په حرامو کښې دواقع کېدلو ځخه ساتونکی ده نو نبي صلی الله عليه وسلم دنکاح ځخه عاجز کس ته د روژې حکم وکړو که استمناء جايزه وی نو د استمناء حکم به يې ورته کړی وو ځکه چې دنکاح ځخه خو استمناء اسانه ده.

ځلورم :قال ابن الهمام في فتح القدير وَلَا يَحِلُّ الِاسْتِمْنَاءُ بِالْكَفِّ ذَكَرَالْمَشَايِخُ فِيهِ أَنَّهُ - عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ - قَالَ «نَاكِحُ الْيَدِ مَلْعُونٌ»، اه.

وقال ايضا (وَالِاسْتِمْتَاعُ بِالْجُزْءِ حَرَامٌ) لِقَوْلِهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - «نَاكِحُ الْيَدِ مَلْعُونٌ اه قال الدرالمختاروَكَذَا الِاسْتِمْنَاءُ بِالْكَفِّ وَإِنْ كُرِهَ تَحْرِيمًا لِحَدِيثِ «نَاكِحُ الْيَدِ مَلْعُونٌ انتهي كلامه

ثم هو طرف من حديث أخرجه أبو الشيخ ابن حيان في "مجلس من حديثه" (٦٢/ ١-٢)، وابن بشران في "الأمالي" (٨٦/ ١-٢) من طرق عن عبد الرحمن بن زياد الإفريقي عن أبي عبد الرحمن الحبلي عن عبد الله بن عمرو مرفوعاً بلفظ:

سبعة لعنهم الله، ولا ينظر إليهم يوم القيامة، ويقال لهم: ادخلوا النار مع الداخلين: الفاعل، والمفعول به في عمل قوم لوط، وناكح البهيمة، وناكح يده، والجامع بين المرأة وابنتها، والزاني بحليلة جاره، والمؤذي جاره حتى يلعنه، والناكح للمرأة في دبرها؛ إلا أن يتوب

رسول الله فرمايلي دی چې په اوو کسانو دالله لعنت دی اول؛په فاعل او په مفعول،دوهم: دڅاروي سره په بد فعلي کوونکی دريم ؛ په استمناء کوونکی ځلورم؛ دمور او دلور په يوه نکاح کې په جمعه کوونکی پنځم دګاوندی دښځي سره په زنا کوونکی ښپږم؛ ګاوندي ته په ضرر رسونکی اوم؛ دښځې سره په لواطت کونکی.(حديث دمتابعاتو له وجه دحسن لغيره په مرتبه کي دي )

پنځم :عبد الرزاق عَنِ الثَّوْرِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُثْمَانَ، عَنْ مُجَاهِدٍ قَالَ: سُئِلَ ابْنُ عُمَرَ عَنْهُ، قَالَ: «ذَلِكَ نَائِكُ نَفْسِهِ» رقم ۱۳۵۸۷

عبد الله بن عمر رضي الله عنهما فرمايي چې استمناء باليد کوونکی دخپل ځان سره بدفعلی کوي.

شپږم: الضرر الصحي :فقهاءو فرمايلي دي چي کوم شی چي صحت ته مضر وي هغه شرعا ممنوع وي او استمنا صحت ته ډیر ضرر رسوي لکه :

۱- جنسی ضعف.

۲-دغدودو تناسليه وضعف.

۳ - سرعت الانزال.

۴- دتناسلي الې کړيدل.

۵- دغلطو خيالونو په وجه دحافظې نقصان.

۶- لاس دفرج د مهبل په نسبت زيګ وي نو د استمناء په وجه دذکر د حس کميدل.

۷- دښځې په استمناء سره خارجي جنسي اعضاء غټيږي او داخلي لکه مهبل کمزوری کيږي چي بيا دجماع په وجه ورته خوند نه حاصليږی.

اووم :الضرر النفسي :استمناء داخلاقو او مروت سره منافي عمل دی داستمناء باليد کوونکی ته ځان خسيس ښکاري. علامه قرطبي رحمه الله فرمايلی دی چې (الاستمناء عار بالرجل الدني فكيف بالرجل الكبير)

**د اهل ظواهرو او ويکتوري اهلحديثو په نيز استمناء کله مباحه کله مستحبه اوکله واجبه وي حتیٰ چې بعضو صحابه کرامو ته يې هم منسوب کړې ده** [illegible]

دويکتوري اهلحديثو سرګروه نواب نورالحسن ابن نواب صديق حسن خان ليکلي دي چې: [illegible]

استنزال منی بکف یا به چیزی از جمادات نزد دعای حاجت مباح است ولاسیما چون فاعل خاشی از وقوع در فتنه یا معصیت که اقل احوالش نظر بازیست باشد که درین حین مندوب است ،بلکه گاه واجب گردد دمیکه ترک معصیت جز باین حرکت ممکن نشود واحادیث وارده در منع از نکاح بدست ثابت وصحیح نشده، بلکه بعض اهل علم نقل این استمناء از صحابه نزد غیبت از اهل خود کرده آند و درمثل این کار حرج نیست بکله همچو استخراج دیگر فضلات مؤذیه بدن است (عرف الجادی صـ۲۰۷)

یعنې په عامو حالاتو کې استمناء مباحه ده او دنظر بازۍ د ویرې په صورت کې مستحبه ده او په معصیت کې دوقوع د ویرې په صورت کې واجبه ده، بلکې بعضې اهل علمو صحابه کرامو ته هم منسوب کړې ده.

## د ویکتوري اهلحدیثودلائل

په مصنف عبدالرزاق ج ۷ ص ۳۹۰ کې باب دی په نوم د (باب الاستمناء) هلته یو څو روایات دي لکن یو هم ثابت نه دی مثلا:

۱-: قال عبدالرزاق قَالَ: أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، عَنْ عَطَاءٍ، أَنَّهُ كَرِهَ الِاسْتِمْنَاءَ. قُلْتُ: أَفِيهِ حديث ؟ قَالَ: «مَا سَمِعْتُهُ» (رقم ١٣٥٨٦)

ددې روایت په سند کې ابن جریج مدلس دی د متعې قایل وو دنوې ښځو سره یې متعه کړې وه همدارنګه عطاءفرمایې چې ماپکې حدیث ندې اوریدلی همدارنګه پدې روایت کې داستمناء کراهت ذکر دی اودکراهت څخه متبادر کراهت تحریمې دی.

۲-:عبدالرزاق عَنِ الثَّوْرِيِّ، وَمَعْمَرٍ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي رَزِينٍ، عَنْ أَبِي يَحْيَى، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَجُلٌ: إِنِّي أَعْبَثُ بِذَكَرِي حَتَّى أُنْزِلَ؟ قَالَ: «إِنَّ نِكَاحَ الْأَمَةِ خَيْرٌ مِنْهُ، وَهُوَ خَيْرٌ مِنَ الزِّنَا» ١٣٥٨٨

۳-:عبد الرزاق عَنِ ابْنِ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَمَّارٍ الدُّهْنِيِّ، عَنْ مُسْلِمٍ قَالَ: رَأَيْتُ سَعِيدَ بْنَ جُبَيْرٍ، لَقِيَ أَبَا يَحْيَى فَتَذَاكَرَا حَدِيثَ ابْنِ عَبَّاسٍ فَقَالَ لَهُ أَبُو يَحْيَى: سُئِلَ ابْنُ عَبَّاسٍ عَنْ رَجُلٍ يَعْبَثُ بِذَكَرِهِ حَتَّى يُنْزِلَ؟ فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: إِنَّ نِكَاحَ الْأَمَةِ خَيْرٌ مِنْ هَذَا، وَهَذَا خَيْرٌ مِنَ الزِّنَا ١٣٥٩٠

یو کس حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنهما ته وفرمایل چې زه په خپل ذکر لوبې کوم نو حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنهما ورته وفرمایل چې ددې څخه د وینځې سره نکاح ښه ده او داعمل د زنا

څخه بنه دی.

د اول اثر په سند کې ابو یحیی مجهول دی ودین الله لایوخذ عن مجاهیل په دوهم سند کې هم همدا مجهول ابو یحیی دی او ورسره عمار الدهني شیعه دی.

او پدې دواړو اثرونو کې خیریت اضافي دی په نظر سره زنا ته دی (واذا خییرت بین البلیتین فاختر اهونه)

٤-: قال عبد الرزاق عَنِ الثَّوْرِيِّ، عَنْ عَبَّادٍ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ زَيْدٍ أَبِي الشَّعْثَاءِ قَالَ: «هُوَ مَاؤُكَ فَأَهْرِقْهُ»(١٣٥٩١)

ابو الشعثاء فرمایلی دی چې مني ستا خپلې اوبه دي نو وایروه:

پدې روایت کې دوه ضعفه دي اول دا چې دسفیان ثوري رحمه الله په استاذانو کښې عباد بن منصور دی نو عباد عن منصور تحریف دی او عباد بن منصور ضعیف دی او دوهم دا چې دعباد بن منصور روایت د ابو الشعثاء څخه نه دی ثابت.

٥ :قال عَبْدُ الرَّزَّاقِ قَالَ: أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ: أَخْبَرَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ أَبِي بَكْرٍ، عَنْ رَجُلٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّهُ قَالَ: «وَمَا هُوَ إِلَّا أَنْ يَعْرُكَ أَحَدُكُمْ زُبَّهُ حَتَّى يُنْزِلَ مَاءً (١٣٥٩٢)

ددې روایت په سند کې ابن جریج مدلس دی ابراهیم بن ابي بکر پکې مجهول دی همدارنګه رجل پکې مجهول دی ودین الله لایوخذ عن مجاهیل

٦:قال عَبْدُ الرَّزَّاقِ قَالَ: أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ: أَخْبَرَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ أَبِي بَكْرٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ قَالَ: «كَانَ مَنْ مَضَى يَأْمُرُونَ شُبَّانَهُمْ بِالِاسْتِمْنَاءِ، وَالْمَرْأَةُ كَذَلِكَ تُدْخِلُ شَيْئًا». قُلْنَا لِعَبْدِ الرَّزَّاقِ: مَا تُدْخِلُ شَيْئًا؟ قَالَ: " يُرِيدُ السق يَقُولُ: تَسْتَغْنِي بِهِ عَنِ الزِّنَا (١٣٥٩٣)

ددې روایت په سند کې هم ابن جریج مدلس دی او ابراهیم بن ابي بکر مجهول دی ودین الله لا یو خذ عن مجاهیل وعلی فرض صحة الاثر قیده مجاهد بحال الخوف عن الزنا.

٧- قَالَ عبد الرزاق: أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ: قَالَ عَمْرُو بْنُ دِينَارٍ مَا أَرَى بِالِاسْتِمْنَاءِ بَأْسًا ١٣٥٩٣

ددې روایت په سند کې ابن جریج مدلس دی امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمایلی دی چې: اذا قال ابن جریج ((قال فلان ))و((قال فلان ))و((اخبرت))جاء بمناکیر

٨- اخبرنا ابن جریج اخبرني من اصدق عن الحسن البصري انه کان لایري باسا بالمرءة تدخل شـیئا

تريدالستر تستغني به عن الزنا.

دديږوايت په سند کې هم ابن جريج مدلس دی او (من اصدق )پکښې مجهول دی وعلی کل حال هو مقيد بخوف الزنا.

٩-ابن حزم په المحلي ج١١ص٣٩٣ کې دمصنف عبدالرزاق په حواله ليکلی دی چې;قال عبدالرراق:وذكره معمر عن يعقوب السختياني وغيره عن مجاهد عن الحسن : انه كان لا يرى باسا بالاستمناء.

ددې په سند کې دمعمر او مجاهد په ما بين کې په واسطه کې مجهول راوي دی، علاوه لادا چي دا دابن حزم رحمه الله وهم دی ځکه چې دا روايت په مصنف عبدالرزاق او په نورو کتابونو کې پيدا نه شو.

١٠-وروي ابن حزم باسناد صحيح عن قتادة عن رجل عن ابن عمر انه قال انما هو عصب تدلکه پدې کې رجل مجهول دی ،ولو فرضنا صحته فهو مقيد بحال الخوف.

١١: وَبِهِ - إِلَى قَتَادَةَ عَنِ الْعَلَاءِ بْنِ زِيَادٍ عَنْ أَبِيهِ أَنَّهُمْ كَانُوا يَفْعَلُونَهُ فِي الْمَغَازِي " يَعْنِي الِاسْتِمْنَاءَ " يَعْبَثُ الرَّجُلُ بِذَكَرِهِ يُدَلِّكُهُ حَتَّى يُنْزِلَ - قَالَ قَتَادَةُ: وَقَالَ الْحَسَنُ فِي الرَّجُلِ يَسْتَمْنِي يَعْبَثُ بِذَكَرِهِ حَتَّى يُنْزِلَ، قَالَ: كَانُوا يَفْعَلُونَ فِي الْمَغَازِي.

ددې روايت په سند کې قتادة مدلس دی او زياد بن مطر پکې مجهول دی، وعلى تقدير صحته فهو ايضا مقيد.

١٢-اخرج البيهقي في سننه الكبري (١٩٩\٧)اخبرنا ابوزكريا بن ابي اسحق المزكي انبانا ابو عبد الله بن يعقوب حدثنا محمد بن عبد الوهاب انبانا جعفر بن عون أنبأ الْأَجْلَحُ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا ان غلاما اتاه فجعل القوم يَقُومُونَ وَالْغُلَامُ جَالِسٌ، فَقَالَ لَهُ بَعْضُ الْقَوْمِ: قُمْ يَا غُلَامُ . فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا: دَعُوهُ شَيْءٌ مَا أَجْلَسَهُ، فَلَمَّا خَلَا قَالَ: يَا ابْنَ عَبَّاسٍ إِنِّي غُلَامٌ شَابٌّ أَجِدُ غِلْمَةً شَدِيدَةً فَأَدْلُكُ ذَكَرِي حَتَّى أُنْزِلَ، فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: " خَيْرٌ مِنَ الزِّنَا ، وَنِكَاحُ الْأَمَةِ خَيْرٌ مِنْهُ.

ددې روايت په سند کې اجلح شيعه دی او ضعيف هم دی او د ابو الزبير څخه يې سماع نه ده ثابته:

وعلى كل تقدير هو مقيد بحال الخوف كماتدل عليه روايات ابن عباس المتقدمة.

۱۳- ابن حزم الظاهري قياس پيش کړی دی، دوه مقدمې يې ذکر کړې دي :

اول: استمناء په خوزولو او مسحه کولو کيږي.

دوهم: په استمناء کې قصد د انزال د منی وي او دا دواړه مقدمې مباحې دي لهذا استمناء مباحه شوه، لکن د مکارم الاخلاق سره منافي دی، نو مکروه تنزيهي دی، لکن دا قياس يې غلط دی. اوله مقدمه يې مباحه نه ده، ځکه چې په فروجو او په نکاحونو کې اصل تحريم دی الا ما اباحه الشرع قال الله تعالى ﴿فَمَنِ ابْتَغَى وَرَاءَ ذَلِكَ فَأُولَئِكَ هُمُ الْعَادُونَ﴾ او د استمناء په اباحت کې نص نه شته.

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمدلله وحده والصلوة والسلام على من لا نبي بعده.
أما بعد!

دانسان دزندگۍ دهرې شعبې لپاره شرعي احکام موجود دي، ددفن څخه وروسته دقبر سرطرف ته دسورة بقرې اولني ايتونه تر ﴿أُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ﴾ پورې او دپښو طرفته دسورة بقرې اخرني ايتونه (آمَنَ الرَّسُوْلُ الايه) لوستل مستحب دي او داحاديثو څخه ثابت دي، همدارنګه په مقبره کې عام تلاوت کول هم ثابت او مستحب دی، لکن بعضې فتنه ګر دلته هم دفتنو ربابونه وهي او عوام په تشويش کې اچوي.

ددې فتنې دمهار کولو لپاره به مونږ دوه قسمه احاديث ذکر کړ، اول: هغه احاديث چې په هغې کې دقبر دسر او دپښو طرفته دسورة بقرې د اولو ايتونو او داخرو ايتونو دلوستلو ذکر راغلی دی او دوهم: به هغه احاديث ذکر کړو چې په هغې کې په مقبره کې دمطلق تلاوت ذکر راغلی دی او دا رساله به په دريو فصلونو او يوه خاتمه باندې مشتمله کړو. په اول فصل کې به اول قسم احاديث ذکر کړو، په دوهم فصل کې به دوهم قسم احاديث ذکر کړو او په دريم فصل کې به دا مسئله دمذاهبو اربعوؤ او دمحققينو علماوو دفتوو په رڼا کې واضحه کړو او په خاتمه کې به دمانعينو استدلال او دهغې څخه جوابات ذکر کړو ان شاء الله تعالی.

## اول فصل

دمړي ددفن کولو څخه وروسته دقبر دسر او دپښو طرفته دسورة بقرې د اولو او داخرو ايتونو دلوستلو په باره کې داحاديثو په کتابونو کې دوه مرفوع صحيح حديثونه رانقل شوي دي، يو دحضرت لجلاج رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حديث دی او دوهم دحضرت عبد الله بن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حديث دی.

**اول حديث: دحضرت لجلاج** رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ :دا حديث دريو محدثينو روايت کړی دی.

اول: امام يحی بن معين رحمه الله موقوفاً روايت کړی دی.

دوهم امام طبراني رحمه الله مرفوعاً روایت کړی دی.

دریم : امام ابن عساکر رحمه الله موقوفا روایت کړی دی.

دا حدیث دا امام یحیی بن معین رحمه الله څخه متعددو محدثینو روایت کړی دی چې په هغوي کې:

امام عباس دوري رحمه الله ، امام خلال رحمه الله ، امام لالکائي رحمه الله، امام بیهقي رحمه الله دی ،

## دامام عباس دوري ١٥٨ هـ ٢٧١)رحمه الله طریقه:

وبه قال : حدثنا يحي ، قال حدثنا مبشر بن اسماعيل الحلبي، قال حدثني عبدالرحمن بن العلاء بن اللجاج عن ابيه قال: قال أبي: يابنيا اذا انا مت فضعني فى اللحد وقل: بسم الله وعلى سنة رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وسن علىّ التراب سنّا واقرأ عند رأسي بفاتحة البقرة وخاتمتها فانى سمعت عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يقول ذلک. تاريخ يحي بن معين برواية الدوري ج ٢ صـ ٣٤٦)

په یو بل ځای کې د روایت الفاظ داسې دي چې: سألت يحي بن معين عن القراءة عند القبر ، فقال حدثنا مبشربن اسماعيل الحلبي، عن عبدالرحمن بن العلاء بن اللجلاج عن ابيه انه قال لبنيه : اذا ادخلت القبر فضعوني فى اللحد وقولوا: بسم الله وعلى سنة رسول الله وسنوا علىّ التراب سنّا واقرأوا عند رأسي اول البقرة وخاتمتها فاني رأيت عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يستحب ذلک (تاريخ يحي بن معين برواية الدوري ج ٢ صـ ٣٧٩ رقم ٥٤١٣)

حضرت علاء رحمه الله فرمايي چې: ما ته زما پلار لجلاج رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې ای زویه کله چې زه وفات شوم نو ما په لحد کې کیدئ او دا دعا ولولئ چې بسم الله وعلی سنة رسول الله او زما سر طرفته دسورة بقرې اول ایتونه او پښو طرفته دسورة بقرې اخر ایتونه ولولئ، ځکه چې ما د حضرت عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه اوریدلي دي چې هغه به همداسې فرمايل اويا به یې دا عمل مستحب ګڼلو.

## دامام خلال رحمه الله (٢٣٤هـ -٣١١ هـ) طريقه:

وبه قَالَ: أَخْبَرَنَا الْعَبَّاسُ بْنُ مُحَمَّدٍ الدُّورِيُّ، قَالَ: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مَعِينٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا مُبَشِّرٌ الْحَلَبِيُّ، قَالَ: حَدَّثَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ الْعَلَاءِ بْنِ اللَّجْلَاجِ، عَنْ أَبِيهِ ﷺ، قَالَ: "إِنِّي إِذَا أَنَا مِتُّ، فَضَعْنِي فِي اللَّحْدِ، وَقُلْ: بِسْمِ اللَّهِ، وَعَلَى سُنَّةِ رَسُولِ اللَّهِ ﷺ، وَسُنَّ عَلَيَّ التُّرَابَ سَنًّا، وَاقْرَأْ عِنْدَ رَأْسِي بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ وَأَوَّلِ الْبَقَرَةِ وَخَاتِمَتِهَا، فَإِنِّي سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يَقُولُ ذَلِكَ. (كتاب القراءة عن القبور صـ ٨٧)

ترجمه يئ دمخكني حديث دترجمې په شان ده، امام خلال ددې روايت متعلق يوه قصه هم نقل كړې ده فرمايي چې: وَأَخْبَرَنِي الْحَسَنُ بْنُ أَحْمَدَ الْوَرَّاقُ رحمهما الله تعالى، قَالَ: حَدَّثَنِي عَلِيُّ بْنُ مُوسَى الْحَدَّادُ رحمهما الله تعالى، وَكَانَ صَدُوقًا، وَكَانَ ابْنُ حَمَّادٍ رحمه الله الْمُقْرِءُ يُرْشِدُ إِلَيْهِ، فَأَخْبَرَنِي قَالَ: "كُنْتُ مَعَ أَحْمَدَ بْنِ حَنْبَلٍ، وَمُحَمَّدِ بْنِ قُدَامَةَ الْجَوْهَرِيِّ رَحِمَهُمَا اللَّهُ فِي جِنَازَةٍ، فَلَمَّا دُفِنَ الْمَيِّتُ جَلَسَ رَجُلٌ ضَرِيرٌ يَقْرَأُ عِنْدَ الْقَبْرِ، فَقَالَ لَهُ أَحْمَدُ رحمه الله: يَا هٰذَا، "إِنَّ الْقِرَاءَةَ عِنْدَ الْقَبْرِ بِدْعَةٌ فَلَمَّا خَرَجْنَا مِنَ الْمَقَابِرِ قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ قُدَامَةَ رحمه الله لِأَحْمَدَ بْنِ حَنْبَلٍ رحمه الله: يَا أَبَا عَبْدِ اللّٰهِ! مَا تَقُولُ فِي مُبَشِّرٍ الْحَلَبِيِّ رحمه الله؟ قَالَ: ثِقَةٌ، قَالَ: كَتَبْتَ عَنْهُ شَيْئًا؟ قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: فَأَخْبَرَنِي مُبَشِّرٌ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْعَلَاءِ بْنِ اللَّجْلَاجِ، عَنْ أَبِيهِ رضي الله عنه، أَنَّهُ أَوْصَى إِذَا دُفِنَ أَنْ يُقْرَأَ عِنْدَ رَأْسِهِ بِفَاتِحَةِ الْبَقَرَةِ وَخَاتِمَتِهَا، وَقَالَ: سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ رضي الله عنهما يُوصِي بِذٰلِكَ، فَقَالَ لَهُ أَحْمَدُ رحمه الله: فَارْجِعْ، فَقُلْ لِلرَّجُلِ يَقْرَأُ. (كتاب القراءة عند القبور (صـ ٨٨)

په يوه جنازه كې چې كله مړى دفن شو نو يو ړوند سړى كيناستلو او دقبر په خوا كې يې قرآن لوستلو، نو امام احمد بن حنبل رحمه الله ورته وفرمايل چې اى لوستونكيه! دقبر به خواكې دقرآن لوستل بدعت دى، كله چې دقبرستان څخه راووتلو نو امام محمد بن قدامه رحمه الله امام احمد رحمه الله ته وفرمايل چې اى ابو عبدالله! تاسو دمبشر الحلبي رحمه الله په باره كې څه وايئ؟ نو امام احمد بن حنبل رحمه الله ورته وفرمايل چې ثقه دى، بيا يې ترينه پوښتنه وكړه چې ايا تاسو دمبشر حلبي رحمه الله څخه كوم حديث ليكلى دى؟ امام احمد رحمه الله ورته وفرمايل چې هو، نو محمد بن قدامه رحمه الله ورته دمبشر حلبي رحمه الله دا مخكنى حديث واورولو، ددې څخه وروسته امام احمد بن حنبل رحمه الله وفرمايل چې ورشئ هغه سړي ته ووايئ چې دقبر په خواكې قرآن لوله.

## ددې قصې مصححين او مستدلين

(١) علامه ابن القيم رحمه الله دا واقعه ذكر كړې ده او هيڅ اعتراض يې ورباندې نه دى كړى (كتاب الروح صـ ١٠)

(٢) علامه ابو الفضل عبدالله بن صديق الغماري رحمه الله په خپل كتاب (الرد المحكم المتين فى كتاب القول المبين صـ ٢٩٤) كې دا واقعه رانقل كړې ده او وروسته يې ليكلي دي چې: انتظر الى انصاف الامام احمد وسرعة رجوعه الى الصواب. (الامر بالمعروف والنهى عن المنكر ج ١ صـ ٢٩٢)

(٣) الشيخ عبدالفتاح ابو غده رحمه الله دا واقعه رانقلوي او بيا ليکي چې: (فرحم الله الامام احمد ، ماکان بينه وبين الحق عدواة والله ولى التوفيق) مقدمة ثلاث رسايل فى استحباب الدعاء ورفع اليدين فيه بعد الصلوة المکتوبة (صـ ٨)

(٤) علامه محقق محمد عوامه رحمه الله هم دا واقعه رانقولي (ثرالحديث الشريف صـ ١٦٢).

فانقيل : چې غير مقلد الباني لکي چې: فالجواب عنه من وجوه : الاول أن فى ثبوت هـذه القصة عن احمد نظر ، لان شيخ الخلال الحسن بن احمد الوراق لم اجد ترجمته فيما عندي الان مـن کتب الرجال شيخه على بن موسى الحداد لم اعرفه ، وان قيل فى السند أنه کان صـدوقا ، فـان الظـاهر ان القايل هو الوراق هذا ، وقد عرفت حاله ،الثانى: ان ثبت ذلک عنه فانه اخص مما رواه ابو داؤد عنه ، وينتج من الجمع بين الروايتين عنه ان مذهبه کراهة القراءة عند القبر، الا عند الدفن، احکام الجنايز صـ ١٩٢).

قلنا: ددې قصې دوه سندونه دي، اول: امام خلال رَحِمَهُ ٱللَّهُ دحسن بن احمد وراق رَحِمَهُ ٱللَّهُ څخه روايت کوي او هغه دعلى بن موسى الحداد رَحِمَهُ ٱللَّهُ څخه روايت کوي او هغه دامام احمد بن حنبل رَحِمَهُ ٱللَّهُ او دمحمد بن قدامه رَحِمَهُ ٱللَّهُ څخه نقل کوي.

دوهم: امام خلال رحمه الله دخپل شيخ ابوبکر بن صدقه رَحِمَهُ ٱللَّهُ څخه روايت کوي او هغه دعثمان بن احمد الموصلي رَحِمَهُ ٱللَّهُ څخه روايت کوي او دهغه دامام احمد رحمه الله او دامام محمد بن قدامه رحمه الله څخه نقل کوي.

داول سند په راويانو کې حسن بن احمد الوراق رَحِمَهُ ٱللَّهُ دامام خلال رحمه الله شيخ دى او دامام موسى بن عيسى رحمه الله شاګر دى، دده سره دامام احمد بن حنبل رحمه الله ډير مسايل او کتابونه وو قاضي ابن ابى يعلى الحنبلى رحمه الله په طبقات الحنابله کې دموسى بن عيسى جصاص البغدادى په ترجمه کې ليکي چې: وکانت عنده مسايل کثيرة عن ابى عبدالله فحدثنى بشيء صالح الحسن بن احمد الوراق وقال: ان الباقي ضاع منى فمضيت الى الحربية الى منزل ابنته قلنا لعلنا نجد الاصول وحرصنا على ذلک فلم نقدر منها على شيء . (کما فى احکام الجنايز صـ ١٩٢) او دتاريخي حقيقت لپاره دومره شهرت کافى دى.

او دعلی بن موسی الحداد تعریف او توثیق خپله امام خلال رحمه الله کوي وکان صدوقا ، وکان ابن حماد المقری یرشد الیه (کتاب القراءة عن القبور ص ۷۸)

هغه ریشتینی وو او علامه ابن حماد المقري دهغه طرف ته راهنمایي کوله، دا جمله اگر چې دامام وراق رَحِمَهُ ٱللَّهُ ده لکن همدومره الفاظ دده دشهرت او دعدالت لپاره کافي دي، ځکه چې امام وراق مشهور ثقه راوي دی.

په دوهم سند کې دامام خلال رَحِمَهُ ٱللَّهُ استاذ ابو بکر بن صدقه بغدادي رَحِمَهُ ٱللَّهُ دی، علامه ذهبي رحمه الله ورته حافظ ويلي دي (تاريخ الاسلام ج ۵ ص ۲۴۱) او دابوبکر رَحِمَهُ ٱللَّهُ شيخ عثمان بن احمد بن ابراهيم الموصلي رحمه الله دامام احمد بن حنبل رحمه الله ملګری او شاګرد دی (طبقات الحنابله ج ۲ ص - ۱۱۵)

### دامام لالکائی المتوفی ٤١٨ طریقه:

وبه قال: حدثنا عَلِيُّ بْنُ عُمَرَ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، أنا إِسْمَاعِيلُ بْنُ مُحَمَّدٍ، قَالَ: نا عَبَّاسُ بْنُ مُحَمَّدٍ، قَالَ: نا يَحْيَى بْنُ مَعِينٍ، قَالَ نا مُبَشِّرُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ الْحَلَبِيُّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْعَلَاءِ بْنِ اللَّجْلَاجِ، عَنْ أَبِيهِ أَنَّهُ قَالَ لِوَلَدِهِ: "إِذَا أَنَا مِتُّ، فَأَدْخَلْتُمُونِي فِي اللَّحْدِ فَهِيلُوا عَلَيَّ التُّرَابَ هَيْلًا، وَقُولُوا: بِسْمِ اللَّهِ وَعَلَى مِلَّةِ رَسُولِ اللَّهِ ﷺ، وَسُنُّوا عَلَيَّ التُّرَابَ سَنًّا، وَاقْرَءُوا عِنْدَ رَأْسِي بِفَاتِحَةِ سُورَةِ الْبَقَرَةِ وَخَاتِمَتِهَا، فَإِنِّي سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ يَسْتَحِبُّ ذَلِكَ" وَعَبْدُ اللَّهِ هُوَ ابْنُ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رضي الله عنه. (شرح اصول اعتقاد أهل سنت والجماعت ج ٤ ص ۱۲۲۷)

ترجمه يې د مخکني حديث د ترجمې په شان ده.

### دامام بيهقي رحمه الله المتوفی ٤٥٨ هـق طريقه:

وبه قال أَخْبَرَنَا أَبُو عَبْدِ اللَّهِ الْحَافِظُ، ثنا أَبُو الْعَبَّاسِ مُحَمَّدُ بْنُ يَعْقُوبَ، ثنا الْعَبَّاسُ بْنُ مُحَمَّدٍ، قَالَ: سَأَلْتُ يَحْيَى بْنَ مَعِينٍ رحمهم الله تعالى عَنِ الْقِرَاءَةِ عِنْدَ الْقَبْرِ فَقَالَ: حَدَّثَنَا مُبَشِّرُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ الْحَلَبِيُّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْعَلَاءِ بْنِ اللَّجْلَاجِ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّهُ قَالَ لِبَنِيهِ: "إِذَا أَدْخَلْتُمُونِي قَبْرِي فَضَعُونِي فِي اللَّحْدِ وَقُولُوا: بِاسْمِ اللَّهِ وَعَلَى سُنَّةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَسُنُّوا عَلَيَّ التُّرَابَ سَنًّا وَاقْرَءُوا عِنْدَ رَأْسِي أَوَّلَ الْبَقَرَةِ وَخَاتِمَتَهَا فَإِنِّي رَأَيْتُ ابْنَ عُمَرَ رضي الله عنه يَسْتَحِبُّ ذَلِكَ (السنن الكبرى، كتاب الجنايز، باب ما ورد فى قراءة القرآن عند القبر ج ٥ ص ٤٠٤)

ترجمه يې د مخکني حديث په شان ده.

## مستدلين او مصححين

(۱) امام نووي رحمه الله فرمايي چې: وروينا فى سنن الهيقى باسناد حسن ان ابن عمر استحب ذلک أن يقرأ على القبر بعد الدفن أول سورة البقرة وخاتمتها (كتاب الاذكار باب ما يقوله بعد الدفن صـ ۱۳۷)

(۲) علامه ابن علاون رحمه الله فرمايى چې: قال الحافظ بعد تخريجه هذا موقوف حسن. (الفتوحات الربانيه ج ٤صـ١٩٤نتايج الافكار ج ۳صـ ۱۲۶)

(۳) علامه ابن الجزرى رحمه الله دا روايت په خپل مشهور كتاب حصن الحصين كې رانقل كړى دى او سكوت يې كړى دى (حصن الحصين صـ ۱۵۱)

(٤) شوكانى هم دنووي رحمه الله تحسين رانقلوي اوليكي وَحسن النَّوَوِيّ رحمه الله إسْنَادَه وَهُوَ وَإِن كَانَ من قَوْله فَمثل ذَلِك لَا يُقَال من قبل الرَّأْي. (تحفة الذاكرين بعدة الحصن الحصين صـ ۲۹۴)

(٥) علامه عبد الله الغمارى رحمه الله د حافظ ابن حجر رحمه الله په تحسين باندې اعتماد كړى دى (نزل الابرار بالعلم المأثور من الأدعية والاذكار صـ ۲۹)

(٦) علامه ظفر أحمد العثمانى رحمه الله فرمايى چې: وفى الاذكار للنووى وروينا فى سنن البيهقى باسناد حسن أن ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يستحب أن يقرأ على القبر بعد الدفن اول سورة البقرة وخاتمتها وهو موقوف فى حكم المرفوع فانه غير مدرك بالرأى.

(۷)(اعلاء السنن باب استحباب زيارة القبور عموما وزيارة قبر النبى صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خصوصا وما يقرأ فيها)

دامام طبرانى رَحِمَهُ اللَّهُ مرفوع روايت:

وبه قال: حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَبْدُ اللهِ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ أَبِي أُسَامَةَ الْحَلَبِيُّ، ثنا أَبِي، ح وَحَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ دُحَيْمٍ الدِّمَشْقِيُّ، ثنا أَبِي، وَحَدَّثَنَا الْحُسَيْنُ بْنُ إِسْحَاقَ التُّسْتَرِيُّ، ثنا عَلِيُّ بْنُ بَحْرٍ، قَالُوا: ثنا مُبَشِّرُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ الْعَلَاءِ بْنِ اللَّجْلَاجِ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ لِي أَبِي: "يَا بُنَيَّ إِذَا أَنَا مِتُّ فَالْحِدْنِي، فَإِذَا وَضَعْتَنِي فِي لَحْدِي فَقُلْ: بِسْمِ اللهِ وَعَلَى مِلَّةِ رَسُولِ اللهِ ﷺ، ثُمَّ سُنَّ عَلَيَّ التُّرَابَ سَنًّا، ثُمَّ اقْرَأْ عِنْدَ رَأْسِي بِفَاتِحَةِ الْبَقَرَةِ وَخَاتِمَتِهَا، فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ ﷺ يَقُولُ ذَلِكَ (المعجم الكبير ج ۸ صـ ۲۱۹ درالكتب العلميه بيرت)

**مصححين او مستدلين:**

(۱) علامه هيثمی رحمه الله فرمايي چې: رواه الطبرانی فی الكبير ورجاله موثقون. (مجمع الزوايد حديث نمبر ۲۲٤۳)

(۲) علامه زيلعي رحمه الله پرې سكوت كړی دی (نصب الرايه ج ۲ ص- ۳۰۲)

(۳) حافظ ابن حجر رحمه الله پرې سكوت كړی دی (الدرايه ج ۱ ص ۲۴۱ والتلخيص الجير ج ۲ ص ۳۸۲)

(٤) علامه صالحي شامي رحمه الله فرمايي چې: روی الطبرانی برجال ثقات (سبيل الهدی والرشاد فی سيرة خير العباد ج ۸ ص ۵۰۷)

(۵) علامه نيموی رحمه الله ورته صحيح ويلي دي فرمايي چې: رواه الطبرانی فی المعجم الكبير واسناده صحيح (اثار السنن ص ۲۷۲)

(٦) علامه ظفر احمد العثمانی رحمه الله دعلامه نيموی رحمه الله په تصحيح باندې اعتماد كړی دی (اعلاء السنن ج ۸ ص ۳۴۲)

(۷) عبدالله الغماری رحمه الله ورته حسن ويلی دی فرمايي چې: وهذا حديث حسن قال عنه الهيثمي رجاله موثقون (الحاوی فی فتاوی الحافظ عبدالله الغماری ص ۳۱)

(۸) علامه وهبی سليمان غاوجی رحمه الله ورته صحيح ويلي دي فرمايي چې رواه الطبرانی واسناده صحيح (اركان الاسلام ج ۱ ص ۳۱۲)

**دامام ابن عساكر رَحِمَهُ اللهُ مقوقوف روايت :**

وبه قال: اخبرنا جدی لأبي أبی الفضل يحی بن علی القاضي انبأنا عبدالرزاق بن عبد لاالله بن الحسن بن الفضيل ح وحدثنا ابو محمد بن صابر لفظا أنبأنا علی بن الحسن بن عبد السلام ابن أبی الحرزور، وعبد الله بن عبدالرزاق بن عبد الله قالوا أنبأنا احمد بن محمد بن احمدالعتيقی ، حدثنا علی بن محمد بن احمد بن لؤلؤ، حدثنا عبدالله بن محمد بن ناجيه ، حدثنا مبشر بن اسماعيل عن عبدالرحمن بن العلاء بن اللجلاج عن ابيه قال: قال لی أبی: يابنی! اذا انا مت فألحدنی فاذا وضعتنی فی لحدی فقل

حافظ ابن حجر رحمه الله دهغه چا په باره کې دمقبول کلمه استعمالوي چې په هغه کې درې خبرې وي اول دهغه څخه لږ احاديث روايت شوي وي، دوهم په هغه باندې هيڅ جرحه نوي شوې، او دريم دحديث په بيانولو کې متفرد نه وي. (مقدمة تقريب التهذيب ص ٧٥)

الباني توجيه دقول بما لايرضى به قائله کوي، دمقبول دلفظ څخه ددې حديث په ضعف باندې استدلال کوي او ليکلي يې دي چې: ولذلک لم يعرج عليه الحافظ فى التقريب حين قال فى المترجم (مقبول) يعنى عندالمتابعة والا فلين الحديث كما نص عليه فى المقدمة)

الباني رحمه الله دحافظ ابن حجر رحمه الله مطلب داسې بيانوي چې حافظ ابن حجر رحمه الله چې دکوم حديث په باره کې مقبول ووايي نو بيا به مونږ ګورو چې ددې روايت متابع شته او که نه؟ که متابع يې وو نو قبلوو به يې او که نه نو لين الحديث به ورته وايو، حالانکې دا مطلب بالکل غلط دی، ځکه چې دلته دمتابع لټون غير ته سپارل کيږي، دحافظ ابن حجر رحمه الله مقصد دادی چې ما خپله لټون کړی دی او دتحقيق څخه وروسته چې متابع موجود وي نو هلته ما فيصله دمقبول کړې ده او چې متابع يې نه وي هلته ما فيصله دلين الحديث کړې ده تاسو دا بن حجر رحمه الله په عبارت کې سوچ وکړئ همدا مقصد به درته ظاهر شي دحافظ ابن حجر رحمه الله عبارت دادی چې (السادسة: من ليس له من الحديث الا القليل ولم يثبت فيه ما يترک حديثه من أجله واليه الاشارة بلفظ مقبول، حيث لم يتابع والا فلين الحديث، (مقدمة تقريب ص ٧٥)

دلته متابع دعبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حديث دی:

فائد: په متابع او په شاهد کې دا فرق دی چې په متابع کې سند يو وي او په شاهد کې مختلف وي دلته دعبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دحديث سند بدل دی لکن حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې: وقد تطلق المتابعة على الشاهد وبالعكس والأمر فيه سهل (نزهة النظر ص ٧٥) په حاشيه کې ليکي چې لان المقصود التقوية وهى حاصلة بكل منهما. (نزهة النظر بتحقيق الدكتور نور الدين عتر ص ٧٥)

(٣) علاء رَحِمَهُ اللهُ بن لجلاج رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دعبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ شاګرد دی، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې: قال العجلى رحمه الله ثقة روى له الترمذى حديثا واحدا عن عايشة فى شدة الموت قلت وذكره ابن حبان فى الثقات (تهذيب التهذيب ج ٨ ص ١٧٠)

(۴) حضرت لجلاج رَضِيَ اللهُ عَنْهُ صحابی دی، دلجلاج رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په نوم دوه صحابه دتاریخ په کتابونو کې مشهور دي يو: دعلاء والد او دوهم: دخالد، والد، علامه ابن سميع فرمايي چې دا دواړه بيل بيل کسان دي او ابن معين فرمايي چې دا يو دی، حافظ ابن حجر رحمه الله په الاصابه کې دعلامه ابن سميع رَحِمَهُ اللهُ قول ته ترجيح ورکړې ده.

## دوهم مرفوع حديث دحضرت عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

مخکې دعبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ موقوف حديث ذکر شو، دعبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا روايت امام خلال رحمه الله امام طبراني رحمه الله او امام بيهقي رحمه الله ذکر کړی دی.

۱. دامام خلال رحمه الله د روايت الفاظ داسې دي چې: وَأَخْبَرَنِي الْعَبَّاسُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ أَحْمَدَ بْنِ عَبْدِ الْكَرِيمِ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبُو شُعَيْبٍ عَبْدُ اللهِ بْنُ الْحُسَيْنِ بْنِ أَحْمَدَ بْنِ شُعَيْبٍ الْحَرَّانِيُّ رحمهم الله تعالى مِنْ كِتَابِهِ قَالَ: حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الضَّحَّاكُ الْبَابُلُتِّيُّ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ بْنُ نَهِيكٍ الْحَلَبِيُّ الزُّهْرِيُّ رحمهم الله تعالى، مَوْلَى آلِ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ قَالَ: سَمِعْتُ عَطَاءَ بْنَ أَبِي رَبَاحٍ الْمَكِّيَّ رَحِمَهُ اللهُ، قَالَ: سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «إِذَا مَاتَ أَحَدُكُمْ فَلَا تَحْبِسُوهُ، وَأَسْرِعُوا بِهِ إِلَى قَبْرِهِ، وَلْيُقْرَأْ عِنْدَ رَأْسِهِ بِفَاتِحَةِ الْبَقَرَةِ، وَعِنْدَ رِجْلَيْهِ بِخَاتِمَتِهَا فِي قَبْرِهِ». (کتاب القراءة عندالقبور ص ٢).

حضرت عطاء بن أبی رباح مکي فرمايي چې: ما دعبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه واوريدل چې ما دنبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څخه واوريدل چې فرمايل يې چې کله چې په تاسو کې څوک وفات شي نو حصار وئ يې مه او زر زر يې مقبرې ته وړئ او دقبر سر طرف ته دې دسورة بقرې اول ايتونه او دپښو طرف ته دې دسورة بقرې أخرني ايتونه ولوستلی شي.

۲. دطبراني د روايت الفاظ داسې دي چې: حَدَّثَنَا أَبُو شُعَيْبٍ الْحَرَّانِيُّ، ثنا يَحْيَى بْنُ عَبْدِ اللهِ الْبَابُلُتِّيُّ، ثنا أَيُّوبُ بْنُ نَهِيكٍ، قَالَ: سَمِعْتُ عَطَاءَ بْنَ أَبِي رَبَاحٍ رحمهم الله تعالى، يَقُولُ: سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، يَقُولُ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ ﷺ يَقُولُ: «إِذَا مَاتَ أَحَدُكُمْ فَلَا تَحْبِسُوهُ، وَأَسْرِعُوا بِهِ إِلَى قَبْرِهِ، وَلْيُقْرَأْ عِنْدَ رَأْسِهِ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ، وَعِنْدَ رِجْلَيْهِ بِخَاتِمَةِ الْبَقَرَةِ فِي قَبْرِهِ (المعجم الکبير ج ٦ ص ٢٥٥ طبع دار الکتب العلميه بيرت)

علامه ابن حجر رحمه الله فرمايي چې: وَيُؤَيِّدُهُ حَدِيثُ بْنِ عُمَرَ ﷺ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِذَا مَاتَ أَحَدُكُمْ فَلَا تَحْبِسُوهُ وَأَسْرِعُوا بِهِ إِلَى قَبْرِهِ (اخرجه الطبرانى باسناد حسن فتح البارى باب السرعة بالجنازة ج ٣ صـ ٢٣٧)

٣- داما بيهقى رحمه الله د روايت الفاظ داسې دي چې: أَخْبَرَنَا عَلِيُّ بْنُ أَحْمَدَ بْنِ عَبْدَانَ أنا أَحْمَدُ بْنُ عُبَيْدٍ الصَّفَّارُ نا أَبُو شُعَيْبٍ الْحَرَّانِيُّ نا يَحْيَى بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ الْبَابْلُتِّيُّ نا أَيُّوبُ بْنُ نَهِيكٍ الْحَلَبِيُّ رحمهم الله تعالى مَوْلَى آلِ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ ﷺ قَالَ سَمِعْتُ عَطَاءَ بْنَ أَبِي رَبَاحٍ رحمه الله سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ ﷺ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "إِذَا مَاتَ أَحَدُكُمْ فَلَا تَحْبِسُوهُ وَأَسْرِعُوا بِهِ إِلَى قَبْرِهِ وَلْيُقْرَأْ عِنْدَ رَأْسِهِ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ وَعِنْدَ رِجْلَيْهِ بِخَاتِمَةِ الْبَقَرَةِ فِي قَبْرِهِ" لَمْ نَكْتُبْهُ إِلَّا بِهٰذَا الْإِسْنَادِ فِيمَا أَعْلَمُ وَقَدْ رُوِّينَا الْقِرَاءَةَ الْمَذْكُورَةَ فِيهِ عَنِ ابْنِ عُمَرَ ﷺ مَوْقُوفًا عَلَيْهِ) (شعب الايمان ج ١١صـ ٤٧١)

دا حديث صاحب دمشكوة هم ذكر كړى دى او په اخر كې يې ليكلي دي چې رواه البيهقى فى شعب الايمان وقال والصحيح انه موقوف عليه (مشكاة باب دفن الميت الفصل الثالث)

## دصاحب دمشكوة وهم:

دعبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حديث مرفوع دى، لكن صاحب دمشكوة دامام بيهقى په حواله باندې ليكلي دي چې دا موقوف دى، صاحب دمشكوة داما بيهقى پوره عبارت نه دى رانقل كړى بلكې صرف خلاصه يې ليكلې ده، له دې وجې يې دبيهقى مطلب بالكل بالعكس كړى دى امام بيهقى داسې ليكلي دي چې : لم نكتبه الا بهذا الاسناد فيما اعلم وقد رُوِّينا القراءة المذكورة فيه عن ابن عمر موقوفا عليه (شعب الايمان للبيهقى ج ١١ صـ ٤٧١)

دعبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا حديث زما دعلم مطابق صرف په همدې سند باندې مونږ ليكلى دى، البته دا مذكور قرات (داول او دأخر دبقرې) دعبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه موقوفا هم مروي دى او هغه مخكې دعبدالرحمن بن لجلاج په حديث كې ذكر شو او صاحب دمشكوة ليكي چې امام بيهقى دې حديث ته موقوف ويلي دي.

دا دصاحب دمشكوة خطايي ده، دصاحب دمشكوة دې خطايي ته ملا على القاري رحمه الله، شيخ عبدالحق محدث دهلوي رحمه الله ، مولانا عبيدالله مباركپوري رحمه الله او مولانا ادريس كاندهلوي رحمه الله اشاره نه ده كړې ، مولانا گوهر رحمن په تفهيم المسايل كې ج ٦ صـ ١٨٩) كې ددې

غلطي وضاحت کړې دی، علامه سيوطي رحمه الله دې حديث ته مرفوع ويلي دي، فرمايي چې: ومن الوارد فی ذلک ما تقدم فی باب ما يقال عند الدفن من حديث ابن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ والعلاء بن اللجلاج رضی الله عنهما مرفوعا کلاهما. (الايات البينات فی فضايل الايات صـ ٦٨)

**دابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دحديث راويان:**

١-ابو شعيب الحرانی، علامه ذهبی رحمه الله فرمايي چې قال الدارقطنی: ثقة مأمون (تاريخ الاسلام ج ۵ صـ ٢٦۵)

٢. يحيی بن عبد الله البابلتی رحمه الله ته ډيرو محدثينو ضعيف ويلي دي (تاريخ الاسلام ج ۵ صـ ٢٦٧)

٣- ايوب بن نهيک، دا راوي هم ضعيف دی (لسان الميزان ج ١ صـ ٧٦٠)

۴- عطاء بن أبی رباح رَحِمَهُ اللهُ مشهور ثقه تابعي دی، تقريب صـ ٦٧۵)

ددوو راويانو دضعف سره سره حافظ ابن حجر رحمه الله دې حديث ته حسن ويلي دي (فتح الباری باب السرعة بالجنازة ج ٣ صـ ٢٣٧) نو دا ياله دې وجې چې دا ضعف شديد نه دی او يا له دې وجې چې دحضرت لجلاج رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حديث ددې متابع دی له دې وجې ددې روايت مرتبه دضعيف څخه پورته شوه.

## دوهم فصل

**په قبرستان کې دمطلق قراءت جواز:**

١- دسورت يس تلاوت : عَنْ مَعْقِلِ بْنِ يَسَارٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "اقْرَؤُوهَا عِنْدَ مَوْتَاكُمْ" يَعْنِي يس (ابن ماجه ١٤٤٨)

**په مړو باندې سورة يس ولولئ:**

الباني ليکي چې دا حديث ضعيف دی، لکن علامه محمود سعيد رحمه الله په الباني باندې کلک رد کړی دی او ليکلي يې دي چې دا حديث حسن دی.

علامه ابن حبان رَحِمَهُ اللهُ او علامه سيوطی رَحِمَهُ اللهُ ورته صحيح ويلي دي امام حاکم رَحِمَهُ اللهُ او ذهبی رَحِمَهُ اللهُ پرې سکوت کړی دی، علامه منذری رَحِمَهُ اللهُ ورته حسن ويلي دي.

دعلامه محمود سعيد پوره عبارت دا سې دی:

(٤٢٤) **حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ سُلَيْمَانَ التَّيْمِيِّ، عَنْ أَبِي عُثْمَانَ، وَلَيْسَ بِالنَّهْدِيِّ، عَنْ أَبِيهِ رحمهم الله تعالى، عَنْ مَعْقِلِ بْنِ يَسَارٍ رضي الله عنه، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «اقْرَءُوا يس عَلَى مَوْتَاكُمْ»** ذكره فی ضعيف ابی داؤد (٦٨٣، ٣١٦.) وفی ضعيف ابن ماجه ( ٣٠٨، ١٠٨) وقال فی ارواته بعد ان انفصل عن ضعفه ( ٣، ١٥١) للحديث علة اخری قادحة افصح عنها الذهبی نفسه فی الميزان فقال فی ترجمة ابی عثمان هذا (عن أبيه عن أنس ، لايعرف قال ابن المدينی لم يروعنه غير سليمان التيمی قلت: أما النهدي فثقة ا.ه.ام قلت: وتمام كلام ابن ا لمديني (وهو مجهول واما ابن حبان فذكره فی الثقات ( ٢، ٣٢٦) علی قاعدته فی تعديل المجهولين ثم ان فی الحديث علم اخری وهی الاضطراب فبعض ا لرواة يقول (عن أبی عثمان عن ابيه عن معقل وبعضهم عن ابی عثمان عن معقل (لايقول عن أبيه) وأبوه غير معروف ايضا فهذه ثلاث علل ١- جهالة أبی عثمان ٢- جهالة أبيه ٣- الاضطراب انتهی كلام الألبانی، قال العبد الضعيف: الحديث حسن، وقد صححه ابن حبان (الاحسان رقم ٣٠٠٢ والسيوطی وسكت عليه الحاكم ( ١/ ٥٦٥) والذهبی وقال المنذری فی تخريج احاديث المهذب حديث حسن، كذا فی البدر المنير ( ٤ ، ل ، ٢٢( أ) فسليمان بن طرخان التيمی ذكره الحافظ ابن حجر فی التقريب ( ٢٥٧٥) فی الطبقة الرابعة أی أنه تابعی أدرک عددا من الصحابة فی أغلب علی الظن ان شيخه ابا عثمان من طبقة كبار التابعين وقد ذكره ابن حبان فی الثقات ( ٧، ٦٦٤) وصحح له، وروی عنه ثقة هو سليمان التيمی فالميل لقبول حديثه متجه قوی واما أبوه فهو مخضرم أدرک الجاهلية او صحابی ولذلک صحح الحديث ابن حبان ثم السيوطی مع ملاحظة ان ابن حبان روی الحديث عن سليمان التيمی عن أبی عثمان عن معقل بن يسار به مرفوعا فلم يقل : عن أبی عمثان عن أبيه ومع ذلک فللحديث شواهد .

١-اخرج احمد فی المسند ( ٤، ١٠٥) حدثنا ابو المغيرة ثنا صفوان حدثنی المشيخة انهم حضروا غضيب بن الحارث الثمالی حين اشتد سوقه فقال : هل منكم من أحد يقرأ (يس) قال: فقرأها صاحب بن شريح السكونی فلما بلغ أربعين منها قبض ، قال: فكان المشيخة يقولون: اذا قرئت عند الميت خفف عنه بها ، قال صفوان، وقرءها عيسی بن المعتر عند ابن معبد.

وأخرجه ابن سعد فی الطبقات ( ٧، ٤٤٣) فی ترجمة غضيب بن الحارث من طريق صفوان به ،

وهذا الاسناد رجاله ثقات وقد حسن هذا الاسناد الحافظ ابن حجر فى (الاصابة) (٣/ ١٨٤) وصفوان هو ابن عمر والسكسكى وشيوخه جماعة من التابعين يجبر بعضهم بعضا وغضيف ابن الحارث الشمالى رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ صحابى وطلبه قراءة سورة (يس) عند احتضاره يحتاج لتوقيف وليس للرأى فيه مجال فحكمه الرفع على ماهو مقرر فى قواعد الحديث اما قول المشيخة اذا قرئت عند الميت خفف عنه بها.

فالمشيخة هنا جماعة عن التابعين، وكلامهم حكمه حكم الارسال عند طائفة من المحدثين ولأثر غضيف بن الحارث الشمالى طريق آخر أخرجه ابن عساكر فى تاريخ دمشق (١٤/ ل ٧/ أ) من حديث سعيد بن منصور حدثنا فرج بن فضالة عن أسد بن وداعة قال: لما حضرت غضيف بن الحارث الموت حضرت اخوته فقال: هل فيكم من يقرأ سورة (يس)؟ فقال رجل من القوم! نعم فقال: اقرأ ورتل وانصتوا فقرأ ورتل وأسمع القوم فلما بلغ فسبحان الذى بيده ملكوت كل شيئ واليه ترجعون) فخرجت نفسه قال أسد بن وداعة فمن حضره منكم الموت فشدد عليه الموت فليقرأ عليه (يس) فانه يخفف عليه الموت.

سعيد بن منصور امام، حافظ، ثقة، وشيخه فرج بن فضالة بن النعمان التنوخى الشامى ضعيف واسد بن وداعة هو الشامى الناصبى وعليه ثناء فى ترجمته فى التاريخ الكبير (٢/ ٥٠) وذكره ابن حبان فى ثقات التابعين (٤/ ٦٥) فضعف اسناد ابن عساكر ينجبر باسناد احمد وابن سعد ورجاله ثقات وحسنه الحافظ ابن حجر فى الاصابة كما تقدم.

ولما كان أسد بن وداعة تابعيا فكلامه ينزل منزلة المرسل كما تقدم نظيره.

٢-وأخرج ابن أبى عمر فى (مسنده) حدثنا عبدالمجيد بن أبى داؤد، عن مروان بن سالم عن صفوان بن عمرو، عن شريح بن عبيدعن أبى الدرداء رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قال: قال رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ما من ميت يموت ويقرأ عنده (يس) الاهو ن الله تعالى

كذا فى النسخة المسندة من المطالب ا لعاليه (١/ ٣١٥/ ٨٠٦) وهو فى الفردوس لنفس الاسناد (٦٠٩٩) لكن عن ابى الدرداء وأبى ذر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عنهما.

وقال الحافظ البوصيري فى مختصر الاتحاف ( ٣ /٦٩/ ٢١٥٦) رواه الحارث بسند ضعيف لضعف مروان بن سالم الجزرى وله شاهد من حديث معقل بن يسار رواه اصحاب السنن وابن حبان فى صحيحه .

ومروان بن سالم ضعيف، بل متروك عند بعضهم، لكن قال ابى حاتم الرازى عن أبيه : منكر الحديث جدا ضعيف الحديث ليس له حديث قائم قلت: يترك حديثه ؟ قال لا يكتب حديثه راجع الجرح والتعديل ( ٨/ ١٢٥٥)

فالرجل ضعف بسبب روايته المنكرات فما عرف أنه لم يغرب ولم ينكر فيه فيمكن الاعتبار به ولذلك استشهد بالرجل الحافظ البوصيرى وفى الباب عن أبى ذر رضي الله عنه عزوه لأبي الشيخ فى فضائل القران ولم أقف عليه وأنت اذا معنت النظر فى الطرق المتقدمة تجد أن حديث معقل بن يسار صححه ابن حبان والسيوطى وحسنه المنذرى اذا كان فيه بعض خلل على رأي اخرين فهو ينجبر بالشاهد الاول وله طريقان : احدهما صحيح او حسن والاخر ضعيف وهذا وحده كاف لتقوية حديث معقل بن يسار بحيث يمكن أن تستغنى عن الشاهد الاول ولاغناء عنه بعد استشهاد الحافظ البوصيرى به والحاصل أن الحديث حسن والله أعلم بالصواب.

**دوهم حديث:** من دخل المقابر فقرأ سورة (يس) خفف عنهم يومئذ وكان له بعدد من فيها حسنات (التلخيص الجير ٣ / ١١٥٦)

څوک چې مقبرې ته لاړ او سورة (یس) یې تلاوت کړو نو په دغه ورځ به دمړو عذاب کم شي او دمړو دشمیر په مقدار به ده ته نیکۍ ورکړل شي، علامه سخاوی رحمه الله فرمایی چې ماته ددې حدیث پیدا نه شو او زما دګمان مطابق دا حدیث صحیح نه دی (الأجوبة المرضية للسخاوی ج ١ ص ١٧٠)

**دریم حدیث:** من زار قبر والديه كل جمعة فقرأ عندهما او عنده (يس) غفر له بعدد كل آية او حرف، لکن دا حدیث موضوعی دی (الكامل لابن عدی ج ٥ ص ١٥٢)

**څلورم حدیث:** من مرّ بالمقابر فقرأ قل هو الله أحد احدى عشرة مرةً ثم وهب أجره للأموات أعطى من الأجر بعدد الاموات . لکن علامه سخاوي رحمه الله دی روایت ته موضوعي ویلي دي(الاجوبة المرضية ج ١ صـ ١٦٩)

**پنځم حديث:** وَأخرج أَبُو الْقَاسِم سعدبن عَلىّ الزنجانيرحمهم الله تعالىٰ فِي فَوَائده عَن أبي هُرَيْرَة ﷺ قَالَ قَالَ رَسُول الله صلى الله عَلَيْهِ وَسلم: من دخل الْمَقَابِر ثمَّ قَرَأَ فَاتِحَة الْكتاب و {قل هُوَ الله أحد} و {أَلْهَاكُم التكاثر} ثمَّ اللَّهُمَّ إِنِّي جعلت ثَوَاب مَا قَرَأت من كلامك لأهل الْمَقَابِر من الْمُؤمنِينَ وَالْمُؤْمِنَات كَانُوا شُفَعَآءلَهُ إِلَى الله تَعَالَىٰ. (شرح الصدور للسيوطي صـ ١٣٠ مرقات ج ٤ صـ ١٧٣)

څوک چې قبرستان ته لاړشي او سورة فاتحه ،سورة اخلاص، او الهكم التكاثر ولولي او بيا يې ثواب مړو مسلمانانو سړوا وښځو ته وبښي نو دا خلک به يې دقيامت په ورځ شفاعت کوي.

**شپږم حديث:** أَخْبَرَنِي أَبُو يَحْيَى النَّاقِدُ، قَالَ: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ وَكِيعٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا حَفْصٌ، عَنْ مُجَالِدٍ، عَنِ الشَّعْبِيِّ رحمهم الله تعالى، قَالَ: «كَانَتِ الْأَنْصَارُ إِذَا مَاتَ لَهُمُ الْمَيِّتُ اخْتَلَفُوا إِلَى قَبْرِهِ يَقْرَءُونَ عِنْدَهُ الْقُرْآنَ (القراءة عند القبور للخلال صـ ٨٩)

په انصارو کې رضى الله عنهم کې به چې مړى وشو نو دوي ته به يې قبر ته ورتلل او هلته به يې قرآن لوستلو.

په مصنف ابن أبى شيبه کې د روايت الفاظ داسې دي چې «كَانَتْ الْأَنْصَارُ يَقْرَءُونَ عِنْدَ الْمَيِّتِ بِسُورَةِ الْبَقَرَةِ» (بَاب مَا يُقَالُ عِنْدَ الْمَرِيضِ إِذَا حُضِرَ).

يعنې انصارو رضى الله عنه به مړي ته سورة بقره لوستله.

الباني وايي چې په دې حديث کې قراءت عند القبر نه دى بلکې عند المحتضر دى لکن مونږ وايو چې دميت اطلاق په محتضر باندې مجاز دى او که ته وايي چې په مصنف ابن أبي شيبه کې ورته دمحتضر باب لګيدلى دى، نو مونږ وايو چې دميت اطلاق په محتضر هم کيږي لدې وجې دمصنف ابن شيبه دباب مطلب دادى چې قرآن دميت په شان باندې محتضر ته هم لوستلى شي.

ألباني ليکي چې: دا روايت ضعيف دى، مونږ جواب کوو چې مخکې دلجلاج رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او دعبدالله بن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په احاديثو باندې قراءت عند القبور وعند الميت ثابت شو پدې رواياتو باندې مونږ ديو ثابت شده أمر توثيق کوو.

قال العلامه محمود سعيد ممدوح وفى اسناده مجالد بن سعيد وهو صالح فى المتابعات والشواهد وأخرج له مسلم فى صحيحه مقرونا بغيره فى كتاب الطلاق، باب المطلقة البائن لا نفقة لها (كشف الستور صـ ٢٣٨)

**اووم او اتم حديث:** عن أبي أمامة رواه الحاكم ايضا والبيهقى ، وسنده ضعيف ولفظه صلى الله عليه وسلم (منها خلقناكم وفيها نعيدكم ومنها نخرجكم تارة أخرى) بسم الله وفي سبيل الله وعلى ملة رسول الله . (التلخيص الجبير ١٢٣١/٤، مستدرک ج ٢ صـ٣٧٩)

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه: أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - صَلَّى عَلَى جِنَازَةٍ، ثُمَّ أَتَى قَبْرَ الْمَيِّتِ، فَحَثَى عَلَيْهِ مِنْ قِبَلِ رَأْسِهِ ثَلَاثًا. (ابن ماجه نمبر ١٥٦٥) كتاب الجنايز باب ماجاء فى حثو التراب فى القبر)

په اول حديث کې دا راغله چې رسول الله صلى الله عليه وسلم دخپلې لور أم کلثوم قبر ته د ورکوزولو څخه وروسته (منها خلقناكم الايه) ولوستلو او په دوهم حديث کې راغله چې نبى صلى الله عليه وسلم دسر له طرفه درې لپې خاوره واچوله.

## دريم فصل

**دقراءت عند القبر مسئله عند المذاهب الاربعة:**

**احناف:** په دې مسئله کې دامام صاحب رحمه الله او يا دصاحبينو رحمهما الله خپل قول پيدا نه شو ألبته

١-طاهر بن رشيد رحمه الله فرمايي چې دامام صاحب رحمه الله په نيز دقرآن لوستل عند القبر مکروه دي او دامام محمد رحمه الله په نيز جايز دي او مفتى به قول دامام محمد رحمه الله دى (رجل اجلس على قبر أخيه رجلا يقرأ القرآن يكره عند أبي حنيفه رحمه الله وعند محمد رحمه الله لايكره ومشايخنا أخذوا بقول محمد رحمه الله . (خلاصة الفتاوى ج ٤ صـ ٣٢٤)

لکن ددې عبارت څخه دانه واضح کيږي چې دامام صاحب رحمه الله او دامام محمد رحمه الله اختلاف په قراءت عند القبر کې دى او که پدې خاص کيفيت کې دى ظاهر دا معلوميږي چې اختلاف په دې خاص کيفيت کې دى.



٢-ابن تيميه رحمه الله هم امام صاحب رحمه الله ته دکراهت قول منسوبوي فرمايي چې: وقد تنازع الناس فى القراءة عند القبر فكرهها ابو حنيفه رحمه الله ، (فتاوى ابن تيميه ج ٢٤ صـ ٣١٧ واقتضاء الصراط المستقيم ج ٢ ص٧٣٦)

٣-علامه ابن أبى العزم امام صاحب ته دکراهت قول منسوبوي فرمايي چې: فمن قال بكراهتها كأبى حنيفه رحمه الله ومالک واحمد فى رواية ، قالوا لانه محدث لم ترد به السنة والقراءة تشبه الصلوة

والصلوة عند القبور منهى عنها فكذلک القراءة ومن قال بأس بها كمحمد بن حسن و احمد فى رواية استدلوا بما نقل عن ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (شرح العقيده الطحاويه صـ ٤٦٥)

۴- ملا على القارى رحمه الله هم امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ ته دكراهت قول منسوبوي فرمايي چې: ثم القراءت عند القبور مكروهة عند ابى حنيفه ومالک واحمد فى رواية لانه محدث لم ترد به السنة ، وقال محمد بن الحسن واحمد فى رواية لايكره لما روى عن ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (شرح الفقه الاكبر صـ ١٣١) قديمى كتب خانه كراچى )

لكن ددوي په خلاف نور علماء د امام صاحب طرف ته د جواز قول منسوبوي.

علامه قرافى المالكى رحمه الله فرمايي چې: مذهب أبى حنيفه رحمه الله واحمد بن حنبل رحمه الله أن القراءة يحصل ثوابها للميت ، واذا قرئ عند القبر حصل للميت أجر المستمع (الفروق للقرافى ج ٣صـ ١٩٢ تحقيق الامال صـ ٤٣)

## متأخرينو أحنافو په يو اتفاق سره ويلي دي چې قراءت للميت وعند القبر جايز دى

علامه كاسانى رحمه الله فرمايي چې: وَعَلَيْهِ عَمَلُ الْمُسْلِمِينَ مِنْ لَدُنْ رَسُولِ اللّهِ- صَلَّى اللّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- إِلَى يَوْمِنَا هٰذَا مِنْ زِيَارَةِ الْقُبُورِ وَقِرَاءَةِ الْقُرْآنِ عَلَيْهَا وَالتَّكْفِينِ وَالصَّدَقَاتِ وَالصَّوْمِ وَالصَّلَاةِ وَجَعْلِ ثَوَابِهَا لِلْأَمْوَاتِ (بدايع الصنايع ٢ / ٢١٢)

درسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څخه ترننه پورې دا عمل را روان دى چې خلک دقبورو زيارت ته ځي او صدقات او تكفين او صدقات كوي او روژې نيسي مونځونه كوي او ثوابونه يې مړي ته بښي.

علامه حسن بن منصور قاضى خان فرمايي چې: وان قرأ عند القبور ان نوى بذلک أن يؤنسهم صوت القرآن فانه يقرأ (فتاوى قاضى خان ج ٣ صـ ٤٢٢)

كه د قبر سره يې قرآن ولوستلو په دې نيت باندې چې مړى أنس حاصل كړي نو لوستلى شي.

ابن همام رحمه الله فرمايي چې: واختلف فى اجلاس القارئين ليقرءوا عند القبر والمختار عدم الكراهية (فتح القدير ج ٣صـ ٦٥) الحج عندالغير)

پدې كې اختلاف دى چې قاريان قبر سره كينول د قرآت لپاره مكروه دى او كه نه؟ مختار عدم كراهية دى.

علامه ابن نجيم رحمه الله فرمايي چې: وَلَا بَأْسَ بِقِرَاءَةِ الْقُرْآنِ عِنْدَ الْقُبُورِ وَرُبَّمَا تَكُونُ أَفْضَلَ مِنْ غَيْرِهِ وَيَجُوزُ أَنْ يُخَفِّفَ اللَّهُ عَنْ أَهْلِ الْقُبُورِ شَيْئًا مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ أَوْ يَقْطَعَهُ عِنْدَ دُعَاءِ الْقَارِئِ وَتِلَاوَتِهِ. (البحر الرايق ج ۲ صـ ۱۹۵)

دقبر په خواکې دقرآن لوستل جايز دي او كله بهتر هم وي او امكان لري چې دقرآن ذتلاوت په وجه دمړي په عذاب کې تخفيف راشي او يا ددعا دلوستونكي په وجه بالكل ختم شي.

ملا على القارى فرمايي چې: فينبغى ان يزورهم ويتبرک بهم ويسلم عليهم ويكثر قراءة القرآن حولهم (شرح لباب المناسک لعلى القارى صـ ۳۳۳)

علامه شرنبلالى رحمه الله فرمايي چې: فصل فى زيارة القبور...... ويستحب قراءة (يس) نورالايضاح صـ۱۳۱)

علامه علاء الدين محمد بن على الحصكفى رحمه الله فرمايى چې: ويقول : السلام عليكم دار قوم مؤمنين وانا ان شاء الله بكم لاحقون ويقرأ (يس) (الدر المختار ج ۲ص- ٢٤)

علامه شامي رحمه الله بيا دلته ډير تفصيل كړى دى.

**مالكيه:** داسې مستندروايت چې دامام مالک رحمه الله خپل قول پکې ذکر شوي وي پيدا نه شو دامام مالک په تصانيفو (موطا) او (مدونه) کې څه قول پيدا نه شو دعلامه ابن رشد المالكى رَحِمَهُ اللَّهُ په (بداية المجتهد) او په (البيان والتحصيل) کې هم څه پيدا نه شول.

ابن تيميه رحمه الله امام مالک رحمه الله ته دكراهت قول منسوب كړى دى، قال مالک ما علمت احدا يفعل ذلک اقتضاء الصراط المستقيم ج ۲صـ ۷۳٦)

علامه وهبة الزحيلى ليكي چې دقدماء مالكيه وو قول دعدم جواز وو لكن متأخرينو مالكيه وو ورته جايز ويلي دي ، وَذَهَبَ الْمَالِكِيَّةُ: إِلَى كَرَاهَةِ الْقِرَاءَةِ عَلَى الْمَيِّتِ بَعْدَ مَوْتِهِ وَعَلَى قَبْرِهِ لِأَنَّهُ لَيْسَ مِنْ عَمَلِ السَّلَفِ، قَالَ الدَّرْدِيرُ: الْمُتَأَخِّرُونَ عَلَى أَنَّهُ لَا بَأْسَ بِقِرَاءَةِ الْقُرْآنِ وَالذِّكْرِ وَجَعْلِ ثَوَابِهِ لِلْمَيِّتِ وَيَحْصُلُ لَهُ الْأَجْرُ إِنْ شَاءَ اللَّهُ.. الفقه الاسلامى وأدلته: ج ۲ صـ ۲۵۱ ) قال الدردير: (المتأخرون على أنه لا بأس بقراءة القرآن وجعل ثوابه للميت. (الموسوعة الفقهية: ج ۳۲ صـ ۲۵۵)

**شافعيه :** دشافعيه ؤ په نيز قراءة عند القبر جايز دى، حسن بن الصباح الزعفرانى فرمايي (سألت الشافعى عند القراءة عن القبور ؟ فقال لا بأس به (القراءة عند القبور صـ ۲ الامر بالمعروف)

په رياض الصالحين كې يې باب لګولى دى په نوم د(باب الدعاء للميت بعد دفنه والقعود عند قبره ساعة للدعاء له والاستغفار والقراءة.

ددې لاندې ليكي چې: قال الشافعي رحمه الله ويستحب أن يقرأ عنده شئ من القرآن وان ختمو القرآن عنده كان حسنا (رياض الصالحين صـ ٣١٣) همداسې په المجموع شرح المهذب كې هم دي ج ٥ صـ ٢٨٦)

امام بيهقى فرمايي چې: قال الشافعي رحمه الله و أحب لو قرأ عند القبر ودعى للميت (معرفة السنن والاثار ج ٣صـ ١٩١).

**دألباني خبط:** ألباني دامام نووي رحمه الله په خبره اعتراض كوي او ليكي چې: قلت لا ادري. اين قال: ذلك الشافعي رحمه الله ؟ وفى ثبوته عنه شك كبير عندى كيف لا ومذهبه ان القراءة لايصل ثوابها الى الموتى كما نقله عنه ابن كثير فى تفسير قوله تعالى وان ليس للانسان الا ماسعى ) وقد اشار شيخ الاسلام ابن تيميه الى عدم ثبوت ذلك عن الامام الشافعي بقوله فى الاقتضاء (لايحفظ عن الشافعي نفسه فى هذه المسئلة كلام لان ذلك كان عنده بدعة )(رياض الصالحين صـ ٣٧٠)

وا بيان دالباني داعبارت تحقيق ګڼي او فخراً يې رانقلوي، حالانكې دألباني په تحقيق كې ډېر ځايه غلطي ده.

الباني ليكي چې: لا ادري اين قال ذلك الشافعي ؟

مونږ وايو دامام شافعي رحمه الله قول دسند سره واوره امام خلال رحمه الله فرمايي چې: أَخْبَرَنِي رَوْحُ بْنُ الْفَرَجِ، قَالَ: سَمِعْتُ الْحَسَنَ بْنَ الصَّبَّاحِ الزَّعْفَرَانِيَّ، يَقُولُ: "سَأَلْتُ الشَّافِعِيَّ رَحِمَهُ اللهُ عَنِ الْقِرَاءَةِ عِنْدَ الْقَبْرِ فَقَالَ: لَا بَأْسَ بِهِ(القراءة عند القبور صـ ٢ الامر بالمعروف)

روح بن الفرج اوثق الناس ؤ تهذيب الكمال ج ٣صـ٥٣٦)

حسن بن صباح الامام العلامه شيخ الفقهاء والمحدثين ...ثقة جليلا عالى الرواية كبير المحل (سيراعلام النبلاء ج ١٢صـ٢٦٢)

ألباني په احكام الجنايز صـ ١٢، صـ ١٩٣) امام خلال رَحِمَهُ اللَّهُ په كتاب كې دالقراءة عند القبور باندې حوالې وركړې دي نو دا روايت يې څرنګه نه دى ليدلى؟

الباني ليکي چې: وفی ثبوته عنه شک الخ ؟ او دشک وجه داده چې ابن کثیر لیکلی دی چې دامام شافعي رحمه الله په مذهب باندې مړي ته دقرآن ایصال ثواب نه شته، مونږ وایو چې دقرآن دایصال ثواب مسئله جدا ده او دقبر په خوا کې دقرآن دلوستلو مسئله جدا ده، دقرآن ایصال ثواب اګر چې دامام شافعی رحمه الله په نیز نا جایز دی لکن دقبر په خوا کې دقرآن لوستل دامام شافعي رحمه الله په نیز جایز دی .

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمایی چې: واما قوله هل يصل الى الميت ثواب القراءة سواء قرء عند قبره او غايئبا عن قبره وهل له ثواب القراءة بكمالها او ثواب مستمع؟ فهما تان مسألتان) وروسته لیکي چې وعلى هذا يستمع الميت القراءة واذااستمع حصل له ثواب مستمع الامتناع بالاربعين المتباينة السماع ص( ٨٥)

٣-ألباني لیکی چې: ابن تیمیه رحمه الله فرمایلي دي چې: لايحفظ عن الشافعي رحمه الله نفسه فى هذه المسئلة شيءٌ لان ذلک كان عنده بدعة )

مونږ وایو چې څرنګه ابن تیمیه رحمه الله یو طرف ته وایي چې خپله دامام شافعي رحمه الله څخه په دې باره کې هیڅ نه دي رانقل شوي او بیا دامام شافعي رحمه الله څخه دبدعت والي قول رانقلوي، نو چې دامام شافعی رحمه الله هیڅ قول پکې نشته نو دبدعت قول دې دکومه کړو؟

شیخ محمود سعید رحمه الله لیکي چې: اخطأ ابن تيميه على الامام الشافعي رحمه الله فنفى الثابت عنه وقوّله ما لم يقله (كشف الستور صـ ٢٤٢)

## دشوافعو تعامل:

علامه ذهبي رحمه الله دعلامه خطیب بغدادي الشافعي په ترجمه کې لیکي چې: وختم على قبره عدة ختمات )سير اعلام النبلاء ١٨ / ٢٨٦)

هـدارنګه دابو جعفر الهاشمي په باره کې لیکي چې: ودفن الى جانب قبر الامام احمد ولزم الناس ره مدة حتى قيل ختم على قبره عشرة آلاف ختمةٍ) سير اعلام النبلاء ١٨/ ٢٨٦)

علامه ذهبی دشیخ ابو منصور الخیاط په باره کې لیکي چې: قال السلفى ذكر لى المؤتمن الساجى فى ثانى جمعة من وفات أبى منصور : اليوم ختموا على رأس قبره مأتين واحدى وعشرين ختمة (تاريخ الاسلام ١٠صـ ٨١٧).

**حنابله:** امام احمد بن حنبل په اول کې قراءة عند القبر ته ناجایز ویلي دي، امام ابو داؤد فرمايي چې سمعت احمد سئل عن القراءة عند القبر ؟ فقال لا (مسايل الامام احمد صـ ١٥٨)

امام عباس دوري رَحِمَهُ اللَّهُ چې رسالت احمد بن حنبل ما يقرأ عند القبر؟ فقال ما احفظ فيه شيئا

تاريخ يحيى بن معين الدورى ج ٢ص ـ ٣٨٠، القراءة عند القبور صـ ١)، والامر بالمعروف والنهى عن المنكر للخلال ج ١صـ ٢٩٦)

لکن وروسته يې دخپل قول څخه رجوع وکړه لکه مخکې يې چې قصه ذکر شوه او دالباني انکار او جواب هم ذکر شول، ددې رجوع په بناء باندې ابن قدامه حنبلي رحمه الله فرمايي: وَلَا تُكْرَهُ الْقِرَاءَةُ عَلَى الْقَبْرِ فِي أَصَحِّ الرِّوَايَتَيْنِ. وَأَيُّ قُرْبَةٍ فَعَلَهَا، وَجَعَلَهَا لِلْمَيِّتِ الْمُسْلِمِ نَفَعَهُ ذَلِكَ. (المقنع فى فقه امام السنة احمد بن حنبل ج ١صـ ٢٨٢)

همدارنګه په يو ځاى کې ليکي چې: فَصْلٌ: قَالَ: وَلَا بَأْسَ بِالْقِرَاءَةِ عِنْدَ الْقَبْرِ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ أَحْمَدَ رَحِمَهُ اللَّهُ أَنَّهُ قَالَ: إذَا دَخَلْتُمْ الْمَقَابِرَ اقْرَءُوا آيَةَ الْكُرْسِيِّ وَثَلَاثَ مِرَارٍ قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ، ثُمَّ قُلْ: اللَّهُمَّ إنَّ فَضْلَهُ لِأَهْلِ الْمَقَابِرِ. وَرُوِيَ عَنْهُ أَنَّهُ قَالَ: الْقِرَاءَةُ عِنْدَ الْقَبْرِ بِدْعَةٌ، وَرُوِيَ ذَلِكَ عَنْ هُشَيْمٍ، قَالَ أَبُو بَكْرٍ: نَقَلَ ذَلِكَ عَنْ أَحْمَدَ جَمَاعَةٌ، ثُمَّ رَجَعَ رُجُوعًا أَبَانَ بِهِ عَنْ نَفْسِهِ. بيا يې هغه مخکې دضرير قصه را نقل کړي ده. (المغنى لابن قدامه ج ٣صـ ٥١٨)

امام خلال فرمايي چې: أَخْبَرَنِي الْعَبَّاسُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ أَحْمَدَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ، قَالَ: حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ الْحُسَيْنِ النَّيْسَابُورِيُّ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ شَبِيبٍ، قَالَ: "أَتَيْتُ أَحْمَدَ بْنَ حَنْبَلٍ رَحِمَهُ اللَّهُ فَقُلْتُ لَهُ: إِنِّي رَأَيْتُ عَفَّانَ يَقْرَأُ عِنْدَ قَبْرٍ الْمُصْحَفِ، فَقَالَ لِي أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ رَحِمَهُ اللَّهُ: خُتِمَ لَهُ بِخَيْرٍ (القراءة عند القبور صـ ١)

جعفر بن محمد ثقه دى ، سلمة بن شبيب هم ثقه دى (تهذيب التهذيب ج ٤صـ ١٢٩)

همدارنګه امام خلال رجمه الله فرمايي: أَخْبَرَنِي الْحَسَنُ بْنُ الْهَيْثَمِ الْبَزَّازُ، قَالَ: «رَأَيْتُ أَحْمَدَ بْنَ حَنْبَلٍ رَحِمَهُ اللَّهُ يُصَلِّي خَلْفَ رَجُلٍ ضَرِيرٍ يَقْرَأُ عَلَى الْقُبُورِ» (القراءة عند القبور صـ ١)

## ددیوبند داکابرو فتوى

**مولانا رشيد احمد ګنګوهى رحمه الله:** فرمايي چې په قبرستان کې دقرآن لوستل جايز دى (فتاوى رشيديه صـ ٢٦٦)

**مولانا اشرف علی تهانوی رحمه الله فرمايي:** ددفن څخه وروسته دسورة بقرې داول او دآخر لوستل ثابت دي.(امداد الفتاوی ج ١ص٥٧٢)

**مفتی کفایت الله رحمه الله فرمايي:** ددفن څخه وروسته دقبر سر او پښو ته دسورة بقرې د اول او دآخر لوستل مستحب دي . (کفاية المفتی ج ٤ص٦٢)

**مفتی عزیزالرحمن رحمه الله فرمايي:** ددفن څخه وروسته دقبر سر او پښو ته دسورة بقرې د اول او دآخر لوستل مستحب دي . (فتاوی دارالعلوم دیوبند أردو ج ٥ص٣٣٦)

**مفتی محمود حسن کنګوهی رحمه الله فرمايي:** دقبر سر او پښو طرفته دسورة بقرې د اول او دآخر لوست لثابت دی فتاوی محمدیه ج ٩ص١٠٨، ١٤٥)

**مفتی رشید احمد لدهیانوی رحمه الله فرمايي:**

قراءة عند القبور جايزدي البته په أجرت باندې يې لوستل ناجايز دي (احسن الفتاوی ج ٤ص١٩٦).

**مولانا سرافراز خان صفدر رحمه الله فرمايي:**

ددفن څخه وروسته سر او پښو ته دسورة بقرې د اول او د آخر لوستل جايز دي او دصحيح حديث څخه ثابت دي ، همدارنګه تسبيح ، تهليل وغيره هم ثابت دي (راه سنت ص٢١٩)

**مفتی تقی عثمان مدظله فرمايي:**

چې دقبر سر او پښو ته دسورة بقرې د اول او دأخر لوستل مستحب دي (درس ترمذی ج ٣ص٢٦٦)

## فايدة فی طلب المغفرة للصغير

(ص١٩٩)وأما الحكمة فی طلب المغفرة للصغير مع أنه لايلحقه اثم، فهی كما قال شيخنا رحمه الله اذا سئل عن قولهم فی دعاء الجنازة اللّهمّ اعفو لصغيرنا وكبيرنا ، يحتمل او جهاً :

احدها: أن يكون المراد بطلبها له تعليقها ببلوغة اذا بلغ وفعل ما يحتاج اليها.

ثانيها: أن يكون طالبها له ينصرف الی والديه ، او الی احدهما او الی من ربّاه.

ثالثها: أن ينصرف اليه برفع منزلته مثلاً ، كما فی البالغ الذی لاذنب له اذا فرض ، كمن مات بعد بلوغه بقليل ، او بعد اسلامه الخالص بقليل.

رابعها: أنه يتخرّج على أحد أقوال العلماء فى الاطفال والمراهقين، وكذا من بلغ العشر مـن السـنين. فان كل ذلک محتمل لأن المسألة اجتهادية، فيحسن الدعاء لهم باعتبـار ذلـک . والله اعلـم (القـول البديع فى الصلوة على الحبيب الشفيع)

## خاتمه

### دمانعينو دليل:

دمنع په باره کې هيڅ يو صريح حديث نه شته ، البته مانعين ديو غير صريح روايت څخه استد لال کوي، هغه روايت دادی چې: لا تجعلوا بيوتکم مقابر فان الشيطن يفر من البيت الذى يقرأ فيه سورة البقرة.

طريقه داستدلال داسې ده چې نبی ﷺ فرمايي چې په کورونو کې دقرآن کريم تلاوت کوئ، او دکورونو څخه قبرستان مه جوړوئ يعنی (ځکه چې هلته تلاوت ناجايز دی )

دا استدلال داسې دی لکه امام بخاری رحمه الله چې : (صلوا فی بيوتکم ولا تتخذوها قبوراً) څخه استدلال کړی دی چې په مقبره کې مونځ مکروه دی او ددې حديث لپاره يې باب لګولی دی په نوم دباب کراهية الصلوة فی المقابر (احکام الجنايز للالبانی صـ١٩١)

جواب: مونږ وايو چې داول مقيس حديث څخه صراحةً صرف دومره رامعلوميږي چې په کورونو کې دتلاوت کول پکار دي، په مقبره کې يې دقراءت څخه صراحةً منع نه ده کړې ، همدارنګه ددوهم حديث څخه صراحةً صرف دومره رامعلوميږي چې په کورونو کې مونځ پکار دی او پدې حديث کې هم په مقبره کې دمونځ څخه صراحةً منع نه ده ذکر شوې.

دعلماؤ په اصطلاح کې ديته تصريح او تنصيص وايي ، لکن ددې تصريح سره سره په دې دواړو حديثونو کې ديو جانب مخالف احتمال هم شته، چې په هديرو او مقبرو کې تلاوت او مونځ مه کوئ، او دا احتمال هم شته چې دا جانب مقابل نه وي مراد، له دې وجې څخه دامام بخاري رحمه الله په استدلال باندې قاضی عياض رحمه الله او ابن التين اعتراض کړی دی .

قاضی عیاض رحمه الله ليكي چې: وَقد تَأَوَّلَه البُخَارِيّ رحمه الله لاتجعلوها كالمقابر الّتي لاتجوز الصَّلاة فِيهَا وَتَرْجم عَلَيْهِ كَرَاهَة الصَّلَاة فِي الْمَقَابِر وَالْأول هُوَ الْمَعْنى لَا هَذَا. (مشارق الانوار على صحاح الأثار ج ٢ص ١٦٩)

او علامه ابن التين رحمه الله ليكي چې: تَأَوَّلَهُ الْبُخَارِيُّ رحمه الله عَلَى كَرَاهَةِ الصَّلَاةِ فِي الْمَقَابِرِ وَتَأَوَّلَهُ جَمَاعَةٌ عَلَى أَنَّهُ إِنَّمَا فِيهِ النَّدْبُ إِلَى الصَّلَاةِ فِي الْبُيُوتِ إِذِ الْمَوْتَى لَا يُصَلُّونَ كَأَنَّهُ قَالَ لَا تَكُونُوا كَالْمَوْتَى الَّذِينَ لَا يُصَلُّونَ فِي بُيُوتِهِمْ وَهِيَ الْقُبُورُ قَالَ فَأَمَّا جَوَازُ الصَّلَاةِ فِي الْمَقَابِرِ أَوِ الْمَنْعِ مِنْهُ فَلَيْسَ فِي الْحَدِيثِ مَا يُؤْخَذُ مِنْهُ ذَلِكَ.. (فتح الباری ج ١ص ٦٩٦)

حافظ ابن حجر رحمه الله دابن التين ددې عبارت د رانقلولو څخه وروسته ليكي چې: قُلْتُ إِنْ أَرَادَ أَنَّهُ لَا يُؤْخَذُ مِنْهُ بِطَرِيقِ الْمَنْطُوقِ فَمُسَلَّمٌ وَإِنْ أَرَادَ نَفْيَ ذَلِكَ مُطْلَقًا فَلَا فَقَدْ قَدَّمْنَا وَجْهَ اسْتِنْبَاطِهِ. (فتح الباری ج ١ص ٦٩٦)

نو دألبانی سره يو صريح حديث هم نشته ، بل طرفته دجواز صريح احاديث دي او دخير القرون تعامل هم شته.

وصلى الله تعالى على خير خلقه محمدٍ وآله واصحابه اجمعين

❁❁❁

# فهرس

## مسئلة التراويح



## ائمه اربعه او ټول امت مسلمه

## دتراویحو د لمانځه اجمالي جایزه په ضمن د(١۴) سوالونو او جوابونو کې



## د تهجدو او دتراویحو په مابین کې (٦٧) فرقونه او ورسره د اتو رکعتو او شلو رکعتونو د اختلاف حقیقت او یو خوندوره مکالمه



## د درې رکعتو وترو ثبوت



## د جنازې په لمونځ کې

## د دريو طلاقونو مسئله

## مسئلة اللحية

## په لمانځه کې سر پټول(د پګړې او خولۍ پسرول)

## تحقیق الجمعة فی القری وما یتعلق بها

## په محبسونو کې دجمعې په ورځ د ماسپښين لمونځ

## په مسجد او په عيدگاه کې د ښځو د لمونځ او داعتکاف مسائل

## مسئلة تكبيرات العيدين

## د اختر په ورځ د جمعې د لمانځه شرعي حکم



## د قرباني ورځې



## المسح علی الجوربين يعنې په جرابو باندې مسح کول

## مسئلة المصافحة باليدين

## متفرق مسائل

## رسالة القراءة عند القبور

